





★ اعراب
★ تحت السطور ترجمه
★ خلاصه د متن
★ اغراض د جامی
★ فوائد نادره
★ نکات، لطیفه
★ نقشه جات






مرتب

مولانا محمد فیض الهادی حقانی

پسند فرموده

شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد ادریس ترنگزئی صاحب

مکتبه رحمانیه
محله جنگی قصه خوانی بازار پشاور
0302- 62 09 815

حنفی شافعی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند ، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب و غیرہ۔


کفایت اللہ ابن صدیق

+923052488551

+923247442395








مالکی حنبلی

بسم الله الرحمن الرحیم

دکتاب نوم : فیض الجامي پښتو شرح دشرح جامي

مصنف : حضرت مولانا عبدالرحمٰن جامی رَحِمَهُ اللّٰهُ

مُرتب: ابو الطیب مولوي محمد فیض الهادي " حقاني "

فاضل دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

مدرس بمدرسة عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چارسده روډ ،پشاور

تصحیح : مولوی نصیر الدین " حقانی "

فاضل دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

تصحیح ونظرِ ثاني : مولوی محمد جان " حقانی "

فاضل دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

نظرِ ثالث : مولوی حافظ عبدالصبور " حقانی "

فاضل دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

کمپوزنگ : ابوبدر کمپوزنگ سنټر، پشاور

پروپرائیټر : ابوالطیب "حقاني" موبائل نمبر: 0311-9316109

سالِ اشاعت بار اول: ۱۴۳۵هـ موافق ۲۰۱۴ء

سالِ اشاعت بار سوم : ۱۴۳۷هـ موافق ۲۰۱۶ء

ناشر : مکتبه رحمانیه محله جنګي پشاور

# فهرست جُز اول :

# تقریظ

## برکة العصر ، المحدث الکبیر شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد ادریس ترنګزئي صاحب

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله رب العالمین والصلوٰة والسلام علی سیدنا محمد خاتم النبیین وعلی آله وأصحابه هداة الدین أمابعد!

زیرِ نظر کتاب "فیض الجامي پښتو شرح د شرح جامي" د بعضې مواضعو مطالعه مې وکړه . فاضل مؤلف "مولانا محمد فیض الهادي حقاني صاحب "په پښتو ژبه کې د شرحِ جامې ډیر بهترین خدمت کړې دي .

کافیه د نحوې په کتابونو کې ډیر اهمیت لري ډیر مختصر کتاب دي لیکن که په غور یې مطالعه وکړې شي نو د نحوې د قواعدو یوه عظیمه مجموعه ده ددې وجې نه د درسِ نظامي په نصاب کې ډیر اهمیت لري .

په مختلفو ادوارو کې لوي لوي علماء کرامو ددې شروح او حواشي په مختلفو ژبو کې لیکلي دي لیکن مولانا عبدالرحمن جامي رحمه الله چې کومه شرحه لیکلي ده نو د "سونے پہ سہاگہ" مصداق دي الله تعالی دې لره یو مقبولیت ورکړې دي او د متن په شان د درس نظامي د نصاب اهم کتاب منلې شوي دي .

په مختلفو ازمنو کې ډیرو علماء کرامو دې حواشي او شروح لیکلي دي په مختلفو ژبو کې . زیرِ نظر کتاب هم د شرح جامي د شروحو په شان یوه شرحه ده ، ما په ډیر عجلت د بعضې مواضعو مطالعه وکړه فاضل مؤلف په سلیس انداز لیکل کړي دي او د متن آسانه ترجمه او د مولانا جامي رحمه الله اغراض ، شرح او وضاحت د مغلقو ځایونو ، فوائد قیود او د امثلو وضاحت او د شرح او متن ضروري تطبیقاتو باندې مزین کتاب مرتب کړي دي او محترم ورور شهزاده صاحب ترې د اشاعت ذمه داري اخستې ده .

د الله تعالی نه دعا ده چې د مدرسینو او طلباو د پاره یې باعث د استفادې او د فاضل مؤلف او ناشر د پاره باعث د اجر او ثواب ذریعه وګرځوي آمین فقط

محمد ادریس عفی عنه

## اعتذار او غوښتنه :

الحمد لولیه والصلوة علی نبیه والصلاة والسلام علی عبادہ الذین اصطفی . أما بعد !

ديني عالمانو سلفاً او خلفا په هر وخت کې د دين د نشر او اشاعت په غرض د خپل ذوق او استعداد او د وخت د ضرورت او مصلحت په اساس په مختلفو علومو کې ليکنې کړي دي او د ذي ربط خلکو ديني ضرورت او مشکل يې پوره کړي دي .

محترمو ! شرح ملا جامي چې د درسِ نظامي يو مهم او قيمت بها کتاب دي اوپه دې باندې ځان پوه کول او مقصود ته رسيدل ډير زيات ګران او مشکل کار دي ، چونکې موجوده وخت کې طالب العلم د مختلف النوع مشکلاتو او پريشانو سره لاس او ګريبان دي ، او څه د همتونو کمزورتياګانې دي ، نو د مشکلاتو او د کم همتې د وجې نه مقصود ته رسيدل ورته مشکل او سخت وي .

نو ددې وجې نه د بعضو ملګرو دا خواهش وو چې داسې يوه مجموعه تياره شي چې مدرسين ورونه او طالب علمان ترې په آسانه مستفيد او د شرح جامي چې کوم مقصود دي هغه حاصل کړي ، نو ددې مجموعې په جمع کولو باندې مو شروع وکړه .

اصلاً زمونږ نيت او اراده داسې وه چې دشرح جامي معرب اومبني دواړو شرحه تياره کړو او محترمو طالبانو او علماو ته يې ور وړاندې کړو ، خو چونکې د بيمارې او د مشکلاتو د ډير والې او د وخت د تنګوالي په اساس باندې مو مبني تر معرفې او نکرې پورې وکړه او ان شاء الله آئنده ايډيشن کې به مبني تر آخره پورې مکملوو .

نو الحمد لله دالله تعالى په فضل او کرم او د مشفقو استاذانو د نيکو دعاګانو په برکت سره دا مجموعه يو څه وخت وروسته اختتام ته ورسيده .

اين سعادت بزور بازو نيست ☆ تا نه بخشد خداى بخشنده

د خپل استعداد او طاقت موافق مو ددې مجموعې په تيارولو کې ښه کوشش او محنت کړي ترڅو چې غلطي او تيروتنه په کې رانه شي خو انسان کمزورې او د نسيان ښکار کيدلې شي نو په دې اساس که تاسو په دې مجموعه کې څه کمی محسوس کړي نو مونږ ته يې نشاندهي کړئ ترڅو په آئنده ايډيشن کې اصلاح او اصلاح شده مجموعه محترمو طالبانو او مدرسينو ورونو لاس ته مخکې شي .

## د کتاب په باره کې يو څو ګذارشات:

(۱) **په متن باندې اعراب**: په اعراب کې مو ډير کوشش کړې دې ترڅو ظاهره او علمي غلطي تيره نه شي خو بيا هم خلق الانسان ضعيفا.

(۲) **تحت السطور ترجمه**: په ترجمه کې مونږ حد الوسع کوشش کړي ترڅو روانه، سليسه اوعام فهمه ترجمه وکړو ترڅو د عبارت مغلقات پرې حل شي.

(۳) **خلاصه دمتن**: تر خپل طاقته پورې مو کوشش کړې چې د متن خلاصه بيان کړو.

(۴) **اغراض دجامي**: د هر يو لفظ اغراض اومقاصد دجامي مو بيان کړي او د ډير قيل او قال نه مو ډډه او اجتناب کړې دي.

او په څه ځايونو کې مو نقشه جات، نکت غريبه او فوائد عجيبه هم ذکر کړي دي.

دکتاب دحجم زياتوالې په اساس مو کوشش کړې دي چې ډيز قيل اوقال رانه شي او چې کوم مهم سوالات اوجوابات، مغلقات دجامي دي نو هغه مو تر يو اندازه حل کړي دي.

اود تصحيح مو هم تر حتی الوسع کوشش کړي خو د وقت د تنګوالي په اساس به ان شاء الله په آينده دوهم ايډيشن کې دکتاب په ترتيب اوتزين اوتصحيح کې به نور کوشش هم وشي.

د ټولو هغو علماو نه مشکور يم او د قادر ذات نه ورته د دارينو د خوشحالی، سعادت او کاميابي غوښتونکې يم کومو علماو چې مونږ سره ددې مجموعې په ترتيب، تصحيح اوتزين کې همکاري کړي ده او ددې کتاب په تکميل کې يې زمونږ سره تکاليف او سختی ګاللې دي.

الله تعالی دې زما د عاجز بنده دا کمزوري خدمت په خپل دربار کې قبول او منظور کړي، او زما او زما والدينو، استاذانو او د ټول امت مسلمه د پاره د مغفرت او بخښنې سبب وګرځوي.

غرض نقشے است کز ما یاد ماند ✿ کہ ہستی را نمی بینم بقائے
مگر صاحبدلی روزے برحمت ✿ کند در حق این مسکین دعائے

محمد فيض الهادي حقاني

مدرس بمدرسة عبدالله بن مسعود رضي الله عنه

لنډي سرک سټاپ، چارسده روډ پشاور

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د مصنف د ژوند حالات :

د مصنف نوم عبدالرحمن او لقب یې عماد الدین یا نور الدین دی او کنیت یې ابوالبرکات دی د پلار نوم یې احمد او د نیکه نوم یې محمود دی

او بعضي علماء وايي چې دده لقب عماد الدين وو ، ليكن صحيح خبره داده چې اولاً دده لقب عماد الدين وو، ليكن وروسته بيا په نورالدين لقب سره مشهور شو .

**پیدائش** : دده پیدائش په جام کلي کې په یو بستي خرجرد نومې ځای کې په ۲۳ دشعبان ۸۱۷هـ مطابق ۷ نومبر ۱۴۱۴ء ماخوستن پیداشوي دي

په خپله علامه جامي د خپل پیدائش ځای او خپل نسبت طرف ته په دې لاندې اشعارو کې اشاره کړي ده

مولدم جام و رشحه قلمم جرعة جام شيخ الإسلام است

لا جرم ور جريدة أشعار بدو معنى تخلصم جامي است

دده نسب امام محمد بن الحسن الشيباني شاګرد امام الاعظم ابي حنيفه نعمان بن ثابت ته رسيږي .

شيبان د عربو په قبيلو کې مشهوره ده مثنى بن حارثه الشيباني او معن بن زائدة الشيباني دې قبيلې سره تعلق لري .

**تعليم او تعلم** : داد ذهن نه ډير کمزوري ؤ چې دده دذهن دکمزورې په باره کې يوه قصه نقل ده چې يو ځل يې خوب وليده ملګري ورته په خوب کې وايي چې راځه چکر ووهو ، ده ورته وويل چې يو خو زما ذهن ډير کمزوري دي اوبل مې تاسو چکر ته بوځي خو دريم ځل باندې ورته ملګروو وويل چې نبي عليه السلام دې غواړي نو دې زر ورغلو .

نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې : عبدالرحمن مونږ دې غواړو او ته نه راځي هغه ورته وويل چې زه د تاسو نه خبر نه وم چې تاسو يې ، نو د خپل ذهن د کمزورتيا شکايت يې ورته وکړو .

نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته په خوله کې خپلې لاړې مبارکې ور واچولې نو سهر يې استاذ په سبق کې خپل استاذ ته مسلسل جوابونه ورکول نو استاذ يې ورته وويل چې : ته خو هغه عبدالرحمن نه يې کوم چې مخکې وې .

په ماشومتوب کې د پلار سره هرات او سمرقند ته لاړو چې په دې وخت کې د اسلامي علومو او د فارسي د ادب مرکز وو ، شمس الدين محمد الشتي چې په خپله زمانه کې مشهور قاضي او مفتي او د احنافو د اکابرو علماو نه وو دده نه يې علم حاصل کړو

بيا دده پلار هرات ته لاړو او علامه جامي يې په مدرسه نظاميه کې داخل کړو چې هلته دوي د شيخ جنيد الاوصلي ، شهاب الدين الحاجري په شان د علم د غرونو نه علم حاصل کړو، بيا سمرقند ته لاړو او خواجه علي السمرقندي او قاضي زاده الرومي نه يې سبق وويلو .

**استاذان** : دده په مشهورو استاذانو کې نظام الدين احمد الدشتي ، شيخ جندي الاصولي ، شهاب الدين الحجري ، خواجه علي السمرقندي ، قاضي زاده الرومي رحمهم الله وغيره شامل دي .

**تصوف او بيعت** : د تعليم نه پس تصوف او بيعت ته يې رجوع وکړه او سعد الدين محمد کاشغري او خواجه علي سمرقندي په حلقهء طريقت کې داخل شو ، اوپه لږوخت کې دده شمار په خلفاو کې وشو.

په ۱۴۷۲ کې حج ته لاړو، په مختلفو ښارونو کې د ګرځيدو نه پس هرات ته واپس راغې او همدلته وفات شو.

**اولاد** : د علامه جامي رَحِمَهُ اللهُ نکاح د خپل مرشد شيخ سعد الدين الکاشغري د لور سره شوي وه ، دده څلور زامن وو، اول بچي يې د ولادت نه پس متصل وفات شو ، او دوهم بچي يې د ولادت نه يو کال پس وفات شو دده نوم صفي الدين محمد وو ، دريم بچي يې ضياء الدين يوسف وو دا يوا حې شغه بچي وو چې دا ژوندي پاتې شوي وو چې ده ته خپل پلار علامه جامي د کافيې شرحه **الفوائد الضيائية** ليکلي وه ، دده پيدائش ۸۸۲هـ کې شوي وو ،اوڅلورم بچي يې ظهير الدين عيسى دى دادخپل ورور ضياء الدين يوسف دپيدائش نه نهه (۹) کاله پس پيدا شو ليکن داهم دپيدائش نه څلويښت (۴۰) ورځې پس وفات شو .

**اخلاق او عادات** : علامه جامي انتهائي متواضع انسان وو اکثر به په زمکه مخ په قبله کيناستو او هر راتلونکي ته به اودريدو او ملاويدو ، هميشه به يې په خوراک کې فقيران اونور غريب خلک شاملول ، د نرم طبيعت او د دقيق احساس مالک وو ، خوش طبعه اوخنده رُوي انسان وو ، دده يو کتاب مستقل په لطائفو ليکل شوي چې نوم يې : **لطائف الطوائف** ،دى ، تنهايي او فقيري به يې خوښوله .

**تصنیفات** : دده تصانیف ډیر زیات دی ، په قاموس المشاهیر کې دده تصنیفات ۴۴ لیکلي دي ، او د بعضو حضراتو په قول باندې یې د تصنیفاتو تعداد ۹۹ دی دده په تصانیفو کې مشهور تصانیف په لاندې ډول دي :

**عربي تصانیف** : تفسیر القرآن الکریم ، دا تفسیر یوه سیپاره ده ، الدرة الفاخرة ، شرح فصوص الحکم لابن العربي ، الفوائد الضیائیة چې په شرح ملا جامي په نوم باندې مشهور شوي .

**فارسي تصانیف** : اشعة اللمعات ، بهارستان ، تاریخ هراة ، دیوان قصائد وغزلیات ، رسالة در فن قافیة ، رسالة في السلسلة النقشبندیة ، شرح النقایة ، مختصر الوقایة ، مثنویات هفت اورنک ، مناقب الشیخ جلال الدین الرومي ، نفحات الأنس ، نقد النصوص في شرح نقش الفصوص ، للإمام محیي الدین بن العربي ، حاشیة علی المفتاح ، رسالة في أسئلة الهندستان وأجوبتها ، رسالة في الموسیقي ، وغیره .

**وفات** : دا په ۱۳ محرم په ۸۹۸هـ کې بیمار شو ، او بیا په ۱۸ د محرم په ۸۹۸هـ کال کې وفات شو او د خپل مرشد خواجه سعد الدین کاشغري په څنګ کې دفن کړي شو .

## يو څو ضروري خبرې:

د هر علم د شروع کولو نه مخکې د څو شيانو پيژندل ضروري دي:

(۱) **تعريف دعلم**: ددې دپاره چې طلب د مجهول مطلق لازم رانه شي.

(۲) **موضوع دعلم**: خکه چې يو علم چې دبل علم نه جدا کيږي نو هغه په موضوع سره جدا کيږي نو ددې وجې نه موضوع دعلم پيژندل ضروري دي.

(۳) **غرض او مقصد**: ددې دپاره چې طلب اوکوشش عبث اوبې ځايه لازم رانه شي.

(۴) **واضع دعلم**: ددې دپاره چې دعلم عظمت اومرتبه اوشان په زړه کې کيني.

(۵) **تاريخ دعلم**: ددې دپاره چې دعظيم الشان علماو د محنت اوکوشش معلوميدو نه په زړه کې ددې علم نور عظمت اوقدر هم راشي.

(٦) **مقام اومرتبه دعلم**: ددې دپاره چې ددې علم دويلو شوق پيدا شي.

## (۱) تعريف دعلم:

## دنحوې لغوي معنی:

نحو په لغت کې په څو معانيو سره راځي، چې اوه معاني په دې لاندې شعر کې ذکر دي:

**نحونا نحو نحوک ياحبيبي　　　نحونا نحو الف من رقيب**

قصدوکړو مونږ ستاد تبيلې په طرف اې زما دوسته – وګرځوله مونږه اندازه دزرو رقيبانو

**وجدنا ستہ مريضا نحو قلبي　　　تمنوا منک نحوا من زبيب**

وموندل مونږ هغوي مريضان دخپل زړه په شان - تمنا کوله دتانه ديو قسم کشمش (اوسکي).

په دې شعر کې اوه معاني ذکر دي: (۱) قصد، (۲) طرف، (۳) قبيله، (۴) ګرځول، (۵) اندازه، (٦) مثل (۷) قسم.

ددې نه غير نورې معانې هم دی لکه: (۱) الطريق لاره، محاوره ده: (هذا النحو السوي)، يعني الطريق المستوي (نيغه او سيدها لاره). (۲) الفصاحة: محاوره ده چې ما احسن نحوک في الکلام ستافصاحت في الکلام څومره ښه دي. (۳) الانحاء (اړول) لکه انحيتُ عنه بصري اي: عدلته، ما دهغه نه خپلې سترګې واړولې. (۴) الانتحاء الاعتماد والميل (متوجه کول، اعتماد کول، مايل کول).

## دنحوې اصطلاحي معنی :

**هو علم يعرف بها احوال اواخر الكلم الثلاث من حيث الاعراب والبناء وكيفية التركيب بعضها مع بعض** .دا داسې علم دی چې پيژندل شي په دې سره احوال داخرو كلمو دريو دحيثيت داعراب اوبناء نه اود كيفيت دتركيب دبعضو سره دنورو بعضو .

**فائده** : چې كله ديو څيز تعريف كولې شي نو دې ته معرف اومحدود ويلې شي اودتعريف الفاظو ته معرِف او حد اوتعريف ويلي شي ، په تعريف كې ابتدائي الفاظ په درجه دجنس كې وي چې هغه معرَف ته هم شامليږي اوغيرمعرف ته هم ، او وروستي الفاظ په درجه دفصل كې وي چې ددې په ذريعه دنورو نه خارجوني شي ، نو دلته النحو معرف اومحدود دی ، علم بأصول الخ معرِف اوحد اوتعريف دی په دې تعريف كې اولنې لفظ علم بأصول په درجه دجنس كې دې چې معرَف يعنې نحوې ته هم شامل دی اوغير دنحوې نه نورو ته هم .

**يعرف بها احوال** اولنې فصل دی په دې سره ترې هغه علم خارج شو چې په هغې سره دكلمې احوال نه شي پيژندل كيدي بلكې دكلمې ذات پرې پيژندل كيدی شي ، لكه علم صرف او همدارنګې هغه علم ترې هم خارج شو چې په هغې سره دكلمې معاني پيژندل كيدي شي لكه علم منطق ، علم معاني ، علم بيان

**اواخر الكلم الثلث** دوهم فصل دی ددې نه هغه علم خارج شو چې په هغې سره دكلمې اول او دوسط حال معلوميږي لكه علم لغت ، اوهغه علم ترې هم خارج شو چې په هغې سره دپيريانو اودانسانانو احوال معلوميږي نه ددري كلمو دآخر احوال لكه علم فقه .

**او من حيث الاعراب والبناء** دريم فصل دی ددې نه هغه علم خارج شو چې دهغه نه دكلماتو احوال معلوميږي مګر په اعتبار دمعرب اومبني سره نه ، بلكې په اعتبار دقافيې سره لكه علم عروض او علم قوافي .

**كيفية تركيب بعضها مع بعض** ، داځلورم فصل دی په دې سره ترې هغه علم خارج شو چې په هغه سره د مفرداتو كيفيت معلوميږي نه د بعضې كلماتو د نورو بعضو سره د يو ځاې كولو طريقه لكه علم هندسه ، علم هيئت اوعلم اشتقاق وغيره .

## (۲) غرض او غايت:

دغرض لغوي معنی نښه ده او اصطلاحي معنی **مايکونُ باعثاً للفعل** ، غرض هغه څيز دي چې په يو کار باندې باعث او برانګيخته کولو والاوي

## دنحوې غرض او غايت:

**صيانة الذهن عن الخطأ اللفظي في کلام العرب**،ساتل دذهن دي دخطاء لفظي نه په کلام دعربو کې،

**عن الخطاء اللفظي** په دې قيد سره ترې علم صرف اوعلم معاني ، علم بيان ، علم منطق خارج کړی شو ځکه چې دعلم صرف غرض دصيغوي غلطو نه بچ کيدل دي اودعلم معاني اوبيان غرض معنوي غلطي نه بچ کيدل دي اودعلم منطق غرض فکري غلطي نه بچ کيدل دي اودعلم نحوې غرض لفظي غلطي نه بچ کيدل دي.

## (۳) موضوع:

دموضوع لغوي معنی وضع ايخودل دي او اصطلاحي معنی **مايبحث فيه عن عوارضه الذاتية**. موضوع هغه څه ته وايي چې بحث کيږي په دې علم کې دعوارضوذاتيو نه،اودهرعلم موضوع هرهغه څيز دي چې دهغې دعوارضوذاتيويعنې حالات ذاتيونه په دې علم کې بحث کيږي لکه دعلم طب موضوع دانسان بدن دی ځکه چې په علم طب کې دانسان دبدن داحوالونه بحث کولې شي.

## دعلمِ نحوې موضوع:

دعلم نحوې موضوع **کلمه اوکلام** دی ځکه چې په علمِ نحو کې دکلمې او کلام دعوارضوذاتيو اوداحوال ذاتيو مثلاً منصرف ، غيرمنصرف،معرب، مبني ، مفرد ، تثنيه ، جمع ، مذکر ، مؤنث،مرکب تام ، ناقص ، وغيره نه بحث کيږي.

## (۴) واضع دعلمِ نحوې:

دعلمِ نحوې دواضع په باره کې دوه (۲) قوله دي:

**اول قول**: اول اومشهور قول دادې چې دعلمِ نحوې واضع هغه حضرت ابوالاسود دوئلي رَحِمَهُ اللهُ دي ، دده نه مروي دي چې څلورم خليفه امير المؤمنين حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم نو ما حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وليدو چې په سوچ کې ناست دي ، ماترې دسوچ اودفکر کولو په باره کې ترې تپوس وکړو نوحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: چې ماسوچ کول چې

دعجمو او عربو داختلاط اودګډوډېدودوچې نه په لغت عربي کې فسادراځي مادځه اصولود منضبط کولواوتيارولو اراده کړي چې په دې اصولوباندې عمل وشي اودفسادنه محفوظ پاتې شي، دري ورځې پس زه بياحاضرشوم نوماته يوه قطعه راياده شوه چې په هغه قطعه کې دا مضمون وو :

﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اَلْكَلَامُ كُلُّهٗ ثَلَاثَةٌ اِسْمٌ وَفِعْلٌ وَحَرْفٌ فَالْاِسْمُ مَا اَنْبَأَ عَنِ الْمُسَمّٰى وَالْفِعْلُ مَا اَنْبَأَ عَنِ الْفَاعِلِ وَالْحَرْفُ مَا اَنْبَأَ عَنْ مَعْنًى لَيْسَ بِاِسْمٍ وَلَا فِعْلٍ ﴾.

بيا يې وويل ته په دې کې څه اضافه وکړه ، بيا ابوالاسود رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې ما څه نور قواعد جمع کړل ، عطف ، لغت ، تعجب ، استفهام ، باب انّ وغيره دا مې راجمع کړل اوحضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته مې پيش کړل په حروف مشبه بالفعل کې ما لٰكِنَّ ذکر نه کړو نو هغوئ وويل چې داپه کې هم شامل کړه نودنحوې يوه خاصه مجموعه اوقواعد مرتب شو ، حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې کله دامجموعه وليده نو وويل : ﴿ما احسن هذا النحو الذي قد نحوت﴾ څومره خه دا چې دکومې تاسو قصد کړي وو ، يعنې ډير ښه قواعد دې تيار کړي ، ددې قول مطابق واضع اول دنحوې هغه څلورم خليفه حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دي .

**دويم قول** : ددوهم خليفه حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په زمانه کې يو بانډه چې دخلکو نه درخواست وکړو چې ماته په نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نازل شوي کلام الهي يعنې د قرآن مجيد تلاوت وکړي يو عجمي دې بانډه چې ته تلاوت شروع کړو چې کله سورة براءة دې آيت ته ورسيدو چې : ﴿اَنَّ اللّٰهَ بَرِيْءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَرَسُوْلِهٖ﴾

**ترجمه** : بې شکه الله تعالى د مشرکينو نه هم بري دى او د خپل رسول نه هم بري دي ( **العياذ بالله** ).

نو دې بانډه چې وويل چې : **أبرئ الله من رسوله؟** ، آيا الله تعالى دخپل رسول نه بري دي ، نو بيا دې بانډه چې وويل چې : **ان كان الله بريئا من رسوله فانا برئ منه** ، که چيرته الله تعالى دخپل رسول نه بري دي نو زه هم ددې رسول نه بي زاره اوبري يم ، ( **نعوذبالله** )

چې کله حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته ددې واقعې اطلاع ملاو شوه نوډير زيات خفه شو او فکر يې وکړو چې څه قوانين وضع کول په کار دي چې په دې قواعدو سره عجمي خلک د غلطيو نه محفوظ شي نو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت ابوالاسود دولي ته دقوانينو دوضع کولو حکم

وکړو دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ دحکم مطابق حضرت ابوالاسود دؤلي قواعد وضع کړل ددې قول مطابق په حيثيت دآمر سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ګويا چې واضع دعلم نحوې دي.

**دريم قول**: حضرت ابوالاسود دؤلي رَحِمَهُ اللهُ (چې دحضرت حسن اودحضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا استاذ دی) ديو کس نه دا واوريده: ﴿أَنَّ اللهَ بَرِيءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ وَرَسُولِهِ﴾ وَرَسُولُهُ يې په کسرې سره وويل، نوحضرت ابوالاسود دؤلي رَحِمَهُ اللهُ خفه شو او وي ويل: **هذا كفر**، بيا دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو چې: **نحوت ان اصنع ميزانا للعرب**، زما اراده ده چې زه دعربو دپاره يوميزان اوقانون جوړ کړم چې دوي دخپلې ژبې الفاظ اوکلمات صحيح ادا کوي، نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل: **اقصد نحوه**، دې طرف ته قصد وکړه، ددې وجې نه ددې نوم هم علم نحو ايخودل شوي دي اودې علم ته علم الاعراب هم ويلې شي ځکه چې اعراب ته په دې کې هم دخل دی. ددې قول مطابق دعلم نحوې اول واضع حضرت ابوالاسود دؤلي رَحِمَهُ اللهُ دي.

## وجه تسميه دعلم نحو:

چونکې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ دخوشحالي اظهار وکړو او دې مجموعې ته يې لفظ د النحو استعمال کړو نو ددې وجې نه ددې علم نوم هم علم نحو کيخودل شو.

## (۵) تاريخ دعلم نحوې:

**اول دور**: اول دور خو دادي چې په کوم کې دوهم خليفه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او څلورم خليفه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ اوحضرت ابوالاسود دؤلي رَحِمَهُ اللهُ بنياد ايخوي وو.

**دوهم دور**: ابوالاسود دؤلي رَحِمَهُ اللهُ ددوي دبچو نه داعلم نحوه حاصله کړي ده همدارنګې دده نه ابواسحق، عيسى الثقفي، ابوعمرو بن العلاء رحمهم الله هم دا علم حاصل کړي، نضر بن عاصم او عبدالرحمن بن هرمز الاعرج، يحيى بن يعمر رحمهم الله وغيره هم په تدريج سره دې علم ته ترقي ورکړي ده.

**دريم دور**: ابوعمربصري رَحِمَهُ اللهُ اودده شاګرد ابوعبدالرحمن خليل بن احمد فراهيدي رَحِمَهُ اللهُ (متوفى ۱۲۰هـ) اودخليل شاګرد امام ابوبشر عمروبن عثمان سيبويه رَحِمَهُ اللهُ (متوفى ۱۲۱هـ) تحقيق کړي. امام سيبويه رَحِمَهُ اللهُ کلي په کلي وګرځيدو اودکلو نه يې خالص فصيحه عربي اوريده اوددې نه به يې قواعد راټولول لکه دوي يو کتاب ليکلي چې کتاب دسيبويه په نوم

مشهور شوي چې د راتلونکي نحوي کتابو دپاره دامام حیثیت لري ، ابوعمروعیسی بن عمرو الثقفي رَحِمَهُ اللّٰهُ په نحوه کې دوه کتابونه لیکلي دي (۱) الاکمال (۲) الجامع
بیا نحویان په دوه ډلو وویشل شو (۱) یوه ډله نحویان د کوفې (۲) اودوهمه ډله نحویان د بصرې ، مشهور علماء چاچې په علم نحو کې کوششونه کړي دي دهغوي مشهورو شخصیاتو نومونه دادي مبرد ،اخفش ،ابوعثمان بکربن محمدبن عثمان المازني، زجاج، محمد بن سراج ،ابوعلي فارسي ،عبدالقاهرجرجاني ،ابن هشام ،جارالله زمحشري ، امام ثعلب ، علامه رضي ، علامه ابن حاجب اوصاحب دکتاب ابوحیان رحمهم الله وغیره.

## (٦) مقام اومرتبه دعلم نحوې :

علوم په دوه قسمه دي (۱) مقصوده عالیه (۲) غیرمقصوده آلیه علم نحو خو ده دغیرمقصودو نه ځکه چې دادعلوم عالیو تفسیر ،حدیث فقه وغیره دپاره آله ده اوپه خپله مقصود نه دي لیکن دمقصود دپاره موقوف علیه ده ، ددې وجې نه صاحب دمفتاح وایي چې د علم نحوې حاصلول فرض کفایه دی، ددوهم خلیفه حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قول دي چې : ( **تعلموا النحو كما تعلمون السنن والفرائض** )علم نحوه زده کړئ لکه څنګه چې تاسو سنن اوفرائض زده کوي .

ایوب سجستاني رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي : ( **تعلمو النحو فانه جمال للوضيع وتركه هجنة للشريف**) علم نحو زده کړي ځکه چې دا جمال دي دکمزوري سړي دپاره اوددې پریخودل باعث دعیب دی دشریف سړي دپاره.

امام کسائي رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي : (**انما النحو قياس يتبع وبه كل علم ينتفع** ) علم نحو قابل داتباع دقیاس دی اوهم ددې نه په هر علم کې فائده حاصلولې شي.

ددې عظمت اوضرورت دظاهریدو نه پس د علماء کرامو عجیب اونا اشنا آثار دی لکه :

(۱) **النحو في الكلام كالملح في الطعام** .

نحو په کلام کې لکه مالګه په طعام کې .

(۲) **النحو للعلوم كالضوء للنجوم** .

نحو دعلوم دپاره لکه رڼا د ستورو دپاره

(۳) **النحو في الكلام كالضوء في الظلام**.

نحو په کلام کې لکه رڼا په تیاره کې .

## دعلمِ نحوې دفضيلت په باره کې يو خوب :

ابوبکر بن مجاهد المقري رَحِمَهُ اللّٰهُ امام ثعلب رَحِمَهُ اللّٰهُ سره ناست وو امام ثعلب رَحِمَهُ اللّٰهُ دنااميدئ او د افسوس اظهار يې وکړو چې چا دعلم تفسير خدمت وکړو چا د علم حديث خدمت وکړو او چا د فقهې او چا د اصولِ فقهې ، او مونږ ټوله زندګي په ضرب زيد عمرواً کې تيره کړه ، د شپې ابوبکر مقري رَحِمَهُ اللّٰهُ ته په خوب کې دنبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيارت ورنصيب شو او ورته يې وفرمايل : ثعلب ته زما سلام ووايه ، اوزيري ورته واوره او : **أنت صاحب العلم المستطيل** ، يعنې ته مه خفه کيږه ته هم يو اوږد علم والا يې عندالله .



## مقدمه :

| |
|---|
| اَلحَمدُ لِوَلِيِّهٖ وَ الصَّلٰوةُ عَلٰى نَبِيِّهٖ وَ عَلٰى آلِهٖ وَ اَصحَابِهٖ |
| ثناء ده هغه رب لره چې لائق دحمد دي اورحمت دې وي په پيغمبر دهغه باندې اوپه آل دهغه اوپه اصحابودهغه |
| المُتَأَدِّبِينَ بِآدَابِهٖ اَمَّا بَعدُ فَهٰذِهٖ فَوَائِدُ وَافِيَةٌ بِحَلِّ مُشكِلَاتِ الكَافِيَةِ لِلعَلَّامَةِ |
| چې ادب اخستونکي دي اخلاقودهغه لره امابعد دافوائد دي پوره په حل دمشكلاتو دكافيې دعلامه چې مشهور |
| المُشتَهِرِ فِي المَشَارِقِ وَ المَغَارِبِ الشَّيخِ ابنِ الحَاجِبِ تَغَمَّدَهُ اللّٰهُ بِغُفرَانِهٖ وَ اَسكَنَهُ |
| دي په مشرق او مغرب كې شيخ ابن حاجب رَحِمَهُ اللّٰهُ . پټ دې كړي الله په خپل مغفرت سره او ودې وسوي الله په |
| بِحُبُوحَةِ جِنَانِهٖ نَظَمتُهَا فِي سِلكِ التَّقرِيرِ وَ سِمطِ التَّحرِيرِ لِلوَلَدِ العَزِيزِ ضِيَاءُ الدِّينِ يُوسُفَ |
| مينځ دجنت كې چې نظم كړي دي لره په تاردتقرير اوپه ريشه دتحرير كې دپاره دبچي گران ضياء الدين يوسف |
| حَفِظَهُ اللّٰهُ سُبحَانَهُ عَن مُوجِبَاتِ التَّلَهُّفِ وَ التَّأَسُّفِ وَ سَمَّيتُهَا بِالفَوَائِدِ الضِّيَائِيَّةِ لِاَنَّهُ لِهٰذَا |
| ودې ساتي الله تعالى دتكليفونودهلاكت نه اودغم نه اونامداره كړه داماپه فوائدضيائيه سره ځكه چې دا ددې |
| الجَمعِ وَ التَّألِيفِ كَالعِلَّةِ الغَائِيَّةِ . نَفَعَهُ اللّٰهُ بِهَا وَ سَائِرِ المُبتَدِئِينَ |
| جمع اوتاليف دپاره په شان دعلت غائيه وو نفع دې وركړي الله تعالى په دې سره ده ته اوټولوشروع كوونكو ته |
| مِنْ اَصحَابِ التَّحصِيلِ وَمَا تَوفِيقِي اِلَّا بِاللّٰهِ وَهُوَ حَسبِي وَنِعمَ الوَكِيلُ. |
| د خاوندانود علم نه وما توفيقي الا بالله وهو حسبي ونعم الوكيل . |

**خلاصه دمتن :** په دې عبارت سره صاحب دكافيې مقدمه بيان كړه او په مقدمه كې علت غائيه يې بيان كړه چې هغه علت غائي دده زوي ضياء الدين يوسف وو.

**اغراض دجامي : الحمد:** په دې عبارت سره غرض دشارح په الحمد كې دپنځو (۵) خبرو بيانول دي: (۱) وجه د راوړو د حمد (۲) الف لام (۳) معنى د حمد (۴) وجه دغوره كولو ددې جملې (۵) معنى ددې جملې .

**اوله خبره :** وجه دراوړو دحمد ، اودا خو مشهوره ده .

**دوهمه خبره :** په الف لام كې دري (۳) مذاهب دي : (۱) صاحب دكشاف جارالله زمحشري وايي چې دلته الف لام جنسي دي يعنې جنس حمد الله لره ثابت دي .

**الف لام جنسي** دې ته وايي چې حكم شوې وي په طبيعت باندې قطع نظر دلحاظ د افرادو نه لكه په علم منطق كې الانسان نوع نو يو انسان خو نوعه نه ده بلكې مكمل انسانان نوعه او جنس دي .

(۲) محققين علماء لكه علامه تفتازاني وايي چې دلته الف لام استغراقي دي

**الف لام استغراقي** دې ته وايي چې حكم وشي په ټولو افرادو باندې نو معنى به يې داسې شي چې هر فرد دافرادو دحمد داثابت دي الله تعالى لره ، او په دې دواړو باندې اعتراض دي

**اعتراض** : اعتراض په الف لام استغراقي كې دادې چې كه هر فرد د افراد و دحمد نه شي نو هر فرد دافرادو د حمد خو الله لره نه دي ثابت لكه بنـه موټر او داسې نور اوكه الف لام جنسي شي نو جنس خو په يو فرد كې نه متحقق كيږي ؟.

**جواب** : دا ټول صفات الله تعالى ته ثابت دي حالاًوي او كه مآلاًوي نو حالاًخو انسان دا موټر جوړ كړي او انسان خو الله جوړ كړې نو بيا آخر هم رجوع يې الله تعالى ته كيږي .

(۳) دريم قول دادې چې الف لام عهد خارجي دي ، نو په دې باندې اعتراض واردېږي :

**اعتراض** : چې الف لام عهد خارجي شي نو الف لام عهدى خو معهود غواړي نو معهود كوم يو دي ؟.

**جواب** : مراد دحمد نه هغه صفتونه دي چې هغه خاص وي تر الله تعالى پورې .

**دريمه خبره معنى دحمد** : محققين علماء وايي چې حمد ، شكر او مدحه يو څيز دي .

بعضې علماء وايي چې حمد عبارت دي د **هو الثناء باللسان على الجميل الاختياري سواء كان بمقابلة النعمة أولا** . چې دا ثناء ده په ژبه باندې په ټولو صفاتواختيارو برابره خبره ده كه په مقابله دنعمت كې وي اويا نه ، په **باللسان** قيد سره ترې شكر خارج شو ځكه شكر عام دي هغه كه جوارحو سره وي اويا په غيرجوارحو ، او په **على الجميل** سره سخريه خارج شو او په **اختياري** سره مدحه خارج شوه ځكه مدحه عامه ده .

نو حمد خاص دي په اعتبار دمورد سره او عام دي په اعتبار دمتعلق سره شكر په لغت كې : **فعل ينبئ عن تعظيم المنعم لكونه منعماً** ، نو شكر عام شو په اعتبار دمورد سره ځكه چې **باللسان** وي او كه **بالجوارح** وي ، او په اعتبار دمتعلق سره خاص دي ځكه چه دا حرف په مقابله د نعمت كې وي نو دحمد او دشكر په ما بين كې نسبت دعموم او خصوص من وجه دي يوه ماده داجتماع او دوه مادې دافتراق غواړي .

مدحه صفت كول دي په هغه صفاتو سره چې دمحمود په اختيار كې نه وي لكه عرب وايي **مدحت اللؤلؤ على صفائها**.

**څلورمه خبره**: وجه دغوره کولو ددې جملې . نو په دې باندې يو سوال دي

**اعتراض**: مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ ولې مخالفت وکړو دنورو کتابونو ؟

**جواب**: شارح ددې دوه جوابات ورکړي دي

**اول جواب**: ددې يوه وجه داده چې مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ اشاره کوي دې ته چې داحمد زما تقليدي نه دي بلکه دا زما دزړه څخه دي نو ددې وجې نه يې جمله بدله کړه

**دوهم جواب**: دوهم جواب يې دادې چې د متوهم دا وهم رانه شي چې حمد صرف الحمد لله ويل دي په خوله باندې ، که دزړه نه وي او يا نه وي، نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ وويل چه هر لفظ وي خو چې دزړه نه وي .

لوليه: په دې عبارت سره غرض د شارح د ولي د لفظ وضاحت کول دي . د ولي څلور (۴) معاني دي . (۱) ولي په معنی د لائق ، (۲) په معنی د صاحب ، (۳) په معنی د متصرف ، (۴) په معنی د قريب ، او دلته اوله معنی مراد ده چې هغه لائق د حمد د پاره چې الله تعالی دي حمد هغه لره دي .

**سوال**: عام مصنفين دالله علم ذاتي ذکر کوي او وايي الحمد لله مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د الله پاک علم ذاتي ولې ذکر نه کړو ؟

**جواب**: شارح ددې داجواب ورکړې دي چې مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ تعظيماً او احتراماً داسې ونه کړو ځکه چې د يو معزز کس په نوم اخستلو کې دومره ادب نه وي څومره چې د يو معزز کس د صفاتو په ذکر کولو سره وي .

**سوال**: لفظ د ولي په ذات د الله تعالی باندې دلالت کوي نو هغه مستحق د تقديم وو نو هغه دې ولې مقدم نه کړو ؟.

**جواب**: حمد مبتدا جوړيده او په مبتدا کې اصل تقديم وي نو ددې وجې نه مو حمد په لوليه باندې مقدم کړو .

والصلوة: په دې عبارت کې شارح معنی لغوي دصلاة بيانوي . په معنی لغوي د صلاة کې اختلاف دي . جارالله زمحشري وايي چې صلوة تحريک الصلوين ته وايي بيا ددې معنی رانه نقل شو او نوم شو دپاره دارکان مخصوصو نو ددې سره يې مناسبت دادي چې په مونځ کې هم تحريک الصلوين کيږي .

او جمهور علماء وايي چې صلوة په لغت کې دعا ته وايي بيا رانقل شو ارکان مخصوصو ته ځکه لمونځ هم مشتمل دي په دعاء باندې

على نبيه: په دې عبارت سره شارح د نبي وضاحت کوي او بل د يو سوال مقدر جواب ورکوي نبي يا خو د نبأ نه مشتق دي چې د نبأ معنى ده خبر ورکول او نبي هم د الله تعالى د طرف نه د راتلونکو حالاتو خبر بندګانو ته رسوي ، نو په دې صورت کې به ددې اصل نبيئ شي نو د خطيئة او مقرؤة په قانون سره به همزه به يې په ياء سره بدله کړې شي او ياء به په ياء کې مدغم شي نو نبي به ترې جوړ شي.

او ياداد نبوة نه مشتق دي د نبوة معنى ده اوچت والې . اونبي هم په اعتبار د مرتبې سره اوچت وي ، نو ددې وجې نه ده ته نبي ويلې شي ، نو په دې صورت کې به دده اصل نبيو وي نو د قول په قانون سره به واو په ياء سره بدل کړې شي او ياء به په ياء کې مدغم کړې شي نو نبي به ترې جوړ شي

**سوال**: په نبيه کې ه ضمير چاته راجع دې حمد طرف ته که ولي طرف ته ، که حمد طرف ته يې راجع کړي نو معنى يې نه صحيح کيږي اومعنى به يې داسې شي چې درود دې نازل وي د حمد په نبي باندې اودا معنى غلطه ده ، اوکه ضمير ولي طرف ته راجع کوي نو معنى يې اګر چې صحيح ده ليکن انتشار دضمائرو لازم راځي ددې دپاره چې د وليه ضمير حمد طرف ته راجع شي اودنبيه ضمير ولي طرف ته راجع شي نو انتشار دضمائر به لازم راشي اودا صحيح نه دي .

**جواب**: په دواړو کې يې چې کوم يو ته يې راجع کوي نو هيڅ انتشار لازم نه راځي ځکه چې که چيرته حمد طرف ته راجع شي نو مراد به ترې نه صفت استخدام شي او دصفت استخدام دعلم معاني يو اصطلاح ده چې کله ديوڅيز طرف ته صراحتاً ذکر وکړې شي نو معنى به يې يوه شي او چې کله يې ضمير طرف ته راجع شي نو معنى به يې بله شي نو دلته هم مراد صفت استخدام دي ، همدارنګې که چيرته د الحمد ذکر صراحتاً وکړې شي نو معنى مصدري به يې مراد وي او چې کله دې طرف ته د نبيه ضمير راجع شي نو مصدر مبني للمفعول به وي نو معنى به يې دا شي چې درود دې نازل وي د محمود په نبي باندې اودا معنى بالکل صحيح ده . اوکه چيرته ضمير راجع وي ولي طرف ته بيا هم صحيح دي . باقي پاتې شو ستا اعتراض چې انتشار دضمائرو لازم دې نو ددې جواب دادې چې دا دوه جملې دي او انتشار د ضمايرو په يو

جمله کې قبيح وي په دوه جملونو کې قبيح نه وي

**سؤال** : سوال دادې چې تاسو علی نبيه وويل او علی رسوله مو ولې ونه ويل ؟

**جواب** : دادې چې د سجعې د موافقت دپاره يې داسې وکړل که چيرته رسوله يې ويلې وي نو د لوليه سره يې سجع صحيح نه راتله

دلته يو سوال را خي .

**سوال** : سوال داچې تا دلته نبي ذکر کولو نو دنبي کريم صلى الله عليه وسلم نوم به يې ذکر کړې وي ؟

**جواب** : شارح ددې نه دوه جوابات ورکړې دي :

**اول جواب** : دا چې تعظيماً يې دنبي کريم صلى الله عليه وسلم نوم ذکر نه کړو .

**دوهم جواب** : دا چې په دې سره دې خبرې طرف ته اشاره ده چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د نبوت هغه مقام ته رسيدلې دي چې اوس دا وصف د نبوت دنبي کريم صلى الله عليه وسلم دپاره په منزله د عَلَم جوړ شوې دي نو کله هم چې د نبي ذکر وشي نو ذهن نبي کريم صلى الله عليه وسلم طرف ته ځي .

**په نبي او رسول کې فرق** : نبي عام دي او رسول خاص دي رسول ته نوې شريعت اود نوې کتاب ورکول ضروري وي ، اود نبي دپاره دا ضروري نه وي هر رسول نبي کيدې شي مګر هر نبي رسول نه شي کيدې .

<u>وعلى آله</u> : په دې عبارت سره شارح د آل تفصيل اود آل مصداق بيانوي : آل په اصل کې **اهل** وو په دليل د **اهيل** سره بيا اعلال وشو په کې نو آل شو ، دوهم داچې د آل نه مراد **كل تقي ونقي فهو آلي** دي .

اود آل په مصداق کې پنځه اقوال دي : (۱) **كل تقي نقي فهو آلي** ، په دې صورت کې داصحابو ذکر تخصيص بعد التعميم وي . (۲) بنو هاشم او بنو عبدالمطلب . (۳) صرف بنو هاشم . (۴) ازواج مطهرات لورياني او زومان ، (۵) صرف لورياني اوزمان اودا قول د روافضو دي .

**فرق په مينځ دآل اواهل کې** : د آل او اهل په مينځ کې فرق په پنځوطريقې سره بيانيږي .

**اول** : دا چې : د آل استعمال صرف په ذوي العقولو کې وي او اهل عام دي .

**دوهم** : آل په ذوي العقول کې صرف دمذکر دپاره استعماليږي او اهل عام دي .

**دريم** : آل داشرافو دپاره ويلې کيږي او اهل عام دي

**څلورم** : د آل اضافت ضمير طرف ته زيات وي او اهل کله وي

**پنځم** : دا چې آل استعماليږي په اشرافو کې برابره خبره ده چې دا شرافت دنيوي وي اوکه اخروي وي ، او اهل عام دي اشرافو او ارزالو دواړو ته استعماليږي.

واصحابه: ددې مفرد صحب دي لکه انهار جمع د نهر يعني صحب جمع د اصحاب ، نو صحابي هغه چاته وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم يې په حالت دايمان کې ليدلې وي او بيا په حالت ددې ايمان کې وفات شوې وي حقيقتاً وي اوکه حکماً حکماً لکه عبدالله ابن ام مکتوم څکه چې دا ړوند وو نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم يې نه شو ليدلې نو حکماً صحابي شو .

المتأدبين بآدابه: په دې عبارت سره غرض دشارح ددوه سوالونه جوابات ورکول دي .

**اول سوال** : المتأدبين جمع ده او په دې باندې الف لام استغراقي داخل شوې دي نو معنى يې دا شوه چې ټول صحابه او بآدابه هم جمع ده نو معنى يې داشوه چې ټول صحابه مؤدب وو په ټولو آدابو دنبي کريم صلى الله عليه وسلم نو لازم شو مساوات ، او دلته دصحابه کرامو او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مينځ کې مساوات نه صحيح کيږي .

**دوهم سوال** : دا چې ادب خو عرض دي انتقال په کې نه راځي څکه انتقال د عوارضو دا مستلزم دي انعدام داعراضو لره نو څنګه منتقل شو صحابو ته .

**د اول سواب جواب** : اول اعتراض دفع شو په قيد دجنس دادب دنبي کريم صلى الله عليه وسلم سره نو الف لام جنسي دي استغراقي دي اوقرينه پرې داده چې المتادبين جمع ده او آدابه هم جمع ده اوجمع چې په مقابله دجمع کې راشي نو مقصود تقسيم وي په افرادو باندې لکه عرب وايي ركبوا دوابهم لبثوا ثيابهم .

**ددوهم سوال جواب** : دا چې مونږ قيد ولړولو چې په مثل دجنس دادب دنبي عليه السلام باندې ، نو په مثل د جنس قيد سره هغه سوال دفع شو .

امابعد: په دې عبارت سره شارح د امابعد دلفظ تحقيق کوي : اما بعد دا په اصل کې مهما يكن من شئ بعد الحمد والصلاة وو د يو قول مطابق هما لره يې د متعلقاتو سره حذف کړو او د هغې په ځاې يې اماراوړو لکه څنګه چې يوه جمله حذف کړي اودهغې په ځاې صرف نعم راوړي ، او بعضو ويلې دي چې فعل شرط لره يې سره دخپل متعلقاتو حذف کړو نو صرف مهما

باقي پاتې شو بيا يې ها په همزې سره بدل کړو نو مئما ترې نه جوړ شو او بيا يې د همزې او ميم قلب مکاني وکړه او ميم يې په ميم کې مدغم کړو نو اما ترې نه جوړ شو بيا چې حرف شرط او جزا سره جمع شو نو بعدُ يې په مينځ کې راوړو نو امابعد شو

فهذه فوائد وافية: په دې عبارت سره غرض د شارح ددرې سوالونو جوابات ورکول دي :

**اول سوال**: دا چې هذه اسم اشاره ده مشار اليه غواړي نو مشار اليه کومه ده ؟

**جواب**: دا چې تا وويل چې هذه اسم اشاره ده مشار اليه غواړي اومشار اليه نشته نو زه درته وايم چې کوم ما حضر في ذهن المصنف دي نو هغه يې مشار اليه شوه .

**دوهم سوال**: دا چې په هذه سره اشاره مفرد ته کيږي او فوائد خو جمع دي مفرد نه دي .

**جواب**: چې تا وويل چې په هذه سره اشاره مفرد ته کيږي او فوائد خو جمع دي مفرد نه دي نو جواب يې داې چې په حضور اجمالي سره دا فوائد اجمالاً په ذهن دمصنف کې امر واحد ګرځيدلي او امر واحد مفرد دي نه جمع .

**دريم سوال**: دا چې په هذه سره اشاره محسوس ته کيږي او کتاب خو محسوس نه دي .

**جواب**: نو جواب دادې چې داد کمالِ استحضار دوجې نه کالمحسوس وګرځيده دلته يو بل سوال هم واردیږي :

**سوال**: فوائد خو موصوف دي او وافية ددې صفت دي او موصوف جمع ده او صفت واحد مؤنث دي نو دموصوف اوصفت په مينځ کې مطابقت رانغې .

**جواب**: فوائد په تاويل د جماعة سره واحد مؤنث دي لهذا مطابقت راغې .

بحل مشکلات الکافية: په دې عبارت سره شارح په بحل کې د باء متعلق بيانوي چې باء متعلق ده تر فوائد پورې .

للعلامة: للعلامة جار مجرور دي متعلق دي تر صنف پورې ، او علامه مبالغه ده په عالم کې او علامه داهغه عالم ته وايي چې عالم وي په علومو نقليو عقليو باندې ، او په علامة کې تاء د مبالغې دپاره ده ، نو په دې باندې يو سوال واردیږي :

**سوال**: چې تاء دپاره دمبالغې شوه نو په کار داوه چې د علامة اطلاق په الله هم وشي ؟

**جواب**: په دې کې لږه شبهه دتانيث ده لکه څنګه چې الله پاک دي دتانيث حقيقي نه نو

همدارنګې د ده اسماء هم پاک دي د شبهه د تانيث نه

في المشارق والمغارب: په دې عبارت سره شارح د يو سوال مقدر جواب ورکوي

سوال مشرق او مغرب خو يو يو دي نو جمع راوړ ته څه ضرورت وو ؟

**جواب**: ملا عصام رَحِمَهُ اللهُ د دې جواب دا ورکړې دي چې دلته د مشرق او مغرب نه حقيقي معنى مراد نه ده بلکه د دې نه مراد بلاد شرقيه او بلاد غربيه دي نو ځکه د جمع په راوړو کې سه اشکال نشته

الشيخ: شيخ دا بدل دي د علامة نه نو علامة مجرور دي نو دا به هم مجرور وي ، شيخ يا بوډا ته وايي او يا شيخ ماهر في الفن ته وايي . ماشوم چې په ګيډه د مور کې وي نو جنين ورته وايي اوچې پيدا شي تر دوو (۲) کالو پورې هغې ته رضيع او طفل وايي او د دوو (۲) نه تر اوه کالو پورې دې ته صبي وايي او داوو (۷) کالو نه تر پنځلسو کالو پورې دې ته مراهق وايي او د پنځلسو (۱۵) نه تر ديرشو (۳۰) يا څلويښتو (۴۰) کالو پورې دې ته شباب وايي او د ديرشو (۳۰) نه تر اتيا (۸۰) کالو پورې دې ته شيخ وايي او د اتياو (۸۰) نه چې زيات شي نو بيا ورته کهول وايي .

او په دې باندې درې واړه اعرابات صحيح دي که مرفوع يې وايي نو دا به خبر وي د مبتدا محذوف د پاره او که منصوب يې وايي نو مفصول به وي د اعنى فعل محذوف د پاره او که مجرور يې وايي نو بدل به وي د للعلامة نه .

ابن الحاجب: دا يې اسم کنيه ده لقب يې جمال الدين دي او نوم يې عثمان دي په ۵۷۰ کې پيدا شوې دي او وفات يې په ۶۴۲ کې وفات شوي دي بناء بر اختلاف .

تغمده الله بغفرانه: په دې عبارت سره غرض شارح د يو سوال جواب ورکول دي :

**سوال**: تغمد او غفران دواړه پټولو ته وايي او په بغفرانه کې باء سببيه ده نو لازم شو سببيت د شيز د خپل نفس نه او دا باطل دي .

**جواب**: شارح د دې نه دوه جوابات ورکړي دي :

**اول جواب**: دا چې دلته د پټولو نه خاص پټول مراد دي نو سببيت د خاص راغې د عام نه ، او عام پټول دا چې ګناهونه ورته وبخښي ، او خاص پټول دا چې ګناهونه يې په نيکيو بدل کړي .

**دوهم جواب**: دا چې مونږ په دې ځاې کې تجريد کوو ، تجريد دې ته وايي چې استعمال د لفظ وکړي په بعضې معنى کې لکه سبحن الذي اسرى بعبده ليلاً ، نو دلته د غفران معنى پټول د

گناهونو دي نو موږ به معنى داسې وكړو چې پټه دې كړي الله گناهونه دده .

بحبوحة: بحبوح په معنى د وسط ، درميان او ياد بهتر سره راځي

نظمتها في سلك التقرير وسمط التحرير: ددې ځاې نه شارح دخپلې شرحې صفت كوي : نظم وايي په تار كې دملغلرو اچول ، سلك خالي تار دملغلرو ته وايي ، او سمط چې ملغلرې په كې وي ددې شرحې الفاظ سلك ( يعنې خالي تار د ملغلرو) دي او معاني يې په شان د سمط (چې ملغلرې په كې وي ) دي .

للولد العزيز: په دې عبارت سره شارح وجه دتصنيف ذكر كوي ، للولد جار مجرور دامتعلق دي په نظمتها پورې اويا متعلق دي په صنفها پورې ، عزيز هغه خامنو ته وايي چې ډير كم پيدا كيږي ، ضياء الدين يې لقب دي اونوم يې يوسف دي .

التلهف والتأسف: تلهف او تأسف دواړه غم ته وايي نو دا الفاظ مترادفه اومعنى واحد شو. بعضې علماء وايي چې تلهف هغه غم ته وايي چې راشي په سبب دداسې يو كار كولو چې پريخودل يې ضرروري وي لكه جواري كول وغيره . او تأسف هغه غم ته وايي چې په پريخودو دداسې كار سره راشي چې كول يې ضروري وي لكه لمونځ .

وسميتها بالفوائد الضيائية الخ: په دې عبارت سره شارح نوم دشرحې ذكر كوي ، نو دلته يوه قاعده ده :

**قاعده** : په سمى يسمى باب كې چې كله نسبت مفعول اول ته وشي نو معنى بيا ذكر وي لكه په مفعول مالم يسم فاعله كې او كله چې اضافت وشي مفعولين ته نو بيا په معنى دنوم ايخودلو سره راځي لكه **هُوَ سَمَّاكُمُ الْمُسْلِمِينَ الآية** دلته معنى دنوم ايخودلو سره راغلې دي .

لانه لهذا الجمع والتاليف الخ: په دې عبارت سره شارح وجه دتسميې ذكر كوي ، او دفع ديو سوال هم كوي :

**سوال** : د كتاب نسبت مصنف ته كيږي او تا د كتاب نسبت زوي ته كړي دي په كار دا وه چې تا فوائد جاميه ويلې وايي .

**جواب** : دا چې زما زوي دپاره تصنيف دا علت غائي دي ځكه يې نسبت ورته كړي دي .

**سوال** : جمع او تاليف يو ځيز دي لهذا ذكر د تاليف پس دجمع نه مستدرك اوبې فائدي دي .

**جواب** : جمع مطلق جمع كولو ته وايي او تاليف جمع سره دترتيب ته وايي نو ذكر دخاص شو

پس دعام نه

**وسائر المبتدين**: د سائر دوه معنى ګانې دي يو په معنى دباقي سره لکه سؤر الحمار ، او دوهم په معنى د جميع سره لکه سور البلد

**وماتوفيقي**: توفيق په لغت کې : دست دادن کسي را درکاري ، لاس ورکول دي يو چاته په يو کار کې ، او په اصطلاح کې : جعل الاسباب موافقة للمطلوب ، او بعضې په کې قيد د خير زياتوي اود بد کار اسباب تيارولو ته خذلان وايي

**وهو حسبي ونعم الوكيل الخ**: په دې عبارت کې يې دې طرف ته اشاره وکړه چه زه به څه يم او زما علم به څه وي داهر څه چي دي دادالله په توفيق وشو او همدا خبره حقيقت ده او داهل الله هم داعقيده ده.او په دې عبارت سره ديو سوال جواب ورکول هم دي

**سوال** : نعم الوكيل عطف دي په حرف حسبي باندې او دا خو عطف دجملې راځي په مفرد باندې اودا باطل دي

**جواب** : حسبي په معنى د يحسبني سره دي نو عطف د انشاء په انشاء باندې راغې او يحسبني په معنى د كافي دي نو سوال دفع شو .

## په الحمدلله سره د کتاب دنه شروع کولو وجه :

اِعْلَمْ اَنَّ الشَّيْخَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالٰى لَمْ يَصْدِرْ رِسَالَتَهُ هٰذِهٖ بِحَمْدِ اللهِ سُبْحَانَهُ بِاَنْ جَعَلَهُ جُزْءً

پوه شه ! چي شيخ رَحِمَهُ اللهُ صادره نه کړه رساله خپله دا په حمد د الله تعالى سره په داسې شان چې وګرځوي جزء

مِنْهَا هَضْماً لِنَفْسِهٖ بِتَخِيْيْلِ اَنَّ كِتَابَهُ هٰذَا مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ كِتَابَهُ لَيْسَ

ددې رسالې دوجې دانکسار دنفس نه په دې خيال چې داکتاب دده په داسې شان چې داکتاب دده نه دي په

كَكُتُبِ السَّلَفِ رَحِمَهُمُ اللهُ تَعَالٰى حَتّٰى يُصَدَّرَ بِهٖ عَلٰى سُنَنِهَا وَلاَ يَلْزِمُ مِنْ ذٰلِكَ عَدَمُ الْاِبْتِدَاءِ بِهٖ

شان دکتابونو دسلفو رحمهم الله ترڅو صادر کړي په طريقې دهغوي اونه لازميږي ددې نه عدم ابتداء په حمد

مُطْلَقاً حَتّٰى يَكُوْنُ بِتَرْكِهٖ اَقْطَعُ لِجَوَازِ اِتْيَانِهٖ بِالْحَمْدِ مِنْ غَيْرِ

سره مطلقاتردې چې شي په پريخودلو دهغې سره کمزورې دوجې دراتلو دده نه په حمد سره قولاًپه غيردې نه

اَنْ يَّجْعَلَهُ جُزْءً مِنْ كِتَابِهٖ وَ بَدَاً بِتَعْرِيْفِ الْكَلِمَةِ وَ الْكَلاَمِ لِاَنَّهُ يُبْحَثُ فِيْ

چې وګرځوي جزء دکتاب خپل نه اوشروع يې وکړه په تعريف دکلمې اوکلام سره ځکه چې بحث کيدې شي په

هٰذَا الْكِتَابِ عَنْ اَحْوَالِهِمَا فَمَتٰى لَمْ يَعْرِفَا كَيْفَ يُبْحَثُ عَنْ اَحْوَالِهِمَا

دې کتاب کې داحوالو دهغې نه نوترڅو چې ونه پيژندل شي دادواړه نو څرنګه به بحث وکړې شي داحوالو ددې

| |
|---|
| وَ قَدَّمَ الْكَلِمَةَ عَلَى الْكَلَامِ لِكَوْنِ اَفْرَادُهَا جُزْءٌ مِنْ اَفْرَادِ الْكَلَامِ وَ مَفْهُوْمُهَا جُزْءٌ |
| نه اومخکي يې کړه کلمه په کلام باندې ځکه چې افراد د کلمې جزءدي دافرادو د کلام نه او مفهوم د کلمې داجزء |
| مِنْ مَفْهُوْمِهِ. |
| دي د مفهوم د کلام نه |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافيې د کتاب شروع په الحمد لله سره د نه کولو وجه بيانوي .

**اغراض دجامي** : اعلم: په دې عبارت سره غرض دشارح د يو سوال جواب ورکول دي :

**سوال** : دا چې په اعلم سره بعضې شارحين اوه (۷) شيان اخلي : (۱) کله غرض دشارح بيان د مذاهبو وي ، (۲) کله غرض دشارح بيان ددلائلو دمذاهبو وي ، (۳) کله غرض د شارح بيان د ترجيح ماهو الراجح وي ، (۴) کله شارح دماتن راى نه وي خوښه نو دهغې رد کوي ، (۵) کله غرض دشارح په ماتن باندې سوال راځي نو شارح ورسره قيد و لګوي ، (۶) کله غرض د شارح په ترکيب کې خفاء وي نو شارح د هغې خفاء ازاله و کړي ، (۷) کله غرض د شارح تتميم د ماتن کوي ، نو بعضې شارحين دا اوه (۷) اغراض اخلي ، نو تاسو په کې کوم يو غرض اخستې دي ؟

**جواب** : دادې چې دلته شارح دفع د يو سوال کوي :

**سوال** : الحمد لله دې ولې رانه وړه دقرآن حديث اوسلفو نه دې مخالفت ولې وکړو؟

**جواب** : شارح ددې نه دوه جوابات ورکړې دي :

**اول جواب** : نو شارح په أن الشيخ لم يصدر رسالته بهذه بحمد الله سبحانه وتعالى سره جواب ورکړو چې مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ خو په رساله يعني په منتخب الوصول کې الحمد راوړي دي نو دې هذه سره اشاره کافيې ته کوي چې په دې کې يې الحمد نه ده راوړې .

**دوهم جواب** : چې ماتن شروع په الحمد لله سره ونه کړه نو دا يې دقرآن کريم ، حديث شريف اود سلفو صالحينو مخالف ونه کړو بلکه دا يې کسر د نفس وکړو يعني زه هم ورکوټې يم او زما کتاب هم ورکوټې دي نو زه ځان ځنګه دقرآن کريم اود حديث شريف اود سلفو صالحينو سره برابر کړم .

بأن جعله جزء منها الخ: په دې عبارت سره دفع د يو سوال مقدر کوي :

**سوال** : چې تاته څه پته ده کيدې شي چې په ژبه يې ويلې وي

**جواب** : چې ددې نه مراد دادې چې ماتن به بې شکه په ژبې سره الحمد لله ويلې وي خو بيا يې هم الحمد لله جزء د کتاب نه دي ګرځولې نو دا مخالفت شو که .

بتخيل ان کتابه : په دې عبارت سره شارح د هضماً لنفسه کوي د هضماً لنفسه معنی خپل نفس ماتول دي ، نو شارح الحمد لله رانه وړه په دې خيال سره چې دده کتاب دسلفو په شان نه دي

من حيث انه کتاب الخ : په دې عبارت سره شارح ديو سوال جواب ورکوي

**سوال** : سوال دادې چې تا وويل چې دده کتاب په شان دسلفو نه دي ، نو زه وايم چې ولې نه دي په دې کتاب کې خو هم صرف اونحو دي . اودسلفو په کتابونو کې هم همدا وي

**جواب** : جواب دادې چې ددې کتاب دوه حيثيته دي يو دا چې دا کتاب دنحوې دي نو دې حيثيت سره دسلفو نه هم مخکې دي ، او بل حيثيت دا چې زما کتاب دي او زه خلف يم دهغوي نه نو زه هغوي ته نه شم رسيدې .

حتی يصدر به : دا تفريع ده په منفی باندې چې کتب السلف دي . نو معنی دا شوه چې که دده کتاب په شان دسلفو وي نو ده به په کې هم الحمد راوړې وي نو چې کله دده کتاب په شان د سلفو نه شو نو الحمد يې په کې رانه وړه

ولا يلزم من ذلک عدم الابتداء الخ : په دې عبارت سره شارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : دا خبره خو ډيره آسانه ده چې نه وايي چې زه کمزورې يم او زما کتاب دسلفو په شان نه دي نو ما ځکه الحمد رانه وړه ، نو يو کس نه وايي چې زه لمونځ نه کوم ځکه چې زه ګنهګار يم او لمونځ کول خو لوي کار دي نو دمصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دا توجيه صحيح نه ده ځکه چې دحديث نه مخالفت راځي .

• **جواب** : شارح په ولا يلزم سره جواب طرف ته اشاره کوي چې په حديث شريف کې خو ليکل نه دي راغلي بلکه لم يبدأ راغلي دي اودابتداء دري صورتونه دي (۱) زړه کې راتلل (۲) ليکل (۳) په ژبه ويل ، که ليکلي يې نه وي نو يا به يې په ژبه ويلې وي اويابه يې په زړه کې راغلي وي ، نو اشکال دفع شو

وبدأ بتعريف الکلمة والکلام الخ : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : مقصود په نحو کې مرفوعات. منصوبت اومجرورات دي او تا په کلمه او کلام کې شروع وکړه نو دا خو غير مقصود دي په کار داوه چې په مقصود کې دې شروع کړې وې

**جواب** : مرفوعات. منصوبت او مجرورات دا احوال د کلمې دي او تر څو چې کلمه نه وي پيژندلې نو څنګه به يې داحوالو نه بحث وکړي نو مرفوعات وغيره داموقوف دي په کلمه او کلام پورې اوبحث د شئ دموقوف عليه نه دا عين بحث وي په موقوف کې

<u>وقدم الكلمة على الكلام الخ</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : کلمه يې ولې مقدم کړه په کلام باندې سره ددې نه چې کلمه مفيد دفائده تامې نه ده او کلام مفيد دفائدې تامې دي نو په کار داوه چې کلام يې مقدم کړې وې په کلمه باندې

**جواب** : شارح ددې نه دوه جوابات ورکول دي

**اول جواب** : کلمه مقدمه وه طبعاً نوموږه مقدم کړه وضع دباره ددې چې مناسبت دوضعې راشي د طبعې سره نو ددې وجې نه يې کلمه مقدم کړه په کلام باندې

**دوهم جواب** : دا چې کلمه محتاج اليه ده او کلام محتاج دي او کلام محتاج وي کلمې ته نو ددې وجې نه يې کلمه مقدم کړه په کلام باندې

<u>لكون أفرادها أجزاء الخ</u>: په دې عبارت سره شارح ديو سوال جواب ورکول دي

**سوال** : افراد د کلمې خو جزء نه دي دافرادو د کلام نه

**جواب** : مفهوم اجمالي دافرادو د کلمې دا جزء دي دمفهوم تفصيلي دافرادو د کلام نه

<u>ومفهومها جزء من مفهومه</u>: اومفهوم د کلمې دا جزء دي دمفهوم د کلام نه او جزء مقدم وي په کل باندې طبعاً نو کلمه مقدم شوه په کلام باندې

## تعريف د کلمې :

فَقَالَ اَلْكَلِمَةُ قِيْلَ هِيَ وَ الْكَلَامُ مُشْتَقَانِ مِنَ الْكَلْمِ بِتَسْكِيْنِ اللاَّمِ وَ هُوَ الْجَرْحُ

پس وي ويل کلمه . چاويلي دي چې داکلمه اوکلام مشتق دي د کلم نه په سکون دلام سره دا ويلې شي زخم ته د

لِتَاثِيْرِ مَعَانِيْهَا فِي النُّفُوْسِ كَالْجَرْحِ وَ قَدْ عَبَّرَ بَعْضُ الشُّعَرَاءِ عَنْ بَعْضِ

وجې د تأثير دمعنی دهغې نه په نفسونو کې لکه زخم او به تحقيق سره تعبير کړې دي بعضې شاعرانو د بعضې

تَاثِيْرَاتِهِمَا بِالْجَرْحِ حَيْثُ قَالَ شِعْرٌ: جَرَاحَاتُ السِّنَانِ لَهَا الْتِيَامُ وَلاَ يَلْتَامُ مَا

تأثيراتو دهغې نه په زخم سره لکه څنګه چې ويل شوي دي شعر: جراحاتو دنيزو لره جوړېدل شته او نه جوړېږي هغه

| |
|---|
| جَرَحَ اللِّسَانُ وَ الْكَلِمُ بِكَسْرِ اللاَّمِ جِنْسٌ لاَ جَمْعٌ كَتَمْرٍ وَ تَمْرَةٍ بِدَلِيْلِ |
| زخمونه کوم چې ژبو زخمي کړي دي او کلم په کسرې د لام سره جنس دي جمع نه ده لکه تمر او تمرة په دليل |
| قَوْلِهِ تَعَالٰى إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَ قِيْلَ جَمْعٌ حَيْثُ لاَ يَقَعُ إِلاَّ عَلَى الثَّلٰثِ |
| ددې قول دالله تعالی سره اليه يصعد الكلم الطيب چاويلي دي چې جمع ده خکه چې دانه واقع کيږي مگر په دريو |
| فَصَاعِداً وَ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ مُؤَوَّلٌ بِبَعْضِ الْكَلِمِ وَ اللاَّمُ فِيْهَا لِلْجِنْسِ وَ التَّاءُ |
| باندې اوياد دريو نه په زياتو او الكلم الطيب مؤول دي په بعضې کلمو سره او لام په دې کې دجنس دي او تاء په کې |
| لِلْوَحْدَةِ وَلاَ مُنَافَاةَ بَيْنَهُمَا لِجَوَازِ إِتِّصَافِ الْجِنْسِ بِالْوَحْدَةِ وَ الْوَاحِدُ |
| دوحدت ده او نشته منافات په ميـنځ ددې دواړو کې خکه چې جنس متصف کيدې شي په وحدت سره او واحد په |
| بِالْجِنْسِيَّةِ يُقَالُ هٰذَا الْجِنْسُ وَاحِدٌ وَ ذٰلِكَ الْوَاحِدُ جِنْسٌ وَ يُمْكِنُ حَمْلُهَا عَلَى الْعَهْدِ الْخَارِجِيْ |
| جنسيت سره ويلې شي هذا الجنس واحد وذلک الواحد جنس نو ممکن دي حمل کول دالف لام په عهد خارجي باندې |
| بِإِرَادَةِ الْكَلِمَةِ الْمَذْكُوْرَةِ عَلَى أَلْسِنَةِ النُّحَاةِ |
| چې کلمه مذکوره ترې واخستل شي په ژبه د نحويانو باندې |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره صاحب دکافيې تعريف د کلمې کوي

**اغراض دجامي**: فقال: په دې عبارت سره شارح توطيه او تمهيد بيانوي ، او په دې عبارت باندې يو سوال وارديږي:

**سوال**: قال فعل دي او ضمير په کې هو دي چې راجع دي شارح ته نو هغه يې فاعل او الكلمةُ يې مرفوع وويله په کار خو دا وه چې الكلمة يې منصوب ويلې وي چې مفعول مطلق واقع شوې وي

**جواب**: اعراب په دوه قسمه دي حالي . حکائي . دلته اعراب حکائي دي نه حالي . او ستا اعتراض په هغه وخت کې راتللو چې اعراب حالي وي.

الكلمة: په دې عبارت سره شارح دکلمې او کلام د اشتقاق تفصيل بيانوي په دې کې دعلماو اختلاف دي چې کلمه او کلام مشتق دي او که نه دي . نو په دې کې دوه ۲ مذاهب دي

**اول مذهب دجمهورو علماو**: جمهور علماء وايي چې دا اسماء برأسها دي

**دوهم مذهب دبعضې علماو**: بعضې علماء وايي چې دا مشتق دي د كلمٌ نه

**دليل دجمهورو**: جمهور علماء وايي چې دارومدار داشتقاق دا بناء دي په تکلفاتو بعيدو باندې . يو تکلف دادې چې کلم په معنی دجرحې سره دي او هره کلمه خو جرحه نه کوي بلکې

کلمه سیئه او بده کلمه جرحه کوي اوددې په مینځ کې هیڅ مناسبت نشته دي
او بل تکلف دادې چې کلمه غوځول نه کوي بل دا چې دجرحې سره به څه مشابهت لري په حذف کې نو دا ټول تکلفات دي

دوهم مذهب ضعیف دي ځکه چې مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ په **قیل** سره ذکر کړې او اختلاف په کې دي دبعضو دپاره دلیل هغه دا شعر دي

**جراحات السنان لها التیام ولا یلتام ماجرح اللسان**

**لتأثیر معانیها في النفوس**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال جواب ورکول دي

**سوال**: اشتقاق هلته کیږي چیرته چې د دوو لفظونو په مینځ کې مناسبت لفظي اومعنوي دواړه وموندل شي، دلته خو ددې دواړو په مینځ کې مناسبت لفظي خو شته او معنوي نه شي موندلې ځکه چې کلم په سکون د لام سره په معنی د زخم او دکلام معنی ده ما یتکلم به او ددې دواړو په مینځ کې څه مناسبت نشته دي.

**جواب**: علامه جامي رَحِمَهُ اللّٰهُ هغه طرف ته جواب ورکړې دې چې دمشتق اود مشتق منه په مینځ کې چې کوم معنوي مناسبت دي هغه عام دي برابره خبره ده که په معنی مطابقي کې وي او یا په تضمني کې اویا التزامي کې وي او په مدلولات ثلاثه کې هر یو مدلول کې چې وي نو د اشتقاق دپاره کافي دي او دلته مدلول التزامي کې مناسبت موجود دي هغه داسې چې زخم ته هم تاثیر لازم دي او کلمې او کلام ته هم تاثیر لازم دي.

**قیل هي والکلام**: دلته مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ **هي** ضمیر راوړو او **کلهم** یې په اسم ظاهر سره ذکر کړو ځکه چې کلمه مخکې ذکر وه صراحتا او کلام نه ؤ ذکر.

**والکلام جنس لاجمع**: په دې عبارت سره غرض دشارح بیان اختلاف دي: چې **کلهم** جنس دي او که جمع په دې کې دوه مذاهب دي: اول مذهب دجمهورو علماو. دوهم مذهب دبعضې علماؤ جمهور علماء وایي چې دا جنس دي جمع نه ده او ددوي دپاره څلور دلائل دي:

**اول دلیل** دادې چې تمیز دعدد اوسط مفرد نکره راځي لکه **اثنا عشر کلما** او مفرد ونه وي مګر جنس

**دوهم دلیل** دادې چې تصغیر ددي بنفسه **کلیم** راځې او ددې رجع مفرد ته نه کیږي.

**دریم دلیل** دادې چې ددې وزن د جمعې په اوازنوکې نشته دي.

**څلورم دلیل** دادې چې په قرآن کریم کې الله تعالی فرمایي **إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ الطَّيِّبُ**

صفت د كلم دي ، كه چيرته كلم جمع وي نو صفت به يې الطيبات راغلې وي .

او بعضې علماء وايي چې دا جمع ده جنس نه دي جمع وايي : مايطلق على ثلاثة فصاعدا وليس له مفرد من لفظه نحو مسلمون . يعنې جمعه هغې ته وايي چې اطلاق يې په دريو اويا په زيات د دريو باندې كيږي اونه وي ددې دپاره مفرد من لفظه ، او جنس هغه دي چې يطلق على الماهية معري عن الافراد نحو انسان وليس له مفرد من لفظه .

**دليل د بعضو** : د بعضو د پاره دليل دادې چې ددې اطلاق په دريو او په زيات د دريو باندى كيږي .

دوي رد كوي په جمهورو باندې داول دليل نه جواب دا كوي چې زه دا منم چې تميز دعدد اوسط كلماً نه راځي بلكه كلمةً راځي .

او ددوهم دليل نه دا جواب كوي چې ددې تصغير اول راجع كيږي مفرد ته يعنې كلمةً ته او بيا يې تصغير كليم راځي .

او د دريم دليل نه جواب دا كوي چې وزن يې په جمعو كې شته چې همدا وزن دي .

اود څلورم دليل نه جواب دا كوي چې دا آيت مؤل دې په تاويل د بعض سره يعنې آيت داسې دي چې : بعض الكلم الطيب نو الطيب صفت د بعض واقع شوي او بعض مفرد دي .

نو مونږ ملګرتيا كوو دجمهورو او داول رد نه دا جواب وركوو چې ستاسې دعوه بلا دليله ده ځكه په كلام دعربو كې ددې ثبوت نشته دي .

اوددوهم رد نه هم جواب دا كوو چې ستاسې دعوه بلا دليله ده .

او ددريم رد نه جواب داوركوو چې دا خو مصادرة على المطلوب كوي .

او د څلورم رد نه جواب دا كوو چې تاويل هغه وخت كيږي چې استعمال د حقيقت متعذر وي .

دلته سائل يو سوال كوي :

**سوال** : دادې چې تا اول تحقيق داشتقاق وكړو اوبيا دې دجنس وكړو او اوس دالف لام كوي ، په كار خو دا وه چې اول دې بحث د الف لام كړې وي او بيا دې تحقيق په نفسِ كلمه كې كړې وو .

**جواب** : دادې چې كلمة معروض ده او الف لام عارض دي كلمې ته او معروض مقدم وي په عارض باندې .

والللام فيها للجنس: په دې عبارت سره غرض د شارح اول تعين دالف لام کوي ، دوهم تعين د تاء کوي او دريم دفع دسوال کوي :

اول الف لام په دوه قسمه دي اسمي ، حرفي . الف لام اسمي هغه ته وايي چې په اسم فاعل او اسم مفعول کې وي نو په الكلمة کې خو الف لام اسمي نه دي ځکه کلمه خو نه اسم فاعل ده او نه اسم مفعول ، او الف لام حرفي هغه دي چې په غير داسم فاعل او اسم مفعول نه وي خو الف لام حرفي په دوه قسمه دي زائد ، غير زائد ، زائد هغه ته وايي چې سقوط يې مخل نه وي معنى لره نو دلته خو دا هم نه دي ځکه سقوط سره يې نکارت دمبتداء لازميږي ، او غير زائد په څلور قسمه دي : (۱) جنسي . (۲) استغراقي ، (۳) عهد خارجي ، (۴) عهد ذهني ، دلته جنسي استغراقي نه صحيح کيږي ځکه چې په دې کې کثرت وي او دکلمې په آخر کې تاء د وحدت لپاره ده اود کثرت او وحدت په مينځ کې منافات دې ، که چيرې الف لام عهد خارجي جوړ کړي نو ددې دپاره مخکې معهود ضروري وي او دلته مخکې معهود نشته . او که چيرې الف لام عهد ذهني جوړ کړي نو ددې مدخول به دنکرې په حکم کې وي نو بيا د نکارت والاخرابي لازم راځي ، نو الف لام په ټولو اقسامو کې دلته يو قسم هم نه جوړيږي

**جواب** : دلته الف لام جنسي دي اوپاتې شوه دا خبره چې د جنس او وحدت په مينځ کې منافات دي نو ددې جواب دادې چې وحدت په څلور قسمه دي وحدت جنسي لکه حيوان ، وحدت نوعي لکه انسان ، وحدت صنفي لکه رومي ، وحدت فردي لکه زيد . اوس الف لام جنسي او وحدت فردي کې منافات دي . باقي وحدتونه درې واړه قسمونه الف لام جنسي سره جمع کيدې شي .

ويمكن حملها على العهد الخارجي: په دې عبارت سره شارح د سوال دوهم جواب ورکوي چې په الكلمة باندې داخل الف لام عهد خارجي دي باقي ستاسو دا وينا چې ددې نه مخکې معهود نه دي ذکر نو ددې جواب دادې چې معهود مخکې ذکر کول ضروري نه دي بلکه معلوم کيدل اومعين کيدل کافي دي او دلته کلمه معلوم اومعين دي چې ددې نه مراد هغه کلمه ده چې مذکوره ده په ژبو د نحاتو .

## وضاحت د لفظ :

| لَفْظُ اَللَّفْظُ فِي اللُّغَةِ اَلرَّمْيُ يُقَالُ اَكَلْتُ التَّمْرَةَ وَ لَفَظْتُ النَّوَاةَ اَیْ رَمَيْتُهَا ثُمَّ نُقِلَ |
|---|
| لفظ په لغت کې ويشتلو ته ويلې شي ويلې کيږي اكلت التمرة ولفظت النواة اى رميتها معنى وه مې ويشتو بيا نقل |

فِيْ عُرْفِ النُّحَاةِ اِبْتِدَاءً اَوْ بَعْدَ . جَعْلَهُ بِمَعْنَى الْمَلْفُوْظِ كَالْخَلْقِ بِمَعْنَى الْمَخْلُوْقِ

شوه په عرف دنحويانوكې اولا وروستو دهغې نه وګرځيده په معنى دملفوظ سره لكه خلق په معنى دمخلوق سره

اِلٰى مَا يَتَلَفَّظُ بِهِ الْاِنْسَانُ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً مُهْمَلاً كَانَ اَوْ مَوْضُوْعاً مُفْرَداً كَانَ اَوْ

هغه څه ته چې په هغې باندې انسان تلفظ كوي حقيقتاً اوحكماً مهمل وي اوكه موضوع وي مفرد وي اوكه

مُرَكَّباً وَ اللَّفْظُ الْحَقِيْقِيُّ كَزَيْدٍ وَ ضَرَبَ وَ الْحُكْمِيُّ كَالْمَنْوِيِّ فِيْ زَيْدٌ ضَرَبَ وَ اَضْرِبُ اِذْ

مركب وي اولفظ حقيقي لكه زيداوضرب اوحكمي لكه په نيت كې وي په جمله زيد ضرب اواضرب كې خكه چې

لَيْسَ مِنْ مَقُوْلَةِ الْحَرْفِ وَ الصَّوْتِ اَصْلاً وَ لَمْ يُوْضَعْ لَهُ لَفْظٌ وَ اِنَّمَا عَبَّرُوْا عَنْهُ

نشته په مقوله د حرف او آواز كې بالكل اونه دي وضع شوې دي دپاره لفظ بلكې تعبير كړې دي ددې نه په

بِاسْتِعَارَةِ لَفْظِ الْمُنْفَصِلِ لَهُ مِنْ نَحْوِ هُوَ وَ اَنْتَ وَ اَجْرَوْا عَلَيْهِ اَحْكَامَ اللَّفْظِ

استعارې دلفظ دمنفصل ددې دپاره لكه په هواوانت كې اوجارې كړې دي په دې باندې احكام دلفظ نو دا

فَكَانَ لَفْظاً حُكْماً لاَ حَقِيْقَةً وَ الْمَحْذُوْفُ لَفْظٌ حَقِيْقَةً لِاَنَّهُ قَدْ يَتَلَفَّظُ بِهِ الْاِنْسَانُ فِيْ بَعْضِ

شولفظ حكمي نه حقيقي اومحذوف دا لفظ دي حقيقي خكه چې تلفظ كوي په دې باندې انسان په بعضې

الْاَحْيَانِ وَ كَلِمَاتُ اللهِ تَعَالٰى دَاخِلَةٌ فِيْهِ اِذْ هِيَ مِمَّا يَتَلَفَّظُ بِهِ الْاِنْسَانُ

وختونوكې اوكلمات دالله تعالى داخل دي په دې كې خكه چې دا دهغې جملې نه دي چې تلفظ كوي انسان

وَعَلٰى هٰذَا الْقِيَاسُ كَلِمَاتُ الْمَلاَئِكَةِ وَالْجِنِّ وَالدَّوَالُ الْاَرْبَعُ وَهِيَ الْخُطُوْطُ وَالْعُقُوْدُ وَالنُّصُبُ وَالْاِشَارَاتُ غَيْرُ دَاخِلَةٌ

وعلى هذا القياس كلمات دفرشتواوپيريانواودول اربعه يعني خطوط،عقود ،نصب اواشارات داخل نه دي په

فِيْهِ فَلاَ حَاجَةَ اِلٰى قَيْدٍ يُخْرِجُهَا وَ اِنَّمَا قَالَ لَفْظٌ وَ لَمْ يَقُلْ

لفظ كې پس ضرورت نشته داسې يوقيدته چې هغه پرې وويستل شي اومصنف وويل لفظ اووې يې نه ويل

لَفْظَةٌ لِاَنَّهُ لَمْ يَقْصُدِ الْوَحْدَةَ وَ الْمُطَابَقَةُ غَيْرُ لاَزِمَةٍ لِعَدَمِ الْاِشْتِقَاقِ مَعَ كَوْنِ

لفظة خكه چې دهغه قصد وحدت نه دي اومطابقت غيرلازم دي دوجې دنشتوالي د اشتقاق نه سره ددې نه چې

اللَّفْظِ اَخْصَرُ.

لفظ كوتاه دي

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت سره صاحب دكافيې د لفظ لغوي اواصطلاحي تعريف بيانوي.

**اغراض دجامي:** لفظ: په دې عبارت سره شارح د لفظ وضاحت كوي لفظ مصدر دي او مصدر مبني للفاعل او مفعول دواړه كيدې شي دلته مبني للمفعول دي په معني دملفوظ سره لكه خلق په معني د مخلوق سره او شرب په معني د مشروب سره نو دا عام شو كه موضوع وي او كه مهمل كه مفرد وي او كه مركب حقيقتاً وي او كه حكماً ، قليلا وي او كه كثيرا .

کله چې دلفظ تعريف په مايتلفظ به الانسان سره وکړه نو ټول اجزاء او اقسام دکلام په کې داخل شو حتی چې کلام الله چې کله متلفظ دانسان وګرځي اګر چې دالله پاک کلام دي لکن په تعريف دلفظ کې داخليږي ، نو دلته يو سوال راځي

**سوال** : چې ضمائرو ته لفظ ويل کيدې شي اوکه نه ؟

**جواب** : چې کله ناکله ورباندې تلفظ کيږي نو هغه هم په تعريف دلفظ کې داخل دي

**سوال** : سائل سوال کوي چې صاحب دکتاب د لفظ په ځاى لفظة ولې ونه ويلو نو بيا به مطابقت د الكلمة سره راغلې وې نو دغه اعتراضات چې په الكلمة باندې راغلي دا به نه راتلې .

**جواب** : صاحب دجامي جواب کوي چې لفظ داخبر دي دمبتداء . او په مينځ دمبتداء او خبر کې چې کله شروط ثلاثه موجودوو بيا مطابقت شرط دي او هغه دلته نه دي موجود نو مطابقت شرط نه دي ، او هغه شروط ثلاثه دادي :

(۱) دواړه به په اشتاق او عدم اشتاق کې برابر وي ، او دلته نه دي برابر ځکه کلمه مشتق ده او لفظ غير مشتق دي .

(۲) بله داچې ضمير مسند به راجع وي خبر ته ، او هغه هم نه دي موجود ځکه په لفظ کې ضمير نشته .

(۳) عدم تساوي په تذکير او تانيث کې لکه لفظ د جريح نو کله چه شرط منتفي شي نو مشروط هم منتفي کيږي اودلته زمونږ مقصد وحدت ذکر کول نه دي بلکې عامه کلمه تعريف کول ځکه که وحدت مقصودشي بيا لفظ دعبدالله به خارج شي دکلمي نه اوحالانکي عبدالله ديو رجل اسم داخل دي په تعريف دکلمی کی نو ځکه مو لفظ ذکر کړو نه لفظة .

بله داچې دا تعريف دکلمي دي او بهتر په تعريف کې هغه الفاظ دي چې مختصر وي نو لفظ دا مختصر دي د لفظة ځخه او نطق کول پرې هم آسان دي .

والمطابقة غير لازمة : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : الكلمة مبتدا ده او لفظ ددې خبر دي اوپه مبتدا او خبر کې مطابقت ضروري وي او دلته مطابقت نشته دي .

**جواب** : دمبتدا او خبر دمطابقت دپاره اوه (۷) شرطونه دي :

**اول** : مبتدا اوخبر به دواړه اسم ظاهر وي احترازي مثال لکه هي اسم وفعل وحرف .

**دوهم** : خبر به مشتق وي احترازي مثال لکه الکلمة لفظ

**دریم** : په خبر کې به د مبتدا ضمیر وي احترازي مثال لکه زینب، وسقر

**څلورم** : د خبر په اسم تفضیل مستعمل په من سره نه وي احترازي مثال لکه الصلوة

**پنځم** : چې خبر صفت خاصه د مؤنث دپاره نه وي احترازي مثال لکه المرأة

**شپږم** : چې خبر به د مفعول په وزن باندې نه وي احترازي مثال لکه المرأة صبور

**اوم** : چې خبر به د فعیل په وزن باندې نه وي احترازي مثال لکه المرأة جريح

**نو خلاصه د جواب** داده چې دلته خبر مشتق نه وي ددې وجې نه مطابقت ضروري نه دي

<u>مع کون اللفظ اخصر</u>: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال** : چې که چیرته مطابقت ضروري نه وي نو عدمِ مطابقت به هم ضروري نه وي مطابقت په هر حال کې د عدم مطابقت په مقابله کې بهتر خو دی.

**جواب** : شارح جواب ورکړې دې چې دلته عدم مطابقت بهتر دي په نسبت سره مطابقت ته ځکه چې دا متن دي او بناء د متونو په اختصار وي نو په لفظ کې زیات اختصار دي په نسبت سره لفظة ته ، نو په دې باندې یو بل سوال راځي :

**سوال** : چې په غورزیدو دیو تاء سره نفس اختصار خو حاصل شو مګر دا خبره چې زیادت د اختصار راځي دا خبره دې د کوم ځای نه ثابته کړه چې تا صیه د اسم تفضیل وویله مع کون اللفظ اخصر.

**جواب** : دلته یوه تاء نه ده غورزیدلې بلکه درې تاء ګانې غورزیدلې دي که چیرته لفظة یې ویلې وي نو وضعت به یې هم ویلو او په یو احتمال سره ددې صفت جوړیدو نو معلومه شوه چې په ظاهره خو یو تاء غورزیږي خو په حقیقت کې درې تاء ګانې غورزیږي ددې وجې نه مونږه صیغه د اسم تفضیل استعمال کړه.

# تعریف د وضع :

| وَضعَ | الوَضعِ | تَخصِيصُ | شَيْءٍ | بِشَيْءٍ | بِحَيثُ | مَتَى | أُطلِقَ | أَوْ | أُحِسَّ | الشَّيْءُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وضعَ وضع خاص کول دیو څیز دي په بل څیز پورې په داسې شان سره چې کله مطلق ذکر شي او یا حس شي شئ | | | | | | | | | | |
| الأَوَّلُ | فُهِمَ | مِنهُ | الشَّيْءُ | الثَّانِي | قِيلَ | يُخرِجُ | عَنهُ | وَضعُ الحَرفِ | حَيثُ لاَ يُفهَمُ | مِنهُ مَعنَاهُ |
| اول نو فهمیږي ترې شئ ثاني ، چا ویلي دي خارج شو ددې نه وضع د حرف ځکه نه فهمیږي ددې معنی ددې | | | | | | | | | | |

| |
|---|
| مَتَى أُطْلِقَ بَلْ إِذَا أُطْلِقَ مَعَ ضَمِّ ضَمِيْمَةٍ وَ أُجِيْبَ بِأَنَّ الْمُرَادَ مَتَى أُطْلِقَ |
| كله چې مطلق ذكر شي بلكې چې كله مطلق ياد شي سره د ضم د ضميمې نه جواب داد ې چې مراد كله چې ذكر |
| إِطْلَاقاً صَحِيْحاً وَ إِطْلَاقُ الْحَرْفِ بِلَاضَمِّ ضَمِيْمَةٍ غَيْرُ صَحِيْحٍ وَلَا يُبْعَدُ أَنْ يُقَالَ |
| شي په اطلاق صحيحه سره او اطلاق د حرف بې د ضم د ضميمې نه دا غير صحيح ده بعيده نه ده چې وويلې شي |
| الْمُرَادُ بِإِطْلَاقِ الْأَلْفَاظِ أَنْ يَسْتَعْمِلَهَا أَهْلُ اللِّسَانِ فِيْ مُحَاوَرَاتِهِمْ وَ بَيَانُ مَقَاصِدِهِمْ |
| چې مراد په اطلاق د الفاظو سره چې استعمالوي هغې لره اهل لسان په خپلو محاورو کې او بيان د مقاصدو کې |
| فَلَا حَاجَةَ إِلَى اعْتِبَارِ قَيْدٍ زَائِدٍ. |
| پس حاجت نشته اعتبار د يو قيد زائد ته |

**خلاصه د متن:** په دې عبارت سره صاحب د كافيې تعريف د وضع بيانوي

**اغراض د جامي:** وضع: په دې عبارت سره شارح د كلمې په تعريف کې اول فصل بيانوي دا د كلمې په تعريف کې اول فصل دي ، نو په دې سره ترې مهملات خارج شو او هغه الفاظ چې دلالت بالطبع كوي هغه هم خارج شو ،د دې وجې نه چې اگر كه الفاظ دلالت په خپلو معانيو باندې كيږي مگر هغه دلالت بالوضع نه كيږي

وضع په لغت کې نهادن ايخودلو ته وايي او په اصطلاح کې تخصيص الشئ بالشئ بحيث متى اطلق او احس الشئ الاول فهم منه الشئ الثاني .تخصيص د يو څيز د بل څيز سره خاص كول په داسې شان سره چې كله هم د اولني څيز اطلاق يا احساس وكړې شي نو د هغې نه دويم څيز په ذهن کې راځي .

**سوال:** لفظ د متى د عموم د اوقاتو د پاره راځي چې كله هم وويلې شي نو شئ ثاني ترې نه په ذهن کې راځي چې كله په اولنئ ځل ويلو سره په ذهن کې راځي نو كه چيرته په دوهم ځل ويلو سره هم په ذهن کې راځي نو تحصيل د حاصل لازميږي او دا باطل دي .

**جواب:** د منهم نه مراد التفات او د التفات نه مراد جديد يعني چې كله متكلم خبرې كوي نو مخاطب او سامع لره د دې معنى طرف ته التفات جديد وي .

**سوال:** ستا د وضع په تعريف سره هغه الفاظ خارجيږي چې د هغې علم نه متكلم ته شته دي او نه سامع ته لكه متشابهات وغيره همدارنگه هغه الفاظ ترې نه هم خارجيږي چې د هغې علم خو متكلم ته شته دي خو سامع او مخاطب ته نشته دي لكه عربي والاعجمي د غير عالم په مخامخ الفاظ عربيه وايي .

**جواب** : دلته د بعد العلم بالوضع والاقيد معتبر او ملحوظ دي .

**سوال** : ستا دوضع تعريف جامع نه دي خپلو ټولو افرادو لره ددې نه وضع دحروفو خارجيږي ځکه چې کله ددې اطلاق وکړې شي نو ددې معنی په ذهن کې نه راځي بلکه په هغه وخت کې راځي چې کله ورسره ضم د ضميمې هم وي .

**جواب** : شارح ددې نه دوه جوابات ورکړي دي :

**اول جواب** : شارح هندي په واجيب سره جواب ورکړي دي چې داطلاق نه مراد اطلاق صحيحه دي او دحروفو اطلاق په غير د ضم د ضميمې نه دسره نه صحيح کيږي .

**دوهم جواب** : شارح په ولا يبعد سره دوهم جواب ورکوي چې داطلاق نه مراد اهل لسانو لره په خپلو محاوراتو کې استعمال او اهل لسان دحروفو اطلاق په غير دضم دضميمې نه کوي نو کله هم چې اهلِ لسان دحروفو اطلاق کوي دضم دضميمې سره نو ددې معنی په ذهن کې راځي .

فلا حاجة الى اعتبار قيد زائد: په دې عبارت سره شارح د علامه هندي د جواب کمزورې طرف ته اشاره کوي : چې زما جواب د علامه هندي دجواب نه بهتر دي ځکه چې علامه هندي په جواب کې د اطلاق صحيحه قيد ولړولو په غير دضرورت نه يې مطلق مقيد کړو چې کله مطلق په خپل اطلاق باندې په پريخودلو سره سوال ختميږي نو بيا په غير دضرورت نه مطلق مقيد کول هم صحيح نه دي .

## تعريف د معنی :

| |
|---|
| لِمَعْنًى اَلْمَعْنٰى مَا يُقْصَدُ بِشَيْءٍ فَهُوَ إِمَّا مَفْعَلٌ اِسْمُ مَكَانٍ بِمَعْنَى الْمَقْصَدِ |
| لمعنىً معنى هغه ده چې قصد کولې شي په يو څيزسره پس داوزن دمفعل اسم مکان دي په معنی دمقصد سره |
| أَوْ مَصْدَرٌ مِيْمِيٌّ بِمَعْنَى الْمَفْعُوْلِ أَوْ مُخَفَّفُ مَعْنِيٍّ اِسْمُ مَفْعُوْلٍ كَمَرْمِيٍّ وَ لَمَّا كَانَ الْمَعْنٰى |
| اويامصدرميمي دي په معنی دمفعول سره اويامخفف په معنی داسم مفعول سره لکه مرمي هرکله چې وه معنی |
| مَأْخُوْذاً فِي الْوَضْعِ فَذَكَرَ الْمَعْنٰى بَعْدَهُ مَبْنِيٌّ عَلٰى تَجْرِيْدِهٖ عَنْهُ فَخَرَجَ بِهٖ |
| ماخوذه په وضع کې نوذکردمعنی وروستو دهغې نه دا مبني ده په تجريد دمعنی دوضع نه نوخارج شويه دي |
| الْمُهْمَلَاتُ وَ الْاَلْفَاظُ الدَّالَّةُ بِالطَّبْعِ إِذْ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهَا وَضْعٌ وَ تَخْصِيْصٌ أَصْلاً وَ بَقِيَتْ |
| سره مهملات او الفاظ داله بالطبع ځکه چې تعلق نشته ددې پورې دوضع اوتخصيص بالکل اوباقي پاتې شو |
| حُرُوْفُ الْهِجَاءِ الْمَوْضُوْعَةُ لِغَرَضِ التَّرْكِيْبِ لَا بِإِزَاءِ الْمَعْنٰى وَ خَرَجَتْ بِقَوْلِهٖ لِمَعْنًى |
| حروف هجاء چې وضع شوې وودپاره دغرض ترکيب نه په مقابله دمعنی اوخارج شويه دي قول سره چې لمعنی |

| إِذْ وَضْعُهَا لِغَرَضِ التَّرْكِيبِ لاَ بِإِزَاءِ الْمَعْنٰى. |
|---|
| خکه چې وضع ددې دپاره دغرض ترکیب ده نه په مقابله دمعنی |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره صاحب دکافیې دمعنی وضاحت کوي

**اغراض دجامي**: لمعنی: په دې عبارت سره شارح د کلمې په تعریف کې دوهم فصل بیانوي ، په دې سره حروف تهجي ترې خارج شول ، ددې وجې نه چې حروف تهجي اګر که موضوع کیږي لیکن په مقابلې

کې موضوع نه کیږي بلکه غرض ترکیب دپاره هغه وضع کولې شي معنی په لغت کې ما یقصد بشئ ته وايي ، چې د یو څیز نه مقصود وي یعنې مقصود من الشئ ته معنی وايي اود معنی لغوي معنی دادعنایت نه مشتق ده د معنی معنی ده قصد کول ده

مفرد: په دې عبارت سره شارح دکلمې په تعریف کې دریم فصل بیانوي . په دې سره مرکبات کلامیه او غیر کلامیه ټول خارج شول نو ګویا چې دکلمې په تعریف کې یو جنس دي او درې فصله دي اوس د کلمې د تعریف لاندې صرف هغه لفظ پاتې کیدې شي چې هغه لفظ هم وي موضوع هم وي او موضوع هم دمعنی په مقابله کې وي اومفرد هم وي لکه زید ، رجل وغیره .

فخرج به المهملات الخ: په دې عبارت سره شارح دا بیانوي چې وضع اول فصل دي په دې سره مهملات او الفاظ داله بالطبع خارج شول او لمعنیً دا دوهم فصل دي په دې سره حروف تهجي خارج شول خکه چې هغه اګر که وضع کولې خو شي لیکن دمعنی په مقابله کې نه وضع کیږي بلکه عرض ترکیب دپاره هغه وضع کیږي .

## د یو سوال جواب :

| فَإِنْ قُلْتَ قَدْ وُضِعَ بَعْضُ الْأَلْفَاظِ بِإِزَاءِ بَعْضٍ آخَرَ فَكَيْفَ يَصْدُقُ |
|---|
| که چیرته وویل شي په تحقیق سره وضع شوي بعضې الفاظ په مقابله دبعضې نورو کې نوخنګه به اطلاق کیدې |
| عَلَيْهِ أَنَّهُ وُضِعَ لِمَعْنًى قُلْنَا الْمَعْنٰى مَا يَتَعَلَّقُ بِهِ |
| شي په هغې باندې چې دا وضع شوي دې دپاره دمعنی ، مونږ وایو معنی هغه ده چې تعلق نیسي د هغې پورې |
| الْقَصْدُ وَهُوَ أَعَمُّ مِنْ أَنْ يَكُونَ لَفْظًا أَوْ غَيْرَهُ فَإِنْ قُلْتَ قَدْ وُضِعَ بَعْضُ |
| پورې قصد داعامه ده ددې نه چې لفظ وي اوکه غیر لفظ که چیرته وویل شي په تحقیق سره وضع شوي بعضې |
| الْكَلِمَاتِ الْمُفْرَدَةِ بِإِزَاءِ الْأَلْفَاظِ الْمُرَكَّبَةِ كَلَفْظِ الْجُمْلَةِ وَالْخَبَرِ فَكَيْفَ يَكُونُ مَوْضُوعاً لِمُفْرَدٍ قُلْنَا |
| کلمات مفرده په مقابله دالفاظ مرکبو کې لکه لفظ دجملې اوذخبرنوخنګه به داوضع وي دپاره دمفرد مونږ وایو |

هَذِهِ الاَلفَاظُ وَاِنْ كَانَتْ بِالقِيَاسِ اِلٰى مَعَانِيهَا مُرَكَّبَةً لٰكِنَّهَا بِالقِيَاسِ اِلٰى اَلفَاظِهَا المَوضُوعَةِ بِاِزَائِهَا مُفرَدَةٌ

داالفاظ اګرچې په قياس سره خپلومعناوته مرکب دي ليکن په قياس سره الفاظ موضوعه ته په مقابله دمفرد و

وَ قَدْ اُجِيبَ عَنِ الاِشْكَالَينِ بِاَنَّهُ لَيسَ هٰهُنَا لَفظٌ وُضِعَ

کې دي او په تحقيق سره جواب ورکړې شو د دواړو اشکالونه چې نشته دلته يو لفظ چې وضع شوې وي په

بِاِزَاءِ لَفظٍ آخَرَ مُفرَداً كَانَ اَوْ مُرَكَّباً بِاِزَاءِ مَفهُومٍ كُلِّيٍّ اَفرَادُهُ اَلفَاظٌ كَلَفظِ الاِسمِ

مقابله دلفظ آخرکې مفرد وي او که مرکب وي په مقابله دمفهوم کلي چې افراد دهغې الفاظ دي لکه لفظ داسم

وَ الفِعلِ الحَرفِ وَ الخَبَرِ وَ الجُملَةِ وَ غَيرِهَا وَلَا يَخفٰى عَلَيكَ اَنَّ هٰذَا الحُكمَ مَنقُوضٌ بِاَمثَالِ

اودفعل اودحرف او د خبر او د جملې او غير د دې نه پټه دې نه وي په تا باندې چې دا حکم مات سو ي په مثل د

الضَّمَائِرِ الرَّاجِعَةِ اِلٰى اَلفَاظٍ مَخصُوصَةٍ مُفرَدَةٍ اَوْ مُرَكَّبَةٍ فَاِنَّ الوَضعَ فِيهَا وَ اِنْ كَانَ عَامّاً

ضمائرو چې راجع دي الفاظ مخصوصو ته مفرد وي او که مرکب وي خکه چې وضع په هغې کې اګرچې عامه

لٰكِنَّ المَوضُوعَ لَهُ خَاصٌّ فَلَيسَ هُنَاكَ مَفهُومٌ كُلِّيٌّ هُوَ المَوضُوعُ لَهُ فِي الحَقِيقَةِ مُفرَدٌ

ده ليکن موضوع له خاص دي نو نشته هلته يومفهوم کلي چې وضع شوي وي دهغې دپاره په حقيقت کې مفرد

وَ هُوَ اِمَّا مَجرُورٌ عَلٰى اَنَّهُ صِفَةٌ لِمَعنًى وَ مَعنَاهُ حِينَئِذٍ مَا يَدُلُّ

دا يا مجرور دي بنا په دې چې داصفت دي دپاره دمعنى اومعنى يې په دې وخت کې هغه ده چې دلالت کوي

جُزءُ لَفظِهِ عَلٰى جُزئِهِ وَ فِيهِ اَنَّهُ يُوهِمُ اَنَّ اللَّفظَ مَوضُوعٌ لِمَعنًى

جزءدلفظ ددې په جزءدمعنى باندې اوپه دې کې داوهم کيدې شي چې لفظ وضع شوې دپاره دمعنى هغه معنى

المُتَّصِفُ بِالاِفرَادِ وَ التَّركِيبِ قَبلَ الوَضعِ وَ لَيسَ الاَمرُ كَذٰلِكَ فَاِنَّ اِتِّصَافَ المَعنٰى

چې کومه متصفه ده په افراداوترکيب سره مخکې دوضع نه حالانکه داسې نه ده خکه چې اتصاف دمعنى په

بِالاِفرَادِ وَالتَّركِيبِ اِنَّمَا هُوَ بَعدَ الوَضعِ فَيَنبَغِي اَنْ يُرتَكَبَ فِيهِ تَجَوُّزٌ كَمَا يُرتَكَبُ فِي مِثلِ مَنْ قَتَلَ قَتِيلاً

افراداوترکيب داوروستو دوضع نه دي پس مناسب دي چې واخستل شي په دې کې مجاز لکه په من قتل قتيلاً

فَلَهُ سَلَبُهُ اَوْ مَرفُوعٌ عَلٰى اَنَّهُ صِفَةٌ لِلَّفظِ وَ مَعنَاهُ حِينَئِذٍ مَا لَا

فله سلبه کې يامرفوع دي بناء په دې چې داصفت دي دپاره دلفظ نومعنى يې په دې وخت کې هغه ده چې نه

يَدُلُّ جُزءُهُ عَلٰى جُزءِ مَعنَاهُ.

کوي دلالت جزء دلفظ په جزء دمعنى باندې.

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب دکافيې د يو سوال جواب ورکوي

اغراض دجامي : فان قلت : قد وضع بعض الالفاظ : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي :

**سوال** : تعریف د کلمې دې جامع نه دې خپلو ټولو افرادو لره ځکه چې تا د کلمې په تعریف کې ذکر کړې دې لفظ وضع لمعنی ، نو ددې هغه تمام کلمات خارج شو چې لفظ خو وي خو هغه دبل لفظ په مقابله کې وضع کړې شوې وي لکه لفظ د اسم چې دا زید په مقابله کې وضع کړې شوې دې اولفظ فعل لره د ضرب او نصر په مقابله کې وضع کړې وي نو لفظ اسم او فعل دواړه د کلمې دتعریف نه خارج شول.

**جواب** : ستا خبره صحیح نه ده ځکه چې زما مراد دلمعنی نه هغه ده چې د چاسره قصد تعلق ونیسي نو هغه څیز که لفظ وي اوکه معنی.

**سوال** : ستا تعریف بیا هم جامع نه شو خپلو ټولو افرادو لره تا چې دمفرد کوم قید ذکر کړې دې د هغه قید دوجې نه هغه الفاظ خارج شول چالره چې دالفاظ مرکبه په مقابله کې وضع کړې وو هغه الفاظ مرکبه اګر چې ستا دقول مطابق په معنیٰ کې داخلیږي خو هغه ددې قید نه خارجیږي لکه چې لفظ جمله اولفظ خبر لره د زید قائم وغیره په مقابله کې وضع کړې شوې دي دې زید قائم خو مرکب دي خو لفظ جمله او لفظ خبر ستا د کلمې په تعریف سره خارج شو.

**جواب** : شارح ددې جواب دا ورکړې دې چې زید قائم وغیره دوه حیثیته دي یو دخپل مافوق دلفظ موضوع په اعتبار سره او دوهم دخپل ماتحت معنی موضوع له ( زید قائم ) په اعتبار سره د اولنۍ حیثیت په اعتبار سره دامعنی ددې ځکه چې دلفر جز دمعنی په حیز باندې دلالت نه کوي یعنې دلفظ جملې جسم دقائم په خان باندې دلالت نه کوي ددې حیثیت نه دامعنه ددې اوکوم حیثیت نه دامرکب دې هغه حیثیت نه لفظ جمله اوخبروالاموضوع له نه دې.

<u>**وقد اجیب**</u>: په دې عبارت سره شارح د مخکنۍ سوال جواب کوي : مونږ دا خبره نه منو چې مذکوره الفاظ د الفاظ مفرده او الفاظ مرکبه په مقابله کې وضع شوې وي بلکه الفاظ دیو مفهوم کلي په مقابله کې وضع شوې دي او مفهوم کلي معنی من المعاني دې مثلاً اسم ته مفهوم کلي **مادل علی معنیٰ في نفسه غیر مقترن باحد الازمنة الثلاثة** ، په مقابله کې وضع شوې دې او ضرب نصر وغیره ددې مفهوم کلي والاافراد دې وعلی هذا القیاس خبرجمله وغیره هم

<u>**مفرد، هو امام مجرور**</u>: په دې عبارت کې علامه جامي رَحِمَهُ اللّٰهُ په لفظ دمفرد کې په احتمالي ترکیبونو کې درې احتماله بیانوي:

**اول احتمال** : دا به مجرور وایي اود معنی دپاره به یې صفت جوړ کړي په دې صورت کې به د کلمې تعریف داسې شي چې کلمه هغه لفظ دې چې وضع کړې شوې وي د داسې معنی په

مقابله کې چې هغه مفرد وي او معنی مفرد هغه وي چې ددې معنی په مقابله کې چې کوم لفظ موضوع وي ددې لفظ موضوع يو جز هم ددې معنی په جزء باندې دلالت نه کوي

**وفيه انه يوهم**: په دې عبارت سره شارح په اولني احتمال باندې يو سوال راخي هغه ذکر کوي

**سوال**: د خان پوهولو دپاره مخکې ديو تمهيدي خبرې پيژندل ضروري دي چې قانون او قاعده داده چې کله دفعل ياشبه فعل تعلق د يو متصف بالصفة سره وي نو ددې متصف اتصاف ددې صفت سره ددې تعلق نه مخکې وي اول به هغه متصف وي اوبيابه ددې فعل ياشبه فعل تعلق وي لکه **ضربت رجلاً قياماً** يا **جاءني زيد راكباً** نو دلته به **رجل قائم** اول کې وي او مضروب به وروستو جوړيږي همدارنګې **زيد راکب** په اول کې وي او مجئيت به وروستو وي

**نو خلاصه** د سوال داده چې کله د وضع فعل تعلق د يو داسې معنی سره وي چې متصف بالافراد وي نو دمذکورې قاعدې مطابق دا خبره په ذهن کې راخي چې دمعنی اتصاف افراد او ترکيب سره مخکې دوضع نه وي يعنې مخکې به معنی مفرد يامرکب جوړيږي او وروستو به موضوع لـه جوړيږي اودا خبره بالکل غلطه ده بلکه وضع کيدل دلفر دمعنی په مقابله کې مخکې وي اومفرد اومرکب خو بيا وروستو جوړيږي ځکه چې افراد اوترکيب خو فرع ده د دلالت اودعدم دلالت اودلالت اوعدم دلالت مرتب کيږي په وضع باندې لهذا اول به لفظ لره وضع کړې شي دهغې په مقابله کې بيا به ددې لفظ جز دلالت کوي په جز دهغې باندې يابه يې نه کوي چې دهغې په نتيجه کې هغه معنی به مفرد جوړه شي يامرکب اوهغه ترکيب چې کوم تا ذکر کړې دې دهغې نو خو بالکل مخالف په ذهن کې راخي

**جواب**: علامه جامي رحمه الله ددې جواب ورکړې دې چې دا دمجاز مشارفت دقبيلې نه دې يعنې په اعتبار د **مايؤول** سره دې معنی لره دمفرد جوړيدو نه مخکې مفرد وويلو يعنې دمفرد جوړيدو په خپله باندې دوضع نه وروستو مګر ده لره يې دوضع نه مخکې مفرد وويلو لکه طالب علم ته چې دعالم جوړيدو نه مخکې عالم ووايي

لکه څنګه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم قتيل لره دقتيل جوړيدو نه مخکې قتيل ويلې وو او ارشاد يې وفرمايلو **من قتل قتيلاً فله سلبه** ، اوهمدارنګې په قرآن کريم کې الله تعالى دحضرت يوسف عليه السلام دقيد خانې په دوه ملګرو کې د يوخوب رانقل کوي چې هغه وويل **انى ارى اعصر خمرا** نو د شراب جوړيدو نه مخکې يې ورته شراب وويل نو دې ته يې مجاز مشارفت او يا نو يل د مايؤول سره وويلو نو همدارنګې دلته هم دمفرد دجوړيدو نه مخکې يې ورته مفرد

ورېلو په اعتبار د ما يول سره

او مرفوع علی انه صفة للفظ: **دوهم ترکيبي احتمال**: يا به مفرد لره مرفوع وايي نو په دې صورت کې به دا صفت جوړ شي دلفظ دپاره نو د کلمې تعريف به دساې شي چې کلمه هغه لفظ مفرد دي چې هغه لره يې د يوې معنی په مقابله کې وضع کړې وي او لفظ مفرد هغه ته وايي چې د دې دلفظ جز په خپله معنی موضوع له باندې دلالت نه کوي په دې باندې يو سوال وارديږي:

**سوال**: چې لفظ موصوف دي او لفظ ورلره صفت دي دصفت اوموصوف په مينځ کې په وضع لمعنی سره فاصله راغله اودا صحيح نه ده.

**جواب**: دافاصله د اجنبي نه ده بلکه وضع لمعنی هم دلفظ اولنې صفت دي.

## يوه نکته:

وَلَا بُدَّ حِيْنَئِذٍ مِنْ بَيَانِ نُكْتَةٍ فِيْ إِيْرَادِ اَحَدِ الْوَصْفَيْنِ جُمْلَةً فِعْلِيَةً وَالْاٰخَرِ مُفْرَداً وَ كَانَ النُّكْتَةَ

پس ضروري ده بيا دغه وخت کې بيان د نکتې په مراد کولو د يو د صفتينو نه جمله فعليه او بل مفرد ګوياچې نکته

فِيْهِ التَّنْبِيْهُ عَلٰى تَقَدُّمِ الْوَضْعِ عَلٰى اَفْرَادٍ حَيْثُ اَتٰى بِهٖ بِصِيْغَةِ الْمَاضِيْ

په دې کې تنبيه ده په تقديم دوضع په افراد باندې خکه چې راتګ يې وکړو په دې سره په صيغې دماضي سره په

بِخِلَافِ الْاَفْرَادِ وَ اَمَّا نَصْبُهُ وَ اِنْ لَمْ يُسَاعِدْهُ رَسْمُ الْخَطِّ فَعَلٰى اَنَّ حَالَهُ مِنَ الْمُسْتَكِنِ

خلاف دافراد او هرچې نصب ددې اګر که موافق نه دي د رسم الخط سره سا، په دې چې حال د هغې چې مستکن

فِيْ وَضْعٍ اَوْ مِنَ الْمَعْنٰى فَاِنَّهُ مَفْعُوْلٌ بِهٖ بِوَاسِطَةِ اللَّامِ وَ وَجْهُ صِحَّتِهٖ

دي په وضع دهغې کې ياماخوذ دي دمعنی نه خکه چې دامفعول دي په واسطې دلام سره وجه دصحت يې داده

اَنَّ الْوَضْعَ وَ اِنْ كَانَ مُقَدَّماً عَلَى الْاَفْرَادِ بِحَسْبِ الذَّاتِ يَكُنْهُ مُقَارِنٌ لَهُ بِحَسْبِ الزَّمَانِ وَ هٰذَا

چې وضع اګرکه مقدمه ده په اعتبار دوضع دذات سره ليکن پيوسته ده دهغې سره په اعتبار دزمان سره اودا

الْقَدْرُ كَافٍ لِصِحَّتِهِ الْحَالِيَةِ وَ قَيْدُ الْاِفْرَادُ لِاِخْرَاجِ الْمُرَكَّبَاتِ مُطْلَقاً سَوَاءٌ

قدر کافي دي دپاره دصحت دحاليت دهغې اوقيد دافراد دپاره دخروج دمرکباتو دي مطلقابرابره خبره ده چې

كَانَتْ كَلَامِيَّةً اَوْ غَيْرَ كَلَامِيَّةٍ فَيَخْرُجُ بِهٖ عَنْ حَدِّ الْكَلِمَةِ مِثْلُ اَلرَّجُلُ وَ قَائِمَةٌ وَ بَصْرِيٌّ وَ

کلامي وي اوکه غير کلامي وي پس خارجيږي په هغې سره تعريف دکلمې نه لکه الرجل او قائمة اوبصري کې او

اَمْثَالُهَا مِمَّا يَدُلُّ جُزْءُ اللَّفْظِ عَلٰى جُزْءِ الْمَعْنٰى لٰكِنَّهُ يُعَدُّ لِشِدَّةِ الْاِمْتِزَاجِ لَفْظَةً

په مثل ددې باندې هغه چې دلالت کوي جز دلفظ په جز دمعنی باندې ليکن داشمارلې شي دشدت امتزاج دلفظ

وَّاحِدَةً وَ اُعْرِبَ بِاِعْرَابٍ وَّاحِدٍ وَ بَقِيَ مِثْلُ عَبْدِاللّٰهِ عَلَماً دَاخِلاً فِيْهِ مَعَ

واحده نه اومعرب شوې دي په يو اعراب سره اوباقي پاتې شو په مثل دعبدالله علم چې داخل وي په هغې کې سره

اَنَهُ مُعْرَبٌ بِاِعْرَابَيْنِ وَلَا يَخْفٰى عَلَى الْفَطِنِ الْعَارِفِ بِالْغَرْضِ مِنْ عِلْمِ النَّحْوِ

ددې نه چې دا معرب دي په دوواعرابونوسره اوپټه نه دي په هغه زيرک چې پوهه وي په غرض دعلم نحوي باندې

اَنَهُ لَوْ كَانَ الْاَمْرُ بِالْعَكْسِ لَكَانَ انْسَبَ وَ مَا اَوْرَدَهُ صَاحِبُ الْمُفَصَّلِ فِيْ تَعْرِيْفِ الْكَلِمَةِ حَيْثُ

که چيرته امر بالعکس وي نو دا به مناسب وه اوهغه چې راوړې صاحب دمفصل په تعريف دکلمې کې چې

قَالَ هِيَ اللَّفْظَةُ الدَّالَّةُ عَلٰى مَعْنًى مُفْرَدٍ بِالْوَضْعِ فَمِثْلُ عَبْدِاللهِ عَلَمُهُ اَخْرَجَ عَنْهُ

ويلې دي چې دالفظ داله دي په معنى مفرد بالوضع باندې نو په مثل دعبدالله چې علم وي پس خارج شود هغې

فَاِنَّهُ لَا يُقَالُ لَهُ لَفْظَةٌ وَاحِدَةٌ وَ بَقِيَ مِثْلُ اَلرَّجُل وَ قَائِمَةٍ وَ بَصرِيِّ مِمَّا

نه خکه چې نه شي ويل کيدې هغې نه لفظ واحد اوباقي پاتې شو په مثل دالرجل اوقائمة اوبصري د هغه نه چې

يَعُدُ لِشِدَّةِ الْاِمْتِزَاجِ لَفْظَةٌ وَاحِدَةٌ دَاخِلاً فِيْهِ فَاَخْرَجَهُ بِقَيْدِ الْاِفْرَادْ

شمارلې شي دوجې دزيات اختلاط دهغې نه يولفظ داخل په هغې کې پس خارج کړې به يې وي په قيد د افراد

وَ لَوْ لَمْ يُخْرِجْهُ بِتَرْكِهِ لَكَانَ اَنْسَبَ لِمَا عَرَفْتَ.

سره ليکن چې خارج يې نه کړو په پريخودلو دهغې سره دازيات مناسب دي لکه څنګه چې تا وپېژندل

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب دکافيې يوې نکتې طرف ته اشاره کوي

اغراض دجامي <u>ولا بد حينئذ من بيان نكتة</u> په دې عبارت سره غرض دشارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : چې کله د يوموصوف دپاره دوه صفته وي نو په دې کې مطابقت ضروري وي يا خوبه دواړه جملې وي اويابه دواړه مفرد وي اودلته د لفظ صفت اول جمله ده او صفت ثاني يې مفرد دي اوداد فصاحت نه خلاف دي

**جواب** : علامه جامي رَحِمَهُاللهُ ددې جواب داسې ورکړې دي چې ماتن ديوې نکتې طرف ته اشاره کول غوښتل نو يو صفت يې جمله راوړه اوبل يې مفرد راوړو اوهغه دانکته بيانول وو چې د الفاظو وضع مقدم ولې ده دافراد اوترکيب نه څکه چې افراد اوترکيب موقوف وي په دلالت اوعدم دلالت باندې او دلالت موقوف وي په وضع باندې نو وضع به مقدم وي دافراد او ترکيب نه .

اوس ددې تقدم دبيانولو دپاره صفت اول لره جمله په صورت دفعل ماضي کې راوړه څکه چې فعل ماضي په تقدم زماني باندې دلالت کوي . اودلته يو سوال وارديږي

**سوال** : تقدم دوضع دافرادو اوترکيب نه داتقدم ذاتي دي نه زماني څکه چې وضع علت دي او

افراد او ترکیب معلولو دي او مقدم کول د علت د معلول نه دا تقدم ذاتي وي تا د دې تقدم د بیانولو دپاره چې کومه صیغه د ماضي ذکر کړې ده نو هغه په تقدم زماني باندې دلالت کوي

**جواب** : ستا خبره خو صحیح ده مګر د تقدم ذاتي د بیانولو دپراه بوه صیغه هم په کلام د عربو کې موضوع نه وه د دې دپاره یې په طریقې د استعارې د فعل ماضي صیغه استعمال کړه

وامانصبه وان لم یساعده : په دې عبارت سره علامه جامي دریم احتمال بیانوي

**دریم احتمال** : دادې چې دا منصوب وویلې شي نو بیا به دا وضع د ضمیر مستتر نه حال جوړ شي او د دې تعلق به د لفظ سره وي ځکه د وضع هو ضمیر مستتر راجع وي د لفظ طرف ته اوبابه دا حال وي د معنی نه په دې صورت کې ظاهره ده چې د دې تعلق د معنی مفرد سره دي نو اوس په دې احتمال باندې شارح درې سوالات کړي

**اول سوال** : دا رسم الخط د منصوب کیدو د رسم الخط سره موافق نه دي ځکه چې په رسم الخط کې د منصوب په آخر کې الف لیکلې کیږي

**جواب** : د منصوب په آخر کې د الف دلیکلو دپاره شپږ ،۶، شرطونه دي

**اول شرط** : چې د دې منصوب کیدل به قطعي و یقیني وي او دویم احتمال به په کې نه وي او دلته په مفرد کې د رفع او جر احتمال هم شته دي .

**دوهم شرط** : دا منصوب به معرف باللام نه وي احترازي مثال لکه ضربت الرجل .

**دریم شرط** : د دې منصوب په آخر کې به تاې متحرکه نه وي لربیدلي د احترازي مثال لکه رأیت جاریةً

**څلورم شرط** : دا منصوب به غیر منصرف نه وي احترازي مثال لکه رأیت احمد .

**پنځم شرط** : دا منصوب به مضاف نه وي احترازي مثال لکه رأیت غلام الرجل .

**شپږم شرط** : د دې منصوب په آخر کې به داسې الف مقصوره نه وي چې په یاء سره بدل شوې وي احترازي مثال لکه رضی

**دوهم سوال** : فانه مفعول به بواسطة اللام ، دې لره د معنیٰ نه حال جوړول صحیح نه دي ځکه چې حال هغه چا ته ویلې شي چې د فاعل هیئت بیانوي یا د مفعول هیئت بیانوي او معنیٰ نه فاعل دي او نه مفعول .

**جواب** : شارح د دې جواب دا ورکړې دي چې د لام په واسطې سره دا مفعول جوړیږي د وضع

دپاره خلاصه داده چې مفعول به په دوه قسمه ده صریح او غیر صریح
**مفعول به صریح** : هغه ته وایي چې په غیر دواسطې دحرف جر نه وي لکه ضرب زید عمراً په دې کې عمراً مفعول به صریح ده
**مفعول به غیر صریح** : هغه ته وایي چې په واسطې د حرف سره وي نو دلته لمعنیٰ د لام جاره دوجې نه مفعول به غیر صریح دي
**دریم سوال** : دې لره د وضع دضمیر نه حال جوړول صحیح نه دي خکه چې قانون دادې چې دحال اودعامل دذوالحال زمانه یوه وي او دلته زمانه یوه نه ده خکه چې د ذوالحال عامل وضع دي او هغه مقدم وي د افرادو نه
**جواب** : شارح چې ددې کوم جواب ورکړې دي په هغې باندې د خان پوهه کیدلو نه مخکې یوه تمهیدي خبره باندې خان پوهه کړي چې د تمهید خلاصه داده چې دتقدم شپږ(۶) صورتونه دي
**اول : تقدم ذاتي** : چې متقدم د متأخر دپاره محتاج الیه اوعلت وي لکه حرکة الید د حرکة المفتاح دپاره
**دوهم : تقدم طبعي** : چې متقدم د متأخر دپاره محتاج الیه خو وي مگر علت نه وي لکه تقدم الواحد علی الاثنین
**دریم : تقدم رتبي** : چې متقدم د متأخر نه صرف رتبتاً مقدم وي اگر که زماناً مؤخر وي لکه تقدم رتبتاً دنبي کریم صلی الله علیه وسلم په نورو انبیاء کرامو علیهم السلام باندې
**څلورم : تقدم زماني** : چې په اعتبار دزماني سره مقدم وي لکه تقدم د حضرت آدم علیه السلام په نورو انبیاء کرامو علیهم السلام باندې
**پنځم : تقدم مکاني** : چې تقدم په اعتبار د ځای اود مکان سره وي لکه تقدم د امام په مقتدیانو باندې
**شپږم : تقدم ذکري** : چې په اعتبار د ذکر سره مقدم وي لکه تسمیې لره په تحیمد باندې تقدم ذکري حاصل دي یا تحمید لره په باقي مضمونونو باندې تقدم ذکري حاصل دي.
وس ددې تمهید نه پس دجواب خلاصه داشوه چې تقدم دوضع په افرادو باندی دا تقدم ذاتي ي او تقدم ذاتي د حالیت منافي نه دي بلکه دحالیت منافي هغه تقدم زماني دي او په وضع په افرادو کې تقدم او تأخر زماني نه دي بلکه اقتران زماني دي چې کومه زمانه د وضع وي

بعينه هغه دلفظ هم ده مفرد اومركب كيدو زمانه وي په مينځ كې يې څه فصل نه وي . نو خلاصه دا شوه چې وضع اگر چې په اعتبار دافرادو اوتركيب سره مقدم ذاتي دي خو په اعتبار د زماني سره هغه ددې سره مقارن وي اومقارنت زماني هم دحليت دصحيح كيدو دپاره كافي وي اودتقدم ذاتي سره اقتران زماني جمع كيدل ممكن وي لكه تقدم د **حركة اليد** په **حركة المفتاح** باندې داتقدم ذاتي دي نو په دواړو كې اقتران زماني موجود دي

**وقيد افراد لاخراج المركبات مطلقاً**: غرض دشارح په دې عبارت سره دوه خبرې بيانول دي اوله خبره دا چې لفظ دمفرد په تعريف دكلمې كې دريم فصل دي او دلفظ مفرد ويلو سره ماتن د كلمې دتعريف نه مركبات خارج كړل برابره خبره ده كه دا مركبات كلاميه وي اوكه غير كلاميه د مركبات كلاميه مثال لكه **زيد قائم** . او د مركبت غير كلاميه مثال لكه **غلام زيد**

دوهمه خبره دا چې په ماتن باندې يو سوال وارديږي

**سوال**: تا چې دكلمې كوم تعريف وكړو نو دا جامع نه شو افرادو خپلو لره اومانع هم نه دي د دخول دغير نه . جامع خو ځكه نه دي چې **الرجل** او**قائمة** او **بصري** دكلمې افراد دي دكلام افراد نه دي ددې وجې نه ددې اعراب يو دي كه چيرته دكلام افراد هم وي نو بيا به يې اعراب يو نه وي بلكه دوه به وي نو دكلمې افراد دي نو چې كله تا دمفرد قيد ولړولو نو دادكلمې دتعريف نه خارج شو ځكه چې دامفرد نه دي ځكه چې ددې جز دلفظ دلالت كوي په جزء دمعنى باندې لكه په **الرجل** كې الف لام په تعيين باندې او رجل په رجليت باندې . اوپه **قائمة** كې **قائم** دلالت كوي په **ذات من له القيام** باندې او **تاء** ددې ذات په مؤنث كيدو باندې دلالت كوي . همدارنگې په **بصري** كې دبصره لفظ دلالت كوي په ښار دبصري باندې اوياپه **منسوب الى البصرة** باندې دلالت كوي نو خلاصه يې دا شوه چې داعراب ديو كيدو په وجه باندې دا كلمه وه خو چې تا ورسره كله دمفرد قيد ولړولو نو تا دې لره دكلمې تعريف نه وويستله نو تعريف د كلمې جامع نه شو خپلو افرادو لره اومانع هم نه شو ځكه چې كلمه نه ده ځكه چې ددې اعرابه دوه دي كه چيرته كلمه وي نو اعراب به يې وي مگر دمفرد دقيد دوجې نه دا دكلمې په تعريف كې داخليدو ځكه چې په حالت دعلميت كې ددې جز دلفظ دلالت نه كوي په جزء د معنى باندې نو پته ولږيده چې هغه مفرد دې نو د **مفرد** په قيد سره هغه دكلمې په تعريف كې داخل شو نو تعريف دكلمې هم نه شو دخول د غير نه

**جواب**: علامه جامي رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې جواب وركړې دي او وايي چې تعريف دكلمې جامع هم

دي او مانع هم دي اود الرجل او قائمة او بصري خارجول ښه خبره ده ځکه چې دا مرکب دي او پاتې شوه دا خبره چې ددوي اعراب يو دي هغه ددې وجې نه . نه دي چې دا يوه کلمه ده بلکې دا دوه کلمې دي نو د شدت اتصال دوجې نه يې دې لره په منزله ديوې کلمې وګرځولو او دې لره يې يو اعراب ورکړو

او همدارنګې عبدالله مفرد دي اود کلمې يو فرد دي نو ددې داخلولو ښه خبره ده او پاتې شوه دا خبره چې دې لره يې دوه اعرابه ورکړي دي نو دا يې ورله دوضع سابقه دوجې نه ورکړل او هغه دکلمې يو فرد جوړ شو او په کلمه کې داخليدو نو هغه دوضع ثاني دوجې نه دعلميت په اعتبار سره دي بهر حال تاسو ته غلط فهمي شوې وه نو دکلمې تعريف جامع هم دي او مانع هم دي

ولا يخفى على الفطن العارف بالغرض الخ . په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي . خو د سوال نه مخکې يوه خبره په ذهن کې کينوې هغه خبره دا چې ابن الحاجب او علامه زمحشري رَحِمَهُ اللَّهُ په دې خبره باندې اتفاق کړي دي چې دکلمې کيدو دپاره وحدت دمعنى ضروري دي خو په دې خبره کې اختلاف دي چې دکلمې کيدو دپاره وحدت دلفظ هم ضروري دي او که نه ؟ نو دعلامه زمحشري رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د وحدت معنوي سره سره وحدت لفظي هم ضروري دي ځکه چې ده تاء دوحدت ذکر کړه ا وي ويل هي اللفظة الدالة . اود ابن حاجب رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد باندې دوحدت دمعنى سره وحدت دلفظ ضروري نه يد نو ددې وجې نه ده لفظ وويلو او تاء دوحدت يې ذکر نه کړه او وحدت چې ددواړو په نزد ضروري دي نو ددې وجې نه دواړو الرجل قائمة او بصري لره دکلمې د تعريف نه خارج کړو ځکه چې په دې کې وحدت دمعنى نشته دي . البته د عبدالله په حالت دعلميت کې داخلول او ويستلو کې ددواړو اختلاف دي . د علامه زمحشري رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد وحدت دلفظ ضروري دي نو هغه عبدالله لره دکلمې دتعريف نه خارج کړو ځکه چې ددې الفاظ دوه دي اود ابن حاجب په نزد وحدت دلفظ ضروري نه دي نو هغه عبدالله لره داخل پريخودو ځکه چې په دې کې وحدت دمعنى موندل کيږي اودکلمې کيدولو دپاره وحدت دمعنى هم کافي دي دا پوره تفصيل په ذهن کې د کينولو نه پس اوس دعلامه جامي رَحِمَهُ اللَّهُ سوال ته غوږ شئ

**سوال** : نحويان بحث کوي دالفاظو نه او غرض د تدوين دعلم النحو هم همدا دي نو ددې غرض تقاضا داوه چې الرجل سره دخپلو ملګرو نه ده کلمې په تعريف کې به دې داخل کړي وي ځکه چې دا ده الفاظو په اعتبار سره کلمه ده او عبدالله دکلمې دتعريف نه وخي ځکه چې هغه

د الفاظو په اعتبار سره کلمه نه ده نو دابن حاجب په تعریف کې دوه نقصانات راغلل
**اول** : دا چې الرجل يې سره دخپلو ملګرو خارج کړو ليکن ده لره داخلول په کار وو
**دوهم** : دا چې عبدالله لره يې داخل کړو حال دا دې چې هغه لره خارجول په کار وو نو چالره چې داخلول په کار وو هغه يې خارج کړو او چالره چې ويستل په کار وو هغه يې داخل کړو.
اود علامه زمحشري رَحِمَهُ اللهُ تعریف کې يو نقصان راځي او هغه يو نقصان دا چې په الرجل يې سره دملګرو دمفرد قيد ولړولو او دکلمې دتعریف نه يې خارج کړو حال دا دې چې ده لره داخلول په کار وو البته عبدالله لره خارجول يې ډير ښه کار وکړو ، نو په دې سره دشارح ذکر شوې عبارت په خپله حل کيږي ان شاء الله.

| |
|---|
| وَاعْلَمْ اَنَّ الْوَضْعَ يَسْتَلْزِمُ الدَّلَالَةَ لِاَنَّ الدَّلَالَةَ كَوْنُ الشَّيْءِ بِحَيْثُ يُفْهَمُ مِنْهُ شَيْءٌ آخَرُ |
| پوه شه چې وضع لازم ده دلالت لره ځکه چې دلالت ديو څيز دي په داسې شان سره چې فهميږي د هغې نه بل څيز |
| فَمَتٰى تَحَقَّقَ الْوَضْعُ تَحَقَّقَتِ الدَّلَالَةُ فَبَعْدَ ذِكْرِ الْوَضْعِ لَا حَاجَةَ إِلٰى ذِكْرِ الدَّلَالَةِ |
| څيز پس کله چې تحقق دوضع راشي نو ثابت شي دلالت نو وروستو دذکر دوضع نه ضرورت نشته ذکر د دلالت |
| كَمَا وَقَعَ فِي هٰذَا الْكِتَابِ لٰكِنَّ الدَّلَالَةَ لَا تَسْتَلْزِمُ الْوَضْعَ لِإِمْكَانَيْنِ اَنْ |
| ته لکه څنګه چې واقع دي په دې کتاب کې ليکن دلالت نه لازموي وضع لره دوجې د دوه امکانونو نه چې کيدې |
| تَكُوْنَ بِالْعَقْلِ كَدَلَالَةِ لَفْظِ دِيْزٍ اَلْمَسْمُوْعِ مِنْ وَرَاءِ الْجِدَارِ عَلٰى وُجُوْدِ اللَّافِظِ اَوْ اَنْ |
| شي چې وي په عقل سره لکه دلالت دلفظ د ديز چې واوريدل شي وروستو د ديوال نه په وجود دلافظ باندې اويا |
| تَكُوْنَ بِالطَّبْعِ كَدَلَالَةِ اُحْ اُحْ عَلٰى وَجَعِ الصَّدْرِ فَبَعْدَ ذِكْرِ الدَّلَالَةِ لَا بُدَّ مِنْ ذِكْرِ الْوَضْعِ |
| وي په طبع سره لکه دلالت دلفظ د اح اح په درد دسينې باندې نو وروستو دذکر ددلالت نه لابدي ده د ذکر دوضع |
| كَمَا فِي الْمُفَصَّلِ. |
| لکه په مفصل کې چې ذکردي. |

**اغراض دجامي** : واعلم ان الوضع يستلزم الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي.
**سوال** : سوال چا دا کړې دي چې مونږ دتانه پوښتنه کوو چې دکلمې په تعریف کې د دلالت اعتبار شته دي اوکه نه که چيرته ته وايې چې ددلالت اعتبار په کې شته دي نو بيا دکافيه والا تعریف ناقص دي ځکه چې هغه په تعریف کې ددلالت ذکر کړې دي اوستا دقول مطابق دلالت دکلمې په تعریف کې معتبر نه دي.

**جواب** : علامه جامي رَحِمَهُ اللهُ په اعلم ان الوضع يستلزم الدلالة سره ددې اعتراب جواب ورکړې دې چې خلاصه يې داده چې د دلالت کلمه په تعريف کې معتبر دې
باقي پاتې شو دا سوال چې کافيې والاد دلالت ذکر ولې نه دې کړې داسې د کلمې تعريف ناقص لازم راځي
ددې جواب دادې چې د کافيې والا په تعريف د کلمې کې د وضع ذکر کړې دې او دلالت ته مستلزم دې نو دوضع په ضمن کې دلالت والاذکر هم راغې اوصاحب مفصل اول دلالت والاذکر وکړو نو دلالت وضع ته مستلزم نه دې ددې وجې نه دې لره بعد کې وضع والاذکر هم وشو
اوس په آخر کې داخبره چې وضع دلالت ته څنګه مستلزم دې اودلالت وضع ته څنګه مستلزم نه دې ددې تفصيل چې دلالت عام دې او وضع خاص دې ددې وجې نه چې دلالت خو وضع په صورت کې هم موندلې شي او د دلالت طبعي او دلالت عقلي په صورت کې هم موندلې شي او وضع صرف دلالت وضعي کې متحقق وي نو دلالت عام دې او وضع خاص ده .او قانون دادې چې خاص وجود عام وجود لره مستلزم کيږي مګر عام وجود خاص وجود ته نه مستلزم کيږي لکه د انسان وجود د حيوان وجود لره مستلزم دې ، مګر د حيوان وجود انسان وجود لره مستلزم نه دې ، ددې وجې نه چې ممکن دې چې هغه د غوا او چيلې په شکل کې وي.

## د کلمې اقسام :

| وَ هِيَ اَیْ اَلْكَلِمَةُ اِسْمٌ وَ فِعْلٌ وَ حَرْفٌ اَیْ مُنْقَسِمَةٌ إِلٰى هٰذِهِ الْأَقْسَامِ الثَّلٰثَةِ مُنْحَصِرَة فِيْهَا لِأَنَّهَا |
| --- |
| او دا يعنې کلمه اسم،فعل اوحرف دې چې منقسم دې دې اقسام ثلاثوته چې منحصردې په دې کې ځکه چې |
| اَیْ اَلْكَلِمَةُ لَمَّا كَانَتْ مَوْضُوْعَةً لِمَعْنًى وَ الْوَضْعُ يَسْتَلْزِمُ الدَّلَالَةَ اِمَّا مِنْ صِفَتِهَا اَنْ تَدُلَّ |
| دايعنې کلمه چې کله وضع وي دپاره دمعنى اووضع لازمونکې وه دلالت لره يادصفت دهغې نه دادې چې دلالت |
| عَلٰى مَعْنًى كَائِنٍ فِيْ نَفْسِهَا اَیْ فِيْ نَفْسِ الْكَلِمَةِ وَ الْمُرَادُ بِكَوْنِ الْمَعْنٰى فِيْ نَفْسِهَا |
| وکړي په هغه معنى چې کومه پرته ده په نفس ددې کلمې کې اومراد په کيدلو دمعنى په نفس د کلمې کې دادې |
| اَنْ تَدُلَّ عَلَيْهِ بِنَفْسِهَا مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ إِلَى انْضِمَامِ كَلِمَةٍ أُخْرٰى اِلَيْهَا لِاسْتِقْلَالِهِ |
| چې دلالت وکړي په نفس کلمه باندې په غير دضرورت دانضمام دبلې کلمې نه دې ته ځکه چې دامستقله ده په خپل |
| بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ اَوْ مِنْ صِفَتِهَا اَنْ لَا تَدُلَّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا بَلْ عَلٰى مَعْنًى |
| مفهوم کې ياد صفت د کلمې نه دا چې دلالت وکړي په معنى باندې په خپل نفس کې بلکې په داسې معنى چې |
| فِي الدَّلَالَةِ عَلَيْهِ إِلَى انْضِمَامِ كَلِمَةٍ أُخْرٰى اِلَيْهَا لِعَدَمِ اسْتِقْلَالِهِ بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ وَ سَيَجِيْئُ |
| دلالت وکړي په هغې سره د انضام د کلمې آخري نه دې ته دوجې دعدم استقلال د مفهوم دهغې نه اوزردې چې رابه شي |

تَحْقِيْقُ ذَٰلِكَ فِيْ بَيَانِ حَدِّ الْاِسْمِ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى سُبْحَانَهُ.

تحقیق ددې په بیان د تعریف د اسم کې ان شاء الله تعالی

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب د کافیې د کلمې تقسیم کوي اقسام ثلاثو ته چې هغه اسم . فعل او حرف دي

**اغراض د جامي** : **وهي**: ماتن چې کله د کلمې د تعریف نه فارغ شو نو شروع یې وکړه په تقسیم د کلمې باندې ځکه چې تقسیم د تعریف تتمه وي نو وي ویل چې کلمه په درې (۳) قسمه ده اسم . فعل . حرف

اي الكلمة: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال جواب ورکول دي

**سوال** : سوال دا دې چې د ما ، **هي** ، ضمیر مرجع څوک جوړوي . د کلمې الفاظ ، یا د کلمې مفهوم که چیرې د کلمې الفاظ جوړ کړي نو **تقسيم الشئ الى نفسه** والاخرابي لازم راځي ځکه چې د کلمې الفاظ خو اسم دي په دلیل د دخول دلام په دې باندې مخکې په تقسیم کې تا اسم ، فعل او حرف ذکر کړو نو لازم شو تقسیم د **شئ الى نفسه** او که چیرې ته د **هي** ضمیر مرجع د کلمې مفهوم جوړ کړي نو د ضمیر او مرجع په مینځ کې مطابقت نه پاتې کیږي چې مفهوم مذکر دي او ضمیر یې مؤنث دي ، نو د دواړو په مینځ کې مطابقت نشته دي .

**جواب** : د **هي** د ضمیر مرجع **الكلمة** ده په اعتبار د الفاظو سره او مقسم جوړیږي د مفهوم په اعتبار سره

ومنحصرة فيها: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال جواب ورکول دي .

**سوال** : چې راتلونکي عبارت د ماتن لانها سره دلیل د حصر بیانوي او دلیل د حصر خو دعوی وي او دلته دعوی د حصر خو د سره نشته نو دلیل د څه څیز ورکوي .

**جواب** : د مصنف عبارت اګرچې دعوی د حصر صراحتاً مذکور خو نه دي مګر ضمنا ذهن ته راځي همدا رنګې چې کله یې د کلمې اقسام بیان کړي نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ درې قسمه بیان کړل او خاموش شو . نو اوس که چیرې څلورم قسم وي نو ضرور به یې بیان کړې وي چې کله یې بیان نه کړو نو ذهن کې راغې چې د کلمې اقسام په درې اقسامو کې منحصر دي ځکه چې قاعده ده چې **السكوت في مقام البيان بيان** ، نو دعوی د حصر ضمنا ذکر ده

لانها: په دې عبارت سره شارح دلیل د حصر بیانوي په اقسام ثلاثه کې . نفس مسئله خو

بالكل واضحه ده چې یا به كلمه په خپلې معنی باندې په خپله دلالت كوي او یا نه . كه دلالت نه كوي نو حرف كه چیرې دلالت كوي نو بیا به خالي نه وي یا به په دریو زمانو كې دیوې زمانې سره مقترن وي یا به نه وي ، كه نه وي نو اسم ، او كه چیرې مقترن وي نو فعل

**اى الكلمة**: په دې عبارت سره شارح په **لانها** كې د ها دضمیر مرجع یې متعینه كړه .

**لما كانت موضوعةً الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال جواب وركول دي

**سوال** : ته چې دلته كوم دلیل پیش كوي دهغه دلیل او دعوی مینځ كې مطابقت نشته ځكه چې په دلیل دلالت او عدم دلالت ذكر دي او په دعوی كې د دلیل بالكل ذكر نشته

**جواب** : علامه جامي رَحِمَهُ اللَّهُ په **اى الكلمة منقسمة الى هذه الاقسام الثلاثة** سره ددې سوال جواب وركړي دي ، چې خلاصه دجواب داده چې كله انواع حمل وي په جنس باندې نو مراد هغه حمل نه وي كوم چې عبارت دي د **صدق الخبر على جميع افراد المبتدأ** ، بلكه مقصود د متكلم **تقسيم الجنس الى الانواع** وي لكه ځنګه چې متكلم دا عبارت ووایي چې **الحيوان انسان ، وفرس وبقر وغنم** نو مقصود تقسیم د حیوان دي انسان ، فرس ، بقر او غنم ته نو همدارنګې دلته هم چې كله ماتن وویل چې **الكلمة اسم وفعل وحرف** نو د ماتن مقصود هم تقسیم دكلمې دي اسم او فعل او حرف ته

دلته درې سوالات راځي

**اول سوال** : هي ضمیر مبتدا ده او اسم یې خبر دي نو دلته د مبتدا او خبر په مینځ كې مطابقت نشته دي ځكه چې مبتدا مؤنث ده او خبر مذكر دي اګر چې دلته د مطابقت دضروري كیدو دپاره شرطونه خو نه شي موندل كیږي چې مبتدا اسم ظاهر نه ده بلكه اسم ضمیر ده او خبر مشتق هم نه دي مګر بیا هم مطابقت مستحسن خو وو .

**دوهم سوال** : قانون دادې چې ضمیر كله دائر وي په مینځ دخبر او مرجع كې نو رعایت دخبر اولی وي نه دمرجع نو تا د خبر رعایت وكړو ضمیر دمذكر دې رانه وړو بلكه د مرجع رعایت یې وكړو چې ضمیر د مؤنث یې راوړي دي .

**دریم سوال** : قاعده داده چې : **الجمع بحرف الجمع كالجمع بلفظ الجمع** ، یعنې مسلمون لفظ جم كې درې مسلمانان جمع دي همدارنګې كه چیرې واو حرف جمع سره دا وویلې چې مسلمٌ و مسلمٌ ومسلمٌ نو دې كې هم درې مسلمانان جمع ششول ، نو سوال دادې چې هي ضمیر چې

مرجع یې الكلمة ده دا مبتدا جوړیږي . اسم او فعل او حرف یې خبر جوړیږي او ددې په مینځ کې حرف عطف واو راوړې شوې دي چې هغه دجمعیت په معنی باندې دلالت کوي نو ددې درې واړو مجموعه سره یوځای کړې نو خبر جوړیږي او حمل به شي الكلمة په مبتدا باندې او معنی به یې دا جوړه شي چې کلمه د اسم ، فعل او حرف د مجموعې نوم دي حالانکه دا خبره بداهةً باطله ده بلکه کلمه خو یواځې د اسم او یواځې د فعل او یواځې د حرف نوم دي ددې درې واړو نه هر یو کلمه ده

**جواب** : علامه جامي رَحِمَهُاللّٰهُ ددې درې واړو سوالونو ته دجواب ورکولو دپاره دا عبارت ذکر کړې دي چې **اي منقسمة الى هذه الاقسام الثلاثة** ، نو خلاصه دجواب داده چې ته په غلط فهمي کې واقع شوې یې تا خبر اسم اوفعل اوحرف په ذهن کې کینولې دي ، اسم وغیره خبر نه دي بلکه خبر دلته مقدر دي منقسمة او قرینه په مقدر کیدلو باندې مقام دتقسیم دي چې کله منقسمة خبر جوړ شو نو مبتدا اوخبر کې هم مطابقت پیدا شو .

اوس دریم سوال پاتې شو ددې جواب کولو نه مخکې دوه خبرې په ذهن کې یادې ساتئ :

**اوله خبره** : چې کله یو مبتدا دپاره متعدد خبرونه ذکر کړې شي په واسطه دحرف عطف نو هلته یو ربط او یو عطف کیږي د ربط مطلب دادې چې دا خبر دمبتدا دپاره ثابتیږي او د عطف مطلب دادې چې چې دویم خبر اودریم خبر په اول خبر باندې د معطوف کیدولو په واسطه سره مبتدا لره ثابتیږي د متعدد خبرونو په صورت کې کله عطف مقدم کیږي اوکله ربط مقدم کیږي په دواړو صورتونو کې په معنی کې فرق راځي . **مثلاً الكلمة اسم وفعل وحرف** ، که چیرې عطف مقدم وي نو معنی یې داجوړیږي چې کلمه اسم اوفعل اوحرف دي او که ربط مقدم وي نو معنی یې دا جوړیږي چې کلمه اسم دي اوفعل دي او حرف دي .

**دوهمه خبره** : تقسیم په دوه قسمه دي یو تقسیم کل طرف ته د اجزاو کیږي او یو تقسیم کلي طرف ته دخپلو جزئیاتو کیږي نو قانون دادې چې که چیرته تقسیم کل طرف ته اجزاء وي نو هلته به عطف مقدم وي نه ربط مثال لکه مکان کل دي هغه اجزاء دیوالونه ، کهړکي او دروازه او چهت وغیره دي نو دلته عطف مقدم وي ربط نه اوهمدارنګې به وایو مکان دیوالونه کهړکي او دوازه اوچت دي همدارنګې به نه شي ویلې چې مکان دیوالونه او کهړکي دي یا لکه دمثال په طور باندې چای کل دي اوبه ، چیني اوپتي دا یې اجزاء دي نو همدارنګې به ویلې شي : چای ، پئ اوبه او چیني او پتي دي همدارنګې نه ویلې چې چای پئ دي .

اوکه چيرته تقسيم کلي طرف ته د خپلو جزئياتو وي نو هلته به ريد مقدم وي عطف نه لکه انسان کلي دي زيد عمر بکر دده جزئيات دي نو همدارنګې ويلې شي چې انسان زيد دي او عمر دي اوبکر دي همدارنګې داسې نه شي ويلې چې انسان زيد عمر اوبکر دي.

**فهي امامن صفتها الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي.

**سوال**: سائل سوال کوي چې په لانها کې ها ضمير چې هغه راجع دي صرف کلمه ته هغه د ان اسم جوړيږي او کلمه ذات دي او ان تدل دمصدر په تاويل کې شوي د ان دپاره خبر جوړيږي او خبر د ان په اسم د ان باندې محمول کيږي اودلته حمل صحيح نه دي ځکه چې اسم خو ذات دي اوخبر مصدر په تاويل کې وصف شول او د وصف حمل په ذات باندې صحيح نه دي.

**جواب**: چې ان تدل په تاويل دمصدر سره دي او مصدر په معنى داسم فاعل سره وي په معنى د دال سره اوحمل داسم فاعل په ذات باندې صحيح دي خو دا جواب کمزوري دي ځکه چې په دې جواب کې مجاز في المجاز لازم راځي ځکه چې ددې مضارع لره په تاويل دمصدر سره کول هم مجاز دي اوبيا مصدر لره په معنى داسم فاعل کول هم مجاز دي.

**كائن في نفسها**: د كائن عبارت يې ذکر کړو نو د علامه رضي ترديد کوي علامه رضي نفسها ظرف لغو ومنو: ان تدل متعلق يې جوړ کړې وو بيا په دې باندې يو سوال واردېږي:

**سوال**: سوال دادې چې د دلالت صله في نه راځي بلکه باء يا على راځي.

**جواب**: ددې جواب علامه رضي دا ورکړې دي چې دلته في په معنى د باء سره ده.

علامه جامي رَحِمَهُ اللهُ دعلامه رضي ترديد کوي چې في په معنى د باء سره کول دا مجازدي او په تعريف کې په غير دضرورت نه ارتکاب دمجاز صحيح نه دي ځکه چې مقصود دتعريف نه وضاحت وي اوپه مجاز سره ابهام پيدا کيږي چې په مقصود کې خلل پيدا کوي نو علامه جامي رَحِمَهُ اللهُ د كائن لفظ راوړو اشاره يې وکړه چې في نفسها ظرف مستقر دي اود معنى دپاره صفت دي.

**والمراد بكون المعنى الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي:

**سوال**: په في نفسها کې ضمير چا ته راجع دي کلمې ته، که معنى، که کلمې ته راجع کوي نو هم صحيح نه دي ځکه چې ظرفية دکلمې راځي دپاره دمعنى يعنې ظرفية الدال للمدلول لازم راځي اودا باطل دي، اوظرف به يا زمان وي اويا به مکان اوکلمه نه زمان ده اونه مکان، اوکه

مرجع معنی جوړوي نو د ضمير او د مرجع په مينځ کې مطابقت هم پاتې نه شو ځکه ضمير مؤنث دي او مرجع مذکر ده او بله دا چې ظرفية الشئ لنفسه لازم راځي

**جواب**: علامه جامي رَحِمَهُ اللهُ د دې جواب وركړې دي چې د ها ضمير مرجع كلمه ده پاتې شوه دا خبره چې كلمه نه ظرف زمان دي او نه مكان نو د دې جواب دا دې چې دلته في د ظرفيت په معنى باندې نه ده بلكه في په معنى د باء سره ده او معنى يې داده چې دا كلمه په خپله معنى باندې په خپله دلالت كوي يعنې د خپل ذات په اعتبار سره دلالت كوي او د ضم د ضميمې محتاج به نه وي په وجه د مستقل بالمفهومية سره

## تعريف د حرف:

| |
|---|
| اَلْقِسْمُ الثَّانِيْ وَ هُوَ مَا لَا يَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا اَلْحَرْفِ كَمِنْ وَ إِلٰى فَإِنَّهُمَا |
| دوهم قسم دا هغه دي چې دلالت نه كوي په خپله معنى په نفس د هغې كې لكه حرف د من او الى ځكه چې دا |
| يَحْتَاجَانِ فِي الدَّلَالَةِ عَلٰى مَعْنَيَيْهِمَا اَعْنِي الْاِبْتِدَاء وَ الْاِنْتِهَاء إِلٰى كَلِمَةٍ أُخْرٰى كَالْبَصْرَةِ وَ الْكُوْفَةِ |
| دواړه محتاج دي په دلالت كې په خپلو معنى ګانو باندې يعني ابتداء او انتهاء. بلې كلمې ته لكه بصره او كوفه |
| فِيْ قَوْلِكَ سِرْتُ مِنَ الْبَصْرَةِ إِلَى الْكُوْفَةِ وَ إِنَّمَا سُمِّيَ هٰذَا الْقِسْمُ حَرْفاً لِاَنَّ الْحَرْفَ فِي اللُّغَةِ اَلطَّرَفُ |
| په دې قول ستا كې سرت من البصرة الى الكوفة او مسمى كړې شو دا قسم په حرف سره ځكه حرف په لغت كې طرف |
| وَ هُوَ فِيْ طَرَفٍ أَیْ جَانِبٍ مُقَابِلٍ لِلْاِسْمِ وَ الْفِعْلُ حَيْثُ يَقَعَانِ |
| ته ويلې شي او دا هم په طرف كې دي يعني په جانب مقابل دا سم او فعل كې په دا سې شان چې واقع دي اسم او |
| عُمْدَةً فِي الْكَلَامِ وَ هُوَ لَا يَقَعُ عُمْدَةً فِيْهِ كَمَا سَتَعْرِفُ. |
| فعل عمده په كلام كې او دا نه واقع كيږي عمده په كلام كې ،زر ده چې ته به پوه شي |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره صاحب د كافيې د حرف تعريف بيانوي

**اغراض د جامي**: القسم الثاني: دلته شارح د الثاني نه مخكې القسم مقدر راوويستو نو په دې سره د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: الثاني صفت دي چې د دې د پاره موصوف لازمي وي او د دې موصوف كلمه ده او هغه مؤنث ده او الثاني مذكر دي نو د موصوف او صفت په مينځ كې مطابقت رانغلو

**جواب**: شارح رَحِمَهُ اللهُ دلته القسم لفظ مقدر راوويستو نو دې خبرې طرف ته يې اشاره وكړه چې د دې موصوف الكلمة نه ده بلكه القسم دي او القسم مذكر دي . نو سوال دفع شو

وهو مايدل على نفسه الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي

**سوال**: دماتن عبارت الثاني الحرف په دې کې الثاني مبتدا ده او الحرف ددې خبر دي اوخبر په مبتدا باندې محمول وي اودلته حمل صحيح نه دي ځکه چې که حمل شي نو بيا يې معنى دا جوړيږي چې الثاني حرف دي حال دا دې چې الثاني حرف نه دي بلکه اسم دي ځکه چې په الثاني باندې داسم د خواصو نه الف لام داخل دي

**جواب**: شارح ددې جواب دا ورکړې دي چې د ثاني نه مراد لفظ ثاني نه دي بلکه د ثاني مصداق دي اوهغه مالا يدل على معنىً في نفسها دي او په دې مفهوم باندې د حرف حمل صحيح نه دي

كمن والى: په دې عبارت سره شارح د حرف مثالونه بيانوي ، چې د من او الى معنى ابتداء او انتهاء ده او داحروف په معنى باندې ددلالت کولو کې غير ته محتاج دي.

وانما سمي هذا القسم حرفاً: په دې عبارت سره شارح وجه تسميه دحرف بيانوي چې حرف ته حرف ځکه وايي چې حرف په لغت کې طرف ته وايي لکه عرب وايي جلست حرف الوادى اى طرف الوادي . او حرف هم دکلام په يو طرف کې وي ددې وجې نه دې ته حرف وايي.

اى جانب مقابل: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي

**سوال**: په زيد في الدار کې حرف په مينځ کې واقع شوې دي په طرف باندې نه دې واقع شوې.

**جواب**: د طرف نه مراد د کلام طرف نه دي بلکه مراد د طرف نه دادې چې حرف داسم اوفعل جانب مقابل جوړيږي په دې اعتبار سره چې هغه دواړه په کلام کې عمده واقع وي اودکلام رکن جوړيږي او دا بالکل ددې په جانب مقابل کې وي چې په کلام کې عمده او رکن نه جوړيږي

## تعريف د فعل:

| |
|---|
| وَ الْقِسْمُ الْاَوَّلُ وَ هُوَ مَا يَدُلُّ عَلٰى مَعْنىً فِيْ نَفْسِهَا اِمَّا مِنْ صِفَتِهَا اَنْ يَقْتَرِنَ ذٰلِكَ الْمَعْنٰى |
| اوقسم اول هغه دي چې دلالت کوي په معنى په خپل نفس د هغې يا د صفت ددې نه چې پيوسته به وي دامعنى |
| الْمَدْلُوْلُ عَلَيْهِ بِنَفْسِهَا فِي الْفَهْمِ عَنْهَا بِاَحَدِ الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ اَعْنِى الْمَاضِيْ وَ الْحَالَ وَ الْاِسْتِقْبَالَ اَیْ |
| مدلول عليه په نفس دهغې کې په فهم کې ددې نه په يو دزمانو ثلاثو سره چې ماضي،حال اواستقبال دي يعني |
| حِيْنَ يُفْهَمُ ذٰلِكَ الْمَعْنٰى عَنْهَا يُفْهَمُ اَحَدُ الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ اَيْضاً مُقَارِناً لَهٗ اَوْ مِنْ [illegible] |
| په داسې شان چې فهم ددې معنى نه معلوميږي فهم دازمنو ثلاثو همدارنګې چې پيوسته وي هغې لره اويا [illegible] |

| أَنْ لَّا يَقْتَرِنَ ذٰلِكَ الْمَعْنٰى فِي الْفَهْمِ عَنْهَا مَعَ اَحَدِ الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ. |
|---|
| دهغې نه داخبره ده چې پيوست نه وي دامعنى په فهم كې ددې نه سره ديو دازمنوثلاثونه |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب دكافيې د فعل تعريف بيانوي ،

**اغراض دجامي** : يقترن ذلك المعنى : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب وركول دي

**سوال** : د يقترن ضمير ښنا ته راجع دي د الاول الفاظو ته راجع دي اوكه د الاول معنى ته راجع دي او هر يو ته يې چې راجع كوي نو صحيح نه دي ځكه چې كه چيرته د الاول الفاظو ته يې راجع كوي نو لازميږي چې د الاول الفاظ دزمانې سره مقترن دي ، حال دادې چې يو خودزمانې سره اقتران دالفاظو نه وي بلكه دمعاني وي ، دوهم داچې الاول اسم دي نو لازميږي داسم د زمانې سره مقترن كيدل حال دادې چې اقتران دزمانې سره خودفعل كار دي داسم نه دي اوكه چيرته ته ديقترن دضمير مرجع دالاول معنى لره جوړه كړي نو دوه نقصانات لازميږي .

**اول** : اضمار قبل الذكر لازم راځي ځكه چې دمعنى په ماقبل كې ذكر نشته دي .

**دوهم** : اقتران دزمانې دزمانې سره راځي ځكه چې د الاول نه مراد فعل دي او دفعل معنى د دري ځيزونو دمجموعې نوم دي او چې كله ضمير راجع شي دمعنى طرف ته نو دفعل معنى به مقترنه شي دزمانې سره اودفعل معنى دا دري ځيزونه دي دري زمانو سره مقترن كيدل نو ددې په ضمن كې زمانه هم د زمانې سره مقترنه شوه نو لازم شو اقتران دزمانې دزمانې سره اوداباطل دي .

**جواب** : علامه جامي رَحِمَهُ اللهُ په دې ذكر شوي عبارت كې ددې سوال جواب وركوي چې مونږ داقتران ضمير د الاول الفاظو ته نه راجع كوو بلكې معنى ته يې راجع كوو .

اوباتې شو ستا دا سوال چې اضمار قبل الذكر لازم راځي نو ددې جواب دادې چې دمعنى ذكر اگر چې په ماقبل كې صراحتاً ذكر نه دي خو ضمناً ذكر دي ځكه چې د الاول نه مراد كلمه د اوكلمه دال وي او معنى ددې مدلول جوړيږي اودال په ضمن كې مدلول هم موجود وي

دوهم نقصان چې اقتران الزمان بالزمان لازم راځي نو ددې جواب دادې چې دفعل دوه معنى دي مطابقي اوتضمني معنى مطابقي خو ددري ځيزنو دمجموعې نوم دي معنى تضمني ددې دري ځيزنو كې د هر يو نوم دي او زمونږ مقصد دلته دفعل دتضمن معنى مراد ده معنى مصدري

او باقي نور شيان مراد نه دي

في الفهم عنها: په دې عبارت سره غرض د شارح د دوه سوالاتو جوابات ورکول دي

**اول سوال**: ستا چې کوم تعريف دفعل دوجې دحصر نه معلوميږي هغه مانع نه دي ددخول د غير نه ځکه چې دا تعريف په مصادرو باندې رښتوني راځي مثلاً ضربا دا په خپله معنی مصدري باندې دلالت کوي اودامعنی دزمانې سره مقترنه وي ځکه چې وهل خو يا په زمانه ماضي کې موندلې شي اويا په حال اويا په استقبال کې

**جواب**: د في الفهم لفظ يې راوړو شارح جواب ورکړو چې د اقتران بالزمان دوه حيثيته دي اولنې حيثيت د اقتران بالزمان من حيث الوجود والتحقق دي ځکه چې هغه په زمانه کې موندلې شي اوموجوديږي ځکه چې هغه دزمانې سره مقترن دي . او دوهم حيثيت من حيث الفهم د زمانې سره اقتران وي چې کله دفعل تلفظ وکړې شي نو ددې دلالت په معنی مصدري باندې کيږي ددې حيثيت نه چې ددې دالفاظو نه زمانه په ذهن کې راشي نو دلته د اقتران بالزمان نه مراد باعتبار الفهم دي نه په اعتبار دوجود اوتحقق سره اودمصادرو چې کوم اقتران دزمانې سره وي نو هغه په اعتباد دوجود اوتحقق سره وي .

**دوهم سوال**: مونږ تاته يو داسې اسم چې دهغې به دزمانې سره اقتران بالفهم وي لکه زيد ضارب عمر غدا . زيد وهونکي دي عمر لره سبا نو بيا هم ستادفعل تعريف مانع نه شو د دخول د غير نه

**جواب**: په منها سره شارح جواب ورکړو چې هغه زمانه ددې فعل دالفاظو نه په ذهن کې راځي او تا چې کوم مثال ورکړو نو په دې کې زمانه ده ، د دوهم لفظ غداً نه په ذهن کې راځي.

اعني الماضي والحال والاستقبال: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي :

**سوال**: ستا تعريف ددخول دغير نه مانع نه شو ځکه چې صبوح د سهر شراب او غبوق دماخام شراب ته ويلې کيږي نو دا اسم دي خو زمانه ددې دخپلو الفاظو نه په ذهن کې راځي نودفعل په تعريف کې دا داخل شو .

**جواب**: شارح جواب ورکړو چې دزمانې نه مراد مطلق زمانه نه ده بلکه په درې زمانو کې يوې زمانې سره اقتران دي د صبوح او غبوق چې کومه دسحر او ماخام والازمانه په ذهن کې راځي هغه مطلق زمانه ده ماخام اوسهر که دماضي وي اوکه دحال وي اوکه داستقبال

## تعريف د اسم

اَلْقِسْمُ الثَّانِيْ وَ هُوَ مَا يَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا غَيْرَ مُقْتَرِنٍ بِأَحَدِ

قسم ثاني هغه دي چي دلالت كوي په خپله معنى باندې چي پيوسته نه وي تريو دا زمنو ثلاثو يوري اسم دا مأخوذ

الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ اَلْاِسْمُ وَ هُوَ مَأْخُوْذٌ مِنَ السُّمُوِّ وَهُوَ الْعُلُوُّ لِاِسْتِعْلَائِهِ عَلٰى اَخَوَيْهِ حَيْثُ يَتَرَكَّبُ مِنْهُ

دی سمو نه په معنى دا اوچتوالي سره خكه چي دا هم اوچت دي په خپلو اخوينو په داسي شان چي جوړيږي د دې نه

وَحْدَهُ الْكَلَامُ دُوْنَ اَخَوَيْهِ وَ قِيْلَ مِنَ الْوَسْمِ وَ هُوَ الْعَلَامَةُ لِاَنَّهُ عَلَامَةٌ

مستقل كلام نه د فعل او حرف نه او چا ويلي چي اسم مركب دي د وسم نه په معنى د نښې سره خكه چي دا نښه ده

عَلٰى مُسَمَّاهُ وَ الْقِسْمُ الْاَوَّلُ وَ هُوَ مَا يَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا مُقْتَرِنٍ بِأَحَدِ الْاَزْمِنَةِ

په خپل مسمى باندې او اول قسم دا هغه دي چي دلالت كوي په خپله معنى باندې چي مقترن وي يو دا زمنو

الثَّلٰثَةِ اَلْفِعْلُ سُمِّيَ بِهٖ لِتَضَمُّنِهِ الْفِعْلُ اللُّغَوِيُّ وَ هُوَ الْمَصْدَرُ.

ثلاثو يوري فعل دي مسمى شو په دې لفظ دوجې د تضمن د فعل لغوي لره چي هغه مصدر دي

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د كافيې د اسم تعريف بيانوي .

**اغراض دجامي** : وهو مأخوذ من السمو : په دې عبارت سره شارح وجه تسميه د اسم بيانوي په وجه تسميه د اسم كې د بصريانو او كوفيانو اختلاف دي بصرين وايي چي دا د سمو نه مأخوذ دي چي معنى يې ده اوچت والې او اسم هم په خپلو ملګرو فعل او حرف باندې اوچت دي په دې اعتبار سره چي صرف په اسم سره كلام په وجود كې راځي او حرف خو د كلام ركن هم نه شي جوړيدې او فعل هم د كلام په جوړيدو كې اسم ته محتاج دي .

**دبصريانو دليل**: په كلام دعربو كې او په قرآن مجيد او احاديث مباركو كې د دې باب ټولې صيغې د ناقص واوي نه مستعمل شوې دي د مثال واوي نه ، نه دي لكه سمى يسمى تسمية باب تفعيل د ناقص واوي نه راځي جمع تكسير اسماء راځي بيا د دعاء والا قانون سره ترې نه اسماء جوړ شو تصغير د دې سمي راځي چي په اصل كې سميو وو نو بيا د قويل په قانون سره ترې سمي جوړ شو .

نو خلاصه د كلام دا شو چي دا په اصل كې ناقص واوي وو، سمو واو موحذف كړو او د ميم سكون د سين طرف ته مو خلاف القياس منتقل كړو په شروع كې مو همزه وصلي ورسره ولګوله نو اسم ترې نه جوړ شو .

**دليل د كوفيانو** : كوفيان وايي چي دا مثال واوي دي او په اصل كې دا وسم وو او د وسم معنى

ده علامت اودا هم په خپل مسمى باندې علامت جوړيږي او کوفيين دبصرينو ددليل جواب ورکوي چې تاسو څومره مثالونه دناقص واوي پيش کوي په دغه ټولو کې قلب مکاني شوې ده مثلاً اسماء په اصل کې اوسام وو ، خو دکوفينو مذهب ددوه وجهو نه کمزوري دي ځکه شارح دې لره په قيل سره ذکر کړو .

**اولنۍ وجه دکمزورتيا** يې داده چې په مسمى باندې علامت جوړيدل دا داسم خصوصيت نه دي بلکه حرف اوفعل هم په خپله مسمى باندې علامت جوړيږي اګرچې ددې جواب دکوفينو د طرف نه دا ورکړې شوې دي چې دوجهي دتسميې جامع کيدل اومانع کيدل ضروري نه دي خو بيا هم سوال وارديږي خو چې دبصرينو وجه تسميه چې ددې په مقابله کې ده جامع اومانع ده په دې باندې څه سوال هم نه وارديږي او وجه دتسميې لره جامع او مانع کيدل ضروري خو نه دي خو وجه دترجيح خو جوړيدې شي .

**دوهم وجه دکمزوتيا** يې داده چې ستا دقول مطابق قلب مکاني کول په کار دي ځکه چې قلب مکاني په يو نيمه صيغه کې کيږي دلته که چيرته ستا مذهب مراد واخستلې شي نو په ټول باب کې به قلب مکاني کول په کار وي ، ولا نظير له .

**سمي به لتضمنه الفعل اللغوي:** ددې ځای نه وجه تسميه دفعل بيانوي چې خلاصه يې داده چې فعل په لغت کې کردن يعنې کول اودا مصدر شو نو فعل مصدر شو اوجز شو ، او د فعل اصطلاحي معنى ددرې ځيزونو دمجموعې نوم دي هغه درې ځيزونه زمانه ، **نسبت الى الفاعل** او معنى مصدري ده نو فعل لغوي مصدر جوړ شو دفعل اصطلاحي نو دا **تسمية الكل باسم الجزء** د قبيلې نه شو ، همدارنګې فعل لغوي مدلول شو دفعل اصطلاحي دپاره نو **تسمية الدال باسم المدلول** دقبيلې نه شو اوفعل لغوي فعل اصطلاحي لره متضمن شو نودا **تسمية المتضمن** (اسم فاعل) **باسم المتضمن** دقبيلې نه شو .

| وَ قَدْ عُلِمَ بِذَٰلِكَ اَىْ بِوَجْهِ حَصْرِ الْكَلِمَةِ فِي الْاَقْسَامِ الثَّلَاثَةِ حَدُّ كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهَا اَىْ |
|---|
| په تحقيق سره معلوم شو په دې سره يعنې په وجې دحصر دکلمې په اقسام ثلاثو کې تعريف دهريو ددې نه يعنې |
| مِنْ تِلْكَ الْاَقْسَامِ وَ ذَٰلِكَ لِاَنَّهُ قَدْ عُلِمَ بِهِ اَى بِوَجْهِ الْحَصْرِ اَنَّ الْحَرْفَ كَلِمَةٌ لَا تَدُلُّ |
| ددې اقسامونه اوداځکه چې معلوم شوپه دې سره يعنې په وجې دحصرچې حرف کلمه ده چې دلالت نه کوي په |
| عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا بَلْ تَحْتَاجُ اِلَى انْضِمَامِ كَلِمَةٍ اُخْرٰى وَالْفِعْلُ كَلِمَةٌ تَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا لٰكِنَّهُ مُقْتَرِنٌ |
| خپله معنى بلکې محتاج وي انضام دبلې کلمې ته اوفعل کلمه ده چې دلالت کوي په خپله معنى ليکن پيوسته |

| |
|---|
| بِأَحَدِ الْأَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ وَالْاِسْمُ كَلِمَةٌ تَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا غَيْرَ مُقْتَرِنٍ بِأَحَدِ الْأَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ |
| وي تريو دازمنو ثلاثو پورې او اسم كلمه ده چې دلالت كوي په خپله معنى او پيوست نه وي تر ازمنو ثلاثو پورې پس |
| فَالْكَلِمَةُ مُشْتَرَكَةٌ بَيْنَ الْأَقْسَامِ الثَّلٰثَةِ وَ الْحَرْفُ مُمْتَازٌ عَنْ أَخَوَيْهِ لِعَدَمِ الْاِسْتِقْلَالِ فِي الدَّلَالَةِ وَ |
| كلمه مشتركه شوه په مابين د دري قسمونو كې حرف جدا دي د خپلو اخوينو نه په عدم استقلال سره په دلالت كې او |
| الْفِعْلُ مُمْتَازٌ عَنِ الْحَرْفِ بِالْاِسْتِقْلَالِ وَعَنِ الْاِسْمِ بِالْاِقْتِرَانِ وَالْاِسْمُ مُمْتَازٌ عَنِ الْحَرْفِ بِالْاِسْتِقْلَالِ وَعَنِ الْفِعْلِ |
| فعل جدا دي د حرف نه په استقلال كې او د اسم نه په اقتران كې اسم جدا دي د حرف نه په استقلال كې او د فعل نه |
| بِعَدَمِ الْاِقْتِرَانِ فَعُلِمَ لِكُلٍّ وَاحِدٍ مِنْهَا مُعَرِّفٌ جَامِعٌ لِأَفْرَادِهٖ مَانِعٌ عَنْ دُخُوْلِ غَيْرِهَا فِيْهِ |
| په عدم اقتران كې پس معلوم شو د هر يو د پاره تعريف چې جامع وي خپلو افرادو لره او مانع وي د دخول د غير نه په دې |
| وَ لَيْسَ الْمُرَادُ بِالْحَدِّ هٰهُنَا اِلَّا الْمُعَرِّفُ الْجَامِعُ وَ الْمَانِعُ وَ لِلّٰهِ دَرُّ الْمُصَنِّفِ حَيْثُ أَشَارَ |
| كې او نه دي مراد د لته مگر داسې تعريف چې جامع او مانع وي الله دې خير كثير ور كړي مصنف ته چې اشاره يې |
| إِلٰى حُدُوْدِهَا فِيْ ضِمْنِ دَلِيْلِ الْحَصْرِ ثُمَّ نَبَّهَ عَلَيْهَا بِقَوْلِهٖ وَ قَدْ عُلِمَ بِذٰلِكَ |
| وكړه تعريف د اسم. فعل او حرف ته په ضمن د دليل د حصر كې بيا تنبيه وكړه په دې باندې په دې قول وقد علم بذلك |
| ثُمَّ صَرَّحَ بِهَا بِنَاءً عَلٰى تَفَاوُتِ مَرَاتِبِ الطَّبَائِعِ. |
| سره بيا تصريح وكړه په هغې سره په لحاظ ساتلو د فرق د مختلفو طبيعتونو. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب د كافيې د كلمې د ذكر شوو دريو تعريفونو نتيجه او خلاصه بيانوي.

**اغراض د جامي** : <u>وقد علم بذلك اى بوجه حصر الكلمة في الاقسام الثلاثة الخ</u>: په دې عبارت سره د انحصار سره د اقسام ثلاثه نه د هر يو حد او جامع او مانع تعريف هم معلوم شوې دي ځكه چې جامع او مانع تعريف هغه دي چې په جنس او فصل باندې مشتمل وي په دې دليل د حصر كې د هر يو جنس او فصل مذكور وي د دري واړو په تعريف كې كلمه جنس ده او د حرف په تعريف كې عدم استقلال في الدلالة فصل دي چې د هغې نه اسم او فعل دواړه خارجيږي او د فعل په تعريف كې استقلال في الدلالة فصل اول دي چې حرف ترې نه خارج شو او اقتران بالزمان فصل ثاني دي چې د هغې نه اسم خارج شو او د اسم په تعريف كې استقلال في الدلالة فصل اول دي چې د هغې نه حرف خارج شو او عدم اقتران بالزمان فصل ثاني دي چې د هغې نه فعل خارج شو.

دلته دوه سوالات راځي:

**اول سوال** : د کوم يو څيز ذکر چې کله په دوهم ځل وکړې شي نو دضمير په شکل کولې شي ماتن داسم اشاره په صورت کې دوباره وجه دحصر ولې ذکر کړه ده لره دا ويل په کار وو وقد علم به ، شارح هم تفصيل بيانوي .

**جواب** : دا **وضع المظهر موضع المضمر** دقبيلې نه يد اونکته په دې کې دخپل وجه حصر دکمال انکشاف طرف ته اشاره کول مقصود دي ځکه چې داسم اشاره مشار اليه محسوس مبصر وي نو دلته هم مصنف اسم اشاره راوړه دا دعوی کول غواړي چې زما بيان شوې وجه حصر دومره واضحه ده چې دې لره يې په منزله دمحسوس مبصر وګرځوله اوپه اسم اشاره سره يې دې طرف ته اشاره هم کولې شي .

**دوهم سوال** : دليل دحصر خو قريب وو اسم اشاره بعيده يې ولې استعماله کړه اشاره بـه يې قريبه ذکر کړې وي .

**جواب** : شارح ددې نه دوه جوابات کړي دي :

**اول جواب** : بُعد په دوه قسمه ده : بُعد رتبي اوبعد مکاني دلته داوجه دحصر دعظمت شان دوجې نه بُعد رتبي لره يې دبعد مکاني قائمقام وګرځولو اسم اشاره بعيده يې استعمال کړه لکه چې په قرآن کې ارشاد دي **ذلک الکتاب لاريب فيه** يا **ذلکم الله ربکم** .

**دوهم جواب** : وجه دحصر په اعتبار دانتهاء سره خو قريب وه خوپه اعتبار دابتداء سره بعيد وه نو دابتداء اعتبار يې وکړو اسم اشاره بعيده يې استعماله کړه

ولیس المراد بالحد الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي :

**سوال** : حد خو د يو څيز هغه وي چې د ذاتياتو نه مرکب وي اوددې وجه دحصر نه چې کوم تعريف معلوم شو هغه دعرضياتو نه مرکب دي ځکه چې په هر يو تعريف کې داقتران اوعدم اقتران اوددلالت ذکر دي اوداکلمې احوال اوعوارض دي ذاتيات خو نه دي نو ماتن لره د اسم لفظ ويل په کار وو **حد کل واحد** ويل صحيح نه وو.

**جواب** : ماتن چې کوم لفظ ويلې دي چې **کل واحد منها** دادنحويانو داصطلاح موافق دي او نحويان دحد نه تعريف جامع اومانع مراد اخلي اوجامع اومانع تعريف هغه دي چې په جنس او فصل باندې مشتمل وي اوداقسام ثلاثه تعريفونه چې دوجه حصر نه معلوميږي هغه جنس او فصل باندې دمشتمل کيدو دوجې نه جامع هم دي اومانع هم دي په دې اعتبار سره دې ته حد

ويل صحيح دي اوتاچې کوم اعتراض وکړو هغه دمناطقه اصطلاح مراد اخستي اوکړي يې ده دمناطقو په نزد حد هغه ته وايي چې د ذاتياتو نه مرکب وي.

ولله : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي

**سوال** : مقصد دماتن اختصار وو اوداختصار تقاضا دا وه چې داقسام ثلاثو يې صرف يو ځل تعريف کړې وي نو ده دري ځله تعريف وکړو اوارتکاب دتکرار يې وکړو چې داختصار منافي دي اول ځل يې په ضمن دوجه دحصر کې تعريف وکړو ، اوپه دوهم ځل يې په وقد علم بذلک سره تنبيه وکړه د اقسام ثلاثه حدودو طرف ته په دريم ځل يې دټولو په صراحت سره تعريف وکړو لکه څنګه يې چې ويلي دي چې الاسم مادل الخ .

**جواب** : په دې کې هيڅ تکرار نشه دي داخبره چې تاته عيب په نظر راځي دا خو خوبي ده مصنف ددريوواړوذهنونولحاظ وساتلو: (۱) دذکي دپاره يې په وجه دحصر کې دننه تعريف وکړو (۲) دمتوسط دپاره يې په وقدعلم بذلک سره تنبيه وکړه (۳) اودغبي دپاره يې تصريح وکړه.

در المصنف : در په لغت کې پئيو (شودو) ته وايي اواهل عربو به اکثره ګزاره په پئيو کوله نو د پئيو دپاره خير کثير لازم دي ، نو ذکر يې دملزوم وکړو اومراد ترې نه لازم واخستو .

## تعريف د کلام :

| |
|---|
| اَلْكَلَامُ فِي اللُّغَةِ مَا يَتَكَلَّمُ بِهٖ قَلِيْلاً كَانَ اَوْ كَثِيْراً اَوْ فِيْ اِصْطِلَاحِ النُّحَاةِ مَا تَضَمَّنَ |
| کلام په لغت کې مايتکلم به ته ويل کيږي که لږوي اوکه ډيروي اوپه اصطلاح دنحويانو کې هغه دي چې متضمن |
| اَىْ لَفْظٌ تَضَمَّنَ كَلِمَتَيْنِ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً اَىْ يَكُوْنُ كُلٌّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا فِيْ ضِمْنِهٖ |
| وي يعني داسې لفظ چې متضمن وي دوو کلموته حقيقتاً ياحکماً يعني کيدل هريو ددې دواړونه په ضمن ددې |
| فَالْمُتَضَمِّنُ اِسْمُ فَاعِلٍ هُوَ الْمَجْمُوْعُ وَ الْمُتَضَمَّنُ اِسْمُ مَفْعُوْلٍ كُلٌّ وَاحِدَةٍ مِنْ كَلِمَتَيْنِ فَلاَ |
| کلمې کې پس متضمن اسم فاعل دي چې هغه جمع کړې شوې دي اومتضمن اسم مفعول دي هريو ددوو کلمونه |
| يَلْزِمُ اِتِّحَادُهُمَا بِالْاِسْنَادِ اَىْ تَضَمُّنًا حَاصِلاً بِسَبَبِ اِسْنَادِ اِحْدَى الْكَلِمَتَيْنِ |
| پس نه لازميږي يوځاى ددواړوپه اسنادسره يعني داسې متضمن چې حاصل وي په سبب دا سناد د يو ددوو کلمونه |
| اِلَى الْاُخْرىٰ وَ الْاِسْنَادُ نِسْبَةُ اِحْدَى الْكَلِمَتَيْنِ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً اِلَى الْاُخْرىٰ بِحَيْثُ تُفِيْدُ الْمُخَاطَبَ فَائِدَةً |
| بلې ته اواسنادنسبت ديوکلمې دي حقيقتاً اوحکماً بلې ته په داسې شان چې فائده ورکوي مخاطب ته فائده |
| تَامَّةً فَقَوْلُهٗ مَا يَتَنَاوَلُ الْمُهْمَلَاتِ وَ الْمُفْرَدَاتِ وَ الْمُرَكَّبَاتِ الْكَلَامِيَّةِ وَ غَيْرِ الْكَلَامِيَّةِ. |
| پوره پس داوينادده چې ما داشامليږي مهملاتو اومفرداتو اومرکباتو کلاميو اوغير کلاميو ته |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب د كافيې د كلام تعريف او تفصيل بيانوي

**اغراض د جامي** : الكلام في اللغة ما يتكلم به قليلاً كان او كثيراً : په دې عبارت سره شارح د كلام لغوي او اصطلاحي تعريف بيانوي : كلام په لغت كې : ما يتكلم به قليلاً كان او كثيرا، او دنحويانو په اصطلاح كې : ما تضمن كلمتين بالاسناد ، يعنې كلام هغه لفظ ته وايي چې متضمن وي دوه كلمو لره په سبب د اسناد سره .

په دې تعريف كې د ما لفظ جنس دي چې مهملات ، مفردات اومركبات كلاميه اوغير كلاميه ټولو ته شامل شو ، او تضمن كلمتين اولنې فصل دي ددې په وجې سره مهملات اومفردات خارج شو ، او بالاسناد دا دوهم فصل دي په دې سره مركبات غير كلامه خارج شو لكه اضافي توصيفي وغيره ځكه چې هغه داسې دوه كلمو لره متضمن وي چې په هغې كې اسناد نه وي .
دلته يو سوال راوارديږي :

**سوال** : كلمه اوكلام دا دواړه دنحويانو موضوع وه نو په دواړو كې مناسبت وو نو مصنف رَحِمَهُ اللهُ له په كار وو چې د الكلام عطف يې كړې وې په الكلمة باندې نو مصنف رَحِمَهُ اللهُ حرف عطف ولې رانه وړو؟

**جواب** : شارح ددې نه دوه جوابات وركړي دي :

**اول جواب** : كلاچيرته داسې يې كړې وې نو كلمه به متبوع وې اوكلام به تابع وې لكه څنګه چې معطوف عليه متبوع وي اومعطوف تابع وي نودا وهم به پيدا كيدو چې كلمه دعلم نحو په موضوع كيدو كې اصل ده اوكلام دعلم النحو په موضوع كيدو كې ددې تابع دي او حال دادې چې په دې كې هر يو په موضوع كيدو كې اصل اومستقل بالذات دي يو دبل تابع نه دي .

**دوهم جواب** : داعبارت فصل بعد فصلٍ او باب بعد بابٍ دقبيلې نه دي اوددواړو فصلونو په مينځ كې حرف عطف نه شي راوړې .

وفي اصطلاح النحاة : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب وركول دي :

**سوال** : ستا دكلام تعريف په قرآن باندې صادق نه راځي ځكه چې هغه متضمن كلمتين لره نه دي بلكه هغه متضمن دي سورتونو لره نو ستا دكلام تعريف جامع نه شو خپل ټولو افرادو لره .

**جواب** : قران دمعرف فرد نه دي كه چيرته په ده باندې رښتيا نه راځي نو نه دي راځي ځكه چې په الكلام باندې الف لام دعهد دي اومراد ددې نه هغه كلام دي چې هغه ته دنحويانو په

اصطلاح کې کلام وايي

لفظ: په دې عبارت سره غرض د شارح ددوه سوالونو جوابات ورکول دي

**اول سوال**: د ما د لفظ نه ته څه مراد اخلې لفظ یا کلمه یا شئ کوم یو هم چې ترې نه اخلې صحیح نه دي که چیرته لفر ترې نه مراد اخلي نو ستا تعریف د زید قائم په جواب کې واقع کیدونکې والې پاندې صادق راځي ځکه چې هغه لفظ هم دي او کلمتین لره متضمن هم دي ځکه چې د نعم معنی ده ای زید قائم اوکه چیرته کلمه ترې نه مراد واخلې نو الکلام به مبتدا شي او ما خبر ، او خبر په مبتدا باندې محمول وي اودلته حمل صحیح نه دي ځکه چې الکلام کُل دي اود ما نه مراد که ته کلمه اخلي او کلمه دکلام جزء دي اوحمل د کل په جزء باندې صحیح نه دي ځکه چې داسې نه شي ویلې چې الکلام کلمة بلکې داسې ویلې شي چې الکلام کلمتین

اوکه چیرته کلام ترې نه مراد واخلي نو اخذ دمحدود راځي په حد کې چې دامستلزم دي دور لره او دور خو باطل دي اوکوم څیز چې باطل لره مستلزم وي هغه هم باطل دي لهذا ستاد کلام تعریف باطل شو ، چې تفصیل ددې دادې چې دمحدود اومعرف پیژندل موقوف وي په حد او تعریف باندې اوس که چیرته په حد کې هم معرف مذکور وي نو بیا په حد باندې ځان پوهول دوباره موقوف شوپه محدودسره اوهم دې ته دوروایي اوکه چیرته ته د ما نه مراد شئ اخلي نوستا تعریف په کاپئ اوپه هغه دیوال هم صادق راځي چې په هغې باندې لیکل شوې وي زید قائم

**جواب**: د ما نه زمونږ مراد لفظ دي پاتې شوه دنعم والاسوال نو دهغې جواب دادې چې د ما نه وروستو تضمن کلمتین راغلې دي اودتضمن نه مراد په مثل دتضمن کل دي اجزاو لره اونعم چې متضمن دي دوه کلمو لره هغه په طریقې دتاویل سره دي یعنې نعم مؤول دي لکه زید قائم همدارنګې متضمن نه دي کله چې کل خپلو اجزاو لره متضمن وي ځکه چې نعم کل نه دي او زید قائم دهغې اجزاء نه دي .

**دوهم سوال**: الکلام مبتداء دي او ماتضمن کلمتین ددې خبر دي ځکه چې الکلام هم معرفه ده اوپه ماتضمن کلمتین کې ماموصوله ده اوتضمن کلمتین ددې صله ده اوموصول هم معرفه وي نو خبر هم معرفه شو اوقانون دادې چې کله مبتدا اوخبر دواړه معرفه وي نو ددې په مینځ کې ضمیر دفصل راوړې شي مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دلته دخبر اومبتدا په مینځ کې ضمیر د فصل ولې

ذکر نه کړو

**جواب** : دا **ما** موصوله نه ده بلکه موصوفه ده چې دنکرې په حکم کې ده څکه چې دامقام د خبر دي اواصل په خبر کې تنکير وي ددې وجهې نه **ما** يې موصوفه کړه شارح لفظ نکره راوړ نو دې جواب طرف ته يې اشاره وکړه ، اوچې کله **ما** موصوفه شوه نو خبر نکره شو نو مبتدا اوخبر دواړه معرفې نه شوې بلکه صرف مبتدا معرفه شوه

<u>حقيقتاً اوحکماً</u> : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي .

**سوال** : تعريف دکلام دې جامع نه شو خپلو ټولو افرادو لره ځکه چې ددې نه **زيد قائم ابوه** او **جسق مهمل** او **ديز مقلوب زيد** او **اضرب** خارج شو ځکه چې په دې کې اول **کلمتين** لره متضمن نه دي بلکه متضمن دي کلمې اوجملې لره اودوهم او دريم متضمن دي مهمل اوکلمې لره اوڅلورم يوه کلمه ده دوکلمو لره متضمن نه ده .

**جواب** : **دکلمتين** نه مراد عام دي که حقيقتاً وي هغه کلمتين اوکه حکماً په دې ټولو کې اګر چې **تضمن کلمتين** حقيقتاً نه ده خو حکماً **تضمن** دکلمتين موجود دي چې تفصيل يې په دې ډول دي : حقيقتاً کلمه هغه وي چې په هغې کې تلفظ هم حقيقتاً وي اوافراد هم حقيقتاً وي او وضع هم حقيقتاً وي اوحکماً هغه ته وايي چې په هغې کې ددې درې امورو نه يو څيز حکماً وي اوس په اولنې مثال کې **زيدقائم ابوه** کې جمله په تاويل دمفرد سره ده **قائم الاب** سره نوداحکماً کلمه شوه ځکه چې په دې کې افراد حکماً دي وجه يې داده چې دا قضيه حمليه ده اودقضيه حملېې داطرافو تاويل په مفرد سره کيدې شي .

نو خلاصه دجواب داشوه چې **زيد قائم ابوه** يا **زيدابوه قائم** يوې کلمې اويوې جملې ته متضمن نه دي بلکه دوه کلمو ته متضمن دي چې په هغې کې يوه کلمه حقيقي اودوهمه حکمي وي همدارنګې **جسق مهمل** د **جسق** په تاويل د **هذااللفظ** سره کولې شي او**ديز مقلوب زيد** کې دلفظ **ديز** تاويل په **هذااللفظ** سره کولې شي چې معنې يې ده **هذا اللفظ مهمل** او **هذا اللفظ مقلوب زيد** نو په دې کې اولنې کلمه حکماده ځکه چې په دې کې وضع حکمي ده نوداهم متضمن مهمل اوکلمې لره نه شو بلکه متضمن کلمتين لره دي چې په معنى کې يوه کلمه حکمي ده همدارنګې په دريم مثال په **اضرب** او **لاتضرب** کې **انت** ضمير مستتر دي چې فاعل جوړيږي نو دا **انت** کلمه حکمي ده ځکه چې په دې کې تلفظ حقيقتاً نه دي بلکه حکماً دي نو **اضرب** هم

متضمن کلمتین لره شو خو یوه کلمه حقیقي ده او یوه حکمي ده

ای یکون کل واحد منهما في ضمنه: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال جواب ورکول دي.

**سوال**: تاچې کوم تعریف د کلام تعریف کړې هغه باطل دي ځکه چې دا مستلزم دي اتحاد المتضمِن والمتضمَن چې دا باطل دي د دې وجې نه ستا تعریف باطل شو د کلام تعریف تا دا کړي چې کلام هغه دي چې متضمن وي دوو کلمولره او کلمتین بعینه کلام دي نو متضمِن هم کلام شو او متضمَن هم کلام شو، یا متضمِن هم کلمتین شو او متضمَن هم کلمتین شو لکه زید قائم دا کلمتین هم دي او کلام هم دي نو خلاصه دا شوه چې دلته متضمِن په کسرې د میم سره او متضمَن په فتحې د میم سره اتحاد لازم راځي او تضمن خو یو نسبت دي چې د هغې په اطرافو کې تغائرت وي.

**جواب**: اتحاد نه لازمیږي ځکه چې په دواړو کې اعتباري فرق دي مثلاً زید قائم مجموعه من حیث المجموعه متضمن علی صیغة اسم فاعل جوړیږي او زید انفرادي حیثیت سره او قائم انفرادي حیثیت سره متضمن علی صیغة اسم مفعول جوړیږي نو فلا اتحاد.

تضمناً حاصلاً: په دې عبارت سره شارح د بالاسناد ترکیب ذکر کوي چې بالاسناد په ترکیب کې مفعول مطلق محذوف صفت جوړیږي یعنې بالاسناد ظرف مستقر دي حاصلاً لره او هغه صفت دي تضمناً محذوف دپاره چې مفعول مطلق جوړیږي تضمن الکلمتین لره.

بسبب الاسناد الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال جواب ورکول دي.

**سوال**: اسناد د کلام د تعریف جزء دي کله تضمن کلمتین چې څنګه د تعریف جز دي او اسناد یو معنوي څیز دي او کوم څیز چې د لفظ او معنی نه مرکب وي هغه غیر لفظ وي نو بیا ستا کلام لره لفظ ویل صحیح نه دي.

**جواب**: په بالاسناد کې باء د سببیت دپاره ده او د اسناد اعتبار په کلام کې بطور سبب دی او سبب په سبب کې داخل نه وي، بلکې خارج وي لکه وقت د لمونځ دی لپاره سبب دی خو هغه د لمونځ نه خارج وي همدارنګې دلته اسناد هم د کلام نه خارج دی.

| وَ بِقَيْدِ تَضَمُّنِ كَلِمَتَيْنِ خَرَجَتِ الْمُهْمَلَاتُ وَ الْمُفْرَدَاتُ وَ بِقَيْدِ الْإِسْنَادِ خَرَجَتِ الْمُرَكَّبَاتُ الْغَيْرُ الْكَلَامِيَّةُ |
|---|
| او په قید د تضمن کلمتین سره خارج شو مهملات او مفردات او په قید د اسناد سره خارج شو مرکبات غیر کلامیه |
| مِثْلُ غُلَامُ زَيْدٍ وَ رَجُلٌ فَاضِلٌ وَ بَقِيَتِ الْمُرَكَّبَاتُ الْكَلَامِيَّةُ سَوَاءٌ كَانَتْ خَبَرِيَّةً مِثْلُ ضَرَبَ زَيْدٌ وَ ضَرَبَتْ |
| لکه غلام زید و رجل فاضل او باقي پاتې شو مرکبات کلامیه برابره خبره ده که خبري وي لکه ضرب زید و ضربت |

| |
|---|
| هِنْدٌ وَ زَيْدٌ قَائِمٌ اَوْ اِنْشَائِيَّةٌ مِثْلُ اِضْرِبْ وَلَا تَضْرِبْ فَاِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا تَضَمَّنَ كَلِمَتَيْنِ |
| هند وزيد قائم او كه انشائيه وي لكه اضرب ولا تضرب ځكه چې هر يو واحد ددې دواړو نه متضمن دي كلمتينو |
| اِحْدَاهُمَا مَلْفُوْظَةٌ وَ الْاُخْرٰى مَنْوِيَّةٌ وَ بَيْنَهُمَا اِسْنَادٌ يُفِيْدُ الْمُخَاطَبَ فَائِدَةً |
| لره چې يوې لفظي ده اوبل يې منوي ده اويه مينځ ددې دواړو كې اسناد دي چې فائده وركوي مخاطب ته فائده |
| تَامَّةً وَ حَيْثُ كَانَتِ الْكَلِمَتَانِ اَعَمَّ مِنْ اَنْ تَكُوْنَا كَلِمَتَيْنِ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً دَخَلَ فِي التَّعْرِيْفِ |
| پوره په داسې شان چې وي دواړه كلمې عامې ددې نه چې داكلمې دي حقيقتاً اوحكماً داخل شو په تعريف |
| مِثْلُ زَيْدٌ اَبُوْهُ قَائِمٌ اَوْ قَامَ اَبُوْهُ اَوْ قَائِمٌ اَبُوْهُ فَاِنَّ الْاِخْبَارَ فِيْهَا مَعَ اَنَّهَا مُرَكَّبَاتٌ |
| ددې كې لكه زيد ابوه قائم او قام ابوه او قائم ابوه ځكه چې اخبار په دې كې سره ددې نه چې دامركبات دي |
| لٰكِنَّهَا فِي حُكْمِ الْكَلِمَةِ الْمُفْرَدَةِ اَعْنِي قَائِمُ الْاَبِ وَ دَخَلَ فِيْهِ اَيْضًا مِثْلُ جَسَقٌ مُهْمَلٌ وَ دَيْزٌ مَقْلُوْبُ زَيْدٍ |
| لكن داپه حكم دكلمې مفردې كې دي يعني قائم الاب، اوداخل شويه دې كې په مثل د جسق مهمل ديز مقلوب زيد |
| مَعَ اَنَّ الْمُسْنَدَ اِلَيْهِ فِيْهَا مُهْمَلٌ لَيْسَ بِكَلِمَةٍ فَاِنَّهُ فِي حُكْمِ هٰذَا اللَّفْظِ. |
| سره ددې نه چې مسند اليه په دې دواړو كې مهمل ده كلمه نه ده ځكه داپه حكم ددې لفظ كې ده. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب دكافيې د قيوداتو فائدې بيانوي .

**اغراض د جامي** : <u>وبقيد تضمن كلمتين</u> : په دې عبارت سره شارح دتضمن كلمتينو دقيد فائده بيانوي چې په دې قيد سره ترې مهملات اومفردات خارج شو .

<u>وبقيد الاسناد</u>: په دې عبارت سره شارح داسناد د قيد فائده بيانوي چې په دې قيد سره ترې مركبات غير كلاميه خارج شو لكه مثال غلام زيد ورجل فاضل .

<u>وبقيت المركبات الكلامية</u> : په دې عبارت سره شارح د مركب كلاميه بيان كوي چې مركب كلامي كه خبري وي لكه مثال ضرب زيد وضربت هند وزيد قائم اوكه مركب انشائي وي لكه اضرب ولا تضرب دا په خپل حال پاتې شو ځكه چې هر يو ددې دواړو نه متضمن وي كلمتينو لره چې يوه كلمه ملفوظ اوبله منوي وي اوپه مينځ ددې دواړو كې داسې اسناد دي چې فائده وركوي مخاطب ته فائده تامه .

<u>وحيث كانت الكلمتان</u> : په دې عبارت سره شارح د حقيقتاً او حكماً قيد فائده ذكر كوي ، اود يو سوال جواب هم كوي :

**سوال** : تعريف دكلام دې جامع نه شو خپلو ټولو افرادو لره ځكه چې ددې نه زيد قائم ابوه او جسق مهمل او ديز مقلوب زيد او اضرب خارج شو ځكه چې په دې كې اول كلمتين لره متضمن نه

دي بلکه متضمن دي کلمې اوجملې لره اودوهم او دريم متضمن دي مهمل اوکلمې لره اوځلورم يوه کلمه ده دوکلمو لره متضمن نه ده

**جواب** : دکلمتين نه مراد عام دي که حقيقتاً وي هغه کلمتين اوکه حکماً په دې تولو کې اګر چې تضمن کلمتين حقيقتاً نه ده خو حکماً تضمن دکلمتين موجود دي چې تفصيل يې په دې ډول دي: حقيقتاً کلمه هغه وي چې په هغې کې تلفظ هم حقيقتاً وي اوافراد هم حقيقتاً وي او وضع هم حقيقتاً وي اوحکماً هغه ته وايي چې په هغې کې ددې دري امورو نه يو څيز حکماً وي اوس په اولنې مثال کې زيد قائم ابوه کې جمله په تاويل دمفرد سره ده قائم الاب سره نو دا حکماً کلمه شوه ځکه چې په دې کې افراد حکماً دي وجه يې داده چې دا قضيه حمليه ده اودقضيه حمليې داطرافو تاويل په مفرد سره کيدې شي .

نو خلاصه دجواب داشوه چې زيد قائم ابوه يا زيدابوه قائم يوې کلمې اويوې جملې ته متضمن نه دي بلکه دوه کلمو ته متضمن دي چې په هغې کې يوه کلمه حقيقي اودوهمه حکمي وي همدارنګې جسق مهمل دجسق په تاويل دهذااللفظ سره کولې شي اوديز مقلوب زيد کې دلفظ ديز تاويل په هذااللفظ سره کولې شي چې معنې يې ده هذا اللفظ مهمل او هذا اللفظ مقلوب زيد نو په دې کې اولنې کلمه حکماده ځکه چې په دې کې وضع حکمي ده نوداهم متضمن مهمل او کلمې لره نه شو بلکه متضمن کلمتين لره دي چې په معنی کې يوه کلمه حکمي ده همدارنګې په دريم مثال په اضرب او لاتضرب کې انت ضمير مستتر دي چې فاعل جوړيږي نو دا انت کلمه حکمي ده ځکه چې په دې کې تلفظ حقيقتاً نه دي بلکه حکماً دي نو اضرب هم متضمن کلمتين لره شو خو يوه کلمه حقيقي ده اويوه حکمي ده .

| |
|---|
| اِعْلَمْ اَنَّ كَلَامَ الْمُصَنِّفِ رَحِمَهُ اللهُ ظَاهِرٌ فِيْ اَنَّ نَحْوَ ضَرَبْتُ زَيْداً قَائِماً بِمَجْمُوْعِهٖ كَلَامٌ بِخِلَافِ |
| پوه شه چې کلام د مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ ظاهر دي په مثل د ضربت زيداً قائما کې چې مجموع ددې کلام دي په خلاف د |
| كَلَامِ صَاحِبِ الْمُفَصَّلِ حَيْثُ قَالَ الْكَلَامُ هُوَ الْمُرَكَّبُ مِنْ كَلِمَتَيْنِ اُسْنِدَتْ |
| کلام دصاحب دمفصل په داسې شان چې هغه ويلي چې کلام دامرکب ددوه کلمو نه دي چې اسناد شوې وي يو |
| اِحْدَاهُمَا اِلَى الْاُخْرٰى فَاِنَّهٗ صَرِيْحٌ فِيْ اَنَّ الْكَلَامَ هُوَ ضَرَبْتُ وَ الْمُتَعَلِّقَاتُ خَارِجَةٌ عَنْهُ. |
| ددواړو کلموبلې ته ځکه داوينادده صريحه ده په دې کې چې کلام دا ضربتُ دي اومتعلقات خارج دي ددې نه |

**اغراض د جامي** : اعلم ان کلام المصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ الخ: په دې عبارت سره شارح د ماتن او دصاحب مفصل د تعريف په مينځ کې فرق واضح کوي، چې خلاصه يې داده چې مصنف په

خپل عبارت کې د بالاسناد سره د فقط قید هم ونه لړولو. او کلمه د حصریې هم ذکر نه کړه. چې د هغې نه معلومه شوه چې د ضربت زیدٌ قائماً د پوره مجموعې نوم کلام دی. ځکه چې په هغې کې اسناد یو دی نو د مصنف په نزد متعلقات د کلام په کلام کې داخل وي او صاحب د مفصل مبتدا او خبر دواړو لره معرفه ذکر کړو د دواړو په منځ کې ضمیر د وصل ذکر کړو، چې مفیدللحصر دی چې د هغې نه معلوه شوه، چې کلام صرف د دوه کلمو نوم دی او متعلقات د کلام د کلام نه خارج دي.

اوبعضې په دې سره دیو سوال جواب کوي.

**سوال**: کافیه مأخوذ ده د مفصل نه مصنف په تعریف کې د دې مخالفت ولې وکړو؟

**جواب**: جواب یې دا ورکړو چې دې ددواړو دمتعلقاتو د کلام ،د دخول د کلام او د عدم دخول په باره کې اختلاف ؤ داد تعریف والاسوال په هغه اختلاف باندې مبني دی هر یو د خپل مذهب مطابق تعریف کړې دی.

| ثُمَّ اِعْلَمْ اَنَّ صَاحِبَ الْمُفَصَّلِ وَصَاحِبَ اللُّبَابِ ذَهَبَا اِلٰى تَرَادُفِ الْكَلَامِ وَ الْجُمْلَةِ وَ كَلَامِ الْمُصَنِّفِ اَيْضًا |
| --- |
| بیا پوه شه چې صاحب دمفصل اوصاحب دلباب ذهاب کړې ترادف د کلام اوجملې ته اود کلام دمصنف نه هم |
| يَنْظُرُ اِلٰى ذٰلِكَ فَاِنَّهٗ قَدِ اكْتَفٰى فِيْ تَعْرِيْفِ الْكَلَامِ بِذِكْرِ الْاِسْنَادِ مُطْلَقاً وَ لَمْ يُقَيِّدْهُ |
| همدانظرمعلومیږي ځکه چې ده اکتفاء وکړه په تعریف د کلام کې په ذکر داسنادسره مطلقاً اومقید یې نه کړو |
| بِكَوْنِهٖ مَقْصُوْداً لِذَاتِهٖ وَ مَنْ جَعَلَهٗ اَخَصَّ مِنَ الْجُمْلَةِ قَيَّدَهٗ بِهٖ |
| په کیدلودې چې مقصود لذاته اوچاچې گرځولې خاص دجملې نه مقید کړې یې دې په مقصودلذاته سره نو |
| فَحِيْنَئِذٍ يُصَدَّقُ الْجُمْلَةَ عَلَى الْجُمَلِ الْخَبَرِيَّةِ الْوَاقِعَةُ اِخْبَاراً اَوْ اَوْصَافاً بِخِلَافِ الْكَلَامِ وَ فِيْ |
| په دې وخت کې اطلاق کیږي دجملې په جمله خبریه باندې چې واقع وي اخبار اویاصفت په خلاف د کلام اوپه |
| بَعْضِ الْحَوَاشِيْ اَنَّ الْمُرَادَ بِالْاِسْنَادِ هُوَ الْاِسْنَادُ الْمَقْصُوْدُ لِذَاتِهٖ وَ حِيْنَئِذٍ يَكُوْنُ الْكَلَامُ |
| بعضوحواشیو کې راغلي چې مراد داسنادنه هغه اسناد مقصودلذاته دی اوپه دغه وخت کې به وي کلام په |
| عِنْدَ الْمُصَنِّفِ اَيْضاً اَخَصَّ مِنَ الْجُمْلَةِ. |
| نزد د مصنف هم خاص دجملې نه. |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره صاحب د کافیې د کلمې اوجملې په مینځ کې فر بیانوي.

**اغراض دجامي**: ثم اعلم ان صاحب المفصل الخ: په دې عبارت سره علامه جامي په کلام او

جمله کې فرق کول بیانوي، خو په دې باندې د ځان پوهه کېدلو نه مخکې په یوه خبره باندې ځان پوهه کول ضروري دي، هغه خبره داده چې اسناد په دوه (۲) قسمه دي (۱) اسناد مقصود لذاته (۲) اسناد غیر مقصود لذاته

**(۱) اسناد مقصود لذاته** هغه اسناد ته وایي چې د هغې نه مخاطب ته فائده مقصود وي او دا اسناد د یو بل اسناد دپاره موقوف علیه او وسیله جوړه نه شي، لکه زید قائم او ضرب زید نو په دې کې چې کوم اسناد دي نو دا مقصود لذاته دي.

**(۲) اسناد غیر مقصود لذاته** هغه ته وایي چې د یو بل اسناد لپاره موقوف علیه او وسیله جوړېږي لکه چې هغه جملې خبرې چې د یو مبتدا لپاره خبر جوړېږي یا د یو موصوف د لپاره صفت جوړېږي لکه زیدٌ ابوه قائمٌ په دې کې اسناد غیر مقصود لذاته دي.

اوس دلته دوه جملې دي یوه جمله کبری ده چې په هغې کې زیدٌ مبتدا جوړېږي او قائمٌ ابوه ددې خبر جوړېږي، په دې جمله کبری کې چې کوم اسناد دی هغه مقصود لذاته دی او دوهمه جمله صغری ده چې په هغې کې قائمٌ شبه فعل مسند جوړېږي، او ابوه ددې فاعل مسندالیه دی او په دې دواړو کې چې کوم اسناد دي هغه غیر مقصود لذاته دي، ځکه چې دا جمله صغری والا اسناد د جمله کبری والااسناد دپاره موقوف علیه او وسیله او ذریعه جوړېږي.

اوس ددې نه پس د جملې او د کلام په مینځ کې په فرق باندې ځان پوهه کړئ چې خلاصه ددې داده چې په دې کې دوه قوله دي، اول قول د صاحب د مفصل د صاحب د لباب او د مصنف رَحِمَهُ اللهُ دی. د دوي په نزد په کلام او جمله کې ترادف دی دواړه یو څیز دی کوم چې کلام دی هغه جمله هم ده او کوم چې جمله ده هغه کلام هم دی نو نسبت په کې د مساوات دی.

دوهم قول د بعضې نحاتو دی، د دوی په نزد په کلام او جمله کې نسبت د عموم خصوص مطلق دی، کلام خاص دی او جمله عامه ده، د هر کلام جمله کېدل ضروري ده، خو د هرې جملې کلام کېدل ضروري نه دي، وجه دفرق په دې دواړو کې داده چې کلام هغه ته وایي چې په هغې کې اسناد مقصود لذاته نه وي او په جمله کې موندونکي اسناد عام دي برابره خبره ده، که مقصود لذاته وي او که نه وي نو زیدٌ قائمٌ ابوه دې ټول ته کلام هم ویلې شي او جمله هم ویلې شي خو ددې جملې کبری په ضمن کې چې کومه صغری ده صرف قائمٌ ابوه په دې باندې د جملې اطلاق خو کېدای شي، خو د کلام اطلاق پرې نه شي کېدای شي، ځکه چې په دې کې اسناد د لذاته نه دي.

**و في بعض الحواشي**: په دې عبارت سره شارح د علامه هندي قول نقل کول غواړي، علامه هندي وفرمايل. چې د متن په عبارت کې کوم لفظ اسناد مطلق وي او د هغې نه مراد اسناد مقصود لذاته دی. نو ددې وجې نه د دوي په نزد کلام خاص او جمله عامه ده، ځکه چې په دې اسناد باندې داخليدونکی الف لام عهدي دی او معهود اسناد مقصود لذاته دی.

## دکلام دواقع کيدو ځايونه :

| |
|---|
| وَلَا يَتَأَتّٰى اَىْ لَا يَحْصُلُ ذٰلِكَ اَىِ الْكَلَامُ اِلَّا فِيْ ضِمْنِ اِسْمَيْنِ اَحَدُهُمَا مُسْنَدٌ وَ الْاٰخَرُ مُسْنَدٌ اِلَيْهِ اَوْ فِيْ ضِمْنِ اِسْمٍ |
| اونه حاصليږي دا کلام مګر په ضمن د دوه اسمونو کې چې يو مسند او بل مسند اليه وي او يا په ضمن دا اسم د |
| مُسْنَدٍ اِلَيْهِ وَ فِعْلٍ مُسْنَدٍ وَ فِيْ بَعْضِ النُّسَخِ اَوْ فِيْ فِعْلٍ وَ اِسْمٍ فَاِنَّ التَّرْكِيْبَ |
| مسند اليه او په فعل مسند کې او په بعضې نسخو کې په ضمن د فعل او يا په ضمن د اسم کې ځکه چې ترکيب |
| الثُّنَائِى الْعَقْلِيَّ بَيْنَ الْاَقْسَامِ الثَّلٰثَةِ يَرْتَقِىْ اِلٰى سِتَّةِ اَقْسَامٍ ثَلٰثَةٌ مِّنْهَا مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ اِسْمٌ وَاِسْمٌ فِعْلٌ |
| ثنائي عقلي په مينځ د اقسام ثلاثو کې رسيږي شپږو اقسامو ته دري د هغې نه د جنس واحد نه د اسم او د اسم د فعل |
| وَ فِعْلٌ حَرْفٌ وَ حَرْفٌ وَ ثَلٰثَةٌ مِّنْهَا مِنْ جِنْسَيْنِ اِسْمٌ وَ فِعْلٌ اِسْمٌ وَ حَرْفٌ فِعْلٌ وَ حَرْفٌ وَ مِنَ الْبَيِّنِ |
| اوفعل د حرف او حرف او دري د هغې نه د دوه جنسونو نه چې اسم او فعل اسم او حرف او فعل او حرف او ظاهره داده |
| اَنَّ الْكَلَامَ لَا يَحْصُلُ بِدُوْنِ الْاِسْنَادِ وَ الْاِسْنَادُ لَا بُدَّلَهُ مِنْ مُسْنَدٍ وَ مُسْنَدٍ اِلَيْهِ وَ هُمَا لَا يَتَحَقَّقَانِ |
| چې کلام نه حاصليږي په غير د اسناد نه او د اسناد د پاره ضروري دي چې مسند او مسند اليه وي او نه محقق |
| اِلَّا فِيْ اِسْمَيْنِ اَوْ اِسْمٍ وَّ فِعْلٍ وَ اَمَّا الْاَقْسَامُ الْاَرْبَعَةُ الْبَاقِيَةُ فَفِي الْحَرْفِ وَ الْحَرْفُ |
| کيږي دا دواړه مګر په دوه اسمونو کې او يا په اسم او فعل کې هرچې اقسام اربعه باقي دي نو په حرف او حرف |
| كِلَاهُمَا مَفْقُوْدَانِ وَ فِي الْفِعْلِ وَ الْفِعْلُ وَ الْفِعْلِ وَ الْحَرْفُ الْمُسْنَدُ اِلَيْهِ مَفْقُوْدٌ وَ فِي الْاِسْمِ وَ الْحَرْفِ اَحَدُهُمَا |
| کې دواړه مفقود دي او په فعل او فعل او فعل او حرف کې مسند اليه مفقود ده او په اسم او حرف کې يو د دې دواړو |
| مَفْقُوْدٌ فَاِنَّ الْاِسْمَ اِنْ كَانَ مُسْنَدًا فَالْمُسْنَدُ اِلَيْهِ مَفْقُوْدٌ اِنْ كَانَ مُسْنَدًا اِلَيْهِ فَالْمُسْنَدُ مَفْقُوْدٌ |
| نه مفقود دي ځکه اسم که چيرته مسند وي نو مسند اليه مفقود ده او که چيرته مسند اليه وي نو مسند مفقود ده |
| وَنَحْوُ يَا زَيْدُ بِتَقْدِيْرِ اَدْعُوْا زَيْدًا فَلَمْ يَكُنْ مِنْ تَرْكِيْبِ الْحَرْفِ وَالْاِسْمِ بَلْ مِنْ تَرْكِيْبِ الْفِعْلِ وَالْاِسْمُ الَّذِيْ هُوَ |
| او په مثل د يازيد په تقدير د ادعوا زيدا پس نه شو دا د ترکيب د حرف نه بلکې دا شو د ترکيب د فعل او د هغه اسم نه |
| الْمَنْوِيُّ فِيْ اَدْعُوْ وَ هُوَ اَنَا. |
| چې هغه منوي وي په ادعو کې چې هغه انا دي. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافيې د کلام تقسيم کوي، چې کلام په دوه قسمه دي. يو جمله اسميه او بل جمله فعليه.

**اغراض د جامي** : اي لا يحصل: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : لايتاتي : اتيان نه مشتق دی او دا خاصه ده د ذي روح او کلام خو غير ذي روح دی نو تا ددې د پاره د اتيان لفظ ولې استعمال کړو؟

**جواب** : اتيان لره حصول لازم دی نو ذکر د ملزوم او مراد ترې نه لازم شو، نو **لا يتاتي لازم دی نو** لا يتاتي کنايه ده، د **لا يحصل** نه

دلته بيا بل سوال وارديږي:

**سوال** : د لايتاتي به ځای به يې **لا يحصل** ويلې وي کنه لا يتاتي يې ولې ذکر کولو؟

**جواب** : مونږ لايتاتي ځکه ذکر کړو ځکه چې کنايه دا ابلغ وي دتصريح نه ځکه چې په کنايه کې لږ شان سوچ راځي اودسوچ نه پس ذهن ته راځي د طلب اومشقت نه پس حاصليدونکي څيز اوقع في الذهن وي ځکه وبلې شي چې :**الکناية ابلغ من التصريح** نو ددې وجې نه مونږ هم کنايه استعمال کړه.

اي الکلام: په دې عبارت سره شارح د **ذلک** مشاراليه متعينه کوي ، او يو سوال طرف ته هم اشاره کوي:

**سوال** : چې کله د يو څيز دوباره ذکر وکړای شي نو د ضمير په شکل به کولې شي نو تا د اسم اشاره په صورت کې ولې ذکر کړو.

**جواب** : که چېرته د **ذلك** په ځای مونږ اسم ضمير راوړی وي، نو د هغې په مرجع کې به درې احتماله وی : **بالاسناد** بالاسناد به هم ددې مرجع جوړيدای شي او د **ماتضمن** نه چې کوم مصدر په ذهن کې راځي **هغه** هم مرجع جوړېدای شي او د **الکلام** هم مرجع جوړيدی شي او په مرجع کې بهتره خبره داده چې **هغه** نزدې وي نو **الاسناد** اقرب دی او **تضمن** قريب دی او **الکلام** بعيد دی نو دا وهم پيدا کيدو چې ددې مرجع شايد **الاسناد** يا **تضمن** وي د وجې دنژدې والې نه او **الکلام** د لرې والي دوجې نه مرجع نه ده او ددې دواړو د مرجع جوړېدو په صورت کې د حد تقسيم لازم راتلو او تقسيم خو د محدود کولې شي د دې تولې خرابيو نه د خان ساتلو دپاره ماتن اسم اشاره بعيده ذکر کړه ددې دپاره چې د دې مشارٌ اليه صرف کلام جوړ شي او د الاسناد او تضمن د مشارٌ اليه د جوړېدو احتمال بالکل ختم شي.

ضمن اسمین: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: د الا في اسمین عبارت صحیح نه دی ځکه چې في د ظرفیت دپاره راځي ددې ما بعد ظرف جوړیږي، او ما قبل یې مظروف جوړیږي او په دې دواړو کې مغائرت وي او دلته مظروف خو کلام دی او ظرف اسمین دی او اسمین هم کلام دی نو ظرف او مظروف یو شول نو ظرفية الشئ لنفسه لازم راغلو، نو تقدیر د عبارت داسې شو چې لا یتاتی الکلام الا في الکلام او ظرفیة الشیء لنفسه باطل دی

**جواب**: شارح د ضمن لفظ راوړو او جواب یې ورکړو، چې دا ظرفیة الشئ لنفسه نه دی، بلکې ظرفیة الخاص للعام دی او دا صحیح دي، ځکه چې د خاص په ضمن کې عام موجود وي دلته چې ظرف دی نو هغه عام دی، ددې په وجود کې د راتلو دوه صورتونه دي، یود في اسمین والاصورت او بل د فی اسم و فعل والاصورت او فی اسمین په دې صورت کې چې کلام په وجود کې راځي. ظاهره ده چې هغه خاص وي د مطلق کلام نه نو ظرف خاص شو او مظروف عام شو، نو د ظرفیة الخاص للعام د قبیلې نه جوړ شو دا عبارت چې صحیح دی نو فلا اعتراض

احدهما منه والاخر مسند الیه: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا دی چې مونږ ته تاسو دوه اسمونه خو د هغې نه کلام په وجود کې نه راځي لکه غلام زیدٌ؟

**جواب**: د اسمین نه مراد مطلق دوه اسمونه ، نه دي، بلکې داسې دوه اسمونه ترې نه مراد دي چې په هغې کې یو مسند الیه او دویم مسند جوړیږي.

في بعض النسخ او في فعل و اسم: په دې عبارت سره شارح اختلاف د نسخو بیانوي چې خلاصه داده چې په بعضو نسخو کې اسم یې مقدم کړې دی که چیرته دا نسخه صحیح وي، نو وجه تقدیم به ددې شرافت وي د پورتني فعل هغه چې ظاهر دی چې اسم مسند او مسندالیه دواړه جوړیږي او الکلام لره په وجود ورکولو کې اسم د فعل محتاج نه دی په خلاف د فعل نه چې هغه صرف مسند جوړیدای شي او مسندالیه نه شي جوړیدای نو کلام لره په وجود ورکولو دفعل اسم ته محتاج وي او په بعضو نسخو کې فعل لره یې مقدم کړی دی وجه د تقدیم یې داده، چې په ترتیب کې فعل مقدم وي په اسم باندې لکه څنګه چې په جمله فعلیه کې وي.

فان الترتیب الثنائي العقلي: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: د کلمې په تقسیم کې د اداتو د حصر ذکر ونه کړو نو د کلام په تقسیم کې یې د اداتو د حصر ذکر ولې وکړو؟

**جواب**: هلته د اقسام ثلاثه نه علاوه څه دویم احتمال نه و، چې هغې لره د ویستلو لپاره د اداة حصر ذکر کوي او دلته عقلي طریقې سره (۶) احتمالات دي. چې په هغې کې صرف دوه داسې احتمالات صحیح دي، چې د هغې نه کلام مرکب وي نو د باقي احتمالات د ویستلو لپاره اداة د حصر لره بې ذکر کړو.

و نحو یازید بتقدیر ادعوا زیداً: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: تا وویل چې کلام صرف د اسم او فعل اویا د دوه اسمونو نه مرکب وي نو زه به تاته وښائم چې کلام د اسم او حرف نه هم مرکب وي، لکه په یازید کې لفظ یا حرف دی او زید اسم دی او د دې دواړو نه کلام مرکب شوې دی.

**جواب**: دلته یا او زید دواړه لره په کلام کې هیڅ دخل نشته دی بلکې یا حرف ندا قائمقام د ادعوا دی او کلام ادعوا دی، چې په دې کې یو فعل په خپله ادعوا دی او دویم په دې کې انا ضمیر مستتر اسم دی د دې دواړو نه کلام مرکب کېږي، نو یازید کې هم کلام دی اسم او فعل نه مرکب شو، د حرف او اسم نه مرکب نه دی

| |
|---|
| اَلْاِسْمُ مَا دَلَّ اَیْ کَلِمَةٌ دَلَّتْ عَلٰی مَعْنًی کَائِنٍ فِیْ نَفْسِهٖ اَیْ فِیْ نَفْسٍ مَا دَلَّ یَعْنِی الْکَلِمَةُ فَتَذْکِیْرُ |
| اسم هغه کلمه ده چې دلالت کوي په معنی چې کائنه وي په نفس د کلمې کې یعنې په نفس د کلمه کې نوتذکیر د |
| الضَّمِیْرِ بِنَاءً عَلٰی لَفْظِ الْمَوْصُوْلِ قَالَ الْمُصَنِّفُ رح فِی الْاِیْضَاحِ شَرْحِ الْمُفَصَّلِ اَلضَّمِیْرُ فِیْ مَا دَلَّ عَلٰی |
| ضمیر بناء دي په لفظ د موصول باندې وویل مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ په ایضاح شرح د مفصل کې ضمیر په ما دل علی |
| مَعْنًی فِیْ نَفْسِهٖ یَرْجِعُ اِلٰی مَعْنًی اَیْ مَا دَلَّ عَلٰی مَعْنًی بِاِعْتِبَارِهٖ فِیْ نَفْسِهٖ |
| معنی في نفسه کې راجع دي معنی ته یعنې هغه چې دلالت کوي په معنی په اعتبار د دې معنی په نفس د دې کې |
| وَ بِالنَّظَرِ اِلَیْهِ فِیْ نَفْسِهٖ لَا بِاِعْتِبَارِ اَمْرٍ خَارِجٍ کَقَوْلِكَ الدَّارُ فِیْ نَفْسِهَا |
| او په نظر سره دې معنی ته په نفس د دې کې نه په اعتبار د امر خارج سره د دې نه لکه د اقول ستا الدار في نفسها |
| حُکْمُهَا کَذَا اَیْ لَا بِاِعْتِبَارِ اَمْرٍ خَارِجٍ عَنْهَا وَ لِذٰلِكَ قِیْلَ اَلْحَرْفُ مَا دَلَّ عَلٰی |
| حکمها کذا یعنې نه په اعتبار د امر خارج د دې نه د دې وجې نه وویل شوې دي چې حرف هغه دي چې دلالت کوي په |
| مَعْنًی فِیْ غَیْرِهٖ اَیْ حَاصِلٍ فِیْ غَیْرِهٖ اَیْ بِاِعْتِبَارِ مُتَعَلِّقِهٖ لَا بِاِعْتِبَارِهٖ فِیْ نَفْسِهٖ اِنْتَهٰی کَلَامُهٗ. |
| معنی د غیر کې یعنې حاصل وي په غیر کې یعنې په اعتبار د متعلق سره نه په اعتبار د نفس سره ختم شو کلام د مصنف |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب دکافيې داسم تعريف او تفصيل بيانوي اوددې ځاى نه صاحب دکافيې داقسامِ ثلاثو تعريفات بالتفصيل بيانوي اسم ته په اخوينو يعنې فعل او حرف باندې شرافت حاصل دي نو ددې شرافت دوجې نه يې مقدم کړو.

**اغراض دجامي** : كلمة دلت: په دې عبارت سره شارح ددوه سوالونو جوابات ورکوي

**اول سوال** :تا مبتدا هم الاسم معرفه راوړې ده او خبر هم معرفه، ځکه چې ما موصوله ده او اسم موصول معرفه وي نو کله چې مبتدا او خبر دواړه معرفه وي نو ضمير فعصل راوړلی شي نو تا د ضمير فصل ذکر ولې ونه کړو؟

**جواب** : شارح جواب ورکړی دی چې اى كلمة کلمه يې نکره راوړه او وي ويل چې دا ما موصوله نه ده، بلکې ما موصوفه ده. چې د نکرې په حکم کې وي، ځکه چې دا مقام د خبر دی او اصل په خبر کې نکارت وي

**دوهم سوال**: چې ته د ما نه څه مراد اخلې، عقلا څلور احتمالات دي مګر يو هم صحيح نه دي چې هغه څلور اسم اشاره يا شيء يا لفظ يا کلمه چې داهر يو احتمال مراد کوې نو صحيح نه دي که ته اسم مراد کړې نو اخذ د محدود راځي په حد اواخذ دمحدود په حد کې دا مستلزم وي دور لره او دور باطل دي که چيرته شئ مراد اخلې نو دوال اربعه اونقوش دزيد کوم چې په ديوال ليکل شوې وي په هغه باندې هم تعريف داسم صادقيږي اوکه چيرته لفظ مراد اخلې نو دزيد قائم په مجموعې باندې داسم تعريف صادقيږي اوهمدارنګې ټول مرکبات اوکه چيرته کلمه مراد اخلې نو د دل دضمير اومرجع په مينځ کې مطابقت نه پاتې کيږي کلمه مؤنث ده او د دل ضمير مذکر دي.

**جواب** :شارح كلمة دلت جدا ذکر کړو نو په دې سره جواب کوي چې زمونږ مطلب په څلورو احتمالاتو کې کلمه ده باقي پاتې شو ستا دا سوال چې دضمير او مرجع په مينځ کې مطابقت نشته نو جواب دا دی چې لفظ دما په اعتبار د الفاظو سره مذکر دی ددې وجه نه دې طرف ته ضمير راجع کيدونکی هغه مذکر راوړلی شو.

كائنٌ : په دې عبارت سره شارح دبعضې شارحينو ترديد کوي : چې بعضو في نفسه ظرف لغو ګرځولې او متعلق کړې يې تر مادل پورې ، علامه جامي وايي چې في نفسه ظرف مستقر دی

اومتعلق دي تر كائنٌ پورې، د معنىً صفت دى د دې وجې نه كه چېرې مادل متعلق شي نو سوال وارديږي چې د دلالت صله على يا باء راځي في نه راځي

في نفس مادل يعني الكلمة فتذكير الضمير بناء لى لفظ الموصول الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: د في نفسه ضمير به تاسو څه جوړوئ، اسم يا كلمه يا معنى كوم يو هم چې جوړ كړئ، نو صحيح نه دى كه چېرې اسم جوړ كړئ، نو پنځه خرابيانې لازم راځي

۱: اخذ دمحدود په حد كې ، (۲) عدم مطابقت په مينځ دتفصيل اواجمال كې ، (۳)ظرفيت د الاسم دپاره دمعنى به لازم راځي،(۴) توجيه القول بما لا يرضى به القائل به لازم راشي ،(۵) د حرف تعريف به باطل شي ځكه چې اسم اوحرف دواړه په خپل مينځ كې يو بل سره مقابل دي

**جواب**: شارح د دې دوه جوابات ذكر كړي دي:

**اول جواب**: چې خلاصه د جواب داده، چې مونږه د دې مرجع كلمې لره جوړوو د اولنى خرابى جواب دا دى، چې د ضمير مذكر كېدل د موصول په بناء باندې دي، ځكه چې لفظ د مامذكر دى د دوهمې خرابى جواب دادى چې د مفصل په شرح ايضاح كې مصنف د في نفسه ضمير مرجع معنىً د دې دپاره جوړ كړې دى چې هغه مرجع نږدې وه او په مفصل كې هيڅ وجه دحصر نه وه ، اود دريمې خرابى جواب دادى چې ظرف په دوه قسمه دي ظرف حقيقي او ظرف تشبيهي، كلمه اګر چې د معنىً لپاره حقيقتاً خو ظرف نه دى مګرتشبيهي ضرور دى ، د څلورمې خرابى جواب دادى چې د حرف تعريف هم صحيح دى ځكه چې كله د اسم په تعريف كې د في نفسه د ضمير مرجع كلمه يې جوړه كړې ده او معنى يې كړې ده، چې اسم هغه كلمه ده چې دلالت كوي په معنى باندې په اعتبار د خپل ذات سره يعني هغه كلمه مستقل بالمفهوميت وي، نو د حرف په تعريف كې د في غيره ضمير مرجع به هم كلمه وي اود مادل على معنىً في غير الكلمة مطلب به داشي، چې حرف هغه كلمه ده چې دلالت كوي په معنى باندې په اعتبار د خپل غير كې ، يعني هغه معنى چې غير مستقل باالمفهوميت وي.

قال المصنف في الايضاح شرح المفصل: په دې عبارت سره شارح ددوهم جواب ذكر كوي:

**دوهم جواب**: يا خو مونږ د في نفسه د ضمير مرجع معنىً لره جوړوو، لكه څنګه چې مصنف رَحِمَهُ‌اللهُ په خپله د ايضاح په شرح مفصل كې جوړه كړې ده.

# د حاصل او محصول بحث :

| وَ مَحْصُوْلُهُ مَا ذَكَرَهُ بَعْضُ الْمُحَقِّقِيْنَ حَيْثُ قَالَ كَمَا اَنَّ فِي الْخَارِجِ مَوْجُوْداً قَائِماً |
| --- |
| اومحصول هغه چې ذكر كړي بعضې محققينوپه داسې شان سره چې ويلې دي چې په خارج كې موجودقائم |
| بِذَاتِهِ وَ مَوْجُوْداً قَائِمًا بِغَيْرِهِ كَذٰلِكَ فِي الذِّهْنِ مَعْقُوْلٌ هُوَ مُدْرِكٌ قَصْداً مَلْحُوْظاً فِيْ ذَاتِهِ |
| بالذات اوموجودقائم بالغيرهمدارنگې په ذهن كې معقول دامدرک دي قصداًچې ملحوظ وي په ذات خپل |
| يَصْلُحُ اَنْ يَّحْكُمَ عَلَيْهِ وَ بِهٖ وَ مَعْقُوْلٌ هُوَ مُدْرِكٌ تَبْعاً وَ آلَةً |
| كې صالح ددې چې حكم وكړي شي په دې باندې اوددې دپاره اومعقول هغه مدرک دي تبعا اوآله ده دپاره د |
| الْمُلَاحَظَةِ غَيْرِهٖ فَلَا يَصْلُحُ لِشَيْءٍ مِّنْهُمَا فَالْاِبْتِدَاءُ مَثَلاً اِذَا لَاحَظَهُ الْعَقْلُ |
| لحاظ دغير پس صالح نه شي كيدې دپاره ديوخيزددواړوپس ابتداء مثلاًكله چې ملحوظه كړي دې لره عقل |
| قَصْداً اَوْ بِالذَّاتِ كَانَ مَعْنًى مُسْتَقِلاً بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ مَلْحُوْظاً فِيْ ذَاتِهٖ وَ لَزِمَهُ تَعَقُّلُ مُتَعَلِّقِهٖ |
| قصداً او بالذات دابه وي معناًمستقل بالمفهومية ملحوظه وي په ذات خپل كې اولازم به وي تعقل دمتعلق |
| اِجْمَالاً وَ تَبْعاً مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ اِلٰى ذِكْرِهٖ وَ هُوَ بِهٰذَا الْاِعْتِبَارِ مَدْلُوْلُ لَفْظِ الْاِبْتِدَاءِ فَقَطْ فَلَا حَاجَةَ |
| ددې اجمالاوتبعاً په غيردحاجت نه ذكرددې ته اودا په دې اعتبارمدلول دلفظ ابتداء ده فقط پس حاجت نشته |
| فِي الدَّلَالَةِ عَلَيْهِ اِلٰى ضَمِّ كَلِمَةٍ اُخْرٰى اِلَيْهِ لِتَدُلَّ عَلٰى مُتَعَلِّقِهٖ وَ هٰذَا هُوَ الْمُرَادُ بِقَوْلِهِمْ |
| دلالت ته په دې باندې ضم دكلمې اخرى ته چې دلالت وكړي په متعلق دهغې باندې اوهمدامراد دي په قول |
| اَنَّ لِلْاِسْمِ وَ الْفِعْلِ مَعْنًى كَائِناً فِيْ نَفْسِ الْكَلِمَةِ الدَّالَّةِ عَلَيْهِ اِذَا |
| ددوي چې داسم او فعل دپاره داسې معنى ده چې كائنه ده په نفس دكلمې چې دال وي په همدې معنى كله چې |
| لَاحَظَهُ الْعَقْلُ مِنْ حَيْثُ هُوَ حَالَةٌ بَيْنَ السَّيْرِ وَ الْبَصْرَةِ مَثَلاً وَ جَعَلَهُ آلَةً |
| ملاحظه كړي عقل په دې اعتبارسره چې دايو حالت دي په مينځ دسير اودبصره كې مثلاً وګرخول دهغې آله |
| لِتَعَرُّفِ حَالِهِمَا كَانَ مَعْنًى غَيْرَ مُسْتَقِلٍ بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ وَلَا يُمْكِنُ اَنْ يَّتَعَقَّلَ اِلَّا |
| دپاره دپيژندلودحال ددواړووي به معنى غيرمستقله بالمفهومية ممكن نه دي چې عقل ته راشي دامعنى مګر |
| بِذِكْرِ مُتَعَلِّقِهٖ بِخُصُوْصِهٖ وَلَا اَنْ يَّدُلَّ عَلَيْهِ اِلَّا بِضَمِّ كَلِمَةٍ اُخْرٰى دَالَّةٍ |
| په ذكر دمتعلق دهغې خاصتاًاونه داچې دلالت وكړي په هغې باندې مګرپه ضم دكلمې آخرې سره چې دلالت كوي |
| عَلٰى مُتَعَلِّقِهٖ. |
| په متعلق دهغې. |

**خلاصه دمتن :** په دې عبارت سره صاحب دكافيې د حاصل اومحصول بيان كوي .

**اغراض دجامي :** ومحصوله: دا په حقيقت كې د يو سوال جواب دي چې كوم دكاف تشبيه

چې کوم په ذکر شوي مثال الدار في نفسها نه پیدا کیږي

**سوال** : خلاصه دسوال داده چې داسم په تعریف کې چې کوم في نفسه ذکر دي نو داد في نفسها په شان نه کیږي ځکه چې د اسم په تعریف کې چې کوم في نفسه ددې مقابله في غیره ده، لکه الدار في نفسها حکمها کذا نو لهذا ستاسو داسم په تعریف کې في نفسه د الدار في نفسها حکما کذا سره تشبیه ورکول صحیح نه دي

**جواب** : د تشبیه نه مقصود دا نه دی. چې مشبه من کل الوجوه د مشبه به په شان وي، بلکې د تشبیه نه مقصود داوي، چې مشبه په وجه د شبهه کې د مشبه به په شان وي. یعنې مشبه په هر اعتبار سره د مشبه به په شان کېدل ضروري نه دي. بلکې صرف په هغه ځیز کې د مشبه به په شان ضروري وي. یعنې چې په کوم ځیز کې تشبیه ورکولې شي

**فالابتداء مثلاً الخ** : د دې ځای نه شارح د مدرك بالذات او د مدرك بالتبع مثال بیانولو سره فرق واضح کول غواړي چې خلاصه یې داده چې ابتداء یوه معنی ده چې کله عقل د دې لحاظ وکړي نو قصداً و بالذات په غیر د خیال کولو نه د مامنه الابتداء نه یعنې په خپله دې لره پېژندل مقصود وي نو په دې صورت کې به دا مدلول جوړ شي د لفظ ابتداء. چې کوم مصدر دی د باب افعال نه چې د هغې معنی د تشریح کړل او په دې صورت کې مدرك بالذات به شي معنی اسمي به یې شي چې مستقل بالمفهومیت به وي او د محکوم علیه او محکوم به صلاحیت به لري . او چې کله عقل ددې لحاظ وساتي بالتبع یعنې دې لره آله جوړه کړي، بصره او د سیر د احوال د پېژندلو د پاره دا خو به معنی دار شي . او د لفظ من مدلول به شي غیر مستقل بالمهفومیت به وي او د محکوم علیه او محکوم به د جوړېدو صلاحیت به نه لري

**ولزمه تعقل متعلقاته اجمالاً** : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال** : چې کله عقل د ابتداء لحاظ وساتي قصداً یا بالذات نو په دې وخت کې به هم دا یو نسبت وي، چې ددې لپاره به د منسوب او منسوب الیه خیال کول او پېژندل ضروري وي. نو دا ابتداء چې کله د لفظ ابتداء مقصدر د باب افتعال مدلول جوړ شي نو هله به د منسوب او منسوب الیه خیال کول او ذکر کول ضروري وي نو دا محتاج شو نو بیا مستقل بالمفهومیت څنګه شو او معنی اسمي څنګه شوه بیا خو دا معنی حرفي جوړه شوه

**جواب**:چې كله ابتداء د باب افتعال د مصدر مدلول جوړېږي. او عقل ددې قصداً او بالذات لحاظ كوي نو په دې وخت كې ددې متعلقات د منسوب او منسوب اليه تصور او تعقل اجمالاً كافي وي په تفصيل سره ددې ذكر كولو ته ضرورت نه وي په خلاف د هغه ابتداء چې د لفظ من معنى او مدلول جوړېږي، او عقل ددې بالتبع لحاظ كوي

| |
|---|
| وَ الْحَاصِلُ اَنَّ لَفْظَ الْاِبْتِدَاءِ مَوْضُوْعٌ لِمَعْنًى كُلِّيٍّ وَ لَفْظَةُ مِنْ مَوْضُوْعَةٌ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْ |
| اونتيجه دبحث داده چې لفظ دابتداء وضع شوې دپاره دمعنى كلي اوداىولفظ دي چې وضع شوې دهريود |
| جُزْئِيَّاتِهِ الْمَخْصُوْصَةِ الْمُتَعَلِّقَةِ مِنْ حَيْثُ اَنَّهَا حَالَاتٌ لِمُتَعَلِّقَاتٍ اَوْ آلَاتٌ لِتَعَرُّفِ |
| جزئياتومخصوصومتعلقودپاره په داسې شان چې داحالات دي دخپلومتعلقاتودپاره اوآلات دي دپاره دپيژندلو |
| اَحْوَالِهَا اَوْ ذٰلِكَ الْمَعْنَى الْكُلِّيِّ يُمْكِنُ اَنْ يَتَعَقَّلَ قَصْدٌ اَوْ يُلَاحِظُهُ فِيْ ذَاتِهِ |
| داحوالودهغې اودامعنى كلي ممكنه ده چې معلومه شي قصداًاوملحوظه شي په تعريف دذات خپل كې پس |
| فَيَسْتَقِلُّ بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ وَ يَصْلُحُ اَنْ يَكُوْنَ مَحْكُوْماً عَلَيْهِ وَ بِهِ وَ اَمَّا تِلْكَ |
| مستقله به شي په اعتباردمفهوميت سره اوصالحه به وي چې شي محكوم عليه اومحكوم به اوهرچې دا |
| الْجُزْئِيَّاتُ فَلَا تَسْتَقِلُّ بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ وَلَا تَصْلُحُ اَنْ تَكُوْنَ مَحْكُوْماً عَلَيْهَا وَ بِهَا |
| جزئيات دي مستقل نه دي په اعتباردمفهوميت سره اوصالح نه دي چې محكوم عليه اومحكوم به وګرځي |
| اِذْ لَا بُدَّ فِيْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا اَنْ يَكُوْنَ مَلْحُوْظاً قَصْداً لِيُمْكِنَ اَنْ يَعْتَبَرَ النِّسْبَةُ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ |
| خكه چې ضروري ده په هريودې كې چې ملحوظ شي قصداًدې دپاره چې معتبرشي نسبت په مينځ ددې اود |
| غَيْرِهِ بَلْ تِلْكَ الْجُزْئِيَّاتُ لَا تَتَعَقَّلُ اِلَّا بِذِكْرِ مُتَعَلِّقَاتِهَا لِتَكُوْنَ آلَاتٍ لِلْمُلَاحِظَةِ |
| غيركې بلكې دغه جزئيات نه معلوميږي مګرپه ذكردمتعلقاتوسره ددې دپاره چې آلات دپاره ملحوظولو د |
| اَحْوَالِهَا وَ هٰذَا هُوَ الْمُرَادُ بِقَوْلِهِمْ اَنَّ الْحَرْفَ كَلِمَةٌ تَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِيْ غَيْرِهَا وَ اِذَا |
| احوالودهغې اوهمدغه مراددي په قول ددوي سره چې حرف كلمه ده چې دلالت كوي په معنى په غيركې هركله |
| عَرَفْتَ هٰذَا عَلِمْتَ اَنَّ الْمُرَادَ بِكَيْنُوْنَةِ الْمَعْنَى فِيْ نَفْسِهِ اِسْتِقْلَالُهُ |
| چې دي دا وپيژندل نو پوه شه چې مراد په كيدلو د معنى په خپل ذات كې استقلال ددې معنى په اعتبار د |
| بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ وَ بِكَيْنُوْنَةِ الْمَعْنَى فِيْ نَفْسِ الْكَلِمَةِ دَلَالَتُهَا عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ اِلٰى ضَمِّ كَلِمَةٍ |
| مفهوميت سره اوپه كيدلودمعنى په نفس دكلمه كې دلالت دمعنى په دې باندې په غير دحاجت نه ضم دكلمې |
| اُخْرٰى اِلَيْهَا لِاِسْتِقْلَالِهِ بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ فَمَرْجِعُ كَيْنُوْنَةِ الْمَعْنَى فِيْ نَفْسِهِ |
| اخرى ته خكه چې استقلال دكلمې په اعتباردمفهوميت سره پس مرجع دكيدلو دمعنى په نفس دمعنى كې او |
| وَ كَيْنُوْنَتِهِ فِيْ نَفْسِ الْكَلِمَةِ الدَّالَّةِ عَلَيْهِ اِلٰى اَمْرٍ وَّاحِدٍ وَ هُوَ اِسْتِقْلَالُهُ |
| كيدلو ددې معنى په نفس د كلمې كې چې دلالت كوي په دې باندې امر واحد ته هغه استقلال ددې معنى |

| بِــالْــمَــفْهُوْمِيَّةِ. |
|---|
| بالمفهومية دي |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافيې دحاصل بيان کوي

**اغراض دجامي** : لفظ الابتداء : په دې عبارت سره شارح ددوه سوالونو جواب ورکوي :

**اول سوال** : چې ابتداء خو يو څيز دی هغه مستقل هم جوړېږي، او غير مستقل هم حال دا دی. چې مستقل او غير مستقل خو د يو بل منافي دي دا دواړه په يو څيز کې نه شي جمع کېدای يعنې يو څيز مستقل او غير مستقل دواړه نه شي جوړېدای

**دوهم سوال** : داچې کله ابتداء معنى مستقل بالمفهوميت دی نو بيا لفظ من لره هم مستقل کېدل په کار دي، ځکه چې د هغې معنى هم ابتداء ده.

**جواب** : شارح ددې سوالونو يو مشترکه جواب ورکوي، چې استقلال او عدم استقلال په دوه جهتونو سره دی لفظ د ابتداء چې کله د باب افتعال نه مصدر وي د دې وضع يو معنى کلي په مقابلې کې د مطلق شروع کول د کوم مکان نه چې وي او کوم فعل لره چې شروع کوي ګويا چې د لفظ ابتداء وضع د مطلق شروع په مقابله کې ده، چې يوه معنى کلي ده (يعنې مطلق شروع کول).

او ددې معنى کلي چې کوم جزئيات دي د سير ابتداء کول د بصره وغيره نه ابتدا کول د خوراك ابتداء کول ددې جزئياتو په مقابل کې لفظ من لره يې وضع کړی دی نو په اول جهت سره استقلال دی او د دويم جهت په اعتبار سره عدم استقلال دی نو کله چې اعتبارات او جهتونه بدل شو نو د تناقض او منافات والا سوال لازم رانغلو.

و اذا عرفت هذا علمت ان المراد : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : چې کله د ه ضمير مرجع معنىً جوړ کړه، نو په اجمال او تفصيل کې مخالفت لازم راځي ځکه چې په اجمال کې يې د ضمير مرجع الکلمة جوړ کړې او دلته ته معنىً جوړوي.

**جواب** : د جواب خلاصه دا ده، چې دا صرف لفظي مخالفت دی په حقيقت کې هيڅ مخالفت نشته دی د دواړو حال يو دی، ځکه چې کله د ضمير مرجع کلمې لره جوړ کړې، نو مفهوم به يې شي کنيونة المعنى في نفس الکلمة، ددې مطلب هم دا دی. چې هغه معنى مستقل بالمفهوميت وي او چې کله د ه ضمير مرجع معنىً لره جوړ کړې نو مفهوم به يې شي کينونة المعنى في المعنى

ددې مطلب هم دا دی. چې هغه معنی مستقل بالمفهوميت وي بهر حال د دواړو حال دا دی، چې هغه معنی مستقل بالمفهوميت وي لهذا په اجمال او تفصيل کې هيڅ مخالفت نشته دی

فَفِيْ هٰذَا الْكِتَابِ الضَّمِيْرُ الْمَجْرُوْرُ فِيْ نَفْسِهٖ يَحْتَمِلُ اَنْ يَرْجِعَ إِلٰى مَا الْمَوْصُوْلَةُ الَّتِيْ هِيَ عِبَارَةٌ عَنِ

پس په دې کتاب کې ضمير مجرور په في نفسه کې احتمال لري چې راجع شي ما موصولې ته چې عبارت دې د

الْكَلِمَةِ وَ هٰذَا هُوَ الظَّاهِرُ لِيَكُوْنَ عَلٰى طَبْقِ مَا سَبَقَ فِيْ وَجْهِ الْحَصْرِ مِنْ كَيْنُوْنَةِ الْمَعْنٰى فِيْ نَفْسِ وَ

کلمې نه او دا ظاهري ده چې شي موافق د ماسبق سره په وجه د حصر کې د کيدلو د معنی نه په نفس د کلمې کې او

يَحْتَمِلُ اَنْ يَرْجِعَ إِلٰى الْمَعْنٰى وَ لِذَا ذِكْرُ الضَّمِيْرِ تَنْبِيْهاً عَلٰى صِحَّةِ إِرَادَةِ

احتمال لري چې راجع شي معنی ته او ددې وجې نه ذکر کړو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ تنبيه په صحت د مراد کولو د

كِلَا الْمَعْنَيَيْنِ وَ لٰكِنْ عِبَارَةُ الْمُفَصَّلِ ظَاهِرَةٌ فِيْ الْمَعْنَى الْاٰخِيْرِ وَ هُوَ إِرْجَاعُ الضَّمِيْرِ إِلَى الْمَعْنٰى

دواړو معنو ليکن عبارت د مفصل ظاهر دې په آخره معنی کې چې هغه راجع کيدل د ضمير دې معنی ته دوجې د

لِعَدَمِ مَسْبُوْقِيَتِهَا بِمَا يَدُلُّ عَلٰى اِعْتِبَارِ كَيْنُوْنَةِ الْمَعْنٰى فِيْ نَفْسِ الْكَلِمَةِ وَ لِهٰذَا اَجْزَمَ

عدم مسبوقيت د معنی نه چې دلالت کوي په اعتبار د کيدلو د معنی په نفس د کلمې کې ددې وجې نه يقيني

الْمُصَنِّفُ رَحِمَهُ اللّٰهُ هُنَاكَ بِرُجُوْعِهٖ إِلَى الْمَعْنٰى وَ بِمَا سَبَقَ مِنَ التَّحْقِيْقِ فَظَهَرَ اَنَّهٗ

کړو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دلته په راجع کولو ددې ضمير معنی ته او هغه چې تير شو د تحقيق نه پس ښکاره شوه چې

لَا يَخْتَلُّ حَدُّ الْاِسْمِ جَمْعاً وَلَا حَدُّ الْحَرْفِ مَنْعاً بِالْاَسْمَاءِ

نه ګډوډيږي تعريف د اسم په اعتبار د جمعيت سره او نه تعريف د حرف په اعتبار د معنويت سره په هغه اسماو چې

اللَّازِمَةِ الْاِضَافَةِ مِثْلُ ذُوْ وَفَوْقٍ وَتَحْتٍ وَ قُدَّامٍ وَ خَلْفٍ إِلٰى غَيْرِ ذٰلِكَ لِاَنَّ مَعَانِيْهَا مَفْهُوْمَاتٌ كُلِّيَّةٌ مُسْتَقِلَّةٌ

لازم دي اضافت لره لکه ذو، فوق، تحت، قدام او خلف وغيره ځکه چې معنی ددې مفهومات کليه دي چې مستقل

بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ مَلْحُوْظَةٌ فِيْ حَدِّ ذَاتِهَا لَزِمَهَا تَعَقُّلُ مُتَعَلِّقَاتِهَا إِجْمَالاً

دي په اعتبار د مفهوم سره ملحوظ دي په تعريف د ذات ددې کې پس لازم شو تعقل د متعلقاتو د هغې لره اجمالاً

وَ تَبَعاً مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ إِلٰى ذِكْرِهَا لٰكِنْ لِمَا جَرَتِ الْعَادَةُ بِاِسْتِعْمَالِهَا فِيْ

او تبعاً په غير د حاجت نه ذکر کولو د هغې ته ليکن کله چې جاري وو عادت په استعمالولو د هغې په خپلو

مَفْهُوْمَاتِهَا مُضَافَةً إِلٰى مُتَعَلِّقَاتٍ مَخْصُوْصَةٍ لِاَنَّهَا اَلْغَرْضُ مِنْ وَضْعِهَا لَزِمَ ذِكْرُهَا لِفَهْمِ

مفهوماتو کې چې مضاف وي متعلقات مخصوصو ته ځکه چې غرض د وضع د هغې نه لازموي ذکر د هغې په فهم

هٰذِهِ الْخُصُوْصِيَّاتِ لَا لِاَجْلِ فَهْمِ اَصْلِ الْمَعْنٰى فِيْ دَالَّةٌ عَلٰى مَعَانِيْهَا مُعْتَبَرَةٌ فِيْ حَدِّ

دد غو خصوصياتو باندې نه دوجې د فهم د اصلي معنی پس دا دلالت کوي په معانيو خپلو چې معتبرو وي په تعريف

نَفْسِهَا لَا فِيْ غَيْرِهَا فِيْ دَاخِلَةٍ فِيْ حَدِّ الْاِسْمِ لَا فِيْ الْحَرْفِ.

د ذات د هغوي کې نه په بل کې پس دا داخل دي په تعريف د اسم کې نه په حرف کې

**اغراض دجامي** : وبما سبق من التحقيق ظهر انه : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال** : تعريف داسم دې جامع نه دى او د حرف تعريف دى مانع نه دى. ځكه چې اسماء لازم الاضافة اسم دى خو په دې باندې د حرف تعريف صادق راځي، ځكه چې ددې معنى د مضاف اليه نه په غير په ذهن كې نه راځي، لكه فوق چې ترڅو پورې فوق السطح وغيره ونه وايي نو پته نه لږي چې ددې څه مطلب اومقصد دى.

**جواب** : چې د اسماء لازم الاضافة وضع هم په اصل كې ديو مفهوم كلي په مقابله كې دى او هغه مفهوم كلي مستقل بالمفهوميت دى او ددې د متعلقاتو تعلق اجمالاً كافي وي د ذكر كولو ضرورت نه وي لكه دلغت كتاب ويونكي استاذ طالبانو ته وايي چې د فوق معنى ده پورته اود تحتَ معنى ده لاندې د قدام معنى ده مخكې نو په دې ټولو مفهومات كليو باندې ددې دلالت مستقل وي د طالبانو په ذهن كې دمتعلقاتو اودمضاف اليه تصور اجمالاً راځي.

بيا په دې باندې اعتراض كيږي چې كله ددې دلالت په مفهومات كليو باندې مستقل دې نو بيا دې ته اضافت ولې لازم دى.

**جواب** : ددې جواب دادې چې داصلِ وضع په اعتبار سره خو دمضاف اليه ضرورت نشته مګر په اعتبار داستعمال سره ده ته اضافت لازم وي چې عرب په خپلو محاوراتو كې چې كله دا استعمالوي نو داستعمال نه په غير يې نه استعمالوي ځكه چې مضاف اليه نه په غير ددې څه خاص معنى نه معلوميږي.

**نو خلاصه دجواب** داشوه چې داصلِ وضع په اعتبارسره دې ته دمضاف اليه ضرورت نه وي.

| وَ لَمَّا كَانَ الْفِعْلُ دَالاً عَلَى مَعْنًى فِيْ نَفْسِهٖ بِاِعْتِبَارِ مَعْنَاهُ التَّضَمُّنِيْ اَعْنِيْ الْحَدَثُ وَ كَانَ ذٰلِكَ |
|---|
| او هر كله چې وو فعل چې دلالت يې كول په معنى خپله په اعتبار د معنى تضمني سره يعني حدوث او وي دغه |
| الْمَعْنٰى مُقْتَرِنًا مَعَ اَحَدِ الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ فِيْ الْفَهْمِ عَنْ لَفْظِ الْفِعْلِ اَخْرَجَهٗ بِقَوْلِهٖ غَيْرَ مُقْتَرِنٍ |
| معنى مقترنه تر يو دازمنو ثلاثو پورې په فهم كې د لفظ د فعل نه خارج يې كړو په قول د مصنف چې غير مقترن |
| بِاَحَدِ الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ اَىْ غَيْرَ مُقْتَرِنٍ مَعَ اَحَدِ الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ فِيْ الْفَهْمِ عَنْ لَفْظِهِ الدَّالِ عَلَيْهِ |
| باحد الازمنة الثلاثة يعني غيرمقترن به وي سره ددريوزمانويه فهم كې دهغه لفظ نه چې دال وي په هغې باندې |
| فَهُوَ صِفَةٌ بَعْدَ صِفَةٍ لِلْمَعْنٰى فَبِالصِّفَةِ الْاُوْلٰى اَخْرَجَ الْحَرْفُ عَنْ حَدِّ الْاِسْمِ وَ |
| پس دا صفت شودپاره دمعنى وروستودبل صفت نه پس په اول صفت سره خارج شو حرف د تعريف داسم نه او په |

| بِالثَّانِيَةِ الْفِعْلُ وَ الْمُرَادُ بِعَدَمِ الْاِقْتِرَانِ اَنْ يَكُوْنَ بِحَسْبِ الْوَضْعِ الْاَوَّلِ فَدَخَلَ فِيْهِ |
|---|
| دوهم صفت سره خارج شوفعل مراد په عدم اقتران چې وي به په اعتبار داولي وضعې پس داخل شو په دې کې |
| اَسْمَاءُ الْاَفْعَالِ لِاَنَّ جَمِيْعَهَا اِمَّا مَنْقُوْلَةٌ عَنِ الْمَصَادِرِ الْاَصْلِيَّةِ سَوَاءٌ كَانَ النَّقْلُ فِيْهَا صَرِيْحاً نَحْوُ |
| اسماءافعال خکه چې داتول يا منقول دي دمصادرواصليونه برابره خبره ده چې وي نقل په هغې کې صريح لکه |
| رُوَيْدَ فَاِنَّهُ قَدْ يَسْتَعْمِلُ مَصْدَراً اَيْضاً اَوْ غَيْرَ صَرِيْحٍ نَحْوُ هَيْهَاتَ فَاِنَّهُ وَ اِنْ لَمْ يَسْتَعْمِلْ مَصْدَراً اِلاَّ اَنَّهُ |
| رويدخکه چې دامستعمليږي مصدرهم ياغيرصريح لکه هيهات خکه چې اګرکه مستعمل نه شي مصدرمګردا |
| عَلٰى وَزْنِ قَوْقَاةٍ مَصْدَرُ قَوْقٰى اَوْ عَنِ الْمَصَادِرِ الَّتِيْ كَانَتْ فِي الْاَصْلِ اَصْوَاتاً نَحْوُ صَهْ اَوْ عَنِ الظَّرْفِ |
| په وزن دقوقاة چې مصدر دقوقي دي اويادهغه مصادرونه وي چې هغه په اصل کې اصوات دي لکه صه اويادظرف |
| اَوِ الْجَارِ وَ الْمَجْرُوْرِ نَحْوُ اَمَامَكَ زَيْداً وَ عَلَيْكَ زَيْداً فَلَيْسَ لِشَيْءٍ مِّنْهَا الدَّلَالَةُ عَلٰى اَحَدِ |
| نه وي اوياد جاراومجرور نه وي لکه امامک زيدا و عليک زيدا پس نشته ددې ځيز دپاره ددغو الفاظو دلالت په يو |
| الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ بِحَسْبِ الْوَضْعِ الْاَوَّلِ. |
| دازمنو ثلاثو په اعتبار دوضع اولي سره |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره غرض شارح داسم په تعريف باندې سوالات وراد شوې نو داد هغه سوالونو جواب ورکوي.

**اغراض د جامي** : ولماكان الفعل دالاً: په دې عبارت سره غرض د شارح په تعريف داسم باندې يو سوال ذکر کوي:

**سوال** : داسم په تعريف کې مادل على معنى في نفسه کې دمعنى نه مراد ستا څه ځيزدي مطابقي، تضمني اوکه التزامي که چيرته مطابقي ترې نه مراد اخلې نو بيا د معنى في نفسه دقيدنه څنګه چې حرف خارجيږي داسم دتعريف نه همدارنګې فعل هم خارجيږي خکه چې د معنى في نفسه نه مراد معنى مستقل وي اوفعل مطابقي معنى غير مستقل وي خکه چې فعل نوم دې ددرې ځيزنو دمجموعې چې هغه درې شيان : زمانه ،نسبت الى الفاعل او معنى مصدري په دې کې نسبت غير مستقل دې اوکوم ځيزچې دمستقل اوغيرمستقل نه مرکب وي هغه هم غيرمستقل وي نوثابتيږي داخبره چې دفعل مطابقي معنى غيرمستقل ده نو دمعنى في نفسه دقيدنه څنګه چې حرف خارجيږي نو همدارنګې فعل ترې هم خارج شو نو بيا خو غير مقترن باحدالازمنة الثلاثة خو مستدرک شو اوس که چيرته ،ته دمعنى نه مراد تضمني اخلې نو اسماء بسيطه داسم دتعريف نه خارجيږيَ خکه چې دهغې جزنه وي نو معنى تضمني به دکوم ځاى نه وي لکه

وي اوکه عام مراداخلي نو هغه هم دخاص په ضمن کې موجودوي

**جواب** : شارح په ولماکان الفعل دالا سره ددې سوال جواب ورکړو چې داسم په تعریف کې چې کومه معنی ده ددې نه مرادعام دي که مطابقي وي اوکه تضمني نه التزامي یعنې دالتزامي نه غیر باقي دواړو کې په نسبت سره دي کې عموم دي اوس په دې کې اسماء بسیطه داخلیږي خکه چې ددې معنی مطابقي وي اوفعل ددې قید نه نه خارجیږي خکه چې اګرکه دفعل معنی مطابقي غیرمستقل وي خودفعل معنی تضمني یعنې معنی مصدري مستقل وي نوددې قید نه ،نه خارجیږي نو غیرمقترن باحد الازمنة الثلاثة قید ددې دخارجولو دپاره ولړولو نو هغه قید مستدرک اوبې فائدې نه دي .

لمافرغ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال**: چې دتعریف تتمه تقسیمیږي مصنف رَحِمَهُ اللهُ دتعریف نه پس اودتقسیم نه مخکې د خواصوبیان ولې شروع کړودتعریف اودتقسیم په مینځ کې فاصله راوړل په اجنبي سره صحیح نه دي

**جواب** : دخواصو بیان هم دتعریف تتمه وي دتقسیم په شان خکه چې ددې نه هم دمعرف دمعرفت فائده حاصلیږي نو فاصله داجنبي لازمه رانغله وجه ددې داده چې مثلاً چې داسم دپاره چې کوم دوه وجوده دي یو وجودذهني اودوهم وجودخارجي دوجودذهني معرفت دتعریف نه حاصلیږي اودوجود خارجي معرفت دخواصو دمعرفت نه حاصلیږي .

| |
|---|
| وَ خَرَجَ عَنْهُ الْاَفْعَالُ الْمُنْسَلِخَةُ عَنِ الزَّمَانِ نَحْوِ عَسَى وَ كَادَ لِاقْتِرَانِ مَعَانِيْهَا بِهٖ بِحَسْبِ اَصْلِ |
| اوخارج شوددې نه افعال منسلخه عن الزمان لکه عسی وکاددوچې داقتران دمعانیودهغې نه په اعتباردأصل |
| الْوَضْعِ وَ خَرَجَ عَنْهُ الْمُضَارِعُ اَيْضاً فَاِنَّهٗ عَلٰى تَقْدِيْرِ اشْتِرَاكِهٖ بَيْنَ الْحَالِ وَ الْاِسْتِقْبَالِ يَدُلُّ |
| وضعي سره اوخارج شوددې نه مضارع هم خکه چې په تقدیرداشتراک ددې په مینځ دحال اواستقبال کې دلالت |
| عَلٰى زَمَانَيْنِ مُعَيَّنَيْنِ مِنَ الْاَزْمِنَةِ الثَّلٰثَةِ فَيَدُلُّ عَلٰى وَاحِدٍ مُعَيَّنٍ اَيْضاً فِيْ ضِمْنِهِمَا اِذْ |
| کوي په دووزمانومعینوباندې دیوددریوزمانونه پس دلالت کوي په یوې معنی هم په ضمن ددوو کې خکه چې |
| لَا يَقْدَحُ فِي الدَّلَالَةِ عَلٰى اَحَدٍ مُعَيَّنٍ اَلدَّلَالَةُ عَلٰى مَا سِوَاهُ نَعَمْ يَقْدَحُ فِيْ اِرَادَةِ الْمُعَيَّنِ اِرَادَةُ مَا سِوَاهُ |
| بعیده نه ده په دلالت کې په یو معین باندې دلالت په نورو هغو بعیده ده په ارادې د معینې سره اراده د ماسوی |
| وَ اَيْنَ الدَّلَالَةُ مِنَ الْاِرَادَةِ . |
| اوچیرته دي دلالت دارادې نه |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره شارح دقيوداتو فوائد بيانوي

**اغراض دجامي** : وخرج عن المضارع : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال** : ستا تعريف داسم مانع نه دي ددخول دغير نه ځكه چې فعل مضارع ستا په تعريف كې داخليږي ځكه چې تاوويل چې داسم معنى ددريو زمانو نه يوې زمانې پورې مقترنه نه وي اوفعل مضارع معنى هم ديوې زمانې پورې مقترنه نه وي بلكې ددوو پورې مقترنه وي

**جواب** : په فعل مضارع كې دري (۳) مذاهب دي :

(۱) په حال كې حقيقت ، په استقبال كې مجاز . (۲) په حال كې مجاز ، په استقبال كې حقيقت ، (۳) په حال او استقبال دواړو كې شريك وي نو په اولنې دوو باندې خو سوال نه واردېږي ليكن كه چيرته دريم مذهب واخستل شي داشتراك والانو ددې جواب بيا دادې چې فعل مضارع كوم چې په دوه زمانوباندې دلالت كوي نوددې په ضمن كې په يو باندې هم دلالت كوي اوديوسره مقترن هم وي نو داسم تعريف نه به فعل مضارع خارجه شي .

اذلا يقدح: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : تا وويل چې فعل مضارع په دواړو زمانو باندې دلالت كوي نو چې كله په دواړو زمانو باندې دلالت كوي نو لازميږي عموم الاشتراك او عموم الاشتراك خو جائز نه دي .

**جواب** : دلته دوه شيان دي تاسو ته دالتباس دوجې نه غلط فهمي شوې يو څيزدي دلالت دادلفظ صفت دي چې معنى يې ده معنى دلفظ نه په ذهن كې راتلل او دې ته دلالت وايي په دې كې عموم اشتراك جائز وي لكه لفظ دعين په ډيرو معنو باندې دلالت كوي .

## خواص داسم :

| وَ لَمَّا فَرَغَ مِنْ بَيَانِ حَدِّ الْإِسْمِ أَرَادَ أَنْ يَذْكُرَ بَعْضَ خَوَاصِّهِ |
|---|
| كله چې فارغ شو مصنف دبيان دتعريف داسم نه نو اراده يې وكړه چې ذكركړي بعضې خواص داسم ددې دپاره |
| لِيَزِيْدَ زِيَادَةَ مَعْرِفَةٍ بِهِ فَقَالَ وَ مِنْ خَوَاصِّهِ مُنَبِّهاً بِصِيغَةِ جَمْعِ الْكَثْرَةِ عَلَى |
| چې فائده وركړي دډيرتعريف نوويې ويل اودخواصوداسم نه تنبيه وركړه مصنف په صيغې دجمع كثرتې سره په |
| كَثْرَتِهَا وَ بِمِنَ التَّبْعِيضِيَّةِ عَلَى أَنَّ مَا ذَكَرَهُ بَعْضٌ مِنْهَا وَ هِيَ جَمْعُ خَاصَّةٍ |
| كثرت دخواصوداسم باندې اوپه مِن تبعيضيه سره هغه چې ذكر كړي دي بعضې دهغې نه اوداجمع دخاصة ده |
| وَ خَاصَّةُ الشَّيْءِ مَا يَخْتَصُّ بِهِ وَلَا يُوْجَدُ فِيْ غَيْرِهِ وَ هِيَ إِمَّا شَامِلَةٌ لِجَمِيْعِ أَفْرَادِهِ |
| اوخاصه دڅيزهغه ده چې خاص وي ددې پورې او نه موجوديږي په غيرددې كې اودابه ياشامله وي ټولو افرادو |

| مَا هِيَ خَاصَّةٌ لَهُ كَالْكَاتِبِ بِالْقُوَّةِ لِلْإِنْسَانِ اَوْ غَيْرُ شَامِلَةٍ كَالْكَاتِبِ بِالْفِعْلِ لَهُ. |
|---|
| خاصو لره لكه كتابت بالقوة انسان ته اويابه غيرشامل وي لكه كتابت بالفعل انسان ته |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب دكافيې خواص داسم بيانوي

**اغراض د جامي** : منبها: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب وركول دي

**سوال** : مصنف خو صرف پنځه خاصې ذكر كړي دي اوصيغه دجمع يې دكثرت دپاره راوړه حال دادې چې ددې مناسب خودجمع قلت صيغه وه نه د جمع كثرت

**جواب** : دجمع كثرت صيغه يې راوړه د في نفسه كثرت طرف ته يې اشاره وكړه چې په نفس الامر كې داسم خواص ډير دي اومن تبعيضيه يې راوړه اواشاره يې وكړه چې په دې كې به صرف بعضو لره ذكر كومه اوبعضو لره ددې دپاره بيان كړل چې مقصود وه وضاحت دتعريف او هغه ددې نه پوره كيدو اودې پنځو لره يې ددې دپاره بيان كړل چې دا زيات مشهور دي

وهي جمع خاصة: ددې ځاى نه شارح دخاصې تحقيق كوي چې خواص جمع د خاصې ده اود خاصې تعريف دي مايختص بالشئ ولايوجد في غيره چې خاص وي تر يو ځيز پورې اونه موندل كيږي په غيرددې كې ، اوس په دې باندې يو سوال راځي :

**سوال** : چې دخاصې په تعريف كې ولا يوجد في غيره قيد زائد دي ځكه چې داقيد د مايختص بالشئ نه په ذهن كراځي اختصاص بالشئ خو هله كيږي چې كله ددې په غير كې ونه موندلې شي نودوباره ددې دذكركولو څه ضرورت وو ؟.

**جواب** : دادقبيلې د تصريح بما علم ضمناً نه دي يامونږ وايو چې په مايختص كې دننه چې كوم اختصاص دي دهغې دوه جزونه دي جزايجابي مايوجد فيه اوجز سلبي ولايوجد في غيره نومونږ په اختصاص كې د جزء سلبي تجريد كوو او مايختص بالشئ معنى به شي مايوجدفيه فقط .

وهي اما شاملة: په دې عبارت سره شارح دخاصې تقسيم كوي چې دخاصې دوه قسمه دي : شامله اوغيرشامله : شامله هغې ته وايي چې دمختص به په ټولوافرادوكې موندلې شي لكه كاتب بالقوة دانسان دپاره خاصله شامله ده ، اوغير شامله هغې ته وايي چې دمختص به په ټولو افرادوكې موندلې كيږي نه بلكې په بعضوكې موندلې شي اوپه بعضو كې نه شي موندلې لكه كاتب بالفعل دانسان دپاره خاصه غيرشامله ده .

## دخول د لام :

| |
|---|
| فَمِنْ خَوَاصِّ الْاِسْمِ دُخُوْلُ اللاَّمِ اَیْ لَامِ التَّعْرِيْفِ وَ لَوْ قَالَ دُخُوْلُ حَرْفِ التَّعْرِيْفِ لَكَانَ شَامِلًا |
| پس د خواصو د اسم نه دخول د لام دي يعني لام د تعريف كه چيرته ويلي وي مصنف حرف التعريف نو دا به شامل |
| لِلْمِيْمِ فِيْ مِثْلِ قَوْلِهٖ عَلَيْهِ السَّلَام لَيْسَ مِنَ امْبِرِّ امْصِيَامُ فِيْ امْسَفَرِ لٰكِنَّهٗ لَمْ يَتَعَرَّضْ لَهٗ |
| وي ميم ته هم په مثل د قول د نبي عليه السلام كي ليس من امبر امصيام في امسفر ليكن تعارض ونه كړو هغې ته د |
| لِعَدَمِ شُهْرَتِهٖ وَ فِيْ اخْتِيَارِهٖ اَللَّامُ اِشَارَةٌ اِلٰى اَنَّ الْمُخْتَارَ عِنْدَهٗ مَا |
| وجې د نه شهرت د هغې نه او په اختيار د مصنف كې لام ته اشاره ده چې مختار دده په نزد باندې هغه دي چې |
| ذَهَبَ اِلَيْهِ سِيْبَوَيْهِ مِنْ اَنَّ اَدَاةَ التَّعْرِيْفِ هِيَ اللَّامُ وَ وَحْدَهَا زِيْدَتْ عَلَيْهَا هَمْزَةُ الْوَصْلِ |
| ذهاب كړي دي هغې ته سيبويه چې حروف د تعريف هغه لام دي يواځې اضافه كړي په هغې باندې همزه د وصل |
| لِتَعَذُّرِ الْاِبْتِدَاءِ بِالسَّاكِنِ وَ اَمَّا الْخَلِيْلُ فَقَدْ ذَهَبَ اِلٰى اَنَّهَا اَلْ كَهَلْ وَ الْمُبَرِّدُ |
| د وجې د عدم ابتداء په ساكن سره او هرچې خليل دي نو ذهاب يې كړي دې ته چې ال په شان د هل دي او مبرد |
| اِلٰى اَنَّهَا الْهَمْزَةُ الْمَفْتُوْحَةُ وَ حْدُهَا زِيْدَتِ اللَّامُ لِلْفَرْقِ بَيْنَهَا |
| ذهاب كړي چې همزه مفتوحه خان ته آله د تعريف ده اضافه كړي دي په هغې باندې لام د پاره د فرق په مينځ |
| وَ بَيْنَ هَمْزَةِ الْاِسْتِفْهَامِ وَ اِنَّمَا اخْتُصَّ دُخُوْلُ حَرْفِ التَّعْرِيْفِ بِالْاِسْمِ لِاَنَّهٗ لِتَعَيُّنِ |
| د دې او په مينځ د همزه د استفهام كې او خاص شو دخول د حرف تعريف په اسم خكه چې دا د پاره د معلوم ولود |
| مَعْنًى مُسْتَقِلٍّ بِالْمَفْهُوْمِيَّةِ يَدُلُّ عَلَيْهِ اللَّفْظُ مُطَابَقَةً وَ الْحَرْفُ لَا يَدُلُّ |
| معنى مستقل بالمفهومية دي چې دلالت كوي په دې باندې لفظ مطابقتاً حرف هغه دي چې دلالت نه كوي په |
| عَلَى الْمَعْنَى الْمُسْتَقِلِّ وَ الْفِعْلُ يَدُلُّ عَلَيْهِ تَضَمُّنًا لَا مُطَابَقَةً وَ هٰذِهِ الْخَاصَّةُ لَيْسَتْ شَامِلَةً |
| معنى مستقله او فعل هغه دي چې دلالت كوي په دې معنى باندې تضمني نه مطابقتي او دا خاصيت شامل نه |
| لِجَمِيْعِ اَفْرَادِ الْاِسْمِ فَاِنَّ حَرْفَ التَّعْرِيْفِ لَا يَدْخُلُ الضَّمَائِرُ وَ اَسْمَاءُ الْاِشَارَةِ وَ غَيْرِهَا |
| دي ټولو افرادو د اسم ته خكه چې حرف تعريفي نه داخليږي په ضمائرو اسماء اشارات او په غير د دې نه لكه |
| كَالْمَوْصُوْلَاتِ وَ كَذٰلِكَ سَائِرُ الْخَوَاصِّ الْخَمْسِ الْمَذْكُوْرَةِ هٰهُنَا . |
| موصولات او همدارنګې ټول خواص خمسه مذكوره دلته . |

**خلاصه دمتن :** په دې عبارت سره صاحب د كافيې په خواصو د اسم كې د اول خاصيت يعني دخول د لام تفصيل بيانوي .

**اغراض د جامي : ای دخول لام التعريف :** په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب وركول دي :

**سوال** : نا وويل چې دخول دلام خاصه داسم ده زه به تاته وښايم چې الف خو په فعل باندې هم داخليږي لکه **ليضرب** .

**جواب** : زمونږ دلام نه مراد لام تعريفي دي ځکه چې په **دخول اللام** باندې چې کوم الف لام داخل دي داعوض دي دمضاف اليه داپه اصل کې وو **دخول لام التعريف** .

ولو قال حرف التعريف: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي :

**سوال** : چې لام دتعريف دې نو همدارنګه ميم هم دتعريف وي لکه ځنګه چې درسول الله صلى الله عليه وسلم فرمان دي : **ليس من امبر امصيام في امسفر** کې نو ماتن لره په کار وو چې **حرف التعريف** يې ويلې وي ددې دپاره چې ميم تعريف ته هم خاصه شامله شوې وي .

**جواب** : ميم لره يې دعدم شهرت دوجې نه پريخودو ياداچې ميم بدل دي دلام نه اواصل په تعريف کې لام دي نو چې کله يې اصل لره ذکر کړو نو فرع هم ددې په ضمن کې ذکر شو .

وفي اختياره : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي :

**سوال** : عام نحويان **دخول الالف واللام** وايي نو دې دهغوي مخالفت ولې وکړو اوصرف **دخول اللام** يې ولې وويلو ؟

**جواب** : په لام تعريف کې درې مذاهب دي چې په الف لام کې کوم يو تعريف دي اولنۍ مذهب دسيبويه دي دسيبويه په نزد حرف لام دتعريف دي نواوس په هغې باندې ضمه ثقيله وه چې فتحه يې وويله نو دلام ابتدائيه تاکيديه سره يې اقتباس راتلو اوکه چيرته کسره يې ويلې نو دلام جاره سره يې اقتباس راتلو نو پته ولږيده چې دمتحرک ويلو هيڅ صورت نه جوړيږي نو مجبورا دې لره يې ساکن کړو اوابتداء بالسکون مشکل وه نو په شروع کې يې همزه وصلي راوړه .

**دليل** : اودليل پرې دادې چې تعريف ضد دتنکير دي اودتنکير دپاره يو حرف دي نون تنوين هغه چې نون ساکن وي ددې وجې نه مناسب داده چې تعريف دپاره هم يو حرف وي لام ساکن .

دوهم مذهب دمبرد دي دمبرد په نزد همزه دتعريف داستفهام اودتعريف په مينځ کې دفرق دپاره لام يې زيات کړو دليل يې دادې چې تعريف ضد دتشکيک دي اودتشکيک دپاره حرف همزه ده لهذا دتعريف دپاره هم يو حرف وي .

دريم مذهب دخليل دي چې الف لام په شان دهل دي يعنې ځنګه چې داستفهام دپاره پوره هل

دي دها اودلام مجموع دي همدارنګې دتعريف دپاره هم پوره ان وي يعني دالف اولام مجموعه وي دليل يې هغه دمبرد والادې ماتن په دې درې وارو کې دسيبويه والام مذهب اختيار کړي نو ددې وجهې نه يې وويل دخول اللام وجه يې داده چې يو خو ددوارو دليلونه په خپل مينځ کې مخامخ کيږي دوهم همزه وصلي په درج دکلام کې غورځيږي اودعلامت قانون دادې چې دې لره نه شي غورځولې ددې نه معلومه شوه چې همزې لره په تعريف کې دخل نشته دي.

**وانما اختص دخول حرف التعريف**: په دې عبارت سره غرض دشارح وجه داختصاص بيانوې چې خلاصه يې داده چې لام دتعريف واضح وضع کړي ددې معنی دعني دپاره په دې معنی کې دوه شرطونه موندل کيږي: اول هغه معنی مستقل بالمفهوميت وي ، دوهم لفظ په هغې باندې دلالت کوي مطابقتا نو اوس دحرف معنی خو مستقل بالمفهوميت نه وي اودفعل معنی اګر که مستقل بالمفهوميت وي خو فعل لره په دې باندې دلالت مطابقي نه وي بلکې دلالت تضمني وي.

**وهذه الخاصة ليست شاملة الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي:

سوال: چې ته وايې چې لام تعريف د لام سره خاص دی، زه به درته وښايم چې ډېر داسې اسمونه دي چې په هغې باندې خو الف لام داخل کېدای نه شي، لکه اسماء اشارات اسماء موصولات، اسماء ضمائر او اسماء اعلام وغيره، ځکه چې دا د ټولو نه مخکې معرفه ده اوس که چېرته دې باندې حرف تعريف داخل شي نو تحصيل د حاصل لازميږي، او تحصيل د حاصل خو محال وي، نو معلومه شوه چې په مذکوره ټول اسماء باندې لام تعريف نه داخليږي، نو دا بيا څنګه خاص شوه د اسم پورې.

**جواب**: دلته چې څومره خواص بيان شوي دي، هغه ټول په ټوله خواص غير شامل دي.

## دخول د جر:

| وَ مِنْهَا دُخُوْلُ الْجَرِّ اِنَّمَا اِخْتَصَّ دُخُوْلُ الْجَرِّ بِالْاِسْمِ لِاَنَّهُ |
|---|
| او بعضې د خواصو د اسم نه دخول د حرف جر دي په تحقيق سره خاص يې کړو دخول د جر په اسم باندې ځکه |
| اَثَرُ حَرْفِ الْجَرِّ فِي الْمَجْرُوْرِ بِهٖ لَفْظاً وَ فِي الْمَجْرُوْرِ بِهٖ تَقْدِيْرًا كَمَا فِي الْاِضَافَةِ الْمَعْنَوِيَّةِ وَ دُخُوْلُ حَرْفِ الْجَرِّ |
| دااثردحرف جردي په مجروربه کې لفظااوپه مجروربه کې تقديراً لکه په اضافت معنوي کې اودخول دحرف جر |
| لَفْظاً اَوْ تَقْدِيْراً يَخْتَصُّ بِالْاِسْمِ لِاَنَّهُ مَوْضُوْعٌ لِاِفْضَاءِ مَعْنَى الْفِعْلِ اِلَى الْاِسْمِ فَيَنْبَغِيْ |
| لفظااوتقديراًخاص دي تراسم پورې ځکه چې وضع شوې دپاره داضافت دمعنی دفعل اسم ته پس مناسب دي |

اَنْ يَدْخُلَ الْاِسْمُ لِيُفْضِيَ مَعْنَى الْفِعْلِ اِلَيْهِ وَ اَمَّا الْاِضَافَةُ اللَّفْظِيَّةُ فَهُوَ

چې داخل شي په اسم باندې ددې دپاره چې اضافت وکړي دمعنی دفعل دې ته اوهرچې اضافت لفظیه دې نودا

فَرْعٌ لِلْمَعْنَوِيَّةِ فَيَنْبَغِيْ اَنْ يُخَالِفَ الْاَصْلَ بِاَنْ يُخْتَصَّ بِمَا

فرع داضافت معنوي ده نو مناسب دې چې مخالف نه شي داصل سره په داسې شان چې خاص شي هغه چې

يُخَالِفُ مَا يَخْتَصُّ بِهِ الْاَصْلُ اَعْنِي الْفِعْلُ اَوْ يَزِيْدُ عَلَيْهِ بِاَنْ يَعُمَّ الْاِسْمُ وَ الْفِعْلُ.

مخالف وي دهغې سره اصل يعنې فعل ياريات شي په هغې باندې چې عام شي اسم اوفعل دواړوته

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافیې بل خاصیت بیانوي دخاصیتو داسم نه چې هغه دخول د جر دی .

**اغراض دجامي** : ومنها دخول: په دې عبارت سره شارح د الجر عطف ظاهروي ، چې دې لره مجرور وویلې شي او ددې عطف وکړې شي په اللام باندې نو څنګه چې دا د دخول دپاره مضاف الیه جوړېږي نوهمدارنګې دا هم په واسطې د عطف سره د دخول مضاف الیه جوړېږي او تقدیر دعبارت به داسې شي چې : ومن خواصه دخول الجر .

په دې باندې یو سوال واردیږي .

**سوال** : د دخول لفظ خو په ابتداء کې د راتللو دلپاره ویلې شي اوجر خو ددې په آخر کې لګي. ددې وجې نه تاته لحوق ویل په کار وو .

**جواب** :دلته ذکر د ملزوم اومراد ترې لازم دی همدارنګې چې دخول لره اتصال لازم دي، نو ذکر ددخول يې وکړو چې مراد ترې اتصال دي برابره خبره ده چې په شروع کې وي او که په آخر کې.

وانما اختص دخول الجر : په دې عبارت سره شارح د جر داختصاص وجه بیانوي چې خلاصه يې داده چې جر اثر د حرف جر دی که لفظاً وي او که تقدیراً او حرف جرچونکه د اسم سره خاص دی ددې وجې نه ددې اثر به هم د اسم سره خاص وي ورنه مخالفت به لازم راشي په مینځ داثر اومؤثر کې ، پاتې شود دا خبره چې حرف جر داسم پورې ولې خاص دی نو ددې وجه داده چې واضع دې لره وضع کړې دی د معنی د فعل تراسم پورې د رسولو دپاره نو ظاهره ده چې دا به په اسم باندې داخلېږي نو معنی د فعل به خپل مدخول ته رسوي نو معلومه شوه چې حرف جر اسم پورې خاص دی لکه په مررت بزید کې باء د مرور معنی زید ته ورسوله

وامّا الاضافة اللفظية : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال** : ستا په دعوی او دلیل کې مطابقت نشته دعوی عام ده. او دلیل خاص دی دعوی خو د مطلق جر ده د اسم سره د اختصاص برابره خبره ده چې هغه جر اثر د حرف جروي او یا نه. او دلیل یې دادې چې تاسو ددې جر د اختصاص د ثابتولو دپاره چې کوم جر دحرف جر اثر وي نو چې کوم جر اثر د حرف جر نه وي لکه اضافت لفظیه کې ددې جر اختصاص لره ستا دلیل نه ثابتوي ، نو دعوی عام او دلیل خاص شو حال دا دی. چې دعوی او دلیل کې مطابقت کېدل ضروري دي

**جواب** : داسې جرصرف په اضافت لفظیه کې موندلی کېږي او اضافت لفظیه فرع ده د اضافت معنویه او داضافت معنوي جر دحرف جر اثر وي نو ددلیل نه چې کله داضافت معنویه والاجر داختصاص د اسم سره ثابته شو نو بالتبع ددې فرع د اضافت لفظیه والا د جر اختصاص هم د اسم سره ثابت شو ددې ځکه چې که چېرته اضافت لفظیه والا جر اختصاص د اسم سره تسلیم نه کړي نو بیا دوه صورتونه جوړېږي، د عدم اختصاص یا خو به د اضافت لفظیه والاجر د فعل سره خاص وي نو بیا به مخالفت د فرع د اصل سره لازم راشي او یا د اضافت لفظیه والاجر اسم او فعل دواړو ته شامل وي نو زیادت د فرع په اصل باندې لازمېږي

## دخول د تنوین :

| |
|---|
| وَ مِنهَا دُخُوْلُ التَّنْوِیْنِ بِأَقْسَامِهِ إِلَّا تَنْوِیْنَ التَّرَنُّمِ وَ سَیَجِيْءُ فِيْ |
| او بعضې دخواصو داسم نه دخول دتنوین دي دټولو اقسامو سره مګرتنوین ترنم اوزردي چې رابه شي بحث ددې |
| آخِرِ الْكِتَابِ اِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ تَعْرِیْفُهُ وَ بَیَانُ أَقْسَامِهِ عَلٰی وَجْهٍ یَظْهَرُ جِهَةَ اخْتِصَاصِ |
| په آخر د کتاب کې ان شاء الله تعریف ددې او بیان د اقسامو دې په داسې شان چې ښکاره به شي شرط د اختصاص |
| مَا عَدَا تَنْوِیْنِ التَّرَنُّمِ بِهِ وَجِهَةُ عَدَمِ اخْتِصَاصِ تَنْوِیْنِ التَّرَنُّمِ بِهِ. |
| دهغې په غیر د تنوین ترنم نه په اسم پورې او وجه د عدم اختصاص د تنوین ترنم په اسم پورې . |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافیې یو بل خاصیت بیانوي دخاصیتو داسم نه چې هغه دخول د تنوین دي

**اغراض د جامي** : <u>و منها دخول التنوین الخ</u>: په دې عبارت سره شارح داسم دریمه خاصه بیانوي چې تنوین په پنځه قسمه دي

۱: **تنوین تمکن** : چې د اسم منصرف په آخر کې راځي لکه زیدٌ.

۲: **تنوین تنکیر** : چې د تعریف او تنکیر په مینځ کې د فرق کولو دپاره د نکرې په آخر کې

راخي لکه د صهٍ تنوین

**۳: تنوین عوضي**: چې د مضاف الیه په عوض کې راخي لکه یومئذٍ چې دا په اصل کې یوم اذ کان کذا وو

**۴: تنوین مقابله**: چې د مذکر سالم د نون په مقابله کې د جمع مونث سالم په آخر کې راخي لکه مسلماتٍ.

دا څلور واړه اقسام تر اسم پورې خاص دي، ځکه چې منصرف او غیر منصرف کېدل معرفه نکره کېدل مضاف کېدل جمع کېدل دا تر اسم پورې خاص دي

**۵: تنوین ترنم**: هغه چې د اشعارو په آخر کې راخي او چونکه د اشعارو په آخر کې اسم فعل حرف درې واړه راتلې شي، ځکه چې تنوین ترنم د یو سره هم خاص نه دي . بلکې د درې واړو په آخر کې راتلی شي

د اسم او فعل په آخر کې د تنوین ترنم د راتلو مثال

اقلي اللوم عاذل والعتابن فقولي ان اصبت لقد اصابن

په العتابن کې د اسم په آخر کې تنوین ترنم راخي او په لقد اصابن کې د فعل په آخر کې تنوین ترنم راخي .

او د حرف په آخر کې د تنوین ترنم د راتلو مثال:

افد الرجل غیر ان رکابنا لما تزل بر حالنا وکان قدنْ

قد حرف دی او ددې په آخر کې تنوین ترنم راخي.

نوخلاصه داده چې د تنوین څلور قسمه د اسم سره خاص دي او یو قسم د کلمې په اقسام ثلاثه کې د هر یو په آخر کې راخي.

## اسناد:

| وَ مِنْهَا الْإِسْنَادُ اِلَيْهِ هُوَ بِالرَّفْعِ عَطْفٌ عَلَى الدُّخُوْلِ لَا عَلٰى مَدْخُوْلِهِ |
|---|
| او بعضې د خواصو د اسم نه اسناد دي اسم ته دا په رفع سره عطف دي په دخول باندي نه په مدخول د لام باندي |
| لِأَنَّ الْمُتَبَادِرَ مِنَ الدُّخُوْلِ الذِّكْرُ فِي الْأَوَّلِ اَوِ اللُّحُوْقِ بِالْآخِرِ وَ كِلَاهُمَا مُنْتَفِيَانِ فِي الْإِسْنَادِ |
| ځکه چې متبادر د دخول نه ذکر دي په اول کې او یا لحوق دي په آخر کې او دواړه منتفي دي په اسناد کې او |
| وَ كَذَا فِي الْإِضَافَةِ وَ الْمُرَادُ بِهِ كَوْنُ الشَّيْءِ مُسْنَدٌ اِلَيْهِ وَ اِنَّمَا اخْتَصَّ هٰذَا |
| همدارنګې په اضافت کې او مراد په هغې سره کېدل د یو څیز دی مسند الیه او به تحقیق سره خاص شوه دغه |

| الْمَعْنَى بِالْاِسْمِ لِاَنَّ الْفِعْلَ قَدْ وَضَعَ لِاَنْ يَكُوْنَ اَبَداً مُسْنَداً فَقَطْ فَلَوْ جَعَلَ |
|---|
| معنی د اسم پورې خکه چې فعل کله وضع کيږي چې شي د هميشه د پاره مسند فقط پس که چيرته وګرځولي |
| مُسْنَدٌ اِلَيْهِ يَلْزِمُ خِلَافُ وَضْعِهِ. |
| شي مسند اليه لازم به شي خلاف د وضع |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافيې بل خاصيت بيانوي دخاصيتو داسم نه چې هغه اسناد دي اسم ته

**اغراض دجامي** : هو بالرفع الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : د الاسناد عطف په التنوين باندې او د التنوين عطف په الجر باندې او د الجر عطف په اللام باندې او اللام مضاف اليه دی د دخول يعنې اى دخول اللام و دخول الجر والتنوين نو د عطف په واسطې سره الف لام مضاف اليه جوړيږي، د دخول لپاره نو معنی به يې جوړه شي چې د اسم د خواصو نه دی د لام داخليدل او د جر داخليدل او د تنوين داخليدل او د اسناد اليه داخليدل ، حال دا دی چې اسناد خو مصنوعي څيز دی په دې کې دخول او لحوق نه شي متصور کيدای

**جواب** : هو بالرفع يعنې مرفوع دی او ددې عطف په دخول باندې دی او دا مجرور نه دی. ځکه چې ددې عطف ددخول په مدخول اللام باندې وي چې کله ددې عطف ددخول په لفظ باندې دي نو اوس به يې معنی جوړه شي چې داسم خاصه دلام داخليدل دي اوداسم خاصه ده مسنداليه کيدل

والمراد به کون الشئ مسنداً اليه: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : د الاسناد اليه نه مراد مسنداليه دی او مسنداله خو ذات دی او د اسم خواص ټول په ټوله د اوصاف د قبيلې نه دي لهذا دې لره د اسم په خواصو کې شمارل صحيح نه دي؟

**جواب** : زمونږ مراد کون الشيء مسنداليه دی يعنې کوم يو څيز مسنداليه کيدل خاصه د اسم ده په خپله مسنداليه د اسم خاصه نه ده او کون الشيء وصف دی ذات نه دی.

وانما اختص: په دې عبارت سره شارح دمسند اليه د اختصاص وجه بيانوي، چې خلاصه يې داده چې فعل خو واضع وضع کړی دی، د هميشه مسند کيدلو دپاره ددې دپاره که چيرته فعل مسنداليه جوړ کړي نو خلاف وضع لازم راځي هغه جائز نه ده باقي پاتې شو حرف نو ددې

معنی خو غیر مستقل وي نه دغه مسند جوړېږي او نه مسند الیه جوړېږي. چې کله د اسم نه په د اخوینونه په کوم یو کې دننه د مسند الیه د جوړېدو صلاحیت د سره نه وي نو صرف اسم پاتې شو د مسند الیه د جوړېدو دپاره نو دا د اسم سره خاص شوه

## اضافت :

| |
|---|
| وَ مِنْهَا الْإِضَافَةُ اَىْ كَوْنُ الشَّيْءِ مُضَافًا بِتَقْدِيْرِ حَرْفِ الْجَرِّ لَا بِذِكْرِهِ |
| او بعضې د خواصو د اسم نه اضافت دي معنی کېدل د یو څیز دي مضاف په تقدیر د حرف جر سره نه په ذکر د هغې |
| لَفْظاً وَ وَجْهُهُ اخْتِصَاصِهَا بِالْاِسْمِ اخْتِصَاصُ لَوَازِمِهَا مِنَ التَّعْرِيْفِ |
| سره لفظاً او وجه د اختصاص د دې د اسم سره له وجې د اختصاص د لوازمو د هغې نه پر اسم پورې لکه تعریف . |
| وَ التَّخْصِيْصِ وَ التَّخْفِيْفُ بِهِ وَ اِنَّمَا فَسَّرْنَا الْإِضَافَةَ بِكَوْنِ الشَّيْءِ مُضَافًا لِاَنَّ الْفِعْلَ اَوِ |
| تخصیص او تخفیف او په تحقیق سره تفسیر د اضافت مونږ وکړو په کېدلو د څیز سره مضاف خکه چې فعل او یا |
| الْجُمْلَةَ قَدْ يَقَعُ مُضَافًا اِلَيْهِ كَمَا فِيْ يَوْمَ يَنْفَعُ الصَّادِقِيْنَ صِدْقُهُمْ وَ قَدْ يُقَالُ هٰذَا بِتَأْوِيْلِ الْمَصْدَرِ |
| جمله کله واقع کېږي مضاف الیه لکه په یوم ینفع الصادقین صدقهم کې او کله ویلې شي دا په تاویل د مصدر سره |
| اَىْ يَوْمَ نَفْعِ الصَّادِقِيْنَ فَالْإِضَافَةُ بِتَقْدِيْرِ حَرْفِ الْجَرِّ مُطْلَقاً يَخْتَصُّ بِالْاِسْمِ وَ اِنَّمَا قَيَّدْنَاهُ |
| یعنې یوم نفع الصادقین پس اضافت په تقدیر د حرف جر سره مطلق خاص دي تر اسم پورې او مقید کړو مونږ په |
| بِقَوْلِنَا بِتَقْدِيْرِ حَرْفِ الْجَرِّ لِاَنَّ لَا يَنْتَقِضُ بِقَوْلِنَا مَرَرْتُ بِزَيْدٍ فَاِنَّ مَرَرْتُ |
| دې قول خپل سره بتقدیر حرف الجر خکه چې منقوض نه شي په دې قول زمونږ مررت بزید سره خکه چې مررت |
| مُضَافٌ اِلٰى زَيْدٍ بِوَاسِطَةِ حَرْفُ الْجَرِّ لَفْظاً . |
| مضاف دي زید ته په واسطه د حرف جر سره لفظاً |

**خلاصه دمتن :** په دې عبارت سره صاحب د کافیې بل خاصیت بیانوي د خاصیتو د اسم نه چې هغه اضافت دي .

**اغراض دجامي : اى كون الشئ مضافاً بتقدير:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال :** چې د اضافت نه مراد مضاف دی او مضاف خو ذات دی او خواص د اسم خو اوصاف وي

**جواب :** د دې جواب دا ورکړی دی چې کون الشئ مضافاً یعنې زمونږ مراد د یو څیز مضاف کېدل دي په خپله مضاف مراد نه دی او کون وصف دی

**ووجه اختصاصهما:** په دې عبارت سره شارح داسم پورې داضافت وجه داختصاص بيانوي چې وجه داختصاص يې داده چې د اضافت لوازم درې دي تعريف چې كله نكره معرفې طرف ته مضاف كړې شي ، تخصيص چې كله نكره نكرې طرف ته مضاف كړې شي ، اوتخفيف په اضافت لفظي كې نون دتنوين ، نون دتثنيې اودجمع دسقوط نه . اودا درې لوازم داسم سره خاص دي ځكه چې معرفه نكره كيدل هم داسم سره خاص دي اونون تنوني اونون تثنيه جمع هم داسم په آخر كې وي نو كله چې دا درې لوازم داضافت داسم سره خاص وي نو ددې ملزوم اضافت هم داسم سره خاص وي ورنه مخالفت به راشي په مينځ دلازم اوملزوم كې چې كوم ناجائز دي

## اقسام د اسم :

| |
|---|
| وَ هُوَ اَيِ الْاِسْمُ قِسْمَانِ مُعْرَبٌ وَ مَبْنِيٌّ لِاَنَّهُ لَا يَخْلُوْا اِمَّا اَنْ يَكُوْنَ مُرَكَّبًا مَعَ غَيْرِهٖ اَوْ لَا وَ الْاَوَّلُ |
| اودا يعني اسم په دوه قسمه دې معرب اومبني ځكه چې دا به خالي نه وي يا به مركب وي سره دغير اويا نه اواول |
| اِمَّا اَنْ يُشْبِهَ مَبْنِيَّ الْاَصْلِ اَوْ لَا وَ هٰذَا اَعْنِيْ اَلْمُرَكَّبَ الَّذِيْ لَمْ يُشْبِهُ مَبْنِيَّ الْاَصْلِ هُوَ الْمُعْرَبُ |
| يا به مشابه وي دمبني اصل سره اويا نه اودا يعنې هغه مركب چې مشابه نه وي د مبني اصل سره دا اسم معرب |
| وَ مَا عَدَاهُ اَعْنِيْ غَيْرَ الْمُرَكَّبِ وَ الْمُرَكَّبُ الَّذِيْ يُشْبِهُ مَبْنِيَّ الْاَصْلِ مَبْنِيٌّ. |
| دي اوماسوى ددې نه يعني غيرمركب اوهغه مركب چې مشابه وي دمبني اصل سره دامبني دي |

**خلاصه دمتن :** په دې عبارت سره صاحب د كافيې د اسم اقسام بيانوي، چونكې تقسيم د تعريف تتمه وي نو ددې وجې نه د تعريف نه پس ماتن دلته د اسم تقسيم كوي چې اسم په دوه (۲) قسمه دي : (۱) معرب ، (۲) مبني

**اغراض دجامي : وهو اى الاسم قسمان:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال :** هو ضمير مبتدا دى او **معرب** او **مبنى** ددې خبر دى خو ددې خبر جوړيدل صحيح نه دي، ځكه چې خبر په مبتدا باندې محمول وي، ځكه چې دلته مبتدا عامه ده الاسم او خبر معرب او مبني خاص دى او حمل د خاص په عام باندې نه كيږي، ځكه چې د حمل معنى وي **صدق الخبر على جميع افراد المبتداء** نو لازميږي چې د اسم ټول افراد معرب هم دي او د اسم ټول افراد مبني هم دي.

**جواب :** د معرب او مبني دپاره خبر نه دى، بلكې مبتداء مخذوفه ده **قسمان** او په معرب او مبنې كې هر يو خبر دى د مبتدا مخذوفې چې تقدير داعبارت داسې شو چې **احدهما معرب و**

ثانيهما مبنيٌ

<u>لانه لا يخلوا</u>: په دې عبارت سره شارح وجه د حصر بيانوي چې خلاصه يې دا ده چې اسم به د دوه حالو نه خالي نه وي يا خو به هغه د خپل غير سره مركب وي يا به نه وي كه چېرته مركب نه وي، نو مبني به وي كه چيرته مركب وي نو بيا به د دوه حالو نه خالي نه وي يا به مشابه وي د مبني الاصل سره او يا به نه وي كه چيرته مشابه وي نو دا به بيامبني وي او كه چيرته مشابه نه وي، نو بيا به معرب وي ددې نه پس ماتن د معرب تعريف كوي

## تعريف د معرب:

| |
|---|
| فَالْمُعْرَبُ الَّذِيْ هُوَ قِسْمٌ مِنَ الْإِسْمِ الْمُرَكَّبِ أَيِ الْإِسْمِ الَّذِيْ رُكِّبَ مَعَ غَيْرِهٖ تَرْكِيْباً |
| پس هغه معرب چې هغه قسم دى دا سم مركب نه يعني هغه اسم چې مركب وي د غير سره په داسې تركيب كې |
| يَتَحَقَّقُ مَعَهُ عَامِلُهٗ فَيَدْخُلَ فِيْهِ زَيْدٌ وَ قَائِمٌ وَ هٰؤُلَاءِ فِيْ قَوْلِكَ زَيْدٌ |
| چې محقق وي د هغې سره عامل د هغې پس داخليږي په هغې كې زيد قائم و هؤلاء په دې قول ستا كې چې زيد |
| قَائِمٌ وَ قَامَ هٰؤُلَاءِ بِخِلَافِ مَا لَيْسَ بِهٖ مُرَكَّبٌ اَصْلاً مِنَ الْاَسْمَاءِ الْمَعْدُوْدَةِ نَحْوِ اَلِف بَا تَا زَيْدٌ وَ عَمْرٌو وَ بَكْرٌ |
| قائم و قام هؤلاء په خلاف د هغه چې مركب نه وي بالكل د اسماء معدودو نه لكه الف. با. تا. زيد عمرو بكر په |
| بِخِلَافِ مَا هُوَ مُرَكَّبٌ مَعَ غَيْرِهٖ لٰكِنْ لَا تَرْكِيْباً يَتَحَقَّقُ مَعَهُ عَامِلُهٗ |
| خلاف د هغه چې مركب وي د غير سره ليكن نه په داسې تركيب چې محقق وي د هغې سره عامل د هغې لكه |
| كَغُلَامٍ فِيْ غُلَامُ زَيْدٍ فَاِنَّ جَمِيْعَ ذٰلِكَ مِنْ قَبِيْلِ الْمَبْنِيَّاتِ عِنْدَ الْمُصَنِّفِ الَّذِيْ لَمْ يُشْبِهْ |
| غلام په غلام زيد تركيب كې خكه چې دا ټول د قبيلې د مبنياتو نه دي په نزد د مصنف هغه چې مشابه نه وي |
| اَيْ لَمْ يُنَاسِبْ مُنَاسَبَةً مُؤَثِّرَةً فِيْ مَنْعِ الْإِعْرَابِ. |
| يعني چې مناسب نه وي په مناسبت مؤثره سره په منع د اعراب كې |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره صاحب د كافيې د اسم معرب تعريف كوي.

**اغراض د جامي**: <u>فالمعرب المركب الذى لم يشبه مبنى الاصل</u>: په دې عبارت سره شارح د معرب تعريف كوي چې معرب هغه ته وايي چې مركب وي او د مبني الاصل سره مشابهت نه لري نو د معرب په تعريف كې دوه قيدونو لرول ضروري دي ۱: چې دا به مركب مع الغير وي. ۲: دا به د مبني الاصل سره مشابهت نه لري او يو دريم قيد شارح لرولې دي چې تركيباً يتحقق معه عامله، چې دا به مركب مع الغير وي په داسې تركيب كې چې ددې سره ددې عامل هم موجود وي.

<u>الذي هو قسم من الاسم</u> : په دې عبارت سره شارح د يو سوال مقدر جواب ورکوي

**سوال** : ستا د معرب تعريف جامع نه شو خپل افرادو لره ځکه چې فعل مضارع هم معرب دی خو ستا تعريف په هغې صادق رانغلو

**جواب** : شارح جواب ورکړو په الذی هو قسم من الاسم سره چې تعريف د مطلق معرب نه دی، بلکې د معرب اسمي دی لهذا که چيرته په فعل مضارع نه صادقيږي نو مه دې صادقيږي ځکه چې فعل مضارع خو دسره دمعرب فرد نه دي

<u>ای الاسم الذی رکب مع غيره</u> : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : تا چې د معرب کوم تعريف کړې دی نو هغه مانع نه دی د دخول د غير نه ځکه چې ستا تعريف په ضرب زيد او اضرب زيد او من البصرة مثالونو کې په ضرب ، اضرب او لفظ د من باندې صادق راځي، ځکه چې دا درې واړه مرکب هم دي او دمبني الاصل سره مشابهت هم نه لري، ځکه چې دا خو په خپله مبني الاصل دي که چېرته دا د مبني الاصل سره مشابهت لري نو لازم به راشي مشابهت د شئ بنفسه او دا خو باطل دی؟

**جواب** : شارح ای الاسم وويلو نو په دې سره يې جواب ورکړو، چې زمونږ مراد د مرکب نه اسم مرکب دی، يعنې په محدود او حد دواړو کې د اسم قيد ملحوظ دی اسم معرب او اسم مرکب مراد دی نودا سوال دفع شو ځکه چې په دې کې ضرب، اضرب او من فعل او حرف دی اسم نه دی .

<u>ترکيباً يتحقق معه عامله</u> : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : ستا د معرب تعريف مانع نه دی د دخول د غير نه، ځکه چې غلامْ زيد (بسکون الميم) په دې تعريف باندې صادق راځي او دامرکب مع الغير هم دی او دمبني الاصل سره مشابه هم نه دی .

**جواب** : د دې جواب علامه هندي ورکړې ده چې د مرکب مع الغير نه مراد عامل دی او دلته په غلامْ زيد کې زيد عامل نه دی، ليکن دا جواب کمزوری دی او شارح ددې جواب په ترکيباً يتحقق معه عامله سره ورکړو، چې خلاصه يې داده چې د ترکيب نه مراد داسې ترکيب دی، چې عامل هم په هغې کې متحقق وي برابره خبره ده که هغه غير عامل وي او يا بل څه وي اوس په غلام زيد کې خو زيد معرب دی، ځکه هغه مرکب مع الغير دی او غلام په دې کې عامل هم دی، خو غلام معرب نه دی ځکه چې هغه اګر که مرکب مع الغير وي، خو ددې عامل دلته متحقق نه

دی. خو که چېرته وویلی شي جاءني غلام زید نو اوس غلام هم معرب کیږي

| مَبْنِيُّ الْاَصْلِ اَىْ الْمَبْنِيُّ الَّذِيْ هُوَ الْاَصْلُ فِي الْبِنَاءِ فَالْاِضَافَةُ بَيَانِيَّةٌ وَ هُوَ الْمَاضِيْ وَ الْاَمْرُ |
|---|
| مبني الاصل دي يعني هغه اسم مبني چې هغه اصل وي په بناء کې پس اضافت بيانيه هغه ماضي ده امر دي په |
| بِغَيْرِ اللَّامِ وَ الْحَرْفُ وَ بِهٰذَا الْقَيْدِ خَرَجَ مِثْلُ هٰؤُلَاءِ فِيْ مِثْلِ قَامَ هٰؤُلَا لِكَوْنِهٖ مُشَابِهًا |
| غير د لام نه او د حرف نه او په دې قيد سره حارج شو په مثل د هؤلاء په قام هؤلاء ترکيب کې خکه چې دا مشابه |
| لِمَبْنِي الْاَصْلِ كَمَا سَيَجِيْئُ فِيْ بَابِهٖ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى. |
| دي د مبني اصل سره چې رابه شي په باب د مبني کې ان شاء الله |

**اغراض د جامي** : فالاضافة بيانية ؛ په دې عبارت سره شارح د يو سوال مقدر جواب ورکوي

**سوال** : مبني مضاف دی او الاصل مضاف اليه دی او په مضاف او مضاف اليه کې مغائرت وي او دلته مغائرت نشته دی. بلکې اتحاد ددې چې مبني دی او هغه اصل دی او چې کوم اصل دی هغه مبني دی لکه فعل ماضي مبني هم دی او اصل هم دی

**جواب** : شارح ددې جواب ورکړی دی چې دا سوال په غلط فهمی باندې مبني دی چې تا د مبني الاصل اضافت لره اضافت لامي اخيستی دی او دا اضافت بياني دی معنی داده چې نه مشابه وي د معنی سره هغه معنی چې اصل ده په بناء کې او مغائرت خو په اضاف لامي کې وي او اضافت بياني د مضاف او مضاف اليه په مينځ کې نسبت د عموم و خصوص من وجه وي هلته درې مادې وي يوه ماده اجتماعي لکه فعل ماضي امر حاضر جمله حروف دا درې واړه مبني هم دي او اصل هم دي او ماده افتراقي لکه قام زيد کې کوم چې لفظ د زيد دی دا اصل دی د معرب کيدلو د وجې نه مگر مبني نه دی. دوهمه ماده د افتراق اسماء اشارات وغيره مبني خو دی مگر اصل نه دی.

| اِعْلَمْ اَنَّ صَاحِبَ الْكَشَّافِ جَعَلَ الْاَسْمَاءَ الْمَعْدُوْدَةَ الْعَارِيَةَ عَنِ الْمُشَابِهَةِ الْمَذْكُوْرَةِ مُعْرَبَةً وَ لَيْسَ |
|---|
| پوه شه چې صاحب د کشاف گرځولي اسماء معدوده کوم چې خالي وي د مشابهت مذکورونه معرب او نشته |
| النِّزَاعُ فِي الْمُعْرَبِ الَّذِيْ هُوَ اسْمُ مَفْعُوْلٍ مِنْ قَوْلِكَ اَعْرَبْتُ فَاِنَّ ذٰلِكَ لَا يَحْصُلُ اِلَّا |
| نزاع په هغه معرب کې چې هغه اسم مفعول وي په دې قول ستا کې چې اعربت خکه چې دا نه حاصليږي مگر په |
| بِاِجْرَاءِ الْاِعْرَابِ عَلٰى آخِرِ الْكَلِمَةِ بَعْدَ التَّرْكِيْبِ بَلْ فِي الْمُعْرَبِ اِصْطِلَاحًا فَاعْتَبِرِ الْعَلَامَةَ |
| اجراء د اعراب په آخر د کلمې وروستو د ترکيب نه بلکې نزاع په معرب اصطلاحي کې ده پس غوره کړې علامه |

| |
|---|
| مُجَرَّدُ الصَّلَاحِيَّةِ لِاِسْتِحْقَاقِ الْاِعْرَابِ بَعْدَ التَّرْكِيْبِ وَهُوَ الظَّاهِرُ مِنْ كَلَامِ الْاِمَامِ عَبْدِالْقَاهِرِ |
| زمحشري مجرد صلاحيت دپاره داستحقاق داعراب وروستو دترکيب نه اوداظاهر يږي دکلام دامام عبدالقاهر |
| وَ اعْتَبَرَ الْمُصَنِّفُ مَعَ الصَّلَاحِيَّةِ حُصُوْلَ الْاِسْتِحْقَاقِ بِالْفِعْلِ وَ لِهٰذَا اَخَذَ |
| نه اومعتبرکړي مصنف سره دصلاحيت دحصول داستحقاق بالفعل نه ددې وجې نه غوره کړي دي مصنف |
| التَّرْكِيْبَ فِيْ تَعْرِيْفِهٖ وَ اَمَّا وُجُوْدُ الْاِعْرَابِ بِالْفِعْلِ فِيْ كَوْنِ الْاِسْمِ مُعْرَباً فَلَمْ |
| ترکيب په تعريف دمعرب کې هرچې وجوددا عراب بالفعل دي په کيدلوداسم کې چې معرب وي پس نه دي |
| يُعْتَبَرْهُ اَحَدٌ وَ لِذٰلِكَ يُقَالُ لَمْ تُعْرَبِ الْكَلِمَةُ وَ هِيَ مُعْرَبَةٌ. |
| غوره کړي هيچا ددې وجې نه ويلې کيږي لم تعرب الكلمة وهي معربة |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره په ماتن باندې د شوې سوال جواب ورکوي ، سوال وشو چې کافيه ماخود دې دمفصل نه اوصاحب دمفصل دمعرب په تعريف کې دمرکب قيد نه دي ذکر کړي

**اغراض دجامي** : اعلم ان صاحب الكشاف: په دې اعلم سره شارح په ماتن باندې د وارد شوې سوال جواب ورکوي

سوال: کافيه ماخوذه د مفصل نه او صاحب د مفصل د معرب په تعريف کې د مرکب قيد نه دی ذکر کړی او د کافيې والاد مرکب قيد ذکر کړې او د صاحب مفصل مخالفت يې ولې وکړو؟

**جواب** : دا مخالفت په يو اصولي اختلاف باندې مبني دی په دې اختلاف باندې ځان داسې پوهه کړئ، چې په دومره خبره خو د دواړه اتفاق دی، چې د يو معرب د لغوي کېدلو لپاره په دې باندې بالفعل اعراب او حرکت راتلو ضرورت وي د اعراب او د حرکت د راتلو نه بغير دې اسم ته معرب لغوي نه شي ويلې .

<u>واليه اشار الشارح بقوله وليس النزاع الخ</u>: همدارنګې په دې خبره باندې هم اتفاق دی، چې د يو معرب اصطلاحي کېدلو لپاره په دې باندې بالفعل اعراب او د حرکت راتلل څه ضروري نه ده ددې وجې نه که چيرته يو سړی د عبارت او کلام په وخت کې يو اسم معرب لره موقوف ووايي او په ده باندې حرکت ونه وايي لکه ووايي چې جاءني زيد (بسكون الدال) نو ددې په باره کې ويلې شي چې لم تعرب الكلمة وهي معربة يعنې تا کلمې لره اعراب ورنه کړل او حال دا دی چې هغه خو معرب دی نو په لم تعرب کې د اعراب نفي هم کولې شي او په وهي معربة کې د معرب

اصطلاحي اثبات او اقرار هم کولې شي نو پته ولګیده چې د معرب اصطلاحي لپاره بالفعل اعراب او حرکت راوړل د چا په نزد هم ضروري نه دي

نو په دې دواړو خبرو باندې اتفاق دی. البته اختلاف په دې خبره کې دی چې د اسم د معرب اصطلاحي کېدلو لپاره محض صلاحیت د اعراب کافي دی یا بالفعل داعراب التحاق هم ضروري دی.

## دیو سوال جواب :

وَ إِنَّمَا عَدَلَ الْمُصَنِّفُ عَمَّا هُوَ الْمَشْهُوْرُ عِنْدَ الْجُمْهُوْرِ مِنَ اَنَّ الْمُعْرَبَ مَا

او بیشکه عدول کړي مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د هغه څه نه چې مشهور دي په نزد د جمهورو چې معرب هغه دي چې

اخْتَلَفَ آخِرُهُ بِاخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ لِاَنَّ الْغَرَضَ مِنَ تَدْوِيْنِ عِلْمِ النَّحْوِ اَنْ يَعْرِفَ

مختلف کیږي آخر د هغې په اختلاف د عواملو خکه چې غرض د تدوین د علم نحوې نه دادې چې وپیژندلې شي

بِهِ اَحْوَالُ اَوَاخِرِ الْكَلِمَةِ فِي التَّرْكِيْبِ مَنْ لَمْ يَتَتَبَّعْ لُغَةَ الْعَرَبِ وَ لَمْ يَعْرِفْ

په دې سره احوال دآخر د کلمو په ترکیب کې چا چې تلاش نه دي کړي د لغت د عربو او نه يې دي پیژندلې

اَحْكَامَهَا بِالسَّمَاعِ مِنْهُمْ فَاِنَّ الْعَارِفَ بِاَحْكَامِهَا كَذٰلِكَ

احکامات د ژبې د عربو په اوریدلو سره د هغوي نه خکه چې پیژندونکي د احکامو د ژبې د عربو همدارنګې

مُسْتَغْنٍ عَنِ النَّحْوِ وَلَا فَائِدَةَ لَهُ مُعْتَدًّا بِهَا فِيْ مَعْرِفَةِ اصْطِلَاحَاتِهِمْ

مستغني دي دنحوې نه او هیڅ فائده نشته دهغه دپاره چې دې اتکاء وکړي په پیژندلو د اصطلاحاتو دعربو پس

فَالْمَقْصُوْدُ مِنْ مَعْرِفَةِ الْمُعْرَبِ مَثَلًا اَنْ يَعْرِفَ اَنَّهُ مِمَّا يَخْتَلِفُ آخِرُهُ فِيْ كَلَامِهِمْ

مقصود د پیژندلو د معرب نه مثلاً دادي چې وپیژندلې شي هغه څه چې مختلف کیږي آخر د دې په کلام د هغوي کې

لِيَجْعَلَ آخِرَهُ مُخْتَلِفًا فَيُطَابِقَ كَلَامَهُمْ فَمَعْرِفَتُهُ مُتَقَدِّمَةٌ عَلٰى

چې وګرځوي آخر د معرب مختلف پس موافق شي د لغت د هغوي سره پس معرفت د معرب مخکې دي په

مَعْرِفَةِ اَنَّهُ مِمَّا يَخْتَلِفُ آخِرُهُ فَلَوْ كَانَ مَعْرِفَتُهُ الْمُتَقَدِّمَةُ حَاصِلَةً بِمَعْرِفَةِ

معرفت د هغه څه چې سبب وي د اختلاف د آخر د دې پس که چیرته شو هغه معرفت متقدمه حاصل په معرفت

هٰذَا الْاِخْتِلَافِ وَ تَعْرِيْفُهُ بِهِ وَجَبَ اَنْ يَعْرِفَ اَوَّلًا بِاَنَّهُ مِمَّا

د دغه اختلاف باندې او پیژندل د معرب په دې اختلاف نو لازمیږي چې ودې پیژندلې شي اولاً چې داهغه څه دي

يَخْتَلِفُ آخِرُهُ لِيَعْرِفَ اَنَّهُ مِمَّا يَخْتَلِفُ آخِرُهُ

چې مختلف کیږي آخر دې، ددې دپاره چې وپیژندلې شي چې دا د قبیلې د هغه څه نه دي چې مختلف کیږي آخر

فَيَلْزَمُ تَقَدُّمُ الشَّيْءِ عَلٰى نَفْسِهِ فَيَنْبَغِيْ اَنْ يَعْرِفَ اَوَّلًا بِغَيْرِ مَا

يې پس لازم به شي تقدم د څیز په خپل نفس باندې پس مناسب دي چې وپیژندلې شي اولاً په غیر د هغه څه چې

| عَرِفَهُ | بِهِ | الْجَمْهُوْرُ | وَ | يَجْعَلُ | مَا | عَرِفُوْهُ | بِهِ | مِنْ | جُمْلَةِ | اَحْكَامِهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پیژندلې وي په هغې سره جمهورو او وګرځولې شي هغه څه چې پیژندلې وي معرب لره د جملې د احکامو د | | | | | | | | | | |
| كَمَا فَعَلَهُ الْمُصَنِّفُ . | | | | | | | | | | |
| هغې نه لکه دا کار کړې مصنف | | | | | | | | | | |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب د کافیې د یو سوال جواب کوي ، هغه سوال دا دې چې مصنف ولې د جمهورو علماو مخالفت وکړو چې تفصیل یې لاندې په شرحه کې ذکر دې

**اغراض دجامي** : وانما عدل المصنف: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال** : دا دی چې جمهورو د معرب تعریف کړې دی ما اختلف آخره باختلاف العوامل مصنف د جمهورو د تعریف نه عدول ولې وکړو ؟

**جواب** : شارح ددې جواب ورکړو چې د جمهورو تعریف دَور لره مستلزم وو او دور باطل دی نو ددې وجې نه مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ خپل تعریف وکړو او د جمهورو تعریف یې پریخودو د جمهوروتعریف دَور لره څنګه مستلزم دی ددې دتفصیل دپاره درې مقدمې په ذهن کې ساتئ

**اوله مقدمه دا چې** د علم نحو د تدوین غرض دا دی چې کوم یو کس د لغت عرب تتبع او تلاش هم نه وي کړی او د هغوی نه یې سماع هم نه وي کړي نو دې کس لره د کلمې د آخر حالاتو معرفت حاصل شي او معرب هم د علم نحوې حصه ده ددې په معرفت اوپیژندلو سره به هم دا غرض اومقصد وي یعنې معرفت اوپیژندل دحالات آخر .

**دوهمه مقدمه دا چې** غرض د شئ دامؤخر وي د شئ نه لکه دکټ جوړېدو غرض په کټ کې اوده کیدل دي نو اوده کېدل وروستو وي د کټ جوړېدو نه.

**دریمه مقدمه دا چې** د حد او تعریف معرفت دا مقدم وي دمعرف اودمحدود دمعرفت نه څکه چې حد اوتعریف موقوف علیه وي اودمعرف معرفت موقوف وي اوقانون دادې چې موقوف علیه دموقوف نه مقدم وي

په دې درې مقدماتو باندې دخان پوهه کولو نه پس اوس په دې خبرې خان پوهه کړئ، چې د اولنۍ او دوهمې مقدمې تقاضا داده چې د آخر معرفت دمعرب دمعرفت نه مؤخر وي او د معرب معرفت داختلاف آخر دمعرفت نه مقدم وي اوکه چیرته دجمهوروالا تعریف وکړې شي نو ددریمې مقدمې تقاضا به داوي چې داختلاف آخر معرفت به مقدم وي دمعرب د معرفت نه چې ددې په نتیجه کې به داختلاف آخر معرفت په خپله داختلاف آخر دمعرفت نه مقدم وي نو

لازم به شي تقدم الشيء على نفسه او دا باطل دی لهذا مناسب دا ده چې تعريف دې د مصنف والا وکړی شي او د جمهورو تعريف دی د معرب د احکامو نه وګرځولې شي

## د معرب حکم:

وَ حُكْمُهُ اَیْ مِنْ جُمْلَةِ اَحْکَامِ الْمُعْرَبِ، وَ آثَارِهِ الْمُتَرَتِّبَةِ عَلَيْهِ مِنْ حَيْثُ هُوَ مُعْرَبٌ اَنْ

او حکم ددې يعنې د جملې د احکامو د معرب نه او د آثار مرتبو د معرب نه ددې حيثيت نه چې معرب دی چې

يَخْتَلِفَ آخِرُهُ اَيِ الْحَرْفُ الَّذِيْ هُوَ آخِرُ الْمُعْرَبِ ذَاتاً بِاَنْ يَتَبَدَّلَ حَرْفٌ بِحَرْفٍ آخَرَ

مختلف کيږي آخر دهغې يعنې هغه حرف چې هغه آخر د معرب دې ذاتاً چې بدليږي به حرف په حرف آخر دهغې

حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً اِذَا كَانَ اِعْرَابُهُ بِالْحَرْفِ اَوْ صِفَةً بِاَنْ يَتَبَدَّلَ صِفَةٌ

سره حقيقتاً او يا حکماً چې کله اعراب د هغې په حرف سره وي يا صفتا په داسې شان چې بدليږي به صفت

بِصِفَةٍ اُخْرٰى حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً اِذَا كَانَ اِعْرَابُهُ بِاخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ

د هغې په صفت آخر سره حقيقتاً او يا حکما چې کله وي اعراب د هغې په حرکت سره په اختلاف د عواملو سره

اَیْ بِسَبَبِ اِخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ الدَّاخِلَةِ عَلَيْهِ فِي الْعَمَلِ بِاَنْ يَعْمَلَ

يعنې په سبب د اختلاف د عواملو چې کوم داخليږي په دې باندې په عمل کې په داسې شان چې عمل به کوي

بَعْضٌ مِّنْهَا خِلَافُ مَا يَعْمَلُ الْبَعْضُ الْاٰخَرُ وَ اِنَّمَا خَصَّصْنَا اِخْتِلَافَهَا بِكَوْنِ فِي الْعَمَلِ

بعضې د هغې نه مخالف د عمل د بعضې نورو او خاص کړو مونږ اختلاف د عواملو په کيدلو ددې په عمل کې

لِئَلَّا يَنْتَقِضَ بِمِثْلِ قَوْلِنَا اَنَّ زَيْداً مَضْرُوْبٌ وَ اِنِّيْ ضَرَبْتُ زَيْداً وَ اِنِّيْ ضَارِبٌ زَيْداً فَاِنَّ

ددې د پاره چې منقوض نه شي په مثل ددې قول زمونږ چې ان زيدا مضروب واني ضربت زيدا و اني ضارب زيدا خکه

الْعَامِلَ فِيْ زَيْداً فِيْ هٰذَا الصُّوَرِ مُخْتَلِفٌ بِالْاِسْمِيَّةِ وَ الْفِعْلِيَّةِ وَ الْحَرْفِيَّةِ مَعَ اَنَّ آخِرَ

چې عامل په زيدا په دغه صورتونو کې مختلف دې په اسميت او فعليت او حرفيت سره. سره ددې نه چې آخر د

الْمُعْرَبِ لَمْ يَخْتَلِفْ بِاخْتِلَافِهِ لَفْظاً اَوْ تَقْدِيْراً نُصِبَ عَلَى التَّمْيِيْزِ اَیْ يَخْتَلِفُ

معرب نه دې مختلف شوې په اختلاف دعواملو سره لفظاًاوتقديراًمنصوب دې بناء بر تميز يعنې مختلف کيږي

لَفْظُ آخِرِهِ اَوْ تَقْدِيْرِهِ اَوْ عَلَى الْمَصْدَرِيَّةِ اَیْ يَخْتَلِفُ اِخْتِلَافُ لَفْظٍ اَوْ تَقْدِيْرٍ وَ

په لفظ آخر د هغې بناء بر تقدير، يا بناء بر مصدريت يعنې چې مختلف کيږي به اختلاف لفظي او يا تقديري او

الْاِخْتِلَافُ لَفْظاً كَمَا فِيْ قَوْلِكَ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَ رَاَيْتُ زَيْداً وَ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ وَ تَقْدِيْراً كَمَا فِيْ قَوْلِكَ جَاءَنِيْ فَتًى

اختلاف لفظي په دې قول ستا کې جاءني زيد ورأيت زيدا ومررت بزيد او تقديري په دې قول ستا کې جاءني فتى و

وَ رَاَيْتُ فَتًى وَ مَرَرْتُ بِفَتًى فَاِنَّ اَصْلَهُ فَتَيٌ وَ فَتَياً وَ فَتَيٍ اِنْقَلَبَتِ الْيَاءُ اَلِفاً فَصَارَ الْاِعْرَابُ تَقْدِيْرِيًّا وَ

رأيت فتى ومررت بفتى خکه چې اصل ددې فتيٌ وفتياً فتيٍ بدله شو ياء په الف سره نو وګرځيده اعراب تقديري او

| |
|---|
| الْاِخْتِلَافُ اللَّفْظِيُّ وَ التَّقْدِيْرِيُّ اَعَمُّ مِنْ اَنْ يَّكُوْنَ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً كَمَا اَشَرْنَا اِلَيْهِ |
| اختلاف لفظي او تقديري عام دي ددې نه چې وي حقيقتاً او يا حكماً لكه څنګه چې اشاره كړې مونږ هغې ته |
| لِئَلَّا يَنْتَقِضَ بِهِ مِثْلُ قَوْلِنَا رَاَيْتُ اَحْمَدَ مَرَرْتُ بِاَحْمَدَ وَ قَوْلِنَا رَاَيْتُ مُسْلِمِيْنَ وَ مَرَرْتُ |
| ددې خكه چې منقوض شي په مثال ددې قول زمونږ رأيت احمد مررت بأحمد او دا قول زمونږ رأيت مسلمين و مررت |
| بِمُسْلِمِيْنَ مُثَنًّى اَوْ مَجْمُوْعاً فَاِنَّهُ قَدِ اخْتَلَفَ الْعَوَامِلُ فِيْهِ وَلَا اِخْتِلَافَ فِيْ آخِرِ |
| بمسلمين چې تثنيه وي او يا جمع وي خكه چې مختلف شو عوامل په دې كې او اختلاف نه ليدل كيږي په آخر د |
| اَحْمَدَ حَقِيْقَةً بَلْ حُكْماً فَاِنَّ فَتْحَةَ اَحْمَدَ بَعْدَ النَّاصِبِ عَلَامَةُ النَّصْبِ وَ بَعْدَ |
| احمد كې حقيقتاً بلكه حكماً دي خكه چې فتحه د احمد وروستو د عامل ناصبه نه علامه د نصب ده او وروستو د |
| الْجَارِّ عَلَامَةُ الْجَرِّ وَ كَذَا الْحَالُ فِي التَّثْنِيَةِ وَ الْجَمْعِ فَآخِرُ الْمُعْرَبِ فِيْ هٰذِهِ الصُّوَرِ يَخْتَلِفُ |
| عامل جاره نه علامه د جر ده همدا رنګې حال دي په تثنيه او جمع كې نو آخر د معرب په دې صورتونو كې مختلف |
| بِاِخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ حُكْماً لَا حَقِيْقَتاً. |
| كيږي په اختلاف د عواملو سره حكمانه حقيقتاً. |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره صاحب د كافيې د معرب حكم بيانوي د معرب حُكم دا دی، چې د معرب آخر په اختلاف د عواملو سره مختلف كېږي بيا ددې اختلاف اجمالاً شپږ صورتونه جوړېږي. په درې تعميمونو سره :

**اولنی تعميم** دا چې هغه اختلاف به ذاتاً وي يا صفتاً اختلاف ذاتاً وي يعنې حرف د حرف سره بدل شي او اختلاف صفتاً وي يعنې حركت د حركت سره بدل شي.

**دوهم تعميم** دا چې لفظاً دي يا تقديراً اختلاف لفظاً هغه ته وايي چې د هغې تلفظ كيدې شي او اختلاف تقديراً هغه ته وايي چې د هغې تلفظ نه شي كيدې.

**دريم تعميم** دا چې حقيقةً وي يا حكماً، حقيقةً وي يعنې په درې واړو حالتونو كې اختلاف واقع وي اختلاف حكماً وي يعنې په بعضو حالتونو كې اختلاف واقع وي.

نو ددې درې واړو تعميمونو د وجهې نه په اجمالي طريقې سره خو شپږ صورتونه جوړېږي، خو په تفصيلي طريقې سره اته صورتونه جوړېږي، خكه چې اصل تقسيم د اعراب اختلاف د ذاتاً او صفتاً طرف ته كيږي بيا د هر يو سره لفظاً او تقديراً حقيقةً او حكماً لږولې شي، نو ټول اته قسمونه جوړېږي چې مثالونه يې په لاندې ډول دي :

۱: اختلافي ذاتي لفظي حقيقي جاءني ابوك، رايت اباك، مررت بابيك

۲: اختلاف ذاتي لفظي حكمي جاءني مسلمان، ورايتُ مسلمين، و مررت بمسلمين.

۳ اختلاف ذاتي تقديري حقيقي لکه جاءني ابو القوم، رأيت ابا القوم، مررت بأبي القوم

۴ اختلاف ذاتي تقديري حکمي، جاءني مسلميّ و رايت مسلمي، مررت بمسلمي

۵ اختلاف صفتي لفظي حقيقي، جاءني زيدٌ، رايت زيد و مررت بزيد

۶ اختلاف صفتي لفظي حکمي، جاءني احمد و رايت احمد و مررت باحمد

۷ اختلاف صفتي تقديري حقيقي، جاءني فتیٌ رايت فتیً و مررت بفتیٍ

۸ اختلاف صفتي تقديري حکمي، جاءني موسی و رايت موسی و مررت بموسی.

**اغراض د جامي** : وحکمه: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال** : د حکم اضافت ضمير طرف ته صحيح نه دی، ځکه چې ضمير واپس کېږي د معرب طرف ته او د حکم معنی ده اثر نو دا اختلاف د عامل اثر وي نه د معرب نو د معرب طرف ته دې لره ولې مضاف کړو ؟

**جواب** : شارح ددې دوه جوابونه ورکړي دي:

**اول جواب** : چې دا اضافت بتقدير اللام دی ای حکم له يعنې حکم د عامل چې ثابتيږي، په واسطې د معرب سره .

**دوهم جواب** : بعضو دا جواب ورکړې دې چې دا اضافت د ادنی ملابست د وجې نه دی، ځکه چې په عامل او معمول کې شدت اتصال وي نو د ادنی ملابست د وجې نه اضافت يې معرب طرف ته وکړو

ای من جملة احکام المعرب: په دې عبارت سره شارح د يو سوال مقدر جواب ورکوي :

**سوال** : چې تا د معرب کوم حکم اختلاف والابيان کړو دا جامع نه دی، خپل ټول افرادو لره ځکه چې کله داسماء معدوده نه يو اسم واخلې ابتداءً او د عامل سره يې يوځای کړې، نو هلته د اسم معرب په آخر کې په اولني ځل اعراب راځي، چې هغې ته حدوث اعراب ويلی کېږي. اختلاف آخر خو هلته موجود نه وي، لکه په جاءني زيد کې زيد معرب خو دی خو ددې په آخر کې اختلاف نشته دی، بلکې حدوث د اعرابو شوې دی د جاءني د راتلو د وجې نه او د جاءني نه پس چې کله رأيت پرې داخل کړې او رايت زيداً ووايې نو بيا به د اختلاف آخر حکم موجويږي، نو د اختلاف آخر والاحکم جامع نه شو کله موندلی کېږي، او کله نه موندلی کېږي

**جواب** : شارح د دې جواب ورکړې دی په **من جملة احكام المعرب** سره يعنې د معرب خو احکام ډير دي حدوث اعراب هم د معرب حکم دی اختلاف آخر هم د معرب حکم دی په دې احکام کثیرو کې مونږ صرف یوحکم بیان کړي د اختلاف آخر والا مونږه دا دعوی په هغه وخت کې کړې ده، چې صرف دا یو حکم دی د معرب زیات نه زیات نه صرف دومره ویلې شي چې کوم حکم مونږ بیان کړی دی، هغه د معرب خاصه شامله نه ده، بلکې غیر شامله ده په بعضې افرادو کې موندلی کیږي، او په بعضو کې نه موندلی کیږي

<u>**والاثارُ المترتبة عليه**</u> : په دې عبارت کې شارح د حکم معنی بیان فرمایي ځکه چې د حکم متعدد معاني راځي ۱ **اثر مرتب على الشيء** ۲ **خطاب الله تعالى بافعال المكلفين** ۳ **اسناد امر الى امر آخر ايجابا او سلبًا** ۴ **وقوع النسبة و عدم وقوعها** ، په دې مقام کې اوله معنی مراد ده باقي معناګانې دلته بداهة نه شي جوړیدای.

<u>**من حيث هو معرب**</u> : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي.

**سوال** : حکم د اختلاف آخر والا خو د معرب په یو فرد هم صادق نه راځي، ځکه چې فاعل معرب دی ددې حکم دی مرفوع کیدل او مفعول معرب دی، ددې حکم دی منصوب کېدل مضاف اليه معرب وي او [illegible] ې حکم دی مجرور کېدل د چا حکم آخر لره مختلف کېدل نه دي، نو تا څنګه حکم وکړو چې په یو معرب کې هم نه شي موندلې.

**جواب** : شارح ددې جواب ورکړو. چې دا **اختلاف آخر** والا حکم معرب دی ددې حیثیت نه چې هغه معرب دی **من حيث** [illegible] لا**من حيث انه فاعل** او **مفعول** تا چې کوم د فاعل حکم يعنې مرفوع کیدل او د مفعول منصوب کیدل او د مضاف اليه مجرور کیدل، بیان کړي دي هغه ددې احکام دي **من حيث انه فاعل او مفعول او مضاف اليه لامن حيث انه معرب**، نو هغه ددې احکام خاصه ده د معرب کېدو د حیثیت نه ددې مشترکه حکم اختلاف آخر والا هم دی.

<u>**اى الحرف الذى هو آخر المعرب**</u> : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : سوال دا دی چې تثنیه او جمع معرب دی خو د مختلف عوامل په راتلو سره ددې آخر همیشه یو شان وي تبدیلي په کې نه راځي، لکه **جاءني مسلمانِ ورأيت مسلمين و مررت بمسلمين** او اوس د تثنیې آخري حرف نون مکسوره دی هغه په درې واړو حالاتو کې یو شان موجود دی او دا حال د جمع هم دی.

**جواب**: شارح د دې جواب ورکړې دې، زمونږ مراد دادې چې اختلاف به د معرب په آخر کې واقع کيږي، په تثنيه او جموع کې نون مستقله کلمه وي، چې د تنوين عوض جوړيږي، د معرب آخر خو د دې نون نه مخکې وي چې تبديليږي

ذاتاً: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي.

**سوال**: په جاءني زيدٌ، رأيت زيداً ومررت بزيد کې د معرب آخري حرف دال دی او هغه خو بدل نه شو او زيد معرب هم دی، او عوامل هم مختلف دي؟

**جواب**: چې زمونږ مراد د آخر مختلف کيدو نه عام دی ذاتاً مختلف وي او که صفتاً د ذاتاً نه مراد دادی چې حرف د حرف سره بدل شي نو دا اعراب به بالحرف وي صفتاً مراد دی چې حرکت د حرکت سره بدل شي د اعراب بالحرکت وي لکه جاءني زيد کې حرکت د حرکت سره بدل شوی دی، نو په دې کې اختلاف صفتاً دی.

بسبب اختلاف العوامل الداخلة عليه: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا دی چې مونږ به تاته وښايو چې ستا د معرب دا حکم په مبني کې هم موندلی کيږي، لکه جاءني زيدٌ ته ويونکی ته به بعضې وختونو کې ويلی کيږي، مَنُ (بضم النون) رايت زيداً ويونکی ته ويلی کيږي، مَنَ (بفتح النون) مررت بزيد ويونکی ته ويلی کيږي، مَنِ (بکسر النون) نو من مبني دی او د دې آخر بدليږي؟

**جواب**: زمونږ د اختلاف د آخر نه مراد هغه اختلاف دی، چې د هغه سبب د مختلف عوامل دخول وي په خپل معرب باندې او د من آخر د عواملو د اختلاف د وجې نه حذف شوی نه دی، بلکې د زيد د حرکت د مناسبت د وجې نه مختلف کيږي.

في العمل: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

سوال: مونږ به تاته وښايو چې د عواملو اختلاف موندلی کيږي، خو د معرب آخر مختلف شوې نه وي لکه انَّ زيداً ضاربٌ، اني ضربتُ زيداً، اني ضارب زيداً، اوس په دې دريو وارو مثالونو کې زيد معرب دی او منسوب هم دی خو په اولني مثال کې د دې عامل ان ضرب دی په دويم مثال کې ضربت فعل دی په د ريم مثال کې ضارب اسم دی نو عوامل خو مختلف شو، خو د معرب آخر په درې واړو مثالونو کې منسوب دی؟

**جواب**: شارح جواب ورکړی في العمل اختلاف د عواملو مراد نه دی چې د دې ذات به مختلف

وي د اسميت فعليت او حرفيت په اعتبار سره بلکې د اختلاف د عواملو نه مراد دادی چې ددې عمل مختلف وي که يو رافع وي، نو دوهم به ناصب وي او دريم به جار وي په مذکوره مثالونو کې درې واړه عوامل ناصب دي، نو په عمل کې مختلف نه دي ددې وجې نه د معرب آخر نه شو.

نصبٌ على التميز: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: لفظاً او تقديراً يې منصوب ذکر کړې دی دې لره منصوب ويل صحيح نه دي، ځکه چې په نصب کې دوه احتماله دي يا به تميز وي يا به مفعول مطلق خو دواړه احتمالونه صحيح نه دي، تميز جوړول دې لره ځکه صحيح نه دي، چې مميز عن النسبة معنىً فاعل يا مفعول وي او دلته فاعل په آخر کې وي لفظاً او تقديراً فاعل نه شي کيدې، ځکه چې د مختلف کېدو والا خو د معرب آخر وي نه لفظاً او تقديراً او مفعول مطلق جوړول هم صحيح نه دي ، ځکه چې ددې معنى او د مخکې فعل معنى خو يوه نه ده.

**جواب**: شارح جواب ورکړو چې باب التاويل مفتوح يعنې دواړه جوړول صحيح دي، چې تميز يې جوړ کړی ، نو تقدير د عبارت به يې داسې شي چې ان يختلف لفظ آخره او تقديرهُ نو دا به معنىً فاعل جوړ شي او که چيرته مفعول مطلق يې جوړ کړي نو بيا دا عبارت د حذف د مضاف اليه د قبيلې نه دی په اصل کې ان يختلف اختلاف لفظ او تقدير مضاف يې حذف کړو او مضافٌ اليه د دې قائمقام جوړ کړه او اعراب يې ورلره د مضاف والا ورکړل نو دا به مفعول مطلق جوړ شي.

## ديو سوال جواب:

| |
|---|
| فَإِنْ قُلْتَ لاَ يَتَحَقَّقُ الإِخْتِلاَفُ لاَ فِيْ آخِرِ الْمُعْرَبِ وَلاَ فِيْ الْعَوَامِلِ إِذَا رُكِّبَ |
| که ته سوال وکړې چې محقق نه شو اختلاف نه په آخر د معرب کې او نه په عواملو کې چې کله مرکب شي |
| بَعْضُ الأَسْمَاءِ الْمَعْدُوْدَةِ الْغَيْرِ الْمُشَابِهَةِ لِمَبْنِيِّ الأَصْلِ مَعَ عَامِلِهِ إِبْتِدَاءً أَنْ لاَ يَتَرَتَّبُ |
| بعضې اسماء معدوده چې غير مشابه وي د مبني اصل سره، سره د عامل نه ابتداءً ځکه چې نه مرتب کيږي په |
| عَلَيْهِ اخْتِلاَفُ الإِعْرَابِ بَلْ هُنَاكَ حُدُوْثُ الإِعْرَابِ بِدُخُوْلِ الْعَامِلِ قُلْتُ هَذَا حُكْمٌ آخَرُ مِنْ |
| دغې باندې اختلاف د اعراب بلکې هلته حدوث د اعراب وي په دخول د عامل سره مونږ وايو دا حکم د آخر د |
| أَحْكَامُ الْمُعْرَبِ وَ الإِخْتِلاَفُ حُكْمٌ آخَرُ فَلَوْ لَمْ يَدْخُلْ أَحَدُ الْحُكْمَيْنِ فِيْ الآخَرِ لاَ فَسَادَ فِيْهِ |
| احکامو د معرب دي او اختلاف حکم آخر دي که چيرته داخل نه شي يو د حکمينو نه په بل کې فساد نشته په دې |

| فَإِنَّ لِلْمُعْرَبِ أَحْكَاماً كَثِيْرَةً لَمْ يَذْكُرْهُ هٰهُنَا هٰذَا الْحُكْمُ أَيْضاً مِنْ هٰذَا الْقَبِيْلِ |
|---|
| کې خکه چې د معرب دپاره ډیر احکام دي چې نه دي ذکر شوي دلته پس دا حکم هم د قبيلې د همدې احکامو نه |
| غَايَةُ الْأَمْرِ أَنَّ هٰذَا الْحُكْمَ لَا يَكُوْنُ مِنْ خَوَاصِهِ الشَّامِلَةِ الْإِعْرَابِ مَا أَىْ حَرَكَةٌ أَوْ حَرْفٌ |
| دي نهائي امر چې دا حکم نه دي دهغه خواصو نه چې شامل دي معرب ته اعراب يعني که حرکت وي او يا حرف |
| إِنِ اخْتَلَفَ آخِرَهُ أَىْ آخِرُ الْمُعْرَبِ مِنْ حَيْثُ هُوَ مُعْرَبٌ ذَاتاً أَوْ صِفَةً بِهِ أَىْ بِتِلْكَ الْحَرَكَةِ أَوِ |
| وي که چيرته مختلف شي آخر د اسم معرب د حيثيت د دې نه چې دا معرب دي ذاتا او يا صفت په دغه حرکت او |
| الْحَرْفِ، وَ حِيْنَ يُرَادُ بِمَا الْمَوْصُوْلَةُ الْحَرَكَةُ أَوِ الْحَرْفُ لَا يَرِدُ النَّقْضُ بِالْعَامِلِ أَوِ |
| يا حرف سره دا هله چې مراد شي په ماموصولې سره حرکت او يا حرف نو نه وارديږي نقض په عامل سره او يا په |
| الْمَعْنَى الْمُقْتَضِى وَ لَوْ أُبْقِيَتْ عَلٰى عُمُوْمِهَا خَرَجَا بِالسَّبَبِيَّةِ الْمَفْهُوْمَةِ |
| معنی مقتضي سره پس که چيرته باقي پاتې شي په خپل عموم باندې پس خارج به شي په سببيت مفهومي سره |
| مِنْ قَوْلِهِ بِهِ فَإِنَّ الْمُتَبَادِرَ مِنَ السَّبَبِ هُوَ السَّبَبُ الْقَرِيْبُ وَالْعَامِلُ وَالْمَعْنَى الْمُقْتَضِى مِنَ الْأَسْبَابِ الْبَعِيْدَةِ. |
| د دې قول نه خکه چې متبادر د سبب نه هغه سبب قريبه دي او عامل او معنی مقتضي د اسبابو بعيدو نه ده. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب د کافيې د يو سوال جواب ورکوي.

**اغراض د جامي** : لا يتحقق الاختلاف لا في آخر المعرب ولا الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال مقدر جواب ورکوي.

**سوال** : چې تا د معرب کوم حکم اختلاف والابيان کړو دا جامع نه دی، خپل ټول افرادو لره خکه چې کله د اسماء معدوده نه يو اسم واخلې ابتداءً او د عامل سره يې يو ځای کړې، نو هلته د اسم معرب په آخر کې په اولني ځل اعراب راځي، چې هغې ته حدوث اعراب ويلی کېږي. اختلاف آخر خو هلته موجود نه وي، لکه په جاءني زيد کې زيد معرب خو دی خو د دې په آخر کې اختلاف نشته دی، بلکې حدوث د اعرابو شوې دی د جاءني د راتلو د وجې نه او د جاءني نه پس چې کله رأيت پرې داخل کړې او رايت زيداً ووايې نو بيا به د اختلاف آخر حکم موجوديږي، نو د اختلاف آخر والا حکم جامع نه شو کله موندلی کېږي، او کله نه موندلی کېږي

**جواب** : شارح د دې جواب ورکړې دی په من جملة احکام المعرب سره يعنې د معرب خو احکام ډير دي حدوث اعراب هم د معرب حکم دی اختلاف آخر هم د معرب حکم دی په دې احکام کثيرو کې مونږ صرف يو حکم بيان کړي د اختلاف آخر والا مونږه دا دعوی په هغه وخت کې کړې ده. چې صرف دا يو حکم دی د معرب زيات نه زيات نه صرف دومره ويلې شي چې کوم

حکم مونږ بيان کړی دی، هغه د معرب خاصه شامله نه ده، بلکې غير شامله ده په بعضې افرادو کې موندلی کيږي، او په بعضو کې نه موندلی کيږي

اى آخر المعرب: په دې عبارت سره شارح په آخره کې د ة ضمير مرجع متعين کوي چې د آخره ضمير مرجع آخر المعرب دي

اى حركة و حرف: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال**: تاچې د اعراب کوم تعريف کړی دی هغه د دخول دغير نه مانع نه دی په عامل او معنى مقتضى للاعراب باندې ستا تعريف صادق راځي، ځکه چې ددې وجې نه هم دمعرب آخر مختلف کيږي.

**جواب**: شارح ددې جواب په دې مذکوره عبارت کې ورکړی دی، چې د ما نه مراد شئ نه دی بلکې حرکت يا حرف دی.

**سوال**: بعضې عامل هم خو حرف وي لکه حروف مشبه بالفعل وغيره نو هغه به بيا هم داخليږي؟

**جواب**: حروف په دوه قسمه دي حروف مباني او حروف معاني حروف مباني هغه ته وايي چې د معانيو په مقابله کې وضع کړې وي او حروف معاني هغې ته وايي چې د هغې نه کلمات جوړ شوې وي په دې مقام کې د حرف نه مراد زمونږ حروف مباني دي او عامل کوم چې حروف دي هغه د حروف معانيو نه وي.

دا جواب کمزوری دی ځکه چې د ما لفظ جنس دی په تعريف کې او د جنس مناسب شمول او عموم وي په دې کې تخصيص پيدا کولو سره چا لره خارجول مناسب نه وي، د دې وجې نه دوهم جواب بهتر دی هغه دا چې شارح د خپل قول ولو بقيت على عمومها نه بيان کړی دی د دوهم جواب خلاصه داده، چې په به کې باء د سببيت دپاره ده او د سبب نه مراد سبب قريبه دی نه سبب بعيده. ځکه چې المطلق اذا يطلق يراد به الفرد الكامل ددې لپاره چې کله سبب وويلی شي نو ددې نه متبادر دفرد کامل سبب قريب اخيستلې شي، قريب هغه وي چې مفضى الى المسبب وي په غير د واسطې نه. لکه اب للابن

نو د معرب په آخر کې چې کوم اختلاف وي ددې دپاره سبب قريب اعراب جوړيږي، عامل او معنى مقتضى د سبب بعيد دپاره جوړيږي. ځکه چې عامل پيدا کوئ اسناد لره او اسناد پيدا

کوي معنی مقتضی لره او معنی مقتضی پیدا کوي اعراب لره او اعراب پیدا کوي اختلاف آخر لره نو د عامل او اختلاف په مینځ کې درې واسطې شوي او معنی مقتضی او د اختلاف په منځ کې یوه واسطه ده نو دا دواړه د اسباب بعیده نه شو، ځکه چې د اعراب او اختلاف په مینځ کې څه واسطه نشته دی، نو دا سبب قریب شو.

من حیث هو معرب: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ستا د اعراب تعریف مانع نه دی د دخول د غیر نه دا په غلامي کې چې په میم باندې کومه کسره ده په هغې باندې هم د اعراب تعریف صادق راځي، ځکه چې دا په اصل کې غلام وو حرکت د کسری ددې په آخر کې اختلاف پیدا کړو.

**جواب**: دلته د حیثیت قید معتبر دی چې اعراب هغه څیز دی چې د هغې د وجې نه د معرب آخر مختلف وي ددې حیثیت نه چې هغه معرب دی او د غلامي په آخر کې حرکت د کسری چې کوم اختلاف پیدا کړی دی هغه ددې حیثیت نه دی چې دا به یاء د متکلم ما قبل جوړېږي نه ددې حیثیت نه چې هغه معرب دی.

ذاتاً وصفةً: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: په جاءني زيدٌ، رأيت زيداً ومررت بزيدٍ کې د معرب آخري حرف دال دی او هغه خو بدل نه شو او زید معرب هم دی، او عوامل هم مختلف دي؟

**جواب**: چې زمونږ مراد د آخر مختلف کیدو نه عام دی ذاتاً مختلف وي او که صفتاً د ذاتاً نه مراد دادی چې حرف د حرف سره بدل شي نو دا اعراب به بالحرف وي صفتاً مراد دی چې حرکت د حرکت سره بدل شي د اعراب بالحرکت وي لکه جاءني زيد کې حرکت د حرکت سره بدل شوی دی، نو په دې کې اختلاف صفتاً دی.

| وَ بِقَيْدِ الْحَيْثِيَّةِ خَرَجَ حَرَكَةُ نَحْوِ غُلَامِيْ لِأَنَّهُ مُعْرَبٌ عَلَى اِخْتِيَارِ الْمُصَنِّفِ لٰكِنَّ |
|---|
| او په قید د حیثیت سره خارج شو حرکت په مثل د غلامي کې ځکه چې دا معرب دي په اختیار د مصنف کې لیکن |
| اِخْتِلَافَ هٰذَا الْحَرَكَةِ عَلَى آخِرِ الْمُعْرَبِ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ مُعْرَبٌ بَلْ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ |
| اختلاف ددې حرکت په آخر د معرب نه دي دحیثیت ددې نه چې دا اسم معرب دي بلکې ددې حیثیت نه چې |
| مَا قَبْلَ يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ وَ بِهٰذَا الْقَدْرِ تَمَّ حَدُّ الْإِعْرَابِ جَمْعاً وَ مَنْعاً لٰكِنَّ |
| ماقبل ددې یاء متکلم ده او په همدې اندازه پوره شو تعریف د اعراب د حیثیت د جامعیت او مانعیت نه لیکن |

| الْمُصنِّفُ | أَرَادَ | أَنْ | يُنَبِّهَ | عَلَى | فَائِدَةِ | اِخْتِلَافِ | وَضْعِ | الْإِعْرَابِ | فَضَمُّ | إِلَيْهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مصنف اراده وکړه چې خبرداري وکړي په يوې فائدې د اختلاف او وضعې د اعراب پس پيوسته يې کړو ددې | | | | | | | | | | |
| قَوْلُهُ | لِيَدُلَّ | عَلَى | الْمَعَانِي | الْمُعْتَوَرَةِ | عَلَيْهِ | فَكَأَنَّهُ | أَرَادَ | | | |
| سره داقول ليدل على المعاني چې دلالت وکړي په هغه معانيو چې پرلپسې راځي پس ګوياچې ده اراده کړه مصنف | | | | | | | | | | |
| هَذَا الْمَعْنَى حَيْثُ قَالَ لَيْسَ هَذَا مِنْ تَمَامِ الْحَدِّ لَا أَنَّهُ خَارِجٌ عَنِ الْحَدِّ . | | | | | | | | | | |
| دامعنی په داسې شان چې وې ويل نه دې دا پوره تعريف او نه خارج دتعريف نه . | | | | | | | | | | |

**خلاصه دمتن :** په دې عبارت سره صاحب کافيه د قيودو فوائد بيانوي .

**اغراض د جامي :** وبقيد الحيثية : په دې عبارت سره شارح د حيثيت دقيد فائده بيانوي چې د حيثيت په قيد سره حرکت خارج شو .

من حيث هو معرب : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال :** ستا د اعراب تعريف مانع نه دی د دخول د غير نه دا په غلامي کې چې په ميم باندې کومه کسره ده په هغې باندې هم د اعراب تعريف صادق راځي، ځکه چې دا په اصل کې غلام وو حرکت د کسرې ددې په آخر کې اختلاف پيدا کړو.

**جواب :** دلته د حيثيت قيد معتبر دی چې اعراب هغه ځيز دی چې د هغې د وجې نه د معرب آخر مختلف وي ددې حيثيت نه چې هغه معرب دی او د غلامي په آخر کې حرکت د کسرې چې کوم اختلاف پيدا کړی دی هغه ددې حيثيت نه دی چې دا به ياء د متکلم ما قبل جوړېږي نه ددې حيثيت نه چې هغه معرب دی .

وبهذا القدر قد تم : ددې ځای نه تر ليدل على الخ پورې شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال :** دا وارد شو چې د ماتن عبارت ليدل على المعاني الخ سره چا لره خارجول مقصود دي، که چيرته چا لره خارجول مقصود وي، نو هغه دې بيان کړي او که چېرته چا لره يې خارجول مقصود نه وي نو بيا دا قيد مستدرك او زائد دی، او بناء د مُتونو په اختصار وي .

**جواب :** ددې يو جواب علامه هندي ورکړی دی، چې ددې قيد د اعراب د تعريف سره هيڅ تعلق نشته دی بلکې دا قيد د تعريف نه خارج دی او دا جمله مستانفه ده .

دلته يو سوال راځي :

**سوال :** سوال دا دی چې ولې يې اعراب وضع نه کړو ؟

**جواب**: شارح ددې دوه جوابات ورکړي دي.

**اول جواب**: دادې چې وضع ليدل على المعاني په دې احتمال کې ليدل بـه ظرف مـستقر شي او متعلق به شي د وضع سره چې د فحوی د کلام نه په ذهن کې راخي قرينه پـه دې بانـدې داده چې په خپله مصنف دکافيې په شرح آمالي کې ددې قيد په باره کې ويلي دي. ليسا هذا من تمام الحد بهر حال خلاصه دجواب داده، چې دا قيد د اعراب د تعريف نه خارج دی او ظرف مـستقر دې او متعلق دي تر وضع محذوف پورې.

**دوهم جواب**: دوهم جواب شارح ورکړې دی او د علامه هندي ترديد يې کـړې دی د شارح د جواب خلاصه داده، چې ليدل والاجمله د اعراب په تعريف کې داخل ده خارج نه ده او دا ظرف لغو جوړېږي متعلق دي تر اختلف آخره پورې، باقي پاتې شوستا دا سوال چې ددې نه چاله ويستل مقصود دي، نو د هغې جواب دا دی چې پـه تعريف کې ذکر کړی شوي ټول پـه ټوله قيودات احترازي نه دي بلکې قيودات اتفاقي هم دي، دې لره د تعريف په جـامع کيـدو او مانع کيدو کې هيڅ دخل نه وي، دا قاد اتفاقي دی احترازي نه دی ددې د ذکر کولـو سره د وضع د اعراب د اختلاف په فائدې باندې تنبيه کول مقصود دي.

د علامه هندي د ترديد خلاصه داده چې ستا په جواب کې انتهـايي بُعـد دی يـو خـو د تعريف سره متصل جملې دتعريف نه خارج کول بعيده ده بيا ددې نه ظرف مـستقر جـوړول هم بعيد دي، ځکه چې اصل پـه ظرف کې ظرف لغوه ده نو دوه بعيدونـه يـو ځـای شـول نـو د انتهـايي درجې بُعد ترې نه جوړ شو باقي پاتې شو ستا استدلال د مصنف د قول ليسا هذا من تمام الحد نو ددې جواب دا دی، چې ددې مطلب هم دغه دی چې دې جملې لره د تعريف پـه جـامع کيـدو او مانع کيدو کې هيڅ دخل نشته دی ځکه چې من تمام الحد والالفظ دلالت کـوي ددې دا مطلب نه دی، چې د تعريف سره ددې بالکل تعلق نشته دی.

| وَاللَّامُ فِي لِيَدُلَّ مُتَعَلِّقٌ بِأَمْرٍ خَارِجٍ عَنِ الْحَدِّ يَعْنِي وَضْعُ الْإِعْرَابِ الْمَفْهُوْمِ مِنْ فَحْوَى الْكَلَامِ فَإِنَّهُ |
|---|
| او لام په ليدل کې متعلق دي د امرخارج د تعريف نه يعنې وضع د اعراب چې فهميږي د فحوی د کلام نه ځکه |
| بَعِيْدٌ عَنِ الْفَهْمِ غَايَةَ الْبُعْدِ فَاللَّامُ فِيْهِ مُتَعَلِّقٌ بِقَوْلِهِ اِخْتَلَفَ آخِرُهُ |
| چې دا بعيده ده د فهم نه په نهايت بعد سره پس لام په دې کې متعلق دي په دې قول سره چې مختلف کيږي آخر |
| يَعْنِيْ اِخْتَلَفَ آخِرُهُ لِيَدُلَّ الْاِخْتِلَافُ أَوْ مَا بِهِ الْاِخْتِلَافُ عَلَى |
| ددې يعنې مختلف دي آخر ددې. ددې د پاره چې دلالت وکړي اختلاف يا هغه چې قائمقام د اختلاف وي په |

| |
|---|
| الْمَعَانِيْ يَعْنِي الْفَاعِلِيَّةِ وَ الْمَفْعُوْلِيَّةِ وَ الْإِضَافَةِ الْمُعْتَوَرَةِ عَلَى صِيْغَةِ اسْمِ الْفَاعِلِ عَلَيْهِ أَيْ |
| معانيو باندې يعني په فاعليو اويامفعوليو باندې او اضافت معتوره په صيغې د اسم فاعل په دې باندې يعني |
| عَلَى الْمُعْرَبِ مُتَعَلِّقٌ بِمُعْتَوَرَةٍ عَلَى تَضْمِيْنِ مِثْلُ مَعْنَى الْوُرُوْدِ أَوِ الْإِسْتِيْلَاءِ يُقَالُ اِعْتَوَرُوْا |
| په معرب باندې متعلق دي په معتوره پورې سره د تضمين په مثل د معنى دورود يا د غلبې ويلې كيږي اعتوروا |
| الشَّيَّ وَ تَعَاوَرُوْهُ إِذَا تَدَاوَلُوْهُ أَيْ أَخَذَ جَمَاعَةٌ وَاحِدَةٌ بَعْدَ وَاحِدَةٍ عَلَى سَبِيْلِ الْمُنَاوَبَةِ وَ |
| الشيئ وتعاوروه كله چې واړول راوړول شي يعني واخيست يوجماعت وروستو دبل جماعت نه په طريقې د نمبر او |
| الْبَدَلِيَّةِ لَا عَلَى سَبِيْلِ الْإِجْتِمَاعِ فَإِذَا تَدَاوَلَتِ الْمَعَانِي الْمُقْتَضِيَةُ لِلْإِعْرَابِ الْمُعْرَبِ |
| بدليت سره نه په طريقې داجتماع سره پس هركله چې متداولې شوې معنى مقتضي داعراب داسم معربه دپاره |
| مُتَعَاقِبَةً مُتَنَاوِبَةً غَيْرَ مُجْتَمِعَةٍ لِتَضَادِّهَا فَيَنْبَغِيْ أَنْ تَكُوْنَ عَلَامَاتُهَا أَيْضاً كَذٰلِكَ |
| پرلپسې چې غير مجتمع وي د وجې د ضديت د هغې نه پس مناسب دي چې شي علامت د هغې هم همدارنګې |
| فَوَقَعَ بِسَبَبِهَا اِخْتِلَافٌ فِيْ آخِرِ الْمُعْرَبِ فَوَضَعَ أَصْلُ الْإِعْرَابِ لِلدَّلَالَةِ عَلَى تِلْكَ الْمَعَانِيْ. |
| پس واقع شو په سبب د اختلاف په آخر د معرب كې پس وضع شواصل اعراب دپاره د دلالت په دې معانيو باندې |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب كافيه په ليدل كې د لام وضاحت كوي.

**اغراض دجامي** : ليدل الاختلاف او ما به الاختلاف: ده ليدل د ضمير لپاره تعدد د مرجع راويستلو سره يو اختلاف طرف ته يې اشاره وكړه اختلاف په دې خبره كې دى چې اعراب د څه څيز نوم دى د متقدمين په نزد اعراب نوم دى د نفس اختلاف ځكه چې دا ضد دى د بناء او بناء نوم دى د نفس عدم اختلاف نو اعراب نوم شو د نفس اختلاف.

د متاخرينو په نزد داعراب نوم دى د ما به الاختلاف ځكه چې اعراب علامت دى او په علامت كې اصل دا دى، چې هغه موجود او متحقق وي او موجود ما به الاختلاف وي نفس اختلاف متحقق كېږي نه په دې دواړو صورتونو كې د متاخرينو تول راجح او مختار دى.

**على المعاني يعني الفاعلية والمفعولية الخ**: په دې عبارت سره شارح د علامه رضي ترديد كوي علامه رضي ويلي دي چې د معاني نه مراد كون الاسم عمدة و كون الاسم فضلة بلا واسطة او بالواسطة نو شارح ددې ترديد وكړو، چې د رضي خبره صحيح نه ده، ځكه چې مصنف رَحِمَهُ الله په خپله وويل : فالرفع علم الفاعلية والنصب علم المفعولية. نو بيا د مصنف په عبارت كې تضاد واقع كېدو چې دلته مراد دې كونين او مخكې مراد دى فاعليت او مفعوليت وغيره لهذا دلته هم د معاني نه فاعليت او مفعوليت وغيره مراد وي

المعتورة على صيغة اسم الفاعل : په دې ټول عبارت کې شارح په ماتن باندې د شوې سوال جواب ورکوي او د علامه هندي رد هم کوي :

**سوال** : المعتورة د اعتوار نه مشتق دي او اعتوار وايي اخذ جماعة شيئاً واحد بعد واحد او اخذ متعدي بنفسه وي تاسو معتوره په واسطې د على سره ولې متعدي کړو ؟

**جواب** : علامه هندي وايي چې داصيغه داسم مفعول ده او قانون دا دې چې کله کوم فعل متعدي يا د شبه فعل مجهول جوړ شي نو هغه فعل متعدي نه پاتې کيږي بلکې لازمي جوړيږي چې هر کله لازمي جوړ شو نو د على په واسطې سره متعدي کول صحيح دي ، نو علامه جامي رَحِمَهُ اللّٰهُ على صيغة اسم الفاعل وويل د علامه هندي رد يې وکړو چې دا جواب کمزورې دې ځکه چې اصل اسناد فعل يا شبه فعل د فاعل طرف ته وي او چې کله د دې نه اسم مفعول جوړ کړو نو د دې اسناد فاعل طرف ته به نه وي بلکه مفعول طرف ته به وي کوم چې خلافِ اصل دي او په غير د ضرورت نه د خلافِ اصل ارتکاب کولو څه ضرورت دي .

**لهذا صحيح جواب** دا دې چې دا صيغه داسم فاعل ده او على د دې صله ځکه راوړې شوه چې دا متضمن ده د استيلاء او د ورود معنى لره او د دې صله على راتلې شي ځکه يې د دې صله على راوړه .

فاذا تداولت المعاني الخ : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : د اعراب وضع يې مختلفا ولې وکړه يوه رفع يې د ټولو د پاره ولې علامت جوړ نه کړو يا نصب او يا جر به يې صرف يو علامت جوړ کړې وي .

**جواب** : د اعراب علامت جوړيږي په معاني معتورو باندې او دا معاني په اسم باندې څو څو خلې مخکې وروستو داسې راځي چې نه جمع کيږي په خپل مينځ کې د ضد د وجې نه ، نو په دې باندې چې کوم اعراب علامت جوړيږي هغه هم همدارنګې کيدل په کار دي لکه مدلول وي نو هماغه شان به دال هم وي ، د دې جواب نه د وضع د اعراب د اختلاف فائده هم معلومه شوه.

| وَ اِنَّمَا جُعِلَ الْاِعْرَابُ فِيْ اٰخِرِ الْاِسْمِ الْمُعْرَبِ لِاَنَّ نَفْسَ الْاِسْمِ يَدُلُّ عَلَى الْمُسَمّٰى وَ |
|---|
| او بې شکه وګرځولې شو اعراب په آخر د اسم معرب کې ځکه چې نفس اسم دلالت کوي په مسمى باندې او |
| الْاِعْرَابُ عَلٰى صِفَتِهٖ وَلَا شَكَّ اَنَّ الصِّفَةَ مُتَاَخِّرَةٌ عَنِ الْمَوْصُوْفِ فَالْاَنْسَبُ |
| اعراب دلالت کوي په صفت د هغې باندې او شک نشته چې صفت دا مؤخر وي د موصوف نه پس مناسب داده |

| |
|---|
| اَنْ يَكُوْنَ الدَّالُّ عَلَيْهَا اَيْضاً مُتَاخِراً عَنِ الدَّالِ عَلَيْهِ وَ هُوَ مَاخُوْذٌ مِنْ اِعْرَبَهُ اِذَا اَوْضَحَهُ |
| چې شي شئ داله په اعراب باندې هم مؤخرد شئ داله د موصوف نه او دا مأخوذ د اعرب نه په معنی د وضاحت |
| فَاِنَّ الاِعْرَابَ يُوْضِحُ الْمَعَانِيَ الْمُقْتَضِيَةَ اَوْ مِنْ عَرِبَتْ مِعْدَتُهُ اِذَا فَسَدَتْ عَلٰى |
| سره ځکه چې اعراب وضاحت کوي د معنی مقتضي يا ماخوذ دي د معربت معدته نه په معنی د فساد په هغه |
| اَنْ يَكُوْنَ الْهَمْزَةُ لِلسَّلْبِ فَيَكُوْنَ مَعْنَاهُ اِزَالَةُ الْفَسَادِ وَ سُمِّيَ بِهٖ لِاَنَّهُ |
| صورت کې چې شي همزه دپاره دسلب مأخذنوشي به په معنی دازالې دفساد مسمی شوبه دې سره ځکه چې دا |
| يُزِيْلُ فَسَادَ الْتِبَاسِ بَعْضِ الْمَعَانِيْ بِبَعْضٍ. |
| لرې کوي فساد د اختلاط دبعضې معانيو دبعضو نورو سره. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره يو د سوال جواب ورکوي اوبل داعراب وجه تسميه بيانوي.

**اغراض دجامي** : <u>وانما جعل الاعراب</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : د اسم درې محلونه دي ابتداء ، وسط او آخر نو صرف آخر يې ولې داعراب دپاره منتخب کړو ؟.

**جواب** : اسم دال وي په مسمی باندې اواعراب دلالت کوي دمسمی په صفت باندې نو موصوف مقدم وي په دصفت نه نو په موصوف باندې دلالت کوونکې به هم دصفت نه مقدم وي اواعراب چونکه په صفت باندې دلالت کوي نو لهذا دا به په آخر کې وي .

<u>وهو مأخوذ من اعربه الخ</u>: په دې عبارت سره شارح د اعراب وجه تسميه بيانوي ، چې وجه دتسميه په دوه قسمه ده :

**اول قسم** وجه تسميه داده، چې اعربه بمعنی اوضحه نه مشتق دی نو د اعراب معنی به شي ايضاح ځکه چې اعراب هم د معاني مقتضيه وضاحت کوي او ددې په ذريعه معاني مقتضيه پېژندلی شي، اوپته لګېږي چې دا فاعل دی او دا مفعول دی نو اعراب سبب جوړ شو د ايضاح دپاره نو د سبب ايضاح نوم اعراب په معنی د ايضاح کېښودو نو داد قبيلې د تسمية السبب باسم السبب نه شو.

**دوهم قسم** وجه تسميه داده چې دا مشتق ده د عربت معدته نه په معنی د فسدت سره نو ددې معنی ده فسادوالا نو کله يې چې داباب افعال ته ويوړو نو همزه د باب سبب دمأخذ دپاره شوه

نو معنی شوه ازالة الفساد نو اوس د اعراب نوم يې ځکه اعراب کیخودو چې دا هم دې فساد لرې زائلوي چې د معاني مقتضیه په خپل مینځ کې د التباس د وجې نه لازم راځي.

## اقسام د اعراب:

وَ اَنْوَاعُهُ اَیْ اَنْوَاعُ اِعْرَابِ الْاِسْمِ ثَلٰثَةٌ رَفْعٌ وَ نَصْبٌ وَ جَرٌّ هٰذَا الْاَسْمَاءُ الثَّلٰثَةُ مُخْتَصَّةٌ بِالْحَرَکَاتِ وَالْحُرُوْفِ

او انواع ددې يعنې انواع د اعراب د اسم درې دي رفع نصب جر دا درې اسماء مختصه دي په حرکات او حروف

الْاِعْرَابِیَّةِ وَلَا تُطْلَقُ عَلَی الْحَرَکَاتِ الْبِنَائِیَّةِ اَصْلًا بِخِلَافِ الضَّمَّةِ وَ الْفَتْحَةِ وَ الْکَسْرَةِ فَاِنَّهَا مُسْتَعْمَلَةٌ

اعرابیو پورې او اطلاق يې نه کیږي په حرکات بنائیو په خلاف د ضمې فتحې او کسرې ځکه چې دا مستعمل دي

فِی الْحَرَکَاتِ الْبِنَائِیَّةِ غَالِباً وَ فِی الْحَرَکَاتِ الْاِعْرَابِیَّةِ عَلٰی قِلَّةٍ فَالرَّفْعُ حَرَکَةً کَانَ اَوْ حَرْفاً عَلَمُ الْفَاعِلِیَّةِ

په حرکات بنائیه کې غالبا او په حرکات اعرابیو کې کم پس رفع حرکت وي او که حرف وي نښه د فاعلیت ده

اَیْ عَلَامَةُ کَوْنِ الشَّیْءِ فَاعِلاً حَقِیْقَةً اَوْ حُکْماً لِیَشْمِلَ الْمُلْحَقَاتِ بِالْفَاعِلِ اَیْضًا کَالْمُبْتَدَاءِ

يعنې علامه د کیدو د څیز فاعل حقیقتاً او یا حکماً ددې د پاره چې شامل شي ملحقاتو د فاعل ته هم لکه مبتدا

وَ الْخَبَرِ وَ غَیْرِهِمَا وَ النَّصْبُ حَرَکَةً کَانَ حَرْفاً عَلَمُ الْمَفْعُوْلِیَّةِ اَیْ عَلَامَةُ کَوْنِ الشَّیْءِ مَفْعُوْلاً

او خبر او غیر ددې نه او نصب حرکت وي او که حرف وي نښه د مفعولیت ده يعنې علامه د کیدلو د څیز مفعول

حَقِیْقَةً اَوْ حُکْماً لِیَشْمِلَ الْمُلْحَقَاتِ بِهٖ وَ الْجَرُّ حَرَکَةً کَانَ اَوْ حَرْفاً عَلَمُ

حقیقتاً او یا حکماً ددې د پاره چې شامل شي ملحقات د مفعول ته هم او جر که حرکت وي او که حرف وي دا نښه د

الْاِضَافَةِ اَیْ عَلَامَةُ کَوْنِ الشَّیْءِ مُضَافاً اِلَیْهِ وَ اِذَا کَانَتِ الْاِضَافَةُ بِنَفْسِهَا مَصْدَراً لَمْ تَحْتَجْ

اضافت ده يعنې علامه د کیدلو د څیز مضاف الیه او چې کله اضافت په خپله مصدر وو احتیاج يې پیدا نه شو

اِلٰی اِلْحَاقِ الْیَاءِ الْمَصْدَرِیَّةِ اِلَیْهَا کَمَا فِی الْفَاعِلِیَّةِ وَالْمَفْعُوْلِیَّةِ وَاِنَّمَا اخْتُصَّ الرَّفْعُ بِالْفَاعِلِ وَ النَّصْبُ بِالْمَفْعُوْلِ

الحاق د یاء مصدریې دې ته لکه په فاعلیت او مفعولیت کې دي او خاص شوه رفع د فاعل او نصب د مفعول

وَ الْجَرُّ بِالْمُضَافِ اِلَیْهِ کَانَ الرَّفْعُ ثَقِیْلٌ وَ الْفَاعِلُ قَلِیْلٌ لِاَنَّهٗ وَاحِدٌ فَاُعْطِیَ الثَّقِیْلُ الْقَلِیْلَ

او جر د مضاف الیه پورې ځکه چې رفع ثقیله ده او فاعل قلیل وي ځکه چې دا یو دي نو ورکړې شو ثقیل قلیل ته

وَ النَّصْبُ خَفِیْفٌ وَ الْمَفَاعِیْلُ کَثِیْرَةٌ لِاَنَّهَا خَمْسَةٌ فَاُعْطِیَ الْخَفِیْفُ الْکَثِیْرَ وَ لَمَّا لَمْ یَبْقَ

او نصب خفیف دي او مفاعیل ډیر دي ځکه چې دا پنځه دي نو ورکړې شو خفیف کثیر ته او هر کله چې پاتې نه شو

لِلْمُضَافِ اِلَیْهِ عَلَامَةٌ غَیْرَ الْجَرِّ جُعِلَ عَلَامَةً لَـهٗ.

د مضاف الیه د پاره علامه په غیر د جر نه نو وګرځولې شوه علامه د مضاف الیه

**خلاصه د متن:** په دې عبارت سره صاحب کافیه د اعراب اقسام بیانوي چې اعراب په درې قسمه دي: رفع، نصب او جر، رفع د فاعلیت، نصب د مفعولیت او جر د مضاف الیه علامت دي

دلته يو څو خبرې ذکر کوو چې په دې سره به تاسو لاندې په شرحه باندې ښه پوهه شي.

**اوله خبره د انواعو د اعرابو د درې کېدلو** : د دې وجه داده چې په کومو معانيو باندې دا دلالت کوي هغه مدلولات درې دي اوس که چېرته دا انواع څلور وی نو په کوم يو مدلول باندې به دوه دلالت کولو نو ترادف به لازم راتلو او که چېرته د دريو نه کم وی نو په دې کې کوم يو به دوه معاني باندې دلالت کولو نو لازم به راتلو اشتراك او اشتراك او ترادف دواړه خلاف اصل دي د دې لپاره مدلولات چې کله درې وو نو دال به هم درې وي.

**دويمه خبره د انواع د اعراب تعريفات**: رفع په لغت کې اوچت کېدل او په اصطلاح کې رفع هغه حرف يا حرکت ته وايي چې د کوم عامل رافع د راتلو سره د اسم په آخر کې پيدا کېږي، او نصب په لغت کې اودريدو ته وايي او په اصطلاح کې نصب هغه حرف يا حرکت ته وايي چې د کوم عامل ناصب په راتلو سره د اسم په آخر کې پيدا کېږي، جر په لغت کې راښکلو ته وايي او په اصطلاح کې جر هغه حرف او حرکت ته وايي چې د کوم يو عامل جاره د راتللو سره د اسم په آخر کې پيدا کېږي.

**دريمه خبره د دې انواعو وجه تسميه** : رفع ته رفع ځکه وايي چې د دې معنی د اوچت والي او د دې د ادا کولو په وخت کې هم دواړه شونډې پورته طرف ته اوچتېږي.

او نصب ته نصب ځکه وايي چې نصب په لغت کې اودرېدلو ته وايي او د دې د ادا کولو په وخت کې هم دواړه شونډې په خپل ځای اودرېږي.

او جر ته جر ځکه وايي چې د دې د ادا کولو په وخت کې هم لاندينۍ شونډې لاندې طرف ته راښکلې کيږي.

**څلورمه خبره د دې د ظاهر کېدو صورتونه** : رفع د اسم په آخر کې په شپږ (۶) صورتونو کې ظاهرېږي: ضمه لفظي، ضمه تقديري ،الف لفظي ، الف تقديري ، واو لفظي او واو تقديري.

نصب د اسم په آخر کې په اته (۸) صورتونو کې ظاهرېږي: فتحه لفظي، فتحه تقديري ،کسره لفظي ،فتحه تقديري ،الف لفظي ،الف تقديري ، ياء لفظي ، ياء تقديري.

جر د اسم په آخر کې په شپږ (۶) صورتونو کې ظاهرېږي: کسره لفظي، کسره تقديري ، فتحه لفظي ، فتحه تقديري ، ياء لفظي او ياء تقديري.

**پنځمه خبره: د انواعو د اعرابو د نومونو لپاره درې قسمه الفاظ استعمالېږي**: (۱) رفع، نصب، جر ، (۲) ضمه، فتحه، کسره ، (۳) ضم، فتح، کسر.

اول قسم خاص دی د حرکات اعرابیه پورې او دریم قسم خاص دی د حرکات بنائیو پورې، البته دوهم نمبر والا مشترك دی د حرکات اعرابیه او حرکات بنائیو دواړو باندې ددې اطلاق کېږي، خو په حرکات بنائیو کې ددې استعمال ډېر دی او په حرکات اعرابیو کې ددې استعمال قلیل دی.

**اغراض د جامي** : اي انواع اعرب الاسم : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : ستا انواع داعراب په درې قسمه کې منحصر کول صحیح نه دي، ځکه چې د اعرابو په انواعو کې یو جزم هم دی نو انواع اعراب څلور شو، تا درې ولې ذکر کړل ؟

**جواب** : شارح ددې جواب ورکړو، چې دا اضافت د عهد دی مراد ددې نه د اسم د اعرابو انواع دی، نه د مطلق اعرابو انواع او جزم اعراب د فعل دي، لکه جر د اسم سره خاص وي همدارنګې جزم د فعل سره خاص وي.

ثلاثة: په دې عبارت سره شارح د درې (۳) سوالونو جوابات ذکر کوي:

**اول سوال** : انواعه مبتدا ده کوم چې متعدد دي او په رفع ،نصب اوجر کې هر یو خبر دې، خبر په مبتدا باندې محمول وي دلته حمل صحیح نه دي ځکه چې لازم به شي حمل دواحد په متعدد باندې چې داجائز نه دي.

**دوهم سوال** : انواع جمع دي کوم چې دجماعت په تاویل سره مؤنث شوې اوخبرونه درې اومذکر دي نو لازم به شي حمل دمذکر په مؤنث باندې.

**دریم سوال** : چې کله اقسام درې وو نو اداة دحصر يې ولې ذکر نه کړل ؟

**جواب** : شارح ددې درې واړو سوالونو جواب په ثلاثة سره ورکړي چې ستا دا درې واړه سوالات په غلط فهمی باندې مبني دي تاسو سوچ کړي چې په رفع ونصب وجر کې ربط مقدم دي په عطف باندې ددې غلط فهمی دوجې نه درې سوالات پیدا شوي حالانکه دلته عطف مقدم دي په ربط باندې اوددې درې واړو مجموعه خبر جوړیږي چې ددې تعبیر د ثلاثة په الفاظو سره کیدې شي لهذا اوس حمل الواحد علی المتعدد هم لازم رانغلو بلکه حمل د متعدد راغې په متعدد باندې ، همدارنګې حمل دمذکر په مؤنث هم رانغلو بلکه داحمل د مؤنث په مؤنث راغې او دعطف تقدیم په ربط باندې مفید للحصر وي.

هذه الاسماء الثلاثة مختصة: په دې عبارت سره شارح داعراب وجه داختصاص بیانوي.

حركة او حرفاً: په دې عبارت سره شارح د يو وهم ازاله كوي:

**وهم**: هغه وهم دا وو، چې د رفع اطلاق په عام طور باندې په حركت باندې كېږي، ځكه چې وهم پيدا شو چې شايد صرف حركت به د فاعل علامت وي شارح د وهم ازاله وكړه چې رفع، نصب، جر دا درې واړه مفهومات كليه دي ددې نه لاندې متعدد افراد دي حركت هم او حرف هم دواړه ددې افراد دي او دواړه دلته مراد دي.

اى علامة كون الشئ فاعلاً: دا د دوه سوالونو جواب دى.

**اول سوال**: چې ته وايې چې رفع د فاعل علم دى او قانون خو دا دى چې علم د شيء په شيء باندې محمول وي حال دا دى چې رفع په فاعل باندې نه شي محمول كيدې، الفاعل رفعٌ نه شي ويلې.

**جواب**: شارح ددې جواب وركړو، چې اى علامة يعنى علم په معنى د علامت دى او علامت د شيء په شيء باندې نه شي محمول كيدې.

**دوهم سوال**: چې مُتون بناء وي په اختصار باندې نو تا لره علم الفاعل ويل په كار وو، د ياء او تاء زيات دى ولې وكړو؟.

**جواب**: اى كون الشئ فاعلاً سره يې جواب وركړو يعنې دا ياء او تاء د مصدريت دپاره ده چې د هغې معنى داده چې رفع د يو څيز د فاعل كيدو علامت دى يعنې رفع د فاعليت والاوصف علامت دى. كه ته چيرته فالرفع علم الفاعل ووايې نو دا وهم پيدا كېږي، چې شايد چې رفع د فاعل د ذات علامت وي حال دا دى چې دا باطل دى ځكه چې په جاءنى زيد كې زيدٌ فاعل دى او مرفوع هم دى اوپه رأيت زيداً كې د فاعل ذات خو موجود دى، خو په دې باندې رفع په نظر نه راځي، نو معلومه شوه چې رفع د فاعل وصف د فاعليت علامت دى .

حقيقة او حكماً: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: علامت د شيء د شيء خاصه وي څنګه چې د كلمې د اقسام ثلاثه خواصو لره د نحو په اكثرو كتابونو كې په علامت سره تعبير كړى دى بهر حال خلاصه داده، چې علامت د شيء خاصه وي او خاصة الشيء ما يختص به ولا يوجد في غيره ځكه چې رفع د فاعل نه علاوه په مبتدا باندې هم موندلى شي، نو دا څنګه خاصه ده.

**جواب** : د فاعل كيدو نه مراد عام دى برابره خبره ده كه حقيقتاً فاعل وي او كه حكماً ، حقيقتاً فاعل كيدل خو واضح دي د حكماً فاعل كيدو نه مراد دا دى، چې په دې كې د فاعل خصلت موجود وي هغه ته حكماً فاعل ويلې كېږي، او د فاعل خصلت دى مسند اليه كېدل يا د كلام جز جوړېدل اوس د فاعل نه علاوه څومره چې مرفوعات دي په دې كې ددې دوه څيزونو نه يو څيز ضروري وي يا خو به دواړه څيزونه موندلى كيږي يا به كم از كم يو څيز موندلى كيږي، مثلاً په مبتدا كې د مسند اليه والاخصلت هم موندلى كيږي، او د كلام جز د جوړېدو والاخصلت هم موندلى كېږي او په خبر كې د جز د جوړېدو الاخصلت موندلې كېږي.

**و اذا كانت الاضافة بنفسها مصدرًا**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** :څه وجه ده چې ماتن انداز بدل كړو مخكې يې وويل علم الفاعلية او علم المفعولية، نو دلته هم ويل په كار وو علم الاضافية . فصيح بليغ انسان چې كله انداز بدلوي نو دده به ضرور څه وجه وي هغه وجه څه ده؟

**جواب** :په فاعل او مفعول كې د معنى وصفي د پيدا كولو لپاره ددې په آخر كې ياء مصدريت لړولې شي او اضافت چونكه په خپله مصدر دى ددې وجې نه ددې په آخر كې د ياء مصدريت ضرورت نشته دى.

**و انما اختص الرفع بالفاعل الخ**: ددې ځاى نه شارح د درې واړو انواعو وجه د تخصيص بيانوي، چې د هغې خلاصه داده چې رفع ثقيل ده او فاعل قليل دى نو قليل ته يې ثقيل وركړو ، ځكه چې بوج كله كله اوچتول په كار وي نو قابل برداشت وي د لږ وخت دپاره قابل برداشت وي او نصب خفيف او مفاعيل د پنځه كيدو د وجې نه ډېر وو نو د كثرت مناسب خفت و، ځكه چې يې مفعول لره نصب وركړو ځكه چې د زيات وخت لپاره سپك وزن هم قابل برداشت وي، اوس د جر نه علاوه د مضاف اليه لپاره څه پاتې نه شو نو دمجبورى نه يې مضاف اليه لره جر وركړو.

## تعريف د عامل:

| اَلْعَامِلُ لَفْظِيًّا كَانَ اَوْ مَعْنَوِياً مَا بِهِ يَتَقَوَّمُ اَىْ يَحْصُلُ الْمَعْنَى الْمُقْتَضِيْ اَىْ مَعْنًى مِنَ |
| --- |
| عامل لفظي وي او كه معنوي وي هغه دي چې حاصليږي په هغې سره معنى مقتضي يعني معنى هغه معنى د |
| الْمَعَانِي الْمُعْتَوَرَةِ عَلَى الْمُعْرَبِ الْمُقْتَضِيَةِ لِلْإِعْرَابِ فَفِيْ جَاءَ زَيْدٌ جَاءَ عَامِلٌ اِذْ بِهِ |
| معانيومتداولو په هغه معرب چې كومه تقاضا داعراب لري پس په جاء زيد كې جاء عامل دي ځكه چې په هغې |

| |
|---|
| حَصَلَ مَعْنَى الْفَاعِلِيَّةِ فِيْ زَيْدٌ فَجَعَلَ الرَّفْعُ عَلَامَةً لَهَا وَ فِيْ رَأَيْتُ زَيْداً رَأَيْتُ |
| سره حاصله شوې معنی دفاعلیت په زید کې پس وګرځولې شوه رفع علامه دفاعلیت اوپه رأیت زیدا کې رأیت |
| عَامِلٌ اِذْ بِهِ حَصَلَ مَعْنَى الْمَفْعُوْلِيَّةِ فِيْ زَيْداً فَجَعَلَ النَّصْبُ عَلَامَةً لَهَا وَ فِيْ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ |
| عامل دی ځکه چې په دې سره حاصلیږي معنی دمفعولیت په زید کې پس وګرځولې شونصب علامه ددې دپاره |
| اَلْبَاءُ عَامِلٌ اِذْ بِهِ حَصَلَ مَعْنَى الْاِضَافَةِ فِيْ زَيْدٍ فَجَعَلَ الْجَرُّ عَلَامَةً |
| اوپه مررت بزیدکې باء عامل ده ځکه حاصلیږي په دې سره معنی داضافت په زید کې .و وګرځولې شوجر نښه |
| لَهَا. |
| داضافت. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب کافیه د عامل تعریف بیانوي .

**اغراض دجامي** : لفظیاکان او معنویا: په دې عبارت سره شارح د یو وهم ازاله کوي .

**وهم** : دا وچې د عامل نه متبادر عامل لفظي وي نو بیا د مبتدا او خبر عامل دلته نه خارجیږي، ځکه چې هغه معنوي وي نو د عامل تعریف جامع نه شو، خپل ټولو افرادو لره.

**جواب** : شارح جواب ورکړی دی، چې د عامل نه مراد عام دی که لفظي وي او که معنوي.

ای یحصل: په دې عبارت سره شارح د دوه سوالونو جوابات ورکوي :

**اول سوال** : یتقوم د قیام نه مشتق دی او قیام ضد دی، د قعودٌ چې دا خاصه ده د ذي روح اجسامو او معنی مقتضي من قبل اغراض دی د قیام سره نه شي متصف کیدې.

**دوهم سوال** : ددې عبارت معنی ذاده چې العامل ما به یتقوم المعنی المقتضي، عامل هغه دی چې د هغې سره معنی مقتضی قائم وي نو بیا ستا تعریف په جاء زید کې په زید باندې صادق راځي، ځکه چې معنی مقتضی د فاعلیت والاخو د زید سره قائم ده حالانکه دا خبره بداهة باطله ده عامل خو جاء دی زید خو معمول دی .

**جواب** : شارح ای یحصل ویلو سره د دواړو سوالونو جواب ورکړو، چې خلاصه یې داده چې یتقوم په معنی د یحصل سره دی اوس یتقوم لره په معنی د یحصل سره کولو دوه تقریرونه دي یا خو وایه چې قیام لره حصول لازم دی نو ذکر د ملزوم او مراد ترې نه لازم شو یا داسې ووایه چې کله د قیام نسبت اعراضو طرف ته وشي نو چونکه حقیقي معنی متعذر وي ددې دپاره بیا په دې صورت کې د قیام معنی حصول وي مجازاً بهرحال دلته یتقوم په معنی د یحصل سره ده

اوس دواړه سوالونه مندفع شو، ځکه چې حصول صفت دې اعراضو لپاره جوړېږي همدارنګې په جاء زيد کې اګر چې معنی مقتضی قايم خو د زيد سره ده خو ددې حصول د جاء زيد په ذريعې سره شوې دی ددې لپاره عامل جاء شو.

ای معنی من المعاني المقتضيه: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا دی چې ستاد عامل تعريف مانع نه دی د دخول د غير نه ځکه چې ستا تعريف په حرف النين باندې صادق راځي هغه چې په فعل مضارع باندې داخلېږي او دهغې وجې نه په فعل مضارع کې مشابهت داسم فاعل والا معنی پيدا کېږي، چې هغه تقاضا کوي د فعل مضارع د اعراب؟

**جواب**: په المعنی باندې الف لام د عهد دی ددې نه مراد مطلق معنی مقتضی للاعراب نه دی، بلکې ددې نه مراد معاني معتوره نه يوه معنی مراد ده، يعنې فا عليت، مفعوليت او اضافت والا معنی مراد وي او مشابهت باسم الفعل والا معنی د معاني معتورو نه، نه ده.

## داسم معرب د اعراب اقسام:

| |
|---|
| فَالْمُفْرَدُ الْمُنْصَرِفُ أَيِ الْإِسْمُ الْمُفْرَدُ الَّذِيْ لَمْ يَكُنْ مُثَنًّى وَلَا مَجْمُوْعاً وَلَا غَيْرَ مُنْصَرِفٍ كَزَيْدٍ وَرَجُلٍ وَكَذَا |
| پس مفرد منصرف يعنې هغه اسم مفرد چې نه وي تثنيه او نه جمع او نه غير منصرف لکه زيد ورجل او همدارنګې |
| الْجَمْعُ الْمُكَسَّرُ الْمُنْصَرِفُ أَيِ الَّذِيْ لَمْ يَكُنْ بِنَاءُ الْوَاحِدِ فِيْهِ سَالِماً وَلَمْ يَكُنْ غَيْرَ مُنْصَرِفٍ كَرِجَالٍ وَطَلَبَةٍ |
| جمع مکسر منصرف يعنې هغه چې نه وي بناء دواحد په دې کې سالمه او نه وي غير منصرف لکه رجال وطلبة پس |
| فَالْإِعْرَابُ فِيْ هٰذَيْنِ الْقِسْمَيْنِ مِنَ الْإِسْمِ عَلَى الْأَصْلِ مِنْ وَجْهَيْنِ أَحَدُهُمَا أَنَّ الْأَصْلَ فِي الْإِعْرَابِ أَنْ يَكُوْنَ |
| اعراب په دغه دوو قسمونو کې داسم نه په خپل اصل باندې دی دوو وجهونه يو دا چې اصل په اعراب کې اعراب |
| بِالْحَرَكَةِ وَ الْإِعْرَابُ فِيْهِمَا بِالْحَرَكَةِ وَ ثَانِيْهِمَا أَنَّهُ إِذَا كَانَ الْإِعْرَابُ بِالْحَرَكَةِ فَالْأَصْلُ |
| بالحرکة دي او اعراب په دې دووکې هم بالحرکة دي او دوهم دا چې کله چې وو اعراب بالحرکة پس اصل دا دي |
| أَنْ يَكُوْنَ بِالْحَرَكَاتِ الثَّلٰثِ فِي الْأَحْوَالِ الثَّلٰثِ وَالْإِعْرَابُ وَ فِيْهِمَا بِالْحَرَكَاتِ الثَّلٰثِ فِي الْأَحْوَالِ الثَّلٰثِ. |
| چې وي به په حرکات ثلاثو سره په احوال ثلاثو کې او اعراب په دې دووکې په حرکات ثلاثو سره په احوال ثلاثو کې دي |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره صاحب کافيه د اسم معرب د اعراب اقسام بيانوي.

**اغراض د جامي**: الاسم المفرد: په دې عبارت سره شارح په الاسم سره يې د المفرد موصوف ذکر کړو.

الذي لم يكن مثنى ولا مجموعاً: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : عبدالله مفرد نه دی، بلکې مضاف دی مګر بيا هم ددې دا اعراب دی بالحرکت حقيقي؟

**جواب** : مفرد دڅلورڅيزونوپه مقابله کې راځي ۱ دمرکب په مقابله کې ۲: مضاف دپاره مشابه بالمضاف په مقابله کې ۳. دجملې په مقابله کې ۴. دتثنيې اوجمعې په مقابله کې. په کوم ځای کې چې مفرد ديوڅيز په مقابله کې وي په هغه مقام کې به لفظ مفرد ويلوسره ددې مقابل ويستل مقصودوي دلته چونکه مفرد دتثنيې اوجمع په مقابله کې دی ددې وجې نه مفرد يې وويلوتثنيه جمع لره ويستل يې مقصودووکه مضاف ته چېرته شامل وی نوهيڅ خبره نه ده.

بيا په دې باندې سوال وارد شو:

**سوال** : چې اسماء سته مکبره ددې معنی په اعتبار سره مفرد وي خو ددې دا اعراب نه وي، بلکې ددې اعراب خو بالحرف وي.

**جواب** : زمونږ د مفرد نه مراد هغه مفرد دی، چې مفرد وي لفظاً وي که معناً اسماء سته مکبره لفظاً خو مفرد دی خو معناً تثنيه دی، ځکه چې ددې معنی په تعدد باندې دلالت کوي، مثلاً اب په ابن باندې او اخ په دويم اخ باندې او فم په ذي فم باندې دلالت کوي.

اى الذي لم يكن بناء الواحد فيه سالماً: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : دادی چې مکسر لره د جمع صفت جوړول صحيح نه دي، ځکه چې په جمع مکسر کې کسر خو د واحد په بناء کې وي په جمع کې خو کسر نه وي؟

**جواب** : دلته د جمع مکسرې لغوي معنی مراد نه ده، بلکې اصطلاحي معنی مراد ده، يعنې چې په هغې کې د واحد بناء سالم نه وي تا لغوي معنی اخيستې.

| فَالْإِعْرَابُ فِيْهِمَا بِالضَّمَّةِ رَفْعاً اَىْ حَالَةُ الرَّفْعِ وَ الْفَتْحَةِ نَصْباً اَىْ حَالَةُ النَّصْبِ وَ الْكَسْرَةِ |
|---|
| پس اعراب په دې دووکې په ضمې سره په حالت درفع کې اوپه فتحې سره په حالت دنصب کې اوپه کسرې سره |
| جَرًّا اَىْ حَالَةُ الْجَرِّ فَنُصِبَ قَوْلُهُ رَفْعاً وَ نَصْباً وَ جَرًّا عَلَى الظَّرْفِيَّةِ بِتَقْدِيْرِ مُضَافٍ |
| په حالت دجر کې جوړ کړي شونو نصب ددې قول دمصنف چې رفعاً ونصباً وجراً بناء برظرفيت دي په تقدير دمضاف |
| وَ يَحْتَمِلُ النَّصْبُ عَلَى الْحَالِيَّةِ اَوِ الْمَصْدَرِيَّةِ فَالْقِسْمُ الْاَوَّلُ مِثْلُ جَاءَنِيْ رَجُلٌ وَ رَاَيْتُ رَجُلاً |
| سره او احتمال دنصب بنابر حاليت اويامصدريت هم کيدې شي نواول قسم مثال لکه جاءني رجل ورأيت رجلاً |
| وَمَرَرْتُ بِرَجُلٍ وَالْقِسْمُ الثَّانِيْ مِثْلُ جَاءَنِيْ طَلَبَةٌ وَرَاَيْتُ طَلَبَةً وَمَرَرْتُ بِطَلَبَةٍ جَمْعُ الْمُؤَنَّثِ السَّالِمِ وَهُوَ مَا يَكُوْنُ |
| ومررت برجل او دوهم قسم لکه: جاءني طلبة و رأيت طلبةً و مررت بطلبة. جمع مؤنث سالمه دا هغه ده چې وي په |

بِالْاَلِفِ وَ التَّاءِ وَ احْتَرَزَ بِهٖ عَنِ الْمُكَسَّرِ فَاِنَّهٗ قَدْ عُلِمَ بِالضَّمَّةِ رَفْعاً

الف اوتاء سره احترازيې وکړوبه دې سره د مکسرې نه خکه چې هغه معرب ده حالت ضمې دهغې په رفعې سره

وَ الْكَسْرَةُ نَصْباً وَ جَرًّا فَاِنَّ النَّصْبَ فِيْهِ تَابِعٌ لِلْجَرِّ اِجْراءً لِفَرْعٍ عَلٰى

اوبه حالت د کسرې کې په نصب اوجر سره خکه چې حالت نصبي دهغې تابع دي دجر دوجې د اجراء دفرعې نه په

وَتِيْرَةِ الْاَصْلِ الَّذِيْ هُوَ جَمْعُ الْمُذَكَّرِ السَّالِمِ فَاِنَّ النَّصْبَ فِيْهِ تَابِعٌ لِلْجَرِّ كَمَا سَيَجِيْئُ ذِكْرُهٗ

طريقې د اصل هغه چې جمع مذکرسالم ده خکه نصب په هغې کې تابع دي د جر. زر دي چې را به شي ذکردې

مِثْلُ جَاءَتْنِيْ مُسْلِمَاتٌ وَ رَاَيْتُ مُسْلِمَاتٍ وَ مَرَرْتُ بِمُسْلِمَاتٍ غَيْرُ الْمُنْصَرِفِ بِالضَّمَّةِ رَفْعاً وَالْفَتْحَةِ

لکه جاءتني مسلمات ورأيت مسلماتٍ ومررت بمسلمات غير منصرف په ضمې سره په حالت رفعي اوبه فتحې سره په

نَصْبًا وَ جَرًّا فَالْجَرُّ فِيْهِ تَابِعٌ لِلنَّصْبِ لِمَا سَنَذْكُرُهٗ نَحْوُ جَاءَنِيْ اَحْمَدُ وَ رَاَيْتُ اَحْمَدَ

حالت نصبي اوجرې کې نوجربه دې کې تابع دې د نصب لکه څرنګې چې ذکر کړو مونږ لکه جاءني احمدورأيت احمد

وَمَرَرْتُ بِاَحْمَدَ اَخُوْكَ وَ اَبُوْكَ وَ حَمُوْكِ بِكَسْرِ الْكَافِ لِاَنَّ الْحَمَ قَرِيْبُ الْمَرْاَةِ مِنْ جَانِبِ زَوْجِهَا فَلَا يُضَافُ

ومررت باحمد اخوکِ وابوکِ وحموکِ په کسرې د کاف سره خکه حم قريب د ښځې وي د طرف د خاوند نه نو نه مضاف

اِلَّا اِلَيْهَا وَ هَنُوْكَ وَ الْهَنُ الشَّيْئُ الْمُنْكَرُ الَّذِيْ يُسْتَهْجَنُ ذِكْرُهٗ كَالْعَوْرَةِ الْغَلِيْظَةِ وَالصِّفَاتِ

کيږي حم مګر دې ښځې ته وهنوک اوهن ناشناخيزهغه چې بد ګڼړلې شي بيان دهغې لکه عورت غليظه اوصفات

الذَّمِيْمَةِ وَالْاَفْعَالِ الْقَبِيْحَةِ وَهٰذِهِ الْاَسْمَاءُ الْاَرْبَعَةُ مَنْقُوْصَاتٌ وَاوِيَّةٌ وَفُوْكَ وَهُوَ اَجْوَفُ وَاوِيٌّ لَامُهٗ هَاءٌ اِذْ اَصْلُهٗ

صفتونه اوبدکارونه اواسماءاربعه ناقص واوي دې اوفوک دااجوف واوي دې لام ددې هاء دې خکه اصل ددې

فُوْهٌ وَ ذُوْ مَالٍ وَ هُوَ لَفِيْفٌ مَقْرُوْنٌ بِالْوَاوَيْنِ اِذْ اَصْلُهٗ ذَوَوٌ وَ اِنَّمَا اُضِيْفَ ذُوْ اِلَى الْاِسْمِ الظَّاهِرِ دُوْنَ

فوه اوذومال دالفيف مقرون دې په واوينوسره خکه اصل ددې ذوو وونو اضافت وکړې شود ذواسم ظاهرته نه

الْكَافِ لِاَنَّهٗ لَا يُضَافُ اِلَّا اِلٰى اَسْمَاءِ الْاَجْنَاسِ فَاِعْرَابُ هٰذِهِ الْاَسْمَاءِ السِّتَّةِ بِالْوَاوِ

کاف ته خکه چې دانه مضاف کيږې مګراسماءاجناسوته پس اعراب ددغوشپږو اقسامو په واوسره دې په حالت

رَفْعاً وَ الْاَلِفُ نَصْباً وَ الْيَاءُ جَرًّا وَ لٰكِنْ لَا مُطْلَقاً بَلْ

رفعي کې اوبه الف سره دې په حالت نصبي کې اوبه ياء سره دې په حالت جرې کې ليکن نه مطلقاًبلکې په

حَالَ كَوْنِهَا مُكَبَّرَةً اِذْ مُصَغَّرَاتُهَا مُعْرَبَةٌ بِالْحَرَكَاتِ نَحْوُ جَاءَنِيْ

داسې حال کې چې کله وې دا اسماء مکبره خکه چې مصغرات دهغې معرب دې په حرکاتو سره لکه جاءني

اُخَيُّكَ وَ رَاَيْتُ اُخَيَّكَ وَمَرَرْتُ بِاُخَيِّكَ وَ مُوَحَّدَةً اِذَا لْمُثَنّٰى وَالْمَجْمُوْعُ مِنْهَا مُعْرَبٌ بِاِعْرَابِ التَّثْنِيَةِ وَالْجَمْعِ.

اخيک رأيت اخيک ومررت باخيک اومفرد اوتثنيه اوجمع ددې نه معرب دې په اعراب د تثنيې او جمع سره.

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت سره صاحب کافيه د اعراب دوه قسمونه بيانوي ، اود جمع

مؤنث سالم تعريف هم کوي

**اغراض دجامي** : **قوله فالاعراب**: په دې عبارت سره شارح اشاره وکړه چې دا رفعاً نصباً جراً دامنصوب دي بناء بر ظرفيت

**فنصب قوله رفعاً ونصباً وجراً على الظرفية بتقدير مضاف**: په دې عبارت سره شارح وجهې د هر يوې بيانوي اوله وجه دنصب چې دامنصوب دي بنابرظرفيت ، دلته يو سوال وارديږي :

**سوال** : دا رفعاً نصباً جرا خونه ظرف زمان دي اونه ظرف مکان نو څنګه منصوب دي بناء بر ظرفيت ؟.

**جواب** : دامنصوب دي بناء بر حذف مضاف دلته مضاف حذف دي چې حالت دي مضاف حذ شو اومضاف اليه يې قائمقام وګرځيده اوکوم شئ چې واقع شي په ځای دغير نو هغه لره حکم دغير وي نو مضاف منصوب وو نو دوي هم منصوب وګرځيدل .

**ويحتمل النصب على الحالية**: په دې عبارت سره شارح اول ذکر داحتمالينو کوي او بيا توضيح بالمثال کوي : دا رفعا نصباً جراً دامنصوب دي بناء بر حاليت نو عبارت په اصل کې داسې دي چې **فالاعراب في هذين القسمين حال کونهما مرفوعين بالضمة وحال کونهما منصوبين بالفتحة وحال کونهما مجرورين بالکسرة** اوذوالحال دا معلوميږي د فحوی د کلام نه .

**او المصدرية**: اويا دامنصوب دي بناء بر مفعول مطلق تقدير دعبارت داسې دي چې **اعرب اعراب رفع واعرب اعراب نصب نصب واعرب اعراب جر** .

**فالقسم الاول**: په دې عبارت سره شارح توضيح بالمثال کوي لکه **جاءني رجل رأيت رجلاً ومررت برجل** .

**والقسم ثاني**: په دې عبارت سره هم شارح توضيح بالمثال کوي لکه **جاءني طلبة رأيت طلبة ومررت بطلبة** .

**جمع المؤنث السالم** : په دې عبارت سره شارح د جمعې مؤنثې سالمې تعريف کوي .

**وهو ما يکون الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** :دا دی چې تا کوم د جمع مؤنث سالمې اعراب ذکر کړی دی هغه جامع هم نه دی او مانع هم نه دی ، جامع خو ځکه نه دی چې سنون او ارضون د مونث جمع سالمې دي خو ددې

اعراب بالحرکت حکمي نه دی هغه چې کوم تا بیان کړې بلکې ددې اعراب بالحرف دی او مانع خو ځکه نه دی چې مرفوعات منصوبات او مجرورات د مذکرجمع سالمه ده ځو ددې اعراب هم دغه دی کوم چې تا د جمع مؤنث سالمې لپاره ښودلی و

**جواب**: شارح په مذکوره عبارت کې ددې جواب ورکړو، چې تا دلته د جمع مؤنث سالمې لغوي معنی اخیستې ده او اعتراض دې کړی دی، چې کومه د مؤنث جمع سالمه ده او زمونږ مراد اصطلاحي معنی ده او په اصطلاحي کې د جمع مؤنث سالمې نه مراد هغه جمع ده، چې د هغې په آخر کې الف او تاء وي قطع نظر د دې نه، چې ددې مفرد مذکر وي یا مؤنث بس چې د چا په آخر کې چې الف او تاء وي هغه جمع مؤنث سالمه ده.

**فان النصب فیه تابع للجر اجراء للفرع**: په دې عبارت کې شارح د جمع مؤنث سالم د اعرابو وجه بیانوي، چې په دې کې یې نصب د جر تابع ولې کړی دې خلاصه داده چې جمع مؤنث سالم فرع ده د جمع مذکر سالم او په جمع مذکر سالم کې نصب یې د جر تابع کړې دی ددې لپاره چې ددې حالت نصبي او جري دواړه په یاء سره وي اوس که چېرته په فرع کې نصب د جر تابع کړی نه وي نو زیادت د فرع راتلو په اصل باندې.

**غیر المنصرف بالضمة رفعاً الخ**: د جمع مؤنث سالمې په شان د غیر منصرف اعراب هم اعراب بالحرکت حکمي وي خو په دې کې جر تابع د نصب وي وجه ددې داده، چې په غیر منصرف کې دوه اسبابه وي چې په هغې کې هر یو د بل دپاره فرع وي نو د دوه سببونو د وجهې نه په غیر منصرف کې دوه فرعیتونه موندلی کېږي، او د دوه فرعیتونو د موندل کېدو د وجهې نه دا مشابه شو نو اسمیت کمزوری شو ځکه چې په هغې باندې هغه حرکت نه شي راتلی چې هغه مختص بالاسم وي او هغه حرکت د کسرې دی چې په فعل باندې نه شي راتلی نو ځکه ددې جر لره یې تابع د نصب کړو.

**اخوك وابوك وحموك**: په دې عبارت سره شارح د اسماء سته مکبره اعراب بیانوي، چې ددې اعراب بالحرف لفظي وي اوس ددې ځای نه په ترتیب سره څه خبرې په ذهن کې کینوئ:

**اوله خبره**: د ما قبل سره ربط دا دی چې تر اوسه پورې یې اعراب بالحرکت حقیقي او حکمي بیان کړو او د اصل کېدلو د وجې نه دې لره یې مقدم کړو اوس ددې ځای نه اعراب بالحرف بیانوي، بیا اعراب بالحرف حقیقي چونکه اصل دی د حکمي په مقابله کې چې ددې وجې نه یې حقیقي په حکمي باندې مقدم کړو

**دوهمه خبره**: ددې اسماء لفظي تحقيق اخ اڼ حمٌ او هن دا څلور واړه ناقص واوي دي په اصل کې وو اخوٌ ابو حمو هنو واو يې د قال په قانون سره په الف سره بدل کړو د التقاء ساکنين د وجې نه الف وغورځېدو نو اڼ ترې جوړ شو د اضافت په وخت کې تنوين غورځېږي نو د واو د غورځېدو سبب التقاء د ساکنينو وه هغه ختمېږي، نو واو محذوفه د قولن په قانون سره واپس راغې بهر حال دا څلور واړه ناقص واوي دي دې طرف نه شارح اشاره وکړه او وې ويل: **هذه الاسماء الاربعة منقوصات واوية**.

<u>**ذو مال**</u>: دا لفيف مقرون دی په اصل کې و ذوٌ بو واو يې د تحفيف دوجې نه حذف کړو، نو ذو پاتې شو بيا د کثرت استعمال د وجې نه د خفت پيدا کولو لپاره واو يې ساکن کړو او ددې ما قبل لره يې ضمه ورکړه نو ذو ترې نه جوړ شو دا صرف اسم جنس ظرف ته مضاف وي ضمير خو اسم جنس نه دی، ځکه يې باقي اسماء لره ضمير طرف ته مضاف کړو او ذو لره يې اسم ظاهر طرف ته مضاف کړو

<u>**فوك**</u>: دا اجوف واوي دی په اصل کې وو فوه لام کلمه ددې ها ده او ها لره يې خلاف القياس حذف کړه نو فو پاتې شو بيا په واو باندې د حرکت د راتلو په صورت کې د قال په قانون سره د الف سره بدل کړو نو د التقاء ساکنينو د وجې نه د غورځيدو خطره وه د واو د غورځيدو نه صرف ف پاتې کيدو چې د هغې التباس را تلو د حروف تهجي سره پته نه لګېده چې دا اسم دی او که د حروف تهجي نه يو حرف دی نو ددې التباس نه د ځان ساتلو لپاره واو لره په جيم سره بدل کړو ځکه چې په شفوي کېدو کې دا د يو بل مناسب وو نو فم ترې نه جوړ شو د اضافت په وخت کې د تنوين د غورځېدو د وجې نه التقاء ساکنين باقي پاتې نه شو ځکه چې د واو د غورځېدو خطره هم پاقي پاتې نه شو، نو واو واپس راخې او ويلی کېږي فوك.

<u>**ذومال وهو لفيف مقرون**</u>: په دې عبارت سره شارح د ذو تحقيق صرفي کوي چې ذو دا لفيف مقرون بالواوين دي اصل کې دا ذوو وو يو واو خلاف القياس حذف شوضمه په واو ثاني باندې ثقيله وه هغه مو نقل کړه ماقبل ته پس دسلب دحرکت دماقبل نه نو بيا اجتماع دساکنينو راغله دتنوين او د واو په مينځ کې نو تنوين حذف شو نو ذو ترې نه جوړ شو .

<u>**وانما اضيف الى اسم الظاهر**</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : دنورو اسماو اضافت دې اسم ضمير ته کړي اوددې دې اسم ظاهر ته وکړو دا ولې ؟

**جواب** : ددې اضافت يې ځکه اسم ظاهر ته وکړو نه کاف ته ځکه چې دده اضافت اسم جنس ته کيږي اوداځکه چې دا واضع وضع کړي دپاره دتوصيف دشئ اودا نه راځي مګر په اسم جنس سره .

فاعراب هذه الاسماء الستة بالواو : په دې عبارت سره شارح د دريو سوالونو جوابات ورکوي :

**اول سوال** : بالواو خبر دې د ابوک اخوک دپاره او خبر حامل وي دهغه شئ دپاره کوم چې د مبتداء نه ، نه معلوميږي

**دوهم سوال** : چې ابوک شو نو بالواو خو شو نو بالالف والياء ځرنګه راځي .

**دريم سوال** : د ابوک اضافت شوې مخاطب ته معنی دا چې ستااب نو هغه بالواو اوبالالف اويا الياء راځي اوکه دغير اب ؤ نو هغه به نه راځي ؟

**جواب** : بالواو متعلق دې په فاعراب هذه الاسماء الستة پورې يعنې داخبر دابوک اخوک دپاره نه دې چې دا سوالات پرې وارد شي .

لکن لا مطلقاً بل حال کونها مکبرة : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : زه به درته وښائم چې دا اسماء به وي خو دا اعراب به يې نه وي لکه جاءني اخيک ومررت باخيک ورأيت اخيک .

**جواب** : ددې اسماء بـه دا اعراب وي خو چې مکبره وي اوتـاچې کوم وښودل دا خو اسماء مصغره دي .

وموحدة : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : زه به درته وښايم چې اسماء مصغره به هم نه وي او هم دا اسماء بـه وي اواعراب به يې دا نه وي لکه جاءني اخوان ورأيت اخوان ومررت باخوان .

**جواب** : دا اعراب به يې هله وي چې دا اسماء مفرد وي نه تثنيه اوجمع ځکه که تثنيه اوجمع وي نو دهغوي اعراب بيا دتثنيو اوجموعو وي .

| وَ اِنَّمَا لَمْ يَصْرِحْ بِهَذَيْنِ الْقَيْدَيْنِ اِكْتِفَاءً بِالْاَمْثِلَةِ مُضَافَةً لِاَنَّهَا اِذَا كَانَ |
|---|
| اوتصريح يې ونه کړه په دې دواړوقيدونودوجې داکتفاء نه په مثالونودې چې مضاف به وي ځکه چې کله دا |

| |
|---|
| مُكَبَّرَةً وَ مُوَحَّدَةً وَلَمْ تَكُنْ مُضَافَةً اَصْلاً فَاِعْرَابُهَا بِالْحَرَكَاتِ نَحْوِ جَاءَنِيْ اَخٌ وَ رَاَيْتُ اَخاً وَ مَرَرْتُ |
| اسماء مكبره موحده او مضاف نه وي بالكل نو اعراب ددې اعراب په حركاتو سره وي لكه جاءني اخ رأيت اخا مررت |
| بِاَخٍ فَيَنْبَغِيْ اَنْ تَكُوْنَ مُضَافَةً وَ لٰكِنْ إِلٰى غَيْرِ يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ لِاَنَّهَا اِذَا كَانَتْ مُضَافَةً اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ فَحَالُهَا |
| باخ نو مناسب دي چې مضاف وي خو ليكن غير د ياء د متكلم ته ځكه چې كله مضاف وي ياء د متكلم ته نو حال |
| كَسَائِرِ الْاَسْمَاءِ الْمُضَافَةِ اِلَيْهَا وَ لَمْ يَكْتَفِ فِيْ هٰذَا الشَّرْطِ بِالْمِثَالِ لِئَلَّا يَتَوَهَّمَ |
| ددې په شان د ټولو اسماء مضاف اليه دي او اكتفاء يې ونه كړه په دې شرط كې په مثال سره ځكه چې وهم راشي |
| اِشْتِرَاطُ اِضَافَتِهَا بِكَوْنِهَا اِلَى الْكَافِ وَ اِنَّمَا جُعِلَ اِعْرَابُ هٰذِهِ الْاَسْمَاءِ بِالْحُرُوْفِ لِاَنَّهُمْ لَمَّا جَعَلُوْا |
| داشتراط د اضافت په كيدلو د كاف ته او وګرځول شو اعراب د دغه اسماو په حروفو سره ځكه چې كله وګرځول |
| اِعْرَابَ الْمُثَنّٰى وَ جَمْعُ الْمُذَكَّرِ السَّالِمِ بِالْحُرُوْفِ اَرَادُوْا اَنْ يَّجْعَلُوْا اِعْرَابَ بَعْضِ الْاٰحَادِ |
| نحويانو اعراب د مثنى او د جمع مذكر سالم په حروفو سره اراده يې وكړه چې وګرځوي اعراب د بعضي آحادو |
| اَيْضاً كَذٰلِكَ لِئَلَّا يَكُوْنَ بَيْنَهُمَا وَ بَيْنَ الْاٰحَادِ وَحْشَةٌ وَ مُنَافِرَةٌ تَامَّةٌ وَ اِنَّمَا اخْتَارُوْا |
| هم همدا رنګې ددې د پاره چې رانه شي په مينځ دجمع مثنى او په مينځ د آحادو كې پوره لرې والي او غوره كړو |
| اَسْمَاءَ سِتَّةً لِاَنَّ اِعْرَابَ كُلٍّ مِنَ الْمُثَنّٰى وَالْمَجْمُوْعُ ثَلٰثَةٌ فَجَعَلُوْا فِيْ مُقَابَلَةِ كُلِّ اِعْرَابٍ |
| دوي اسماء سته ځكه چې اعراب د هر يو د مثنى او د جمع دري دي پس وي ګرځول په مقابله د هر يو اعراب |
| اِسْماً وَ اِنَّمَا اخْتَارُوْا هٰذِهِ الْاَسْمَاءَ السِّتَّةَ لِمُشَابَهَتِهِمَا الْمُثَنّٰى وَ الْمَجْمُوْعُ فِيْ كَوْنِ مَعَانِيْهَا |
| كې اسم واحد او غوره كړودوي دغه اسماء سته ځكه چې دا مشابه دي د مثنى او جمع سره په كيدلو د معانيو ددې |
| مُنْبِئَةً عَنْ تَعَدُّدٍ وَ لِوُجُوْدِ حَرْفٍ صَالِحٍ لِلْاِعْرَابِ فِيْ اَوَاخِرِهَا حِيْنَ الْاِعْرَابِ |
| كې چې خبر وركوي د شمار نه او د وجې د وجود د حرف صالح د پاره د اعراب په آخر د اسماو كې كله چې معرب |
| سِمَاعاً بِخِلَافِ سَائِرِ الْاَسْمَاءِ الْمَحْذُوْفَةِ الْاِعْجَازِ كَيَدٍ وَ دَمٍ فَاِنَّهُ لَمْ يَسْمَعْ فِيْهَا مِنَ |
| كيدې شي سماعاً په خلاف د نورو اسماء محذوفو معجزو سره لكه يد او دم ځكه چې سمع نه ده شوې په دې كې د |
| الْعَرَبِ اِعَادَةُ الْحُرُوْفِ الْمَحْذُوْفَةِ عِنْدَ الْاِعْرَابِ الْمُثَنّٰى وَمَا يَلْحَقُ بِهٖ وَ هُوَ كِلَا وَ كَذَا كِلْتَا وَلَمْ يَذْكُرْهُ |
| عربونه اعاده د حرف محذوفه په وخت د اعراب كې مثنى او ملحقات ددې چې كلا او همدا رنګې كلتا دي او ذكر نه |
| لِكَوْنِهٖ فَرْعُ كِيْلَا مُضَافاً اَيْ حَالَ كَوْنِ كِلَا وَ كِلْتَا مُضَافاً اِلٰى مُضْمَرٍ. |
| كړه مصنف كلتا ځكه چې دا فرع د كلا ده مضاف وي يعني په حال كون د كلا او كلتا چې مضاف وي مضمر ته. |

**خلاصه د متن :** په دې عبارت سره صاحب كافيه د دوه قيدونو د عدم تصريح وجه بيانوي.

**اغراض د جامي : وانما لم يصرح بهذين القيدين :** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : چې مکبره او موحده قيودات په کې معتبر وو نو بيا به دې ذکر کړې وي کنه .

**جواب** : دا يې ذکر نه کړل اکتفاء يې وکړه په مثالونو سره .

مضافة إلى غير ياء المتكلم : په کافيه کې دا عبارت مقدم دي په بالواو باندې اوداصحيح هم دي ځکه چې د بالواو نه داحال دي او بالواو داظرف دي نو ظرف عامل وګرځيده اوظرف ضعيف العمل وي په معمول مقدم کې عمل کوې فقط

اوشارح دا مضافة وروستو راوړي دې وايي چې ظرف دا عامل دي لفظاً اوعامل لفظي داپه معمول متقدمه اومتاخره دواړو کې عمل کولې شي .

يابله وجه دادچې دادکاتب غلطي ده کاتب چيرته مولاؤ هغه دا سوچ کړې دي چې داحال دې د بالواو نه حال دادې چې دا صفت دي حکماً اوصفت دا مؤخر وي دموصوف نه نو دلته هم وروستو کول په کار دي .

لانها اذا کانت مکبرة وموحدة ولم تکن مضافة : په دې عبارت سره شارح د مضافة دقيد فائده ذکر کوي چې دا قيد يې ځکه ولږول چې کله دا اسماء مکبره وي اوموحده وي اومضاف نه وي نو بيا اعراب ددوي بالحرکة دي لکه جاءني اخ ورأيت اخا ومررت باخ .

لانها اذا کانت مضافة : دا اسماء به مضاف وي غير د ياء دمتکلم ته ځکه که چيرته مضاف شي ياء دمتکلم ته نو بيا به يې دا اعراب نه وي .

ولم يکتف في هذا الشرط بالمثال : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : په مکبرو اوموحدو قيوداتو کې دې اکتفاء په مثالونو سره کړې وه نو دلته دې هم اکتفاء په مثال سره کړې وې کنه .

**جواب** : اکتفاء په مثال سره ځکه ونه کړه چې خلکو بيا دا توهم کولو چې ددې اسماو به دا اعراب په هغه وخت کې وي چې کله يې اضافت حرف کاف ته شوې وي .

وانما جعل اعراب هذه الاسماء بالحروف : په دې عبارت سره شارح وجه دتخصيص داعراب بيانوي چې ددې اسماو اعراب يې بالحرف وګرځولو ځکه چې دعامو تثنيو اوجموعو اعراب بالحرف وو اودعامو مفرداتو اعراب بالحرکة ؤ نو مونږ دغه بعضو مفرداتو ته اعراب بالحرف ورکړو چې دتثنيو اوجموعو دمفرداتو سره وحشت اومنافرت تامه رانه شي .

وانما اختاروا أسماء ستة : داشپږاسماء يې خاص کړل داعراب بالحرف پورې ځکه دتثنيې درې

حالات ؤاود جمعې درې حالات ؤنوټول شپږ اقسام جوړیدل دهراعراب په مقابله کې یواسم وګرځولو

**والنما اختاروا هذه الاسماء الستة**: دا شپږ اسماء یې بیا دنورو اسماو نه خاص کړل ځکه ددوي مشابهت دتثنیې اوجمع سره وو ځکه دوي هم په تعدد دلالت کوي ځکه چې اب دلالت کوي په من له الاب باندې اوبل داچې ددوي په اخر کې حرف صالح دپاره داعراب شته.

**بخلاف سائر الاسماء المحذوفة الاعجاز**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ید او دم ددې آخر هم صالح دي دپاره داعراب دابه دې خاص کړې وې.

**جواب**: دا اسماء محذوفة الاعجاز دي یعنې کوم حروف چې ددوي نه حذف شوې هغه په وخت داضافت کې نه رامعاد کیږي اود اخ اب الخ را معاد کیږي.

**المثنى**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دمثنی نه لفر دمثنی اخلي اوکه ماصدق علیه دمثنی اخلی که لفظ اخلي نو دمثنی د لفظ اعراب خو بالالف والیاء نه دي بلکه تقدیري دي اوکه ما صدق علیه دمثنی اخلي نو د کلا او کلتا ذکر کولو ته حاجت نه ؤ ځکه په دې هم دمثنی لفظ صادقیږي.

**جواب**: زه دا دواړه نه اخلم بلکه مصداق دتثنیې اخلم نو چې دا مې واخستو نو کلا او کلتا دا مصداق دتثنیې نه دي ځکه ددې مفرد من لفظ نشته نو دا ملحقات دتثنیې دي.

**ومایلحق به**: په دې عبارت سره شارح حال دمتن اتي بیانوي چې دا راتلونکي شیان ملحقات دتثنیې دي چې هغه کلا دي.

**وکذا کلتا**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا چې صرف کلا یې ذکر کړه او کلتا یې ذکر نه کړه ؟.

**جواب**: ځکه چې کلا اصل دي او کلتا دا فرع ده.

**مضافا اى حال كون كلا وكلتا**: دا حال دي د کلا او کلتا نو ځکه منصوب دي ، په دې باندې یو سوال وارديږي:

**سوال**: مونږ خو ویلي دي چې الحال ما یبین هیئة الفاعل اوالمفعول به دلته دا کلا او کلتا څه واقع دي.

**جواب** : په دې کې درې توجیهات دي اوله توجیه ابن مالک کړې ده اوهسې ځان یې خلاص کړې دې وایي چې المثنی معطوف علیه او کلا او کلتا دامعطوف دي دا مبتدا او بـالواو خبر دې اوحال راتلل دمبتدا نه صحیح دي نو کلا او کلتا دا ذوالحال شو

دوهمه توجیه داچې دا کلا او کلتا دافاعل دي دفعل مقدر دپاره تقدیر یې داسې دي چې اعرب کلا وکلتا.

دریمه توجیه دا چې دابناء ده په یوه قاعده باندې اوهغه قاعده داچې حال دمضاف الیه نه هم واقع کیدې شي خو چې حذف دمضاف جائز وي اواقامت دمضاف الیه دهغې په ځای باندې صحیح وي لکه بل نتبع ملة ابراهیم حنیفا ، دلته نتبع فعل ملة مضاف او ابراهیم مضاف الیه حنیفا داحال دي و اوس دلته حذف دمضاف چې ملة دي جائز دي اواقامت دابراهیم په مقام دده باندې صحیح دي ځکه ملة دمخکې فعل دپاره مفعول به واقع شوې دي اوس ابراهیم د هغه قائمقام شو او چې شئ واقع شي په ځای دغیر نو هغه ته حکم دغیر وي نو ابراهیم هم مفعول شو نو د حنیفاً حال جوړیدل ترې نه صحیح شو .

اوس دلته مضافاً حال دي دکلا وکلتا نه اودامضاف الیه واقع شوې دپاره دمضاف مقدره چې هغه اعراب کلا وکلتا دي تقدیر یې داسې شو چې اعرب المثنی اعراب کلا وکلتا اعرب فعل فاعل المثنی مفعول اعراب مضاف کلا وکلتا مضاف الیه مضاف حذف شو اومضاف الیه داد هغه قائمقام شو نو مضاف خو مفعول مطلق وو نو دا هم مفعول مطق شو اوحال دمفعول مطلق نه صحیح دي .

اي حال کون کلا وکلتا مضافاً: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : حال قید وي دپاره د ذوالحال نو ذوالحال المثنی کلا وکلتا دا ټول شو نو دتثنیې به هم هله دا اعراب وي چې کله مضاف وي .

**جواب** : نو شارح جواب ورکړو چې ذوالحال هغه صرف کلا وکلتا دي دتثنیې مطلقا دا اعراب دي که مضاف وي اوکه نه وي .

| وَ اِنَّمَا قُيِّدَ بِذٰلِكَ لِاَنَّ كِلَا بِاِعْتِبَارِ لَفْظِهٖ مُفْرَدٌ وَ بِاِعْتِبَارِ مَعْنَاهُ مُثَنًّى |
|---|
| اوبیشکه مقیدیې کړوپه دې قیدسره ځکه چې کلاپه اعتبار دلفظ سره مفرد ده اوپه اعتبار د معنی سره مثنی ده |
| فَلَفْظُهٗ يَقْتَضِي الْاِعْرَابَ بِالْحَرَكَاتِ وَ مَعْنَاهُ يَقْتَضِي الْاِعْرَابَ بِالْحُرُوْفِ فَرُوْعِيَ فِيْهِ |
| پس لفظ دکلاتقاضاداعراب بالحرکة کوي اومعنی یې تقاضاداعراب بالحرف کوي پس مراعت شوپه دې کې |

كِلَا الْاِعْتِبَارَيْنِ فَاِذَا اُضِيفَ اِلَى الْمُظْهَرِ الَّذِيْ هُوَ الْاَصْلُ رُوْعِيَ
دواړه اعتبارات كله چې اضافت وكړې شي اسم ظاهر ته چې هغه اصل دي نو رعايت به وكړې شي په هغې كې د
جَانِبُ لَفْظِهِ الَّذِيْ هُوَ الْاَصْلُ وَ اُعْرِبَ بِالْحَرَكَاتِ الَّتِيْ هِيَ الْاَصْلُ وَ لٰكِنْ تَكُوْنَ حَرَكَاتُهُ
جانب لفظي چې هغه اصل دي او معرب شي په هغه حركت سره چې هغه هم اصل دي ليكن حركات د شغې
تَقْدِيْرِيَّةً لِاَنَّ اٰخِرَهُ اَلِفٌ تَسْقُطُ بِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ نَحْوُ جَاءَنِيْ كِلَا الرَّجُلَيْنِ وَ رَاَيْتُ كِلَا
تقديري وي څكه چې آخر يې الف دي چې ساقطيږي په التقاء د ساكنينو سره لكه جاءني كلا الرجلين ورأيت كلا
الرَّجُلَيْنِ وَ مَرَرْتُ بِكِلَا الرَّجُلَيْنِ وَ اِذَا اُضِيفَ اِلَى الْمُضْمَرِ الَّذِيْ هُوَ الْفَرْعُ رُوْعِيَ
الرجلين ومررت بكلا الرجلين او چې كله يې اضافت وكړې شي ضمير ته چې هغه فرع ده نو رعايت به وكړې شي په
جَانِبُ مَعْنَاهُ الَّذِيْ هُوَ الْفَرْعُ وَ اُعْرِبَ بِالْحُرُوْفِ الَّتِيْ هِيَ الْفَرْعُ نَحْوُ جَاءَنِيْ كِلَاهُمَا وَ رَاَيْتُ كِلَيْهِمَا وَ
جانب د هغه معنى چې هغه هم فرع ده او معرب شي په حروفو سره چې دا هم فرع ده لكه جاءني كلاهما ورأيت كليهما و
مَرَرْتُ بِكِلَيْهِمَا فَلِذٰلِكَ قُيِّدَ كَوْنُ اِعْرَابِهٖ بِالْحُرُوْفِ بِكَوْنِهٖ مُضَافًا اِلَى مُضْمَرٍ
مررت بكليهما نو دي وجې نه يې مقيد كړو په كيدلو د اعراب د دې په حروفو سره چې كله مضاف وي ضمير ته
وَاِثْنَانِ وَ كَذَا اثْنَتَانِ وَ ثِنْتَانِ فَاِنَّ هٰذِهِ الْاَلْفَاظَ وَ اِنْ كَانَتْ مُفْرَدَةً لٰكِنْ صُوْرَتُهَا صُوْرَةُ التَّثْنِيَةِ
اثنان او همدا رنگې اثنتان او ثنتان څكه چې دا الفاظ اګر كه مفرد دي ليكن صورتونو د دې صورتونه د تثنيې دي
وَ مَعْنَاهَا مَعْنَى التَّثْنِيَةِ فَاُلْحِقَتْ بِهَا بِالْاَلِفِ رَفْعًا وَ الْيَاءُ الْمَفْتُوْحُ
او معنى د دې معنى د تثنيې ده نو پيوسته شو په هغې پورې په الف سره په حالت رفعي كې ياء چې مفتوح وي
مَا قَبْلَهَا نَصْبًا وَ جَرًّا كَمَا سَيَجِيْئُ.
ماقبل د هغې په حالت نصبي او جري كې چې رابه شي.

**خلاصه د متن:** په دې عبارت سره صاحب كافيه د مضافا د قيد فائدې بيانوي.

**اغراض د جامي:** واِنما قيد بذلك لان كلا باعتبار لفظه مفرد: د كلا او كلتا سره يې د مضافا قيد ولږولو څكه چې كلا په اعتبار د لفظ سره مفرد دي څكه چې مفرد يې نشته او په اعتبار د معنى سره جمع ده لفظ يې تقاضا د اعراب بالحركة كوي او معنى يې تقاضا د اعراب بالحرف كوي نو د دواړو اعتبارينو لحاظ په كې ساتلې شوي دي هر كله يې چې اضافت اسم ظاهر ته وشي نو اعراب به يې بالحركة وي خو تقديرا څكه چې په اخر كې الف دي نو دا به د التقاء ساكنينو د وجې نه غورزيږي او اعراب به په عين كلمه جاري كيږي لكه جاءني كلا الرجلين ورأيت كلا الرجلين ومررت بكلا الرجلين ، او چې كله يې اضافت اسم ضمير ته وشي نو بيا به يې اعراب بالحرف وي

لکه جاءني کلاهما ورأيت کليهما ومررت بکليهما

فلذلک قيد کون اعرابه بالحروف بکونه مضافا الی مضمر : په دې عبارت سره شارح نتيجه ذکر کوي

واثنان وکذا اثنتان : دا حکم د اثنان نه دی بلکه د اثنتان او ثنتان هم دا حکم دی ، بل دا چې دا الفاظ اګر که مفرد دي ليکن صورت يې د تثنيې دی ، په دې باندې يو سوال وارديږي :

**سوال** : کلا دې ذکر کړو او کلتا دې ذکر نه کړو او ودې ويل چې دا فرع ده دلته به دې هم داسې کړې وي

**جواب** : شارح د دې دوه جوابات ذکر کړي دي

**اول جواب** : دا اسماء العدد دي او د دوي تميز خلاف القياس راځي خو دلته مونږ دا کار خلاف القياس وکړو خو دا وجه ضعيفه ده

**دوهم جواب** : دا چې مونږ دفع د توهم د پاره ذکر کړو چې متوهم به دا وهم کولو چې د اثنان به داسې اعراب وي او د اثنتان به داسې اعراب نه وي نو دا سوال او وهم خو په کلا هم راځي چې هلته هم داسې وهم کيدای شو .

| |
|---|
| جَمْعُ الْمُذَكَّرِ السَّالِمِ وَ الْمُرَادُ بِهٖ مَا سُمِّيَ بِهٖ اِصْطِلَاحاً وَ هُوَ الْجَمْعُ بِالْوَاوِ وَ النُّوْنِ فَيَدْخُلُ |
| جمع مذکر سالم او مراد په دې سره هغه ده چې مسمی کوي اصطلاحا هغه جمع په واو او نون سره ده نو داخليږي |
| فِيْهِ نَحْوُ سِنِيْنَ وَ اَرْضِيْنَ مِمَّا لَمْ يَكُنْ وَاحِدُهٗ مُذَكَّراً لِيَكُنْ يَجْمَعُ بِالْوَاوِ وَ النُّوْنِ وَ مَا |
| په دې کې په مثل د سنين او ارضين هغه چې نه وي واحد د هغې مذکر ليکن جمع کيږي په واو او نون سره او هغه |
| اُلْحِقَ بِهٖ وَ هُوَ اُوْلُوْا جَمْعُ ذُوْ لَا عَنْ لَفْظِهٖ وَ عِشْرُوْنَ وَ اَخَوَاتُهَا اَيْ نَظَائِرُهَا |
| چې ملحق وي ترې پورې چې هغه اولو ده چې جمع د ذو ده نه په لفظ کې او عشرون او اخوات د دې يعني نظائر |
| السَّبْعُ وَ هِيَ ثَلٰثُوْنَ اِلٰى تِسْعِيْنَ وَ لَيْسَ عِشْرُوْنَ جَمْعُ عَشْرَةٍ وَلَا ثَلٰثُوْنَ جَمْعُ ثَلٰثَةٍ وَ اِلَّا لَصَحَّ اِطْلَاقُ |
| سبع چې د ثلاثون نه تر تسعين پورې او نه عشرون جمع د عشرة او نه ثلاثون جمع د ثلاثة ورنه صحيح به وي اطلاق |
| عِشْرِيْنَ عَلٰى ثَلٰثِيْنَ لِاَنَّهٗ ثَلٰثَةُ مَقَادِيْرِ الْعَشَرَةِ وَ اِطْلَاقُ ثَلٰثِيْنَ عَلَى التِّسْعَةِ لِاَنَّهَا ثَلٰثَةُ |
| د عشرين په ثلاثين خکه چې ثلاثه مقادير د عشرو دي او صحيح به وو اطلاق د ثلاثين په تسعو باندې خکه چې ثلاثه |
| مَقَادِيْرِ الثَّلٰثَةِ وَ عَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ الْبَوَاقِيْ وَ اَيْضاً هٰذِهِ الْاَلْفَاظُ عَلٰى مَعَانٍ مُعَيَّنَةٍ |
| مقادير د ثلاثو دي او په همدې قياس باندې باقي هم دي او همدارنګې دغه الفا[illegible] دلالت کوي په معنی معينو |

| وَلَا تَعْيِيْنَ فِي الْجُمُوْعِ بِالْوَاوِ رَفْعاً وَ الْيَاءِ الْمَكْسُوْرِ مَا قَبْلَهَا نَصْباً وَ جَرًّا. |
|---|
| باندې تعین نشته په جموع کې په واوسره په حالت رفعي په یاءمکسورې ماقبل سره په حالت نصب اوجري کې |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب کافیه تعریف دجمع مذکر سالم کوي

**اغراض دجامي** : جمع المذکر السالم: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال** :دا دی چې تا کوم د جمع مذکرې سالمې اعراب ذکر کړی دی هغه جامع هم نه دی او مانع هم نه دی . جامع خو ځکه نه دی چې سنون او ارضون د مونث جمع سالمې دي خو ددې اعراب بالحرکت حکمي نه دی هغه چې کوم تا بیان کړې بلکې ددې اعراب بالحرف دی او مانع خو ځکه نه دی چې مرفوعات منصوبات او مجرورات د مذکرجمع سالمه ده خو ددې اعراب هم دغه دی کوم چې تا د جمع مذکر سالمې لپاره ښودلی و

**جواب** : شارح په مذکوره عبارت کې ددې جواب ورکړو، چې تا دلته د جمع مذکر سالمې لغوي معنی اخیستې ده او سوال دې کړی دی، چې کومه د مذکر جمع سالمه ده او زمونږ مراد اصطلاحي معنی ده او په اصطلاحي کې د جمع مذکر سالمې نه مراد هغه جمع ده، چې د هغې په آخر کې واو او نون وي قطع نظر د دې نه، چې ددې مفرد مذکر وي یا مؤنث بس چې د چا په آخر کې چې الف او تاء وي هغه جمع مؤنث سالمه ده.

وما الحق به: الو دا جمع ده خو دملحقاتو دجمع څخه ده ځکه معنی خو یې دجمع ده خو مفرد ورلره من لفظه نشته دي ځکه مفرد یې ذو دي نو چې لفظ دمفرد یې جدا شو نو هم حقیقتا ونه ګرځیده جمع ذو لا عن لفظه دا دلیل دي دملحق کیدلو دپاره .

وعشرون واخواتها: او اخوات یې د ثلاثون نه دي تر تسعون پورې .

ولیس عشرون جمع عشرة: عشرون داجمع دعشرة نه ده اوکه چیرته شي نو صحیح به شي اطلاق دعشرون په ثلاثون باندې ځکه اقل دجمع دري دي اودرې وارې عشرة دانه دي مګر ثلاثین اونه ثلاثین جمع دثلاثة ده ځکه صحیح به شي اطلاق دثلاثین په تسعة باندې ځکه اقل افراد دجمع دري دي اودري وارې ثلاثة دا نه دي مګر تسعة .

وایضاً هذه الالفاظ تدل علی معان: دا الفاظ چې عشرون نه تر تسعون پورې دا دلالت کوي په معانیو معینو باندې اوپه جموعو کې تعین نه وي .

وَ اِنَّمَا جُعِلَ اِعْرَابُ الْمُثَنّٰى مَعَ مُلْحَقَاتِهٖ وَ الْجَمْعُ مَعَ مُلْحَقَاتِهٖ بِالْحُرُوْفِ لِاَنَّهُمَا فَرْعَانِ لِلْوَاحِدِ

اوو ګرځولې شي اعراب د مثنی سره د ملحقاتو او د جمع سره د ملحقاتو خکه چي دا دواړه فرعي دي د پاره د واحد

وَ فِيْ آخِرِهِمَا حَرْفٌ يَصْلَحُ لِلْاِعْرَابِ وَ هُوَ عَلَامَةُ التَّثْنِيَةِ وَ الْجَمْعِ فَنَاسَبَ

او په آخر د دې دواړو کې دا سې حرف دي صلاحیت لري د اعراب چي هغه علامه د تثنیې او د جمع دي پس مناسب

اَنْ يَجْعَلَ ذٰلِكَ الْحَرْفُ اِعْرَابَهُمَا لِيَكُوْنَ اِعْرَابُهُمَا فَرْعاً لِاِعْرَابِهٖ

دي چي وګرځولې شي دغه اعراب د دې دواړو د د پاره چي شي اعراب بالحرف فرع د پاره د اعراب بالحرکة

كَمَا اَنَّهُمَا فَرْعَانِ لَهٗ لِاَنَّ الْاِعْرَابَ بِالْحُرُوْفِ فَرْعٌ لِلْاِعْرَابِ بِالْحَرَكَاتِ وَ لَمَّا

لکه څنګه چي دا دواړه فرعي دي د پاره د هغې خکه چي اعراب بالحرف فرعه ده د اعراب بالحرکة او هر کله

جُعِلَ اِعْرَابُهُمَا بِالْحُرُوْفِ وَ كَانَ حُرُوْفُ الْاِعْرَابِ ثَلٰثَةً وَ اِعْرَابُهُمَا سِتَّةٌ ثَلٰثَةٌ لِلْمُثَنّٰى

چي وګرځولې شو اعراب د دې دواړو په حرف سره او وو حروف د اعراب دري او اعراب د دې دواړو شپږ وو دري د مثنی

وَ ثَلٰثَةٌ لِلْمَجْمُوْعِ فَلَوْ جَعَلَ اِعْرَابُ كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا بِتِلْكَ الْحُرُوْفِ الثَّلٰثَةِ لَوَقَعَ

او دري د جمع پس که چیرته ګرځولې شي وي اعراب د هر یو د دې په دغه حروفو ثلاثو سره نو واقع شوې به وي

الْاِلْتِبَاسُ وَ لَوْ خُصَّ الْمُثَنّٰى بِهَا بَقِيَ الْمَجْمُوْعُ بِلَا اِعْرَابٍ وَ لَوْ خُصَّ

التباس او که چیرته خاص شوې وي مثنی په دې سره باقي به پاتې وه جمع په غیر د اعراب نه او که خاص شوې وي

الْمَجْمُوْعُ بِهَا بَقِيَ الْمُثَنّٰى بِلَا اِعْرَابٍ فَوُزِّعَتْ عَلَيْهِمَا بِاَنْ جُعِلُوا الْاَلِفَ

جمع په دې سره نو باقي به وي مثنی په غیر د اعراب نه پس تقسیم کړې شو په دې دواړو چي وګرځولې شو الف

عَلَامَةَ الرَّفْعِ فِي الْمُثَنّٰى لِاَنَّهُ الضَّمِيْرُ الْمَرْفُوْعُ لِلتَّثْنِيَةِ فِي الْفِعْلِ نَحْوُ يَضْرِبَانِ وَ ضَرَبَا وَ الْوَاوُ

علامت د رفع په مثنی کې خکه چي دا ضمیر مرفوع دي د پاره د تثنیې په فعل کې لکه یضربان و ضربا او واو

عَلَامَةَ الرَّفْعِ فِي الْمَجْمُوْعِ لِاَنَّهُ الضَّمِيْرُ الْمَرْفُوْعُ لِلْجَمْعِ فِي الْفِعْلِ نَحْوُ يَضْرِبُوْنَ وَ ضَرَبُوْا وَ

علامه د رفعې په جمع کې خکه چي دا ضمیر مرفوعه دي د پاره د جمع په فعل کې لکه یضربون او ضربوا او وي

جُعِلُوْا اِعْرَابَهُمَا بِالْيَاءِ حَالَ الْجَرِّ عَلَى الْاَصْلِ وَ فَرَّقُوْا بَيْنَهُمَا

ګرځول اعراب د دواړو په یاء سره په حالت جري کې بناء براصلیت او فرق یې راوستو په مینځ د دواړو کې چي

بِاَنْ فُتِحُوْا مَا قَبْلَ الْيَاءِ فِي التَّثْنِيَةِ لِخِفَّةِ الْفَتْحَةِ وَ لِكَثْرَةِ اِسْتِعْمَالِ التَّثْنِيَةِ وَ كَسَرُوْهُ

فتحه یې ورکړه ماقبل د یاء ته په تثنیه کې دوجې د خفت د فتحې نه او د زیات استعمال د تثنیې نه او کسره یې

فِي الْجَمْعِ لِثِقْلِ الْكَسْرَةِ وَ قِلَّةِ الْمَجْمُوْعِ وَ حَمَلُوا النَّصْبَ عَلَى الْجَرِّ

ورکړه په جمع کې دوجې د ثقیل والي د کسرې نه او د کم استعمال د جمع نه او حمل یې کړو نصب په جر باندې نه

لَا عَلَى الرَّفْعِ لِمُنَاسَبَةِ النَّصْبِ بِالْجَرِّ لِوُقُوْعِ كُلٍّ مِّنْهُمَا فُضْلَةً فِي الْكَلَامِ.

په رفع باندې دوجې د مناسبت د نصب د جر سره خکه چي دواړه په کلام کې فضله واقع کیږي

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب كافيه وجه داعراب بيانوي

**اغراض دجامي** : <u>وانما جعل الاعراب المثنى مع ملحقاته بالحروف</u>: تثنيې اوجمع او محلقاتو ددې ته اعراب بالحرف وركړې شو ځكه چې دافرع دواحد ده اواعراب بالحرف دا فرع داعراب بالحركة وي اوپه آخر ددې دواړو كې چې تثنيه اوجمع ده حرف صالح للاعراب ؤ چې هغه علامه دتثنيه اودجمع ده نو مناسب وه چې دغه حرف صالح اعراب وګرځي ددې دواړو دپاره چې شي اعراب ددوي فرعه داعراب دمفرد لكه څرنګه چې دوي فرعه وو دمفرد

په دې باندې يو سوال وارديږي .

**سوال** : دا خو لازم شو توارد دعلتينو مستقليتنو په معلول واحده باندې علامه دتثنيه او د اعراب دواړو شوه اوهمدارنګه واو .

**جواب** : دا خو علل حقيقيه نه دي بلكه علامات دي او يو شئ د ډيرو شيانو دپاره هم علامه ګرځيدې شي .

<u>ولما جعل اعرابهما بالحروف وكان حروف الاعراب ثلاثه</u>: هر كله چې اعراب دتثنيه اودجمع بالحرف وو اوحروف داعراب دري وو اواعراب دتثنيه هم دري حالات وو اودجمع هم دري حالات وو كه چيرته مو حروف داعراب تثنيه ته وركړې وي نو جمع بلا اعرابه پاتې كيده اوكه عكس مو كړې وي نو تثنيه بلا اعرابه پاتې كيده اوكه مشترك كړې مو وي نو ويره دالتباس وه نو تقسيم مو وكړو په داسې طريقې سره چې الف مو علامه درفع كړې په تثنيه كې ځكه دا الف ضمير دفاعل دي په تثنيه كې لكه يضربان اوضربا ا واو مو علامه درفع وګرځوله په جمع كې ځكه دا ضمير دفاعل دي په جمعو كې اوحالت جري يې په دواړو كې په ياء سره وګرځولو .

<u>وفرقوا بينهما الخ</u>: په دې عبارت سره شارح فرق بيانوي چې فرق مو دتثنيې وكړو دجمع سره په ماقبل د ياء سره په تثنيه كې به مفتوح وي ماقبل دياء اوپه جمعو كې به مكسور وي اوحالت نصبي مو تابع دجري وګرځولو .

<u>وحملوا النصب على الجر لا على الرفع</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي .

**سوال** : جر يې تابع دنصب ولې نه كړو ؟

**جواب** : چې نصب يې تابع دجر كړو ځكه مناسبت دنصب دجر سره شته چې هغه وقوع ددې دواړو ده په كلام كې فضله .

# د اعراب لفظي او تقديري ځايونه:

وَ لَمَّا فَرَغَ مِنْ تَقْسِيمِ الإِعْرَابِ إِلَى الحَرَكَةِ وَ الحَرْفِ وَ بَيَانِ مَوَاضِعِهِمَا المُخْتَلِفَةِ شَرَعَ
او کله چي فارغ شو مصنف د تقسيم د اعراب نه حرکت او حرف ته او د بيان د مواضعو مختلفو د هغې نه نو شروع

فِي بَيَانِ مَوَاضِعِ الإِعْرَابِ اللَّفْظِيِّ وَ التَّقْدِيرِيِّ الَّذَيْنِ أُشِيرَ إِلَى تَقْسِيمِهِ إِلَيْهِمَا فِيمَا سَبَقَ وَ لَمَّا
يې وکړه په بيان د مواضعو د اعراب لفظي او تقديري کې چي اشاره يې وکړه تقسيم د دې دواړو ته مخکې هر کله

كَانَ التَّقْدِيرِيُّ أَقَلَّ إِشَارَةً إِلَيْهِ أَوَّلًا ثُمَّ بَيَّنَ أَنَّ اللَّفْظِيَّ مَا عَدَاهُ فَقَالَ
چي وو اعراب تقديري کم نو اشاره يې وکړه هغې ته اولا بيا يې وويل چي لفظي ماسوا د هغې دي پس ريې ويل

التَّقْدِيرُ أَيْ تَقْدِيرُ الإِعْرَابِ فِيمَا أَيْ فِي الاِسْمِ المُعْرَبِ الَّذِي تَعَذَّرَ الإِعْرَابُ فِيهِ أَيْ
چي تقديري اعراب يعني تقدير د اعراب په هغه اسم معرب کې چي متعذر وي اعراب په هغې کې يعني چي

اِمْتَنَعَ ظُهُورُهُ فِي لَفْظِهِ وَ ذَلِكَ إِذَا لَمْ يَكُنِ الحَرْفُ الَّذِي هُوَ مَحَلُّ الإِعْرَابِ قَابِلاً لِلْحَرَكَةِ
مانع وي ظهور د اعراب په لفظ کې او دا چي کله نه وي حرف چي هغه محل د اعراب دي قابل د پاره د حرکت

الإِعْرَابِيَّةِ كَمَا فِي الاِسْمِ المُعْرَبِ بِالحَرَكَةِ الَّذِي فِي آخِرِهِ أَلِفٌ مَقْصُورَةٌ سَوَاءٌ كَانَتْ مَوْجُودَةً فِي
اعرابيه لکه څنګه چي په اسم معرب بالحرکة دي چي آخري الف مقصوره وي برابره خبره ده که موجود وي په

اللَّفْظِ كَالعَصَا بِلَامِ التَّعْرِيفِ أَوْ مَحْذُوفَةً بِالتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ كَعَصاً بِالتَّنْوِينِ فَإِنَّ الأَلِفَ
لفظ کې لکه عصا په لام د تعريف سره يا محذوف وي په التقاء د ساکنينو لکه عصاً په تنوين سره څکه چي الف

المَقْصُورَةَ فِي الصُّورَتَيْنِ غَيْرُ قَابِلَةٍ لِلْحَرَكَةِ وَ كَمَا فِي الاِسْمِ المُعْرَبِ بِالحَرَكَةِ المُضَافِ إِلَى يَاءِ
مقصوره په دواړو صورتونو کې غير قابل دي د پاره د حرکت او يا په اسم معرب بالحرکة کې چي مضاف وي ياء د

المُتَكَلِّمِ نَحْوُ غُلَامِي فَإِنَّهُ لَمَّا اشْتَغَلَ مَا قَبْلَ يَاءِ المُتَكَلِّمِ بِالكَسْرَةِ لِلْمُنَاسَبَةِ قَبْلَ
متکلم ته لکه غلامي څکه چي کله مشغول شو ماقبل د ياء د متکلم په کسرې سره دوجې د مناسبت نه مخکې د

دُخُولِ العَامِلِ اِمْتَنَعَ أَنْ يَدْخُلَ عَلَيْهِ حَرَكَةٌ أُخْرَى بَعْدَ دُخُولِهِ مُوَافِقَةً
دخول د عامل نه نو منع ده چي داخل شي په دې باندې حرکت آخر وروستو د دخول د عامل نه د پاره د موافقت د

لَهَا أَوْ مُخَالِفَةً فَمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ بَعْضُ مَنْ أَنَّ إِعْرَابَ مِثْلِ هَذَا الاِسْمِ فِي حَالَةِ الجَرِّ
هغې او يا د مخالفت پس هغه چي ذهاب کړې هغې ته بعضې هغه چاچي اعراب د مثل د دې اسم په حالت جري

لَفْظِيٌّ غَيْرُ مَرْضِيٍّ مُطْلَقًا أَيْ فِي الأَحْوَالِ الثَّلَاثِ يَعْنِي كَوْنُ الإِعْرَابِ تَقْدِيراً فِي هَذَيْنِ النَّوْعَيْنِ
کې لفظي دي غير صحيح ده مطلقا يعني په احوال ثلاثو کې يعني کيدل د اعراب دي تقديري په دغه نوعو کې د

مِنَ الاِسْمِ المُعْرَبِ إِنَّمَا هُوَ فِي جَمِيعِ الأَحْوَالِ غَيْرَ مُخْتَصٍّ بِبَعْضِهَا أَوِ اسْتُثْقِلَ عَطْفٌ عَلَى تَعَذَّرَ أَيِ التَّقْدِيرُ
اسم معرب نه دا په ټولو احوالو کې غير مختص دي د بعضې پورې استثقل عطف دي په تعذر باندې يعني تقدير د

| |
|---|
| الْإِعْرَابِ فِيْمَا تَعَذَّرُوْا فِي الْإِسْمِ الَّذِيْ اسْتُثْقِلَ ظُهُوْرُ الْإِعْرَابِ فِي لَفْظِهٖ وَ ذٰلِكَ إِذَا كَانَ |
| اعراب په هغه خای کې چې متعذر وي یا په هغه اسم کې چې ثقيل وي ظهور د اعراب په لفظ کې داده چې کله |
| مَحَلُّ الْإِعْرَابِ قَابِلاً لِلْحَرَكَةِ الْإِعْرَابِيَّةِ لٰكِنْ يَكُوْنُ ظُهُوْرُهٗ فِي اللَّفْظِ ثَقِيْلًا عَلَى اللِّسَانِ كَمَا |
| وي محل د اعراب قابل دپاره د حرکت اعرابيه ليکن ثقيل وي ظهور د اعراب په لفظ کې په ژبه لکه څرنګه چې |
| فِي الْإِسْمِ الَّذِيْ فِيْ آخِرِهٖ يَاءٌ مَكْسُوْرٌ مَا قَبْلَهَا سَوَاءٌ كَانَتْ مَحْذُوْفَةً بِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ كَقَاضٍ أَوْ غَيْرَ مَحْذُوْفَةٍ |
| په هغه اسم کې چې آخر یې یاء ماقبل مکسوره وي محذوفه وي په التقاء د ساکنينو لکه قاضٍ یا غير محذوفه وي |
| كَالْقَاضِيْ رَفْعاً وَ جَرًّا أَيْ فِيْ حَالَتِي الرَّفْعِ وَ الْجَرِّ لَا فِيْ حَالَةِ النَّصْبِ لِإِسْتِثْقَالِ |
| لکه قاضي په حالت رفعي اوجري کې يعني په دواړو حالتونو د رفع اوجر کې نه په حالت د نصب کې دوجې د ثقيل |
| الضَّمَّةِ وَ الْكَسْرَةِ عَلَى الْيَاءِ دُوْنَ الْفَتْحَةِ. |
| والي د ضمې اوکسرې نه په یاء باندې په غير د فتحې نه . |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب کافيه د اعراب لفظي اوتقديري بيان کوي .

**اغراض دجامي** : ولما فرغ من تقسيم الاعراب الى الحركة والحرف : په دې عبارت سره شارح تذکير د ماسبق اوتوطيه اوتمهيد د متن آتي دپاره کوي .

ولما كان التقديري : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : اعراب لفظي اصل دي په نسبت سره اعراب تقديري ته په کار وه چې اعراب لفظي يې مقدم کړې وي په اعراب تقديري باندې سره ددې نه چې ده وروستو ذکر کړې دي .

**جواب** : شارح ددې دوه جوابات ورکړي دي :

**اول جواب** : خبره دې صحيح ده خو د تقديري اقسام کم دي دوه دي يو فيما تعذر اودويم استثقل او اقل مقدم وي په اکثر باندې .

**دوهم جواب** : زمونږ مقصد اومراد اختصار وو او اختصار په دې کې وو چې اول تقديري ذکر کړو او بيا لفظي .

التقدير اى تقدير الاعراب : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : زمونږ خبره شروع وه په اعراب کې اوته تقديراتو ته لاړې .

**جواب** : نو شارح جواب ورکړو چې زه مقدرات نه بيانوم بلکه تقدير د اعراب بيانوم .

فيما اى في الاسم المعرب : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : چې اعراب به تقديري وي په هغه ځاى کې چې اعراب متعذر وي نو مبني خو هم متعذر دي په کار ده چې په تولو مبنياتو کې اعراب تقديري شي

**جواب** : مراد د ما نه اسم معرب دي نه اسم مبني

تعذر الاعراب فيه : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : چې ما موصوله شوه نو تعذر ضمير ما ته راجع دي اوکه اعراب ته که ما ته راجع وي نو فساد دمعنی راځي نو معنی دا شوه چې اعراب به تقديري وي په هغه اسم معرب کې چې تعذر وي په کې معرب ، اوکه ضمير اعراب ته راجع کوي نو معنی خو صحيح شوه خو ليکن تعذر دا جمله صله واقع شوې او چې جمله صله واقع شي نو هغې کې عائد ضروري وي نو صله بلا عائده وګرځيده

**جواب** : ضمير اعراب ته راجع دي خو کله کله عائد حذف کيږي .

اى امتنع : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : تعذر او داستثقل خو يوه معنی ده چې ګران نو په دې اقسامو کې خو تقابل صحيح نه شو .

**جواب** : د تعذر معنی ده چې مانع وي دظهور نه اوداستثقال معنی ده چې ظهور يې کيدې شي خو ثقل په لسان راولي .

وذلک اذا لم يکن الحرف الذي : بيان دقاعدې دتقدير داعراب به په هغه صورت کې وي چې هغه حرف چې هغه محل داعراب دي چې هغه قابل دحرکت اعرابيه نه وي لکه هغه اسم مقصور چې په اخر کې يې الف مقصوره وي اومعرب بالحرکة وي اوس برابره خبره ده چې دغه الف يې په لفظ کې ذکر وي لکه العصا اوکه حذف شوې وي په التقاء دساکنينو سره لکه په عصاً کې تنوين او الف دواړه ساکن دي نو الف حذف شوې اوهمدارنګه هغه اسم معرب بالحرکة چې مضاف وي ياء دمتکلم ته لکه غلامي .

فان الالف غير قابل : چې الف دا قابل دحرکت نه دي په اسم مقصور کې .

نحو غلامي فانه : دغلامي اعراب به تقديري وي ځکه چې ماقبل دياء نه مشغول وي په کسرې سره دمناسبت دياء دوجې نه مخکې ددخول دعامل نه اوس دعامل ددخول نه بعد پرې بل حرکت هم نه شي راتللې چې موافق وي دحرکت دياء سره اوکه مخالف موافق خو ځکه نه شي

راتلې چې لازم به شي توارد دعلتینو په معلول واحده کې یاء یو دا معلول دي او یو علت هغه کسره اوبل به عامل شي اومخالف حرکت هم نه شي راتلې ځکه لازم به شي وجود دعلت په غیر دمعلول نه علت به وي چې یاء ده اومعلول چې کسره دماقبل دیاء ده نه وي .

دلته یو سوال وارديږي :

**سوال** : مخکې تا وويل چې الف هم علامه دتثنيې اوعلامه داعراب ده دلته به دې هم داسې کړې وي کسره به دې هم علامه داعراب اوهم علامه دياء کړې وي .

**جواب** : دا مونږ نه شو کولې ځکه په تثنيه کې چې الف علامه دتثنيه ده خو علامه حقيقيه ده اومونږه چې غلامه درفع ګرځولې وه نو هغه علامه اصطلاحيه وه يوه علامه حقيقيه ده اوبله اصطلاحيه لکه جاءني زيد دلته دلته عامل حقيقي متکلم دي اوعامل اصطلاحي هغه جاءني دي نو دلته يوه رفعه ده اواثر دعامل حقيقي اواصطلاحي دواړو ګرځيده نو دعامل اصطلاحي او حقيقي جمع په يو معمول کې راتلې شي .

فما ذهب اليه بعض : په غلامي کې په حالت جري کې اعراب لفظي دي اوتوارد نه لازميږي ځکه دا جر معلول دياء دپاره وو مخکې او اوس دامعلول وګرځيده دپاره دعامل يادعلت .

**مطلقا** : دا ځکه منصوب دي چې دا حال دي دغلامي نه اوغلامي معنًى مفعول مطلق دي دتعذر دپاره تعذر فعل الاعراب فاعل کعصاً وغلامي کاف په معنى دمثل سره .

او استثقل عطف على تعذر : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : زه به درته وښائم چې يو لفظ به وي په لسان باندې به ثقيل وي اواعراب به يې تقدري نه وي لکه قبر حرب بمکان قفر ليس قرب قبر حرب قبر .

**جواب** : ظهور داعراب به پرې ثقيل وي اوتا چې کوم مثال ذکر کړو ددې خو الفاظ ثقيل دي په لسان باندې .

وذلک اذا کان محل الاعراب الخ : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : تعذر يې فعل معلوم راوړو او استثقل يې فعل مجهول نو ددې څه وجه ده ؟

**جواب** : تعذر فعل لازمي دي نو ددې وجې نه يې معلوم راوړ او استثقل متعدي دي نو ددې وجې نه يې هغه مجهول راوړو .

رفعاً وجراً اى في حالتي الرفع والجر : په في حالتي الرفع والجر سره وجه دنصب معلومه شوه چې رفعاً

جرا دامنصوب دي بنابر ظرف زمان

وَ نَحْو مُسْلِمِيَّ عَطْفٌ عَلٰى قَوْلِهٖ كَقَاضٍ يَعْنِي تَقْدِيْرُ الْإِعْرَابِ لِلْإِسْتِثْقَالِ قَدْ يَكُوْنُ فِي الْإِعْرَابِ بِالْحَرَكَةِ

اومسلمي عطف دي په قول دمصنف قاضٍ باندي يعني تقديرداعرب دوجې دثقل نه کله وي په اعراب بالحرکة

وَ قَدْ يَكُوْنُ فِي الْإِعْرَابِ بِالْحَرْفِ نَحْو مُسْلِمِيَّ بِخِلَافِ تَقْدِيْرِ الْإِعْرَابِ لِلتَّعَذُّرِ فَإِنَّهٗ مُخْتَصٌّ

کې اوکله وي په اعراب بالحرف کې لکه مسلمي په خلاف دتقديرداعراب متعذره نه خکه چې هغه خاص دي

بِالْإِعْرَابِ بِالْحَرَكَةِ رَفْعًا يَعْنِيْ تَقْدِيْرُ الْإِعْرَابِ فِيْ نَحْو مُسْلِمِيَّ إِنَّمَا هُوَ فِيْ حَالَةِ الرَّفْعِ

په اعراب بالحرکة پورې په حالت رفعي کې يعني تقدير د اعراب په مثل د مسلمي دا په حالت د رفعي کې دي

فَقَطْ دُوْنَ النَّصْبِ وَ الْجَرِّ نَحْو جَاءَ فِيْ مُسْلِمِيَّ فَإِنَّ أَصْلَهٗ مُسْلِمُوْيَ بِسُقُوْطِ النُّوْنِ بِالْإِضَافَةِ

فقط په غير د نصب اوجرنه لکه جاءني مسلمي خکه اصل ددې مسلموي ووبه سقوط د نون د وجې د اضافت نه نو

فَاجْتَمَعَ الْوَاوُ وَ الْيَاءُ وَ السَّابِقُ مِنْهُمَا سَاكِنٌ فَانْقُلِبَتِ الْوَاوُ يَاءً وَ أُدْغِمَتِ الْيَاءُ فِيْ يَاءٍ وَ كُسِرَ مَاقَبْلَ

جمع شوواواوياءاومخکې ترې نه ساکن نوبدل شوواوبه ياءباندې نومدغم شوه ياءپه ياءکې اومکسورشو ماقبل

الْيَاءِ فَلَمْ يَبْقَ عَلَامَةُ الرَّفْعِ الَّتِيْ هِيَ الْوَاوُ فِي اللَّفْظِ فَصَارَ الْإِعْرَابُ فِيْ حَالَةِ الرَّفْعِ تَقْدِيْرِيًّا

دياءنه پس پاتې نه شوعلامه درفع چې هغه واو ووبه لفظ کې پس وګرخيده اعراب په حالت رفعي کې تقديرا په

بِخِلَافِ حَالَتَيِ النَّصْبِ وَ الْجَرِّ فَإِنَّ الْإِدْغَامَ يَخْرُجُ الْيَاءُ مِنْ حَقِيْقَتِهَا فَإِنَّ الْيَاءَ الْمُدْغَمَةَ أَيْضًا يَاءٌ

خلاف دحالت نصبي اوجري کې خکه چې ادغام نه خارجوي ياءدخپل حقيقت نه خکه چې ياء مدغمه هم ياء ده

وَقَدْيَكُوْنُ الْإِعْرَابُ بِالْحُرُوْفِ تَقْدِيْرِيًّا فِي الْأَحْوَالِ الثَّلٰثِ فِيْ مِثْلِ جَاءَنِيْ أَبُو الْقَوْمِ وَرَأَيْتُ أَبَا الْقَوْمِ وَمَرَرْتُ بِأَبِي

اوکله وي اعراب په حروفوسره تقديري په دري وارواحوالوکې په مثل د جاءني ابوالقوم ورأيت اباالقوم ومررت بابي

الْقَوْمِ فَإِنَّهٗ لَمَّا سَقَطَ حُرُوْفُ الْإِعْرَابِ عَنِ اللَّفْظِ بِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ لَمْ يَبْقَ الْإِعْرَابُ لَفْظًا

القوم خکه چې کله چې ساقط شوحروف داعراب دلفظ نه دوجې د التقاء ساکنينو نه پاتې نه شو اعراب لفظي

صَارَ تَقْدِيْرِيًّا وَ اللَّفْظِيُّ أَيِ الْإِعْرَابُ الْمُتَلَفَّظُ فِيْمَا عَدَاهُ يَعْنِيْ فِيْمَا عَدَا

بلکې وګرخيدتقديري اولفظي يعني هغه اعراب چې تلفظ پرې کيدي شي ماسوي ددغو خايونو نه دي يعني

مَا ذَكَرَهٗ مِمَّا تَعَذَّرَ فِيْهِ الْإِعْرَابُ أَوْ اسْتُثْقِلَ وَ لَمَّا ذَكَرَهٗ فِيْ تَفْصِيْلِ الْمُعْرَبِ

چې کوم مونږذکرکړل هغه چې متعذروو په هغې کې اعراب اوياثقيل ووکله چې ذکرشو په تفصيل دمعرب کې

الْمُنْصَرِفِ وَ غَيْرِ الْمُنْصَرِفِ وَ كَانَ غَيْرُ الْمُنْصَرِفِ أَقَلَّ مِنَ الْمُنْصَرِفِ وَ بِمَعْرِفَتِهٖ يُعْرَفُ الْمُنْصَرِفُ عَلٰى

منصرف اوغير منصرف او وو غير منصرف کم دمنصرف نه اوبه پيژندلودغير منصرف پيژندل شي منصرف په

قِيَاسِ الْإِعْرَابِ التَّقْدِيْرِيِّ وَ اللَّفْظِيِّ عُرِفَ غَيْرُ الْمُنْصَرِفِ وَ اكْتَفٰى بِتَعْرِيْفِهٖ

قياس داعراب تقديري اولفظي نه نوتعريف وکرومصنف دغيرمنصرف اواکتفاءيې وکره په تعريف دغير منصرف

| نَقَالَ: |
| --- |
| نو وي ويل |

**اغراض دجامي** : ونحو مسلمي عطف علی قوله کقاضٍ : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال** : دا دی، چې لفظ د نحو مستدرك او بې فائدې دی ځکه چې ددې مسلمي عطف په قاضٍ باندې دی نو د کاف مثليه لاندې د عطف په واسطې سره داخل دی نو بيا د نحو څه ضرورت دی ؟

**جواب** : شارح ددې جواب ورکړو، چې ددې عطف په قاض باندې نه دی، بلکې په کقاضٍ باندې دی لهذا د عطف په واسطې سره دا د کاف مثليه لاندې داخل نه شو.

وقد يكون الاعراب تقديريا بالحروف في الاحوال الثلاث : شارح وايي چې کله کله په دريو حالاتو کې هم اعراب بالحرف تقديري راتلې شي لکه جاء في ابو القوم الخ

في ماعدا ما ذکر : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : دادی چې د ماعداه ضمير راجع دی د تعذر او استثقال طرف ته او هغه دوه څيزونه دي نو د تثنيې ضمير راوړل په کار وو، دلته د ضمير او د مرجع په مينځ کې مطابقت نشته دی.

**جواب** : ددې دواړو تاويل د ماذکر يا مذکور سره يې وکړو، بيا دې طرف ته ضمير راجع کړو مذکور واحد دی لهذا مطابقت موجود دی.

ولما ذکر في تفصيل المعرب : په دې عبارت سره شارح توطيه اوتمهيد کيږدي د متن آتي دپاره.

وکان غير المنصرف : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : په کار دا وه چې منصرف دې مخکې کړې وي په غير منصرف د دوه وجهو نه : اول داچې په اجمال کې منصرف مقدم وو او دوهم داچې منصرف اصل دي په نسبت سره غير منصرف ته څه په مصرب باندې په ټولو حالاتو کې اعراب جاري کيږي.

**جواب** : غير منصرف دا اقل دي ځکه دامشروط بشرائط دي اوکوم څيز چې مشروط بشرائط وي نو هغه اقل وجودا وي اوبله وجه داچې معرفت دمنصرف داپيژندل کيږي په غير منصرف لکه په اعراب لفظي اوتقديري کې يې چې کړې وو.

علی قياس الاعراب اللفظي والتقديري : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : په اعراب تقديري کې دا ويلې وو چې التقدير فيما تعذر الى اخره واللفظي فيما عداه نو دلته به هم تعريف دغير منصرف کړې وي اوبيا دې ويلي وي چې والمنصرف ماعداه

**جواب** : منصرف دا فرد دي دافرادو دغير منصرف نه او اعراب لفظي دا فرد نه وو د اعراب تقديري نه نو ځکه مو هلته داسې وويل او دلته مو ونه ويل

## تعريف د غير منصرف :

| غَيْرُ | الْمُنْصَرِفِ | مَا | اَیْ | اِسْمٌ | مُعْرَبٌ | فِيْهِ | عِلَّتَانِ | تُؤَثِّرَانِ | بِاِجْتِمَاعِهِمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې غير منصرف يعنې هغه اسم معرب چې په هغې کې دوه علته مؤثره وي چې په اجتماع د هغه عللو سره اوپه | | | | | | | | | |
| وَ اسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِهِمَا فِيْهِ اَثَرًا سَيَجِیْئُ ذِکْرُهٗ مِنْ عِلَلٍ تِسْعٍ اَوْ عِلَّةٌ وَاحِدَةٌ مِنْهَا اَیْ | | | | | | | | | |
| اجتماع د شرائطو دهغې سره په هغې کې اثر وکړي چې را به شي ذکر دهغې د علتونو نهونه يا يو علت د دې نه يعنې | | | | | | | | | |
| مِنْ تِلْکَ التِّسْعِ تَقُوْمُ هٰذِهِ الْعِلَّةُ الْوَاحِدَةُ مَقَامَهَا اَیْ مَقَامَ هَاتَيْنِ الْعِلَّتَيْنِ بِاَنْ تُؤَثِّرَ وَحْدَهَا تَاثِيْرَهُمَا . | | | | | | | | | |
| د دغو نهو علتونو نه چې قائم وي دغه يو علت په ځاى د دوه علتونو چې تأثير وکړي يواځې تأثير د دوو عللو . | | | | | | | | | |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب کافيه د غير منصرف تعريف کوي .

**اغراض د جامي** : غير المنصرف : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

غير المنصرف مبتدا ده ما موصوفه فيه علتان دا ورلره صفت موصوف سره د صفت نه داخبر دمبتدا دى او مبتدا معرفه وي او دلته نکره ده ځکه اضافت د غير سره هم دا معرفه نه ګرځي ځکه غير دا هم متوغل في الابهام دي نو منصرف ده ته په اضافت سره معرفه نه ګرځي .

**جواب** : دا خبره دې صحيح ده چې غير دتوغل في الابهام دوجې نه مضاف اليه دده معرفه نه ګرځي خو دا هله چې مضاف اليه دغير دپاره اضداد کثيره وي او دلته خو ضد واحد دي چې د منصرف ضد غير منصرف دي فقط نو معرفه ګرزئ لکه عرب وايي چې عليک بالحرکة غير السکون نو دلته الحرکة دا موصوف دي او غير السکون دا ورلره صفت دي او دلته هم صفت دا مضاف دي غير ته خو دغير دمضاف اليه چې سکون دي ، دې دپاره ضد واحد دي چې حرکة دي نو صفت هم معرفه وګرځيده .

<u>ما اى اسم معرب</u>: په دې عبارت سره شارح د ما وضاحت کوي چې ما موصوفه ده ، دلته يو سوال وارد يږي :

**سوال** : ته وايي چې غير منصرف دا هغه دي چې فيه علتان زه به درته وښائم چې دوه علته به په

کې وي او غير منصرف به نه وي لکه ضربت يو په کې تانيث دي او بل په کې وزن فعل يا وصفيت دي

**جواب**: په اى اسم سره جواب وشو چې مراد د ما نه اسم دي او ضربت خو فعل دي ، **فاندفع الاشکال**

دلته يو بل سوال وارديږي

**سوال**: تا وويل چې **غير المنصرف ما فيه علتان** زه به درته وښائم چې دوه علته به په کې وي او غير منصرف به نه وي لکه **حضار** او **تمار**.

**جواب**: دوه سببه به وي خو په معرب کې او **حضار** او **تمار** خو مبني دي معرب نه دي.

**فيه علتان تؤثران**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: زه به درته وښائم چې علتين به په کې وي او حکم به يې دغير منصرف نه وي لکه **قائمة** تنوين پرې راغلې او سره ددې نه چې وصفيت او تانيث په کې دي.

**جواب**: دوه سببه به وي خو مؤثر به وي او دلته خو مؤثر نه دي.

**باجتماعها واستجماع شرائطهما فيه**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دوه سببه به په کې وي او مؤثر به هم وي او سره ددې نه حکم به يې دغير منصرف نه وي لکه **نوح** په دې کې علميت او عجمه شته او تنوين پرې راغلې دي.

**جواب**: سببين مؤثرين به وي خو سره د شرائطونه او په **نوح** کې **تحرک الاوسط** او **زيادة على الثلاثة** دا دوه شرطه نه دي موجود.

**اثراً سيجئ ذكره**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: په **قائمة** کې خو سببينو اثر کړې دې مخکې يې په ډيرو اطلاق کيدلو او چې علم يې وګرځوي نو اوس يې په ډيرو اطلاق نه کيږي.

**جواب**: مراد د اثر نه علم اثر نه دي بلکه خاص اثر دي چې **ان لا كسرة ولا تنوين**.

**من علل تسع او علة واحدة منها اى من تلك**: په دې عبارت سره شارح اول د **تسع** نه مخکې **علل** راويستلو نو غرض يې ترې دادې چې **تسع** صفت دي موصوف غواړي چې **علل** دي نو عبارت په حذف د مضاف سره شو. او بل رد کوي په شارح هندي هغه وايي چې دلته عبارت په حذف

دمضاف اليه سره دي چې من تسع علة دي اوس دا رد ولې كوي خكه مقصد ددواړو خو يو دي نو دا رد خكه كوي چې وروستو راخي او واحدة منها مونږ تقدير راوباسو چې علة واحدة او شارح هندي وايي چې او واحدة علة نو واحد مضاف او علة مضاف اليه او مضاف اليه په حقيقت كې تميز وي اوتميز واحد لره نه راخي . نو ددې وجې نه يې دشارح هندي رد وكړو

منها اى من تلك التسع : په دې عبارت سره شارح په منها كې د ها دضمير مرجع متعينه كوي چې د ها ضمير راجع دي تسع ته .

تقوم : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال** : په تقوم كې ضمير چا ته راجع دي ؟

**جواب** : په تقوم كې ضمير راجع دي علت واحده ته .

په دې باندې يو سوال كيږي

**سوال** : يو علت څنګه قائمقام ددوو سببو ګرځي ؟

**جواب** : مراد قيام في الذات نه دي بلكه مراد قيام في الاثر دي او اثر يې ان لا كسرة ولا تنوين دي

## اقسام د غير منصرف:

| وَ هِيَ أَيِ الْعِلَلُ التِّسْعُ مَجْمُوْعُ مَا فِيْ هٰذَيْنِ الْبَيْتَيْنِ مِنَ الْأُمُوْرِ التِّسْعَةِ لَا كُلُّ وَاحِدٍ حَتّٰى يُقَالُ لَا |
|---|
| اودانهه علتونه جمع شوي دي په دې دووبيتونو كې داموروتسعونه، نه هريودهغې ترديچې وويلې شي چې نه |
| يَصِحُّ الْحُكْمُ عَلَى الْعِلَلِ التِّسْعِ بِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْ هٰذِهِ الْأُمُوْرُ وَ ذٰلِكَ الْمَجْمُوْعُ : |
| صحيح كيږي حكم په علل تسعويه هرواحد ددغه امورونه اودامجموعه دشعرده: |

| هِيَ عَدْلٌ وَ وَصْفٌ وَ تَانِيْثٌ | وَ مَعْرِفَةٌ وَ عُجْمَةٌ ثُمَّ جَمْعٌ ثُمَّ تَرْكِيْبٌ |
|---|---|
| عدل دي وصف دي تانيث دي | معرفه ده عجمه ده بيا جمع ده بيا تركيب دي |

| وَ الْعُدُوْلُ فِيْ عَطْفِ هَاتَيْنِ الْعِلَّتَيْنِ مِنَ الْوَاوِ إِلٰى ثُمَّ لِمُجَرَّدِ الْمُحَافَظَةِ عَلَى الْوَزْنِ . |
|---|
| او عدول په عطف ددې دوو علتونو كې د واو نه ثم نه د پاره د ساتلود وزن شعري دي . |

| وَ النُّوْنُ زَائِدَةٌ مِنْ قَبْلِهَا أَلِفٌ | وَ وَزْنُ فِعْلٍ وَ هٰذَا الْقَوْلُ تَقْرِيْبٌ |
|---|---|
| اوهغه نون چې زائدوي مخكې دهغه نه الف وي | اووزن فعل دي اوداويناديره نژدې ده حقيقت ته |

| فَقَوْلُهُ زَائِدَةٌ مَنْصُوْبٌ عَلٰى أَنَّهُ حَالٌ إِذِ الْمَعْنٰى وَ تَمْنَعُ النُّوْنُ الصَّرْفَ |
|---|
| داقول دمصنف چې زائدةٌ دامنصوب دي بنابرحاليت خكه چې معنى به يې داشي چې منع كوي نون منصرف لره |

| |
|---|
| حَالَ كَوْنِهَا زَائِدَةً وَ قَوْلُهُ اَلِفٌ فَاعِلُ الظَّرْفِ اَعْنِيْ مِنْ قَبْلِهَا اَوْ |
| په حال کون د نون کې چې زائد وي او دا قول د مصنف چې الف فاعل د ظرف دی یعنې مخکې د هغې نه یا |
| مُبْتَدأٌ خَبَرُهُ الظَّرْفُ الْمُتَقَدِّمُ وَلَا يَخْفٰى اَنَّهُ لَا يُفْهَمُ مِنْ هٰذَا التَّوْجِيْهِ زِيَادَةُ الْاَلِفِ مَعَ اَنَّهَا |
| مبتداء ده چې خبریې ظرف متقدم دی اوپټه دې نه وي چې نه فهمیږي د دې توجیه نه زیادت دالف سره د دې نه |
| اَيْضاً زَائِدَةٌ وَ لِهٰذَا يُعَبِّرُ عَنْهُمَا بِالْاَلِفِ وَ النُّوْنِ الزَّائِدَتَيْنِ. |
| چې داهم زائد دي او د دې وجې نه تعبیر کیدې شي د دې دواړو نه په الف او نون زائدتان سره . |

**خلاصه دمتن :** په دې عبارت سره صاحب کافیه اقسام دغیر منصرف بیانوي .

**اغراض دجامي :** وهي اي العلل التسع : په دې عبارت سره شارح اول بیان دمرجع کوي د هي ضمیر راجع دي علل تسعو ته ، بل په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال :** هي واحد دي او عدل وصف تانیث الخ دا خبر دي نو لازم شو حمل د متعدد په مفرد باندې .

**جواب :** دلته عطف مقدم دي په ربط باندې .

وذلک المجموع شعر والعدول في عطف : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال :** بعضې اسباب عطف دي په واو سره اوبعضې په ثم سره په دې کې څه نکته ده ؟

**جواب :** په دې کې صرف رعایت د وزن شوې دي .

فقوله زائدةً : په دې عبارت سره شارح د زائدةً دنصب وجه ذکر کوي چې زائدة څکه منصوب دي چې دا حال دي دنون نه ، په دې باندې یو سوال وارد شو :

**سوال :** حال دفاعل یا دمفعول نه وي او نون څه شئ دي ؟.

**جواب :** دانون معنیً فاعل دي اصل عبارت داسې دي چې وتمنع نون الصرف او زائدةً حال شو د نون نه چې فاعل دي او د نون فعل داول بیت نه معلومیږي چې موانع الصرف چې دا اسباب موانع دي .

اذ المعنی : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال :** حال خو یا د فاعل او یا د مفعول نه وي نو نون څه شئ دي .

**جواب :** نون معنیً فاعل دي .

وقوله الف: الف فاعل دي د ظرف من قبلها دي په اعتبار د متعلق سره چې ثبت من قبلها الف. أو مبتدأ الف مبتدا مؤخره او من قبلها خبر مقدم په اعتبار د متعلق سره چې الف ثابت دي

ولا يخفى: په دې عبارت سره شارح په دې ترکيب رد کوي.

والنون زائدة من قبلها الف: په حال کون د نون کې چې نون به زائد وي او مخکې به الف وي اوس پنه نښته چې الف به هم زائد وي او که نه سره د دې نه چې دې ته الف نون زائدتان وايي

| |
|---|
| وَ لَوْ جُعِلَ الْاَلِفُ فَاعِلاً لِقَوْلِهِ زَائِدَةً وَ الظَّرْفُ مُتَعَلِّقاً بِالزِّيَادَةِ وَ اُرِيْدَ بِزِيَادَةِ |
| که چيرته وګرځولې شي الف فاعل دپاره د قول زائدة او ظرف متعلق شي تر زيادت پورې او اراده شي د زيادت د |
| الْاَلِفِ قَبْلَ النُّوْنِ اشْتِرَاكُهُمَا فِيْ وَصْفِ الزِّيَادَةِ وَ تَقَدُّمِ الْاَلِفِ عَلَيْهَا فِيْ هٰذِهِ الْوَصْفِ |
| الف نه مخکې د نون نه شريکيدل د دواړو په وصف د زيادت کې او تقدم د الف په دې نون باندې په دغه وصف |
| فُهِمَ زِيَادَتُهُمَا جَمِيْعاً وَ هٰذَا اِذَا قُلْتَ جَاءَ زَيْدٌ رَاكِباً مِنْ قَبْلِهِ اَخُوْهُ فَاِنَّهُ يَدُلُّ عَلٰى |
| کې نو فهم به شي زيادت د دواړو او دا لکه څرنګه چې ته وايي جاء زيد راکباً من قبله اخوه څکه چې دلالت کوي په |
| اِشْتِرَاكِهِمَا فِيْ وَصْفِ الرُّكُوْبِ وَ تَقَدُّمِ اَخِيْهِ عَلَيْهِ فِيْ هٰذِهِ الْوَصْفِ وَ قَوْلُهُ وَ هٰذَا الْقَوْلُ |
| اشتراک د دې دواړو په وصف د رکوب کې او تقدم داخ په زيد باندې په دغه وصف کې دا قول د مصنف هذا القول |
| تَقْرِيْبٌ يَعْنِيْ اَنَّ ذِكْرَهُ الْعِلَلَ بِصُوْرَةِ النَّظْمِ تَقْرِيْبٌ لَهَا اِلَى الْحِفْظِ لِاَنَّ حِفْظَ النَّظْمِ اَسْهَلُ اَوِ الْقَوْلُ بِاَنَّ |
| تقريب يعنې ذکر د علل په صورت د نظم کې قريب دې يادونې ته څکه چې حفظ د نظم آسان وي او يا قول په دې |
| كُلَّ وَاحِدٍ مِنَ الْاُمُوْرِ التِّسْعَةِ عِلَّةٌ قَوْلٌ تَقْرِيْبِيٌّ لَا تَحْقِيْقِيٌّ اِذِ الْعِلَّةُ فِي الْحَقِيْقَةِ اثْنَانِ مِنْهَا |
| چې هر يو واحد د دې امورو تسعو نه علت دې دا قول قريبي دې نه تحقيقي څکه علت په حقيقت کې دوه دي د دې |
| لَا وَاحِدٌ اَوِ الْقَوْلُ بِاَنَّهَا تِسْعٌ تَقْرِيْبٌ لَهَا اِلَى الصَّوَابِ لِاَنَّ فِيْ عَدَدِهَا خِلَافًا فَقَالَ بَعْضُهُمْ |
| نه، نه يو يا قول په دې چې علتونه نهه دي دا قريب دې حقيقت ته څکه چې په شمار د عللو کې اختلاف دې بعضو |
| اَنَّهَا تِسْعٌ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ اِثْنَانِ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ اَحَدَ عَشَرَ لٰكِنِ الْقَوْلُ بِاَنَّهَا تِسْعٌ تَقْرِيْبٌ لَهَا اِلٰى مَا هُوَ |
| ويلې دي چې دا نهه دي بعضې ويلې دي چې دوه دي او بعضو ويلې دي چې يولس دي ليکن قول په نهو د ا نژدې |
| الصَّوَابُ مِنَ الْمَذَاهِبِ الثَّلٰثَةِ ثُمَّ اَنَّهُ ذَكَرَ اَمْثِلَةَ الْعِلَلِ الْمَذْكُوْرَةِ عَلٰى تَرْتِيْبِ ذِكْرِهَا فِي الْبَيْتَيْنِ فَقَالَ. |
| دې حقيقت ته د مذاهبو ثلاثو نه بيا ذکر کړل مصنف امثله د علل مذکورو په ترتيب شعري سره نووي ويل |

**خلاصه د متن:** په دې عبارت سره صاحب کافيه خپل ترکيب ذکر کوي.

**اغراض د جامي:** ولو جعل الالف: په دې عبارت سره شارح خپل ترکيب بيانوي او وايي چې دا الف فاعل دې دپاره د زائدة او دا ظرف من قبلها متعلق دې تر زائدة پورې، شعر داسې شو چې

والنون زائدة الف چې الف به زائد وي الف فاعل د زائدة شو او من قبلها جار مجرور متعلق شو تر زائدة پورې

**واريد بزيادة**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : ستا دتوجيه نه زيادت دالف معلوم شو ځکه نون چې زائد به وي الف او من قبلها به متعلق شي تر زائدة پورې نو دنون پته ونه لګيده چې زائد به وي اوکه نه ؟

**جواب** : په اريد سره جواب ورکوي چې زما ترکيب بناء دې په يوې قاعدې باندې چې يو اسم مشتقي راشي خو صفت دمذکور نه وي او وروستو ترې ظرف راشي وربسې فاعل وي ددغه مشتقي راشي قاعده داده چې دغه فاعل دمشتقيلوددې مشتقي نه مخکې بل اسم دا دواړه به شريک وي په دغه مشتقي کې لکه جاء زيد راکباً من قبله اخوه راکباً مشتقي دې خو صفت د مذکور نه دې راکباً اخوه صفت داخ دې او اخ فاعل دې دراکبا نودافاعل اومخکې مشتقي نه هغه اسم دابه دواړه شريک وي په مشتقي کې دلته قاعده داده چې دا فاعل اخوه اوراکبا نه مخکې اسم دا دواړه به شريک وي په رکوب کې فرق يې دادې چې ورور يې مخکې وو او زيد وربسې وو

**وقوله هذا القول تقريب** : تقريب نژدې والې راولې يادولو ته ځکه نظم اسهل وي په حفظ کې په نسبت سره نثر ته .

**او القول** : تقريب په معنی د صواب سره .صحيح داده نو غير صحيح به هم وي څه ، څوک وايي علته دوه دي ترکيب اوحکايت داقول ضعيف دي ، چې ته وايي چې دا دوه په تولو کې موجودېږي نو بيا خوترکيب په تولو کې موجودېږي نو صرف ترکيب واخله حکايت پرېږده .

بعضې وايي چې يولس دي نهه دادې او يو هغه الف چې مشابه وي دالفينو دتانيث سره لکه ارطی او حبلی ، دوهم وصف اصلي معتبر کول پس دزوال نه لکه په احمر کې دسيبويه په نزد .

بعضې وايي چې نهه (۹) دي اودا صواب دي ځکه خير الامور اوساطها .

**ثم انه ذکر** : دمثالونو راوړو دوه ترتيبه دي اول لف نشر مرتب ، دوهم لف نشر غير مرتب ، دلته لف نشر مرتب دي په دې کې دوه مذهبه دي : اول لف نشر مرتب اولی دې ځکه په دې کې به مطابقت وي داجمال اودتفصيل اودمثال اودممثل . دوهم مذهب دا چې لف نشر غير مرتب اولی دې چې مثال دممثل سره نژدې شي .

## د غیر منصرف د اقسامو مثالونه:

مِثْلُ عُمَرَ مِثَالٌ لِلْعَدْلِ وَ اَحْمَرَ مِثَالٌ لِلْوَصْفِ وَ طَلْحَةَ مِثَالٌ لِلتَّانِيْثِ وَ زَيْنَبَ مِثَالٌ لِلْمَعْرِفَةِ وَ فِيْ اِيْرَادِ

لکه عمر مثال دي دپاره د عدل احمر مثال دي دوصف طلحة مثال دي دتانیث زینب مثال دي د معرفې او په راوړلو

زَيْنَبَ مِثَالاً لِلْمَعْرِفَةِ بَعْدَ طَلْحَةَ اِشَارَةٌ اِلَى اللَّفْظِيِّ وَ الْمَعْنَوِيِّ وَ اِبْرَاهِيْمُ

د زینب کې مثال دپاره د معرفې وروستو د طلحة نه اشاره ده دواړو قسمونو ته نه چې لفظي او معنوي ته او ابراهیم

مِثَالٌ لِلْعُجْمَةِ وَ مَسَاجِدُ مِثَالٌ لِلْجَمْعِ وَ مَعْدِيْكَرِبَ مِثَالٌ لِلتَّرْكِيْبِ وَ عِمْرَانُ مِثَالٌ لِلْاَلِفِ وَ النُّوْنِ وَ اَحْمَدُ

مثال دي د عجمې مساجد مثال دي د جمع او معدیکرب مثال دي د ترکیب او عمران مثال دي د الف او نون او احمد

مِثَالٌ لِوَزْنِ الْفِعْلِ.

مثال دي دوزن فعل

**خلاصه د متن:** په دې عبارت سره صاحب کافیه د غیر منصرف د اقسامو مثالونه ذکر کوي.

**اغراض د جامي:** مثل عمر: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** دا خو د عدل مثال نه دي بلکه د غیر منصرف دي؟

**جواب:** دا مثال د غیر منصرف نه دي خو چې غیر منصرف شوې نو دوجې د اعتبار د عدل نه غیر منصرف شوې.

وفي ایراد زینب: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** مثال وي دپاره د توضیح د ممثل او تا دلته د تانیث لپاره دوه مثاله راوړي.

**جواب:** چونکه د تانیث دوه قسمه دي لفظي او معنوي نو طلحة د لفظي مثال دي او زینب د معنوي مثال دي.

## د غیر منصرف حکم:

وَ حُكْمُهُ اَيْ حُكْمُ غَيْرِ الْمُنْصَرِفِ وَ الْاَثَرُ الْمُتَرَتِّبُ عَلَيْهِ مِنْ حَيْثُ اشْتِمَالِهِ عَلَى عِلَّتَيْنِ

او حکم د دې یعني حکم د غیر منصرف او اثر مرتبه په غیر منصرف د حیثیت د اشتمال د غیر منصرف په دوو علتونو

اَوْ وَاحِدَةٍ مِنْهَا تَقُوْمُ مَقَامَهُمَا اَنْ لَا كَسْرَةَ فِيْهِ وَلَا تَنْوِيْنَ وَ ذٰلِكَ لِاَنَّ لِكُلِّ عِلَّةٍ فَرْعِيَّةً

یا یو چې قائمقام وي د دوو چې نه به راځي کسره په هغې او نه تنوین دا ځکه چې د هر یو دپاره شته علت فرعیه

فَاِذَا وَقَعَ فِي الْاِسْمِ عِلَّتَانِ حَصَلَ فِيْهِ فَرْعِيَّتَانِ فَيُشْبِهُ الْفِعْلَ مِنْ حَيْثُ

پس کله چې واقع شو په اسم کې دوه علته حاصل شو هغه ته دوه فرعیته پس مشابه شو د فعل سره د حیثیته

اَنَّ لَهٗ فَرْعِيَّتَيْنِ بِالنِّسْبَةِ اِلَى الْاِسْمِ اَحَدُهُمَا اِفْتِقَارُهٗ اِلَى الْفَاعِلِ وَ آخِرُهُمَا اشْتِقَاقُهٗ مِنَ

ددې نه چې دا فرع ده په نسبت سره اسم ته يو د مشابهتونو نه احتياج دي فاعل ته او دوهم يې اشتقاق دي د

الْمَصْدَرِ فَمَنَعَ الْاِعْرَابُ الْمُخْتَصَّ بِالْاِسْمِ وَ هُوَ الْجَرُّ وَ التَّنْوِيْنُ الَّذِيْ هُوَ عَلَامَةُ

مصدر نه پس منع شو د هغې نه اعراب کوم چې خاصه د اسم وي چې جر او تنوين دي چې هغه علامه د اسم

التَّمَكُّنِ وَ اِنَّمَا قُلْنَا لِكُلِّ عِلَّةٍ فَرْعِيَّةٍ لِاَنَّ الْعَدْلَ فَرْعُ الْمَعْدُوْلِ عَنْهُ وَ الْوَصْفُ فَرْعُ الْمَوْصُوْفِ وَ

متمکن ده او مونږ ووېل چې هريو علت فرعيه خکه چې عدل فرع د معدول عنه ده او وصف فرع د موصوف ده او

التَّانِيْثُ فَرْعُ التَّذْكِيْرِ لِاَنَّكَ تَقُوْلُ قَائِمٌ ثُمَّ قَائِمَةٌ وَ التَّعْرِيْفُ فَرْعُ التَّنْكِيْرِ لِاَنَّكَ تَقُوْلُ رَجُلٌ ثُمَّ الرَّجُلُ

تانيث فرع د تذکير ده لکه چې ته وايي قائم او قائمة او تعريف فرع د تنکير ده لکه ته وايي چې رجل او الرجل

وَ الْعُجْمَةُ فِيْ كَلَامِ الْعَرَبِ فَرْعُ الْعَرَبِيَّةِ اِذِ الْاَصْلُ فِيْ كُلِّ كَلَامٍ اَنْ لَا يُخَالِطَهٗ لِسَانٌ آخَرُ

عجمه په کلام د عربو کې فرع د عربيت ده خکه چې اصل په هر يو کلام کې داده چې خلط به نه وي د بل سره

وَالْجَمْعُ فَرْعُ الْوَاحِدِ وَالتَّرْكِيْبُ فَرْعُ الْاَفْرَادِ وَالْاَلِفُ وَالنُّوْنُ الزَّائِدَتَيْنِ فَرْعُ مَازِيْدَتَا عَلَيْهِ وَوَزْنُ الْفِعْلِ فَرْعُ وَزْنِ

جمع فرع ده د واحد ترکيب فرع ده د افراد الف او نون زائدتان فرع ده د مازيدتا عليه او وزن فعل فرع ده د وزن

الْاِسْمِ لِاَنَّ الْاَصْلَ فِيْ كُلِّ نَوْعٍ اَنْ لَا يَكُوْنَ فِيْهِ الْوَزْنُ الْمُخْتَصُّ بِنَوْعٍ آخَرَ فَاِذَا وُجِدَ

اسم خکه چې اصل په هريو نوع کې داده چې نه به وي په هغې کې وزن مختص په نوع آخره پورې کله چې موجود

فِيْهِ هٰذَا الْوَزْنُ كَانَ فَرْعاً لِوَزْنِهِ الْاَصْلِيِّ وَ يَجُوْزُ اَيْ لَا يَمْتَنِعُ سَوَاءٌ كَانَ ضَرُوْرِيّاً

شو په هغې کې داوزن نوشوه فرع دپاره دوزن اصلي او جائز نه دي چې منع نه شي برابره خبره ده چې ضروري وي

اَوْ غَيْرَ ضَرُوْرِيٍّ صَرْفُهٗ اَيْ جَعَلَهٗ فِيْ حُكْمِ الْمُنْصَرِفِ بِاِدْخَالِ الْكَسْرَةِ وَ التَّنْوِيْنِ فِيْهِ لَا

او که غيرضروري منصرف کيدل دهغې يعنې په حکم دمنصرف کې په داخليدو دکسرې او تنوين په هغې کې نه

جَعَلَهٗ مُنْصَرِفاً حَقِيْقَةً فَاِنَّ غَيْرَ الْمُنْصَرِفِ عِنْدَ الْمُصَنِّفِ مَا فِيْهِ عِلَّتَانِ اَوْ وَاحِدَةٌ

کيدل دهغې منصرف حقيقتاً خکه چې غير منصرف په نزد دمصنف هغه دي چې په هغې کې دوه علته او يا يو

تَقُوْمُ مَقَامَهُمَا وَ بِاِدْخَالِ الْكَسْرَةِ وَ التَّنْوِيْنِ لَا يَلْزَمُ خُلُوُّ الْاِسْمِ عَنْهُمَا

علت چې قائمقام ددوه علتونو وي او په داخليدو دکسرې دتنوين نه لازميږي خالي کيدل داسم ددوه علتونو نه

وَ قِيْلَ الْمُرَادُ بِالصَّرْفِ مَعْنَاهُ اللُّغَوِيُّ لَا الْاِصْطِلَاحِيُّ وَ الضَّمِيْرُ فِيْ صَرْفِهِ رَاجِعٌ

چاويلي دي چې مراد په منصرف کيدوسره معنی لغوي دهغې ده نه اصطلاحي او ضمير په صرفه کې راجع دي

اِلَى حُكْمِهِ لِلضَّرُوْرَةِ اَيْ لِضَرُوْرَةِ وَزْنِ الشِّعْرِ اَوْ رِعَايَةِ الْقَافِيَةِ فَاِذَا وَقَعَ غَيْرُ الْمُنْصَرِفِ

حکم دهغې ته دپاره ذضرورت يعنې دضرورت شعري يادپاره درعايت دقافيې نوکله چې واقع شو غير منصرف

فِي الشِّعْرِ فَكَثِيْراً مَا يَقَعُ مِنْ مَنْعِ صَرْفِهِ اِنْكِسَارٌ يُخْرِجُهٗ عَنِ الْوَزْنِ اَوِ الزِّحَافُ

په شعر کې نو ډير خله هغه څه چې واقع کوي منع صرف دهغې انکسار وي چې خارجوي دوزن نه او يا الزحاف

| يَخْرُجُهُ عَنِ السَّلَاَلَةِ أَمَّا الْأَوَّلُ فَكَقَوْلِهٖ شِعْر: |
|---|
| وي چې خارجوي دسلالت نه هرچې اول دي لکه داقول دشاعر |

| صُبَّتْ عَلَيَّ مَصَائِبُ لَوْ اَنَّهَا | صُبَّتْ عَلَى الْاَيَّامِ صِرْنَ لَيَالِيَا |
|---|---|
| را وارول شو په ما باندې مصائب که چیرته | رااړول شوي وي دا مصائب په ورځو ګرځیدلې به وې شپې |

| وَ اَمَّا الثَّانِيْ فَكَقَوْلِهٖ شِعْر: |
|---|
| اوهرچې دوهم دي لکه داقول دشاعر |

| اَعِدْ ذِكْرَ نُعْمَانٍ لَنَا اَنَّ ذِكْرَهُ | هُوَ الْمِسْكُ مَا كَرَّرْتَهُ يَتَضَوَّعُ |
|---|---|
| دوباره کړه مالره یاددنعمان خکه چې یاد دهغه | مشک دي ترڅوچې بیا بیا راخي خوریږي |

| فَاِنَّهُ لَوْ فَتَحَ نُوْنَ نُعْمَانَ مِنْ غَيْرِ تَنْوِيْنٍ لَيَسْتَقِيْمُ الْوَزْنُ وَ لٰكِنْ يَقَعُ |
|---|
| خکه چې که چیرته فتحه ورکړې شي فتح دنون دنعمان ته په غیردتنوین نه نوصحیح شووزن شعري لیکن واقع |
| فِيْهِ زِحَافٌ يُخْرِجُهُ عَنِ السَّلَاسَةِ كَمَا يَحْكُمُ بِهٖ سَلَامَةُ الطَّبْعِ. |
| شو په دې کې زحاف چې خارجوي کلام دسلالت نه لکه څنګه چې پوهیږي په هغې باندې سلیم الطبع انسان |

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت سره صاحب کافیه د غیر منصرف حکم بیانوي.

**اغراض دجامي:** وحکمه ان لاکسرة ولاتنوین: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** بناء دمتونو په اختصار وي داخبره دغیر منصرف په اعراب کې معلومه شوې وه چې بالضمة والفتحة نو معلومه وه چې کسره پرې نه راځي نو بیا ولې ان لا کسرة وایي دلته به دې ویلې وي چې ولا یجوز علیه تنوین.

**جواب:** شارح ددې دري (۳) جوابات ورکړي دي:

**اول جواب:** دا حکم دغیر منصرف وو اوحکم باندې تصریح په کار ده دا ضمنا ویل نه دي په کار.

**دوهم جواب:** بعضې خلکو ویلي وو چې په غیر منصرف کسره نه راځي اوتنوین تابع دکسرې دي نو هغه به هم نه راځي نو دې وایي چې تابع تابع نشته اصالة دواړه نه راځي.

**دریم جواب:** دا چې مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دا تصریح وکړه څکه چې بعضو خلکو داتعریف دغیر منصرف ګرځولې وو نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ وویل چې تعریف دغیر منصرف مافیه علتان دي او دایې

حکم دي

اى حكم غير المنصرف: په دې عبارت سره شارح په حکمه کې د ة ضمیر مرجع متعین کوي چې په حکمه کې ة ضمیر راجع دي غیر منصرف ته. اوپه دې باندې د یو سوال جواب هم ورکوي

**سوال**: دا ان لا کسرة ولاتنوین معلول دي اوسببین ورلره علت دي دمعلول اضافت کیږي علت ته نو داسې ویل په کار وو چې وحکمها او تا اضافت غیر منصرف ته وکړو.

**جواب**: چونکه دا ان لا کسرة الخ داچې په چانه راځي نو داپه غیر منصرف نه راځي نو ځکه یې ده ته اضافت وکړو نو اضافت دلته دادنی ملابست ذوچې نه دي.

والاثر المرتب علیه په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دحکم خو ډیرې معاني دي ستا کومه معنی مراد ده؟

**جواب**: مراد زما نحوي معنی مراد ده چې اثر مرتبه په غیر منصرف ده.

من حیث اشتماله: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دغیر منصرف خو نور احکام هم دي چې رفع نصب جر وغیره نو ته څنګه وایې چې ان لا کسرة ولا تنوین؟

جواب: دا حکم یې ځکه دي چې دا مشتمل دي په علتین باندې اورفع یې بناء بر فاعلیت اونصب یې بناء بر مفعولیت.

فیه: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: کسره به نه وي په دنیا کې؟

**جواب**: په غیر منصرف کې به نه وي.

وذلک لان لکل: په دې عبارت سره شارح دکسرې اودتنوین دنه راتلو وجه بیانوي، قاعده داده چې اصل په اسماو کې اعراب دي او اصل په افعالو کې بناء اوعمل دي اوس خواصو داسم جر اوتنوین وغیره دي نو اوس اسم چې عمل کوي نو دابه دوجې دمشابهت دفعل نه کوي نو دا مشابهت په درې (۳) قسمه دي:

(۱) که مشابهت تمام دمعنی کې وو یعنې اسم فعل سره مشابه وو تمام دمعنی کې لکه اسماء افعال شو نو فعل خپل دواړه خواص اسم ته ورکړل چې بناء ده او عمل دي.

(۲) اوکه دا مشابهت ترتیب دحروف اصلیو کې وو لکه اسم فاعل او اسم مفعول نو فعل ورلره

يوه خاصه ورکوي چې عمل دي
(۳) اوکه مشابهت داسم دفعل سره په جزء دمعنی کې وو يعنې مشابهت بعيده يعنې اسم کې دوه سببه راغلل نو فعل کې هم دوه (۲) سببه دي (۱) احتياج الى الفاعل ، (۲) اشتقاق من المصدر نو دامشابهت کمزوري دي نو اسم غير منصرف مشابه شو دفعل سره په مشابهت بعيده سره نو عام اسم ددې خاص اسم چې غير منصرف دي ترې نه خفه شو چې زما دشمن سره دې دوستانه وکړه نو کسره اوتنوين يې ترې نه منع کړو ، مونږ وويل چې په فعل کې دوه (۲) سببه دي (۱) احتاج الى الفاعل ، (۲) او اشتقاق من المصدر .
او کوفيان وايي چې مصدر مشتق دي دفعل نه نو بيا اشتقاقه من المصدر رانغلو نو يو علت پاتې شو ، نو يو بل علت هم شته چې اصل په فعل کې اعلال وي او اعلال بيماري ته وايي نو دا په کې بل علت راغلو .
ويجوز اى لايمتنع : هر کله چې مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ فارغ شو داسبابو دغير منصرف نه اجمالاً نو شروع يې وکړه په اسبابو دمنصرف کې ، د غير منصرف نهه (۹) اسباب وو او د منصرف پنځه (۵) اسباب دي .

<u>اى لايمتنع</u> : په دې سره شارح معنى دجواز کوي ، معنى دجواز ده لايمتنع منصرف کيدل به ممتنع نه وي بيا که ضروري وي اوکه غير ضروري ، په دې باندې يو سوال وارد شو :
**سوال** : جواز مرادف دي دامکان سره اوامکان په دوه (۲) قسمه دي خاص ، عام ، دلته به امکان خاص مراد وي چې هغه سلب دضرورة من الجانبين دي يعنې نه به منصرف والې ضروري وي اونه به غير منصرف والې سره ددې نه چې ضرورة شعري کې منصرف والې ضروري وي .
**جواب** : جواز مرادف دامکان دي خو امکان په دوه قسمه دي خاص او بل عام او مراد دلته عام دي چې هغه سلب دضرورت دي دجانب مقابل دحکم نه .
<u>صرفه اى جعله</u> : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :
**سوال** : غير منصرف چاته وايي ته وايي چې مافيه علتان نو ته وايي چې دضرورت دوجې نه به منصرف شي نو علتين خو په کې موجود وي .
**جواب** : مراد دادې چې په حکم دمنصرف کې به يې وګرځوي .
<u>لا جعله منصرفاً حقيقة</u> : يعنې حقيقي منصرف به يې نه ګرځوي خو علتين به ترې نه بالکل لرې کوي .

وقيل المراد: دلته مراد هغه معنى لغوي ده چې تغير په حكم د غير منصرف كې . نه معنى اصطلاحي چې منصرف كول دي نو تقدير به داسې شي چې ويجوز تغير حكم غير المنصرف . دا مذهب يې په قيل سره ذكر كړو ددوه وجهو نه اوله وجه داچې معتبر په علومو كې هغه معاني اصطلاحيه وي نه معاني لغويه . اودوهمه وجه داچې انتشار په ضمائرو كې راځي مخكې خايونو كې ضميرونه غير منصرف ته راجع وو او دلته به حكم ته راجع شي

للضرورة اى لضرورة وزن الشعر: معنى دضرورت داده چې دپاره د وزن شعري و او دپاره درعايت دقافيې قافيه حرف آخر نه وايي چې موافقت د يو بيت دبل بيت سره په آخر كې راشي اوپه اصطلاح دقرآن كې دې ته رعايت دفاصلې وايي ځكه قافيه خو په اشعارو كې راځي

اما الاول: شعر كې مصائب راغلې داصيغه دمنتهى الجموع ده اودا يو سبب قائمقام دسببينو دي نو غير منصرف دي .

واما الثاني: په دې شعر كې نعمانٍ غير منصرف دي اوتنوين پرې راغلې ځكه كه چيرته تنوين ونه وايو نو په سبب كې به تغير راشي ځ يو سبب دي اومابل سبب دي او نن بل سبب دي كه تنوين ونه وايو نو سبب به په يو حرف سره پاتې شي .

## د يو سوال جواب :

| | |
|---|---|
| فَإِنْ قُلْتَ الْإِحْتِرَازُ عَنِ الزِّحَافِ لَيْسَ بِضَرُوْرِيٍّ فَكَيْفَ يَشْمِلُهُ قَوْلُهُ لِلضَّرُوْرَةِ قُلْنَا | |
| كه ته ووايې چې احتراز دزحاف ضروري نه دي نوځنگه به شامل شي دې قول دمصنف ته چې للضرورة مونږ وايو | |
| الْإِحْتِرَازُ عَنْ بَعْضِ الزِّحَافَاتِ إِذَا أَمْكَنَ الْإِحْتِرَازُ عَنْهُ ضَرُوْرِيٌّ عِنْدَ الشُّعَرَاءِ وَ أَمَّا الضَّرُوْرَةُ | |
| احتراز د بعضې زحافاتو نه چې كله ممكن وي احتراز ددې نه ضروري دي په نزد دشعراو اوهرچې ضرورت چې | |
| الْوَاقِعَةُ لِرِعَايَةِ الْقَافِيَةِ فَكَمَا فِيْ قَوْلِهِ شعر: | |
| چې واقع وي دپاره درعايت دقافيې لكه په دې قول دشاعر كې: | |
| سَلَامٌ عَلَى خَيْرِ الْأَنَامِ وَ سَيِّدِ | حَبِيْبِ اللهِ الْعَالَمِيْنَ مُحَمَّدِ |
| سلام دې وي په بهترين دخلكو اوپه سردار | دمحبوب دالله تعالى اودبنده گانوچې محمد ﷺ دي |
| بَشِيْرٍ نَذِيْرٍ هَاشِمِيٍّ مُكَرَّمٍ | عَطُوْفٍ رَؤُفٍ مَنْ يُّسَمّٰى بِأَحْمَدِ |
| زيرې وركوونكي، ويرونكي هاشمي اومعززدي | مهربان دي اونرم دي ځوك چې مسمى دي په احمد سره |
| فَإِنَّهُ لَوْ قَالَ بِأَحْمَدَ بِالْفَتْحِ لَا يَخِلُّ بِالْوَزْنِ وَ لٰكِنَّهُ يَخِلُّ بِالْقَافِيَةِ | |
| پس كه چيرته وويل شي احمدَ په فتحې سره نو خلل نه واقع كيږي په وزن كې ليكن خلل واقع شو په قافيه كې | |

فَإِنَّ حَرْفَ الرَّوِيِّ فِي سَائِرِ الْأَبْيَاتِ الدَّالُ الْمَكْسُورَةُ.

خکه چې حرف آخر په ټولو ابیاتو کې دال مکسوره وي.

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب د کافیې د یو سوال جواب کوي

**اغراض د جامي** : فان قلت : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال** : احتراز د زحاف نه خو ضروري نه دي نو څنګه دې د ضرورت لاندې راوستو

**جواب** :شارح په قلنا سره جواب کوي چې احتراز د بعضې زحافاتو نه چې کله ممکن وي ضروري وي .

واما الضرورة الواقعة : په دې شعر کې احمد مجرور ویلې شوی دی که په فتحې سره یې ووایو نو په وزن کې خو څه خرابي نه راځي بلکه په قافیه کې خرابي راځي چې په ټولو ابیاتو کې دال مکسور دي نو دلته به مغائر شي .

أَوْ لِلتَّنَاسُبِ أَيْ وَ يَجُوزُ صَرْفُ غَيْرِ الْمُنْصَرِفِ لِيَحْصُلَ التَّنَاسُبُ بَيْنَهُ

او د پاره د تناسب یعني جائز دي منصرف کیدل د غیر منصرف دپاره چې حاصل شي مناسبت په مینځ د غیر

وَ بَيْنَ الْمُنْصَرِفِ لِأَنَّ رِعَايَةَ التَّنَاسُبِ بَيْنَ الْكَلِمَاتِ أَمْرٌ مُهِمٌّ عِنْدَهُمْ

منصرف او په مینځ د منصرف کې خکه چې رعایت د مناسبت په مینځ د کلماتو کې امر مهم دي په نزد د نحویانو

وَإِنْ لَمْ يَصِلْ إِلَى حَدِّ الضَّرُورَةِ مِثْلُ سَلَاسِلًا وَ أَغْلَالًا حَيْثُ صُرِفَ سَلَاسِلًا لِتَنَاسُبِ الْمُنْصَرِفِ

اګر که نه وي رسیدلې حد د ضرورت ته لکه سلاسلاً واغلالا چې منصرف شوی سلاسلا د وجې د تناسب د منصرف نه

الَّذِي يَلِيهِ أَعْنِي أَغْلَالًا فَقَوْلُهُ سَلَاسِلًا وَ أَغْلَالًا مِثَالٌ لِجَمْعِ غَيْرِ الْمُنْصَرِفِ الَّذِي

چې کوم نژدې دي دده سره یعني اغلالا پس دا قول چې سلاسلا و اغلالا د پاره د مثال د جمع غیر منصرف دي هغه

صُرِفَ وَ الْمُنْصَرِفُ الَّذِي صُرِفَ غَيْرُ الْمُنْصَرِفِ لِتَنَاسُبِهِ وَ مَا

چې منصرف شوي ده او هغه منصرف چې ګرځیدلې وي غیرمنصرف د پاره د مناسبت د غیرمنصرف یا هغه چې

يَقُومُ مَقَامَهُمَا أَيِ الْعِلَّةُ الْوَاحِدَةُ الَّتِي تَقُومُ مَقَامَ الْعِلَّتَيْنِ مِنَ الْعِلَلِ التِّسْعِ عِلَّتَانِ مُكَرَّرَتَانِ

قائم وي په مقام د هغې یعني علت واحده چې قائم وي په مقام د دوه علتونو د نهو علتونو نه دي دوه علته مکرر

قَامَتْ كُلُّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا مَقَامَ الْعِلَّتَيْنِ لِتَكْرَارِهِمَا أَحَدُهُمَا الْجَمْعُ الْبَالِغُ

چې قائم وي هر واحد د هغې نه په مقام د دوه علتونو کې د وجې د مکرر کیدو د هغې نه یو یې جمع ده چې رسیدلې

إِلَى صِيغَةِ مُنْتَهَى الْجُمُوعِ فَإِنَّهُ قَدْ تَكَرَّرَ فِيهِ الْجَمْعِيَّةُ حَقِيقَةً كَأَكَالِبَ وَ أَسَاوِرَ أَنَاعِيمَ.

وي صیغې د منتهی الجموع ته خکه چې مکرر شوي په دې کې جمعیت حقیقتاً لکه اکالب ،اساور او اناعیم

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب کافیه مناسبت ذکر کوي د منصرف او د غیر منصرف په مینځ کې

**اغراض د جامي** : او للتناسب : په ویجوز غیر المنصرف سره اشاره وشوه چې للتناسب عطف دي په للضرورة باندې نو د ویجوز صرفه لاندې راغلو .

لیحصل التناسب : للتناسب دا مفعول له دي دپاره د یجوز ، مفعول له په دوه قسمه دي : یو هغه چې مفعول علت وي دپاره دوجود د فعل لکه قعدت عن الحرب جبناً نو دلته به مفعول له مقدم وي اودا مفعول له په وزِ شعري کې جوړیده چې اول به ضرورت راغلې وي بیا به منصرف ولاې راغلې وي ، اوبل مفعول له هغه دي چې باعث د فعل وي لکه ضربته تادیباً او په دې کې به اول فعل راځي بیا مفعول له راځي اودامفعول له په تناسب کې جوړیږي چې اول به منصرف والې راځي اوبیا به تناسب راځي .

لان رعایة التناسب : په دې عبارت سره دلیل ذکر کوي : منصرف والې دغیر منصرف دتناسب دوجې داجائز دي ځکه رعایت دتناسب بین الکلمات دا امر مهم دي عند اللغات اګر که حد دضرورت ته نه رسیږي .

مثل سلاسلا واغلالاً : په دې عبارت سره شارح مثال تطبیق کوي دممثل سره ، سلاسلا دا غیر منصرف دي اوسره ددې نه چې تنوین پرې راغلې خو دا دوجې داغلالا نه منصرف ګرځیدلې دي .

فقوله سلاسلاً : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : دتوضیح دممثل دپاره یو مثال کافي وو تا دوه مثاله ولې ذکر کړل ؟

**جواب** : دا په حقیقت کې یو مثال دمنصرف دي اوبل مثال دغیر منصرف دي کوم چې د منصرف دتناسب دوجې نه منصرف شوې دي .

وما یقوم مقامهما ای العلة الواحدة : ما موصوله ده او عبارت ده د علة نه ، بل په مقام علتین سره . مرجع د هما ذکر شوه چې علتین دي . دلته یو سوال واردیږي :

**سوال** : مایقوم مقامهما مبتدا ده او الجمع او الفالتانیث یې خبر دي اوخبر حمل وي په مبتدا باندې او دلته حمل نه صحیح کیږي ځکه حمل دخاص راځي په عام باندې اودا جائز نه دي .

**جواب**: مراد د ما نه خاص ده عام نه ده اګر چي لفظاً عامه ده

علتان مکررتان په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: ته وایې چي په دې کې سببین راغلل نو اسم سره یې تعلق کم شو نو اسم ترې نه تنوین اوکسره منع کړه نو س چي یو سبب په کې راغلو نو دفعل سره یې مشابهت کم شو نو اوس ترې نه کسره اوتنوین ولې منع کوي ؟

**جواب**: علت خو یو دي لیکن تکرار په کې راغلو نو داتکرار سبب ثاني شو

لتکرارهما: په دې عبارت سره شارح بیان داختلاف کوي اختلاف په دې کې دي چي دا یو سبب قائمقام دسببینو ولې دي نو په دې کې دري مذاهب دي

**اول مذهب** دمصنف چي دې کې تکرار سببِ ثاني دي اوداتکرار عام دي حقیقتا وي اوکه حکماً دحقیقتاً مثال لکه اکالب جمع د اکلب او اکلب جمع د کلب ده اوحکما چي د دې جمعو سره په حروفو اوحرکاتو اوسکناتو کې برابروي لکه مساجد .

**دوهم مذهب** دادې چي اصل په اسماو کې اعراب دي اوس چي تنوین اوکسره ترې منع کوي اوس ددې دپاره سبب قویه په کار دي اوهغه عدم تغیر دي په جمع کې اوعدم تغیر دي په الفینو کې .

**دریم مذهب** دادې چي په جمع کې سبب ثاني هغه عدم تغیر دي اوپه الفینو دتانیث کې هغه دادې چي دوي لره مفرد من لفظه نشته دي .

الجمع البالغ الی صیغة منتهی الجموع: په دې سره یو دالف تعین کوي چي الف لام عهدي دي مراد په جمع سره صیغه دمنتهی الجموع ده ، اوبل راجح مذهب طرف ته اشاره کوي چي د مصنف چي کوم مذهب دي نو دا راجع دي .

حقیقتاً: تکرار عام دي که حقیقتاً وي لکه اکالب جمع د اکلب او اکلب جمع د کلب ده .

| اَوْ حُكْماً كَالْجُمُوْعِ الْمُوَافِقَةِ لَهَا فِيْ عَدَدِ الْحُرُوْفِ وَالْحَرَكَاتِ وَالسَّكَنَاتِ كَمَسَاجِدَ وَمَصَابِيْحَ وَ لِٰاَنِيْتَهُمَا التَّانِيْثُ |
|---|
| یاحکمالکه هغه جمع چي موافق وي په عدد د حروفو د حرکاتو اوسکناتو کي لکه مساجد او مصابیح دوهم تانیث دي |
| لٰكِنْ لَا مُطْلَقاً بَلْ بَعْضُ اَقْسَامِهِ وَ هُوَ اَلِفَا التَّانِيْثِ الْمَقْصُوْرَةِ وَ الْمَمْدُوْدَةِ اَیْ كُلُّ وَاحِدَةٍ |
| لیکن نه مطلقا بلکي بعض اقسام ددې اوهغه دوه الفه دتانیث دي چي مقصوره اوممدوده دي یعني هرواحد |
| مِنْهُمَا كَحُبْلٰى اَوْ حَمْرَاءُ لِاَنَّهَا لَازِمَتَانِ لِلْكَلِمَةِ وَضْعاً لَا تُفَارِقَانِهَا اَصْلاً |
| ددوونه لکه حبلی او حمراء خکه چي دواړه لازم دي کلمي لره په اعتبار دوضعي سره چي نه جدا کیږي دهغې نه بالکل |

| فَلَا يُقَالُ فِيْ حُبْلٰى حَبْلٌ وَلَا فِيْ حَمْرَاءَ حَمْرٌ فَيَجْعَلُ لُزُوْمُهَا لِلْكَلِمَةِ بِمَنْزِلَةِ تَانِيْثٍ آخَر |
|---|
| پس نه شي ويلې په حبلیٰ کې حبل او په حمراء کې حمر نو پس وګرځيد ولزوم دې دپاره دکلمې په منزله دبل تانيث نو |
| فَصَارَ التَّانِيْثُ مُكَرَّرًا بِخِلَافِ التَّاءِ فَاِنَّهَا لَيْسَتْ لَازِمَةً لِلْكَلِمَةِ بِحَسْبِ اَصْلِ الْوَضْعِ فَاِنَّهَا |
| وګرځيد تانيث مکرر په خلاف دتاء سره ځکه چې دانه دي لازم دکلمې سره په اعتبار داصل وضع ځکه چې دا |
| وُضِعَتْ فَارِقَةً بَيْنَ الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ فَلَوْ عَرَضَ اللُّزُوْمُ لِعَارِضٍ كَالْعَلَمِيَّةِ مَثَلًا |
| وضع شوې دپاره دفرق په مينځ دمذکر او مؤنث نو که چيرته عارض شي لزوم دوجې دعارض نه لکه علميت مثلاً |
| لَمْ يَقْوِ قُوَّةَ اللُّزُوْمِ الْوَضْعِيِّ. |
| نه قوي کوي لزوم وضعي. |

**اغراض دجامي** : **اوحكماً**: او که تکرار حکماً وي لکه **مساجد** جمع د **مسجد** ده تکرار په کې شته خو دهغه مکررې جمعې سره په عدد اوحروفو اوحرکاتو اوسکناتو کې مشابه ده

**وثانيتهما التانيث**: **الفا التانيث** دا مبتدا مؤخره ده او **ثانيتهما** دا ورلره خبر مقدم شو. اوبل داچې بعضو خلکو به دا توهم کولو چې سبب به الفين وي نو دې وايي چې نه سبب هغه تانيث دي په الفينو کې.

**وهو الفا التانيث المقصورة والممدودة**: په دې عبارت سره شارح د**الفا التانيث** مصداق بيانوي چې الفا دتانيث هغه الف مقصوره او الف ممدوده دي.

**اى كل واحدة منهما**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: الفين به مجموعه چې په يوه کلمه کې راشي نو دا به سبب وي.

**جواب**: هر يو واحد جدا جدا سبب دي.

**لانهما لازمتان للكلمة**: ځکه چې دا الفين لازم دي دکلمې سره دانه جدا کيږي دکلمې نه نو په حبلیٰ کې حبل او په حمراء کې حمر نه شي ويلې نو ددې لزوم دکلمې سره دا تانيث آخر وګرځيدو.

**بخلاف التاء**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: د يو سړي نوم وو رحمت نو يو په کې تانيث او بل په کې لزوم دتانيث شو نو دا غير منصرف کړه.

**جواب**: د تا اصل وضع دلزوم دپاره نه ده شوې بلکه وضع دپاره دفرق بين المذکر والمؤنث

راغلي ده اوس که د علميت د وجې نه ورته لزوم عارض شي نو دا قوي نه دي په لزوم د وضع باندي

فالمفرد المنصرف والجمع المكسر المنصرف بالضمة رفعاً وبالفتحة نصباً وبالكسرة جراً: ترکيب فا تفصيليه المفرد موصوف المنصرف يې صفت موصوف سره د صفت نه معطوف عليه واو عاطفه الجمع مضاف المکسر مضاف اليه مضاف سره د مضاف اليه نه موصوف المنصرف صفت موصوف سره د صفت نه معطوف ،معطوف عليه سره د معطوف نه مبتدا با حرف جر الضمة معطوف عليه واو عاطفه الفتحة معطوف معطوف عليه واو عاطفه الکسرة معطوف معطوف عليه سره د دواړو معطوفاتو نه مجرور دجار ، ،جار سره د مجرور نه متعلق شو تر ثابت پوري ثابت صيغه د اسم فاعل ضمير په کي فاعل اوسره د متعلق شبه جمله خبر د مبتدا شو مبتدا او خبر جمله اسميه.

او رفعاً نصباً جراً دا يامنصوب دي بنابر ظرفيت تقدير د عبارت به داسې شي چې اعرب بالضمة حالة الرفع والفتحة حالة النصب والکسرة حالة الجر اويامنصوب دي بنابر حاليت نو تقدير د عبارت دارنګې دي چې فاعراب هذين القسمين حال کونهما مرفوعين بالضمة وحال کونهما منصوبين بالفتحة وحال کونهما مجرورين بالکسرة.

اويا منصوب دي بنابر مصدريت يعني مفعول مطلق واقع په حذف د مضاف سره تقدير د عبارت داسې دي چې اعرب اعراب رفع واعرب اعراب نصب واعرب اعراب جر

ابوک واخوک وحموک وهنوک وفوک وذومال بالواو والالف والياء مضافةً الى غير ياء المتکلم: ابوک مضاف مضاف اليه معطوف عليه ، واخوک وحموک وهنوک وفوک وذومال دا ټول معطوف ، معطوف عليه سره د معطوف نه مبتدا با جار الواو معطوف عليه والالف والياء معطوف معطوف عليه سره د معطوف نه مجرور دجار جارسره د مجرور په اعتبار د متعلق سره ذوالحال مضافة الى غير ياء المتکلم ورلره حال ذوالحال سره د حال نه خبر د پاره د مبتدا ، مبتدا سره د خبر نه جمله اسميه.

## عدل:

| فَالْعَدْلُ مَصْدَرٌ مَبْنِيٌّ لِلْمَفْعُوْلِ اَىْ كَوْنُ الْاِسْمِ مَعْدُوْلاً خُرُوْجُهُ اَىْ خُرُوْجُ الْاِسْمِ اَىْ كَوْنِهِ |
|---|
| نو عدل مصدر مبني للمفعول دي يعني کيدل د اسم معدول خروج د دې يعني خروج د اسم يعني کيدل د دې |

| مُخرِجاً عَنْ صِيغَتَهِ الْاَصْلِيَّةِ اَىْ عَنْ صُوْرَتِهِ الَّتِىْ يَقْتَضِيَ الْاَصْلَ وَالْقَاعِدَةُ اَنْ يَكُوْنَ ذٰلِكَ الْاِسْمُ عَلَيْهَا |
|---|
| ويستونكي دصيغې اصلي نه يعني دهغه صورت نه چې تقاضا كوي اصل اوقاعده چې وي ده دغه اسم په دې |
| وَلَا يَخْفٰى اَنَّ صِيغَةَ الْمَصْدَرِ لَيْسَتْ صِيغَةُ الْمُشْتَقَّاتِ فَبِاِضَافَةِ الصِّيغَةِ اِلٰى ضَمِيْرِ الْاِسْمِ |
| باندې او پټه دې نه وي چې صيغه د مصدر نه ده صيغه د مشتقاتو نو په اضافت د صيغې سره ضمير د اسم ته |
| خَرَجَتِ الْمُشْتَقَّاتُ كُلُّهَا وَاِنَّ الْمُتَبَادَرَ مِنْ خُرُوْجِهِ عَنْ صِيغَةِ الْاَصْلِيَّةِ اَنْ تَكُوْنَ الْمَادَّةُ بَاقِيَةٌ وَالتَّغَيُّرُ اِنَّمَا وَقَعَ فِي |
| خارج شومشتقات ټول اومتبادر دخروج دصيغې اصليې نه داخبره ده چې وي دې ماده باقي اوتغيرواقع شوېه |
| الصُّوَرِ فَقَطْ فَلَا يَنْتَقِضُ بِمَا حُذِفَ عَنْهُ بَعْضُ الْحُرُوْفِ كَالْاَسْمَاءِ الْمَحْذُوْفَةِ |
| صورت كې فقط پس نه منقوضيږي په هغې سره چې حذف شوي وي دهغې نه بعضې حروف لكه اسماء محذوفة |
| الْاِعْجَازِ مِثْلُ يَدٍ وَدَمٍ فَاِنَّ الْمَادَّةَ لَيْسَتْ بَاقِيَةٌ فِيْهَا وَ اِنَّ خُرُوْجَهُ عَنْ صِيغَتِهِ الْاَصْلِيَّةِ يَسْتَلْزِمُ دُخُوْلَهُ فِيْ |
| الاعجاز لكه يد او دم څكه ماده نه ده باقي په دې كې اوخروج د هغې د صيغې اصليې نه لازموي دخول ددې په |
| صِيغَةٍ اُخْرٰى اَىْ مُغَايِرَةٌ لِلْاُوْلٰى وَلَا يَبْعُدُ اَنْ يَعْتَبِرُ مُغَايَرَتَهَا فِيْ كَوْنِهَا غَيْرَ دَاخِلَةٍ |
| بلې صيغې كې يعني مغائروي داولې نه اوبعيده نه ده چې معتبرشي مغائرددې په كيدلوددې چې غيرداخل وي |
| تَحْتَ اَصْلٍ وَ قَاعِدَةٍ كَمَا كَانَتِ الْاُوْلٰى دَاخِلَةٌ تَحْتَهُ فَخَرَجَتْ عَنْهُ الْمُغَيِّرَاتُ الْقِيَاسِيَّةُ. |
| لاندې داصل اوقاعدې نه لكه څنګه چې اول داخله وه لاندې داصل اوقاعدې نه نو خارج شو مغائرات قياسيه . |

**خلاصه د متن :** په دې عبارت سره صاحب د كافيې د عدل تعريف او تفصيل بيانوي .

**اغراض دجامي :** فالعدل خروجه عن صيغته الاصلية : عدل يې مقدم كړو په نورو اسبابو باندې څكه چې په اجمال كې هم مقدم دي او په اجمال كې يې څكه مقدم كړو چې دشروط يې كم دي اودكوم څيز چې شرطونه كم وي نو هغه اكثر وجودا وي نو څكه يې مقدم كړو .

مصدر : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال :** چې عدل د افعل په وزن دي او دا وزن كله كله په معنى داسم تفضيل سره وي اواسم تفضيل خو ذات مع الوصف دي او نور اسباب دمنع صرف خو صفات وي .

**جواب :** شارح جواب وركړو چې دا مصدر دي .

مبني للمفعول : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال :** چې عدل مصدر دي داكله مبني للفاعل وي نو عدل چې په معنى دعادل سره شي نو دا خو بيا ذات مع الوصف شو

**جواب :** شارح جواب وركړو چې دا مبني للمفعول دي .

ای کون الاسم معدولاً : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي
**سوال** : چې عدل په معنی د معدول سره شو نو معدول خو عین لفظ شو او عدل دا خو صفت د لفظ دي
**جواب** : شارح جواب ورکړو چې معدول په معنی د کون الاسم معدولا سره دي نو معدول صفت د اسم شو چې لفظ دي
خروجه : په خروجه کې د ۂ ضمیر راجع دې اسم ته .
ای کونه مخرجا : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :
**سوال** : د عدل نه دې تعبیر په معدول سره وکړو اودا متعدي دي اوبیا د دې تفسیر دې په خروج سره وکړو او خروج لازمي دي نو لازم شو تفسیر د متعدي په لازمي سره .
**جواب** : نو شارح جواب ورکړو چې خروجه په معنی د مخرج سره دي او مخرج صیغه د اسم مفعول ده اودا خو فاعل غواړي نو متعدي شو .
عن صیغته الاصلیة : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :
**سوال** : اسم په معنی د هیئت او مادې سره دي او صیغه هم په معنی د هیئت او مادې سره نو لازم شو خروج د کل اودا نه دي جائز ځکه چې خروج سبق د خول غواړي .
**جواب** : صیغه په معنی د هیئت او صورت سره دي او اسم په معنی د مادې سره دي ، نو سوال دفع شو .
ولا یخفی : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :
**سوال** : تعریف د عدل دې مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو په کې ټول اسماء مشتقات ځکه د دې خروج هم د اصل او هیئت نه راغلې وي .
**جواب** : په اضافت د صیغې سره اسم ته داخارج شول ځکه چې معنی داشوه چې د معدول اود معدول عنه معنی به یوه وي اوپه مشتقاتو کې د مشتق اود مشتق منه معنی یوه نه وي .
وان المتبادر : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :
**سوال** : تعریف د عدل دې مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو په کې اسماء محذوفة الاعجاز لکه دم او ید ځکه د دې خروج د دمعا و یدو نه راغلې دي اومعنې یې هم یوه ده .

**جواب** : دې سره یو بل قید هم مونږ لرو چې ماده به یې هم باقي وي اویه ید او دم کې واو حرف اصلي باقي نه دي پاتې شوې

وان خروجه عن صیغة الاصلیة : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال** : تعریف د عدل دې مانع نه شو د دخول د غیر نه داخل شو په کې مغائرات قیاسیه لکه مقول چې داخارج د مقوول نه معنی یې هم یوه ده اوماده یې هم باقي ده ځکه واو زائده حذف شوې دي .

**جواب** : یو بل قید هم شته دي هغه دا چې معدول عنه به دقاعدې اودقیاس لاندې وي اومعدول به نه وي لکه ثلث اومثلث چې دهر یو معنی ده دري دري او هر یو معدول دي دثلاثة ثلاثة نه ، ثلاثة ثلاثة دقاعدې لاندې راغي ځکه چې قاعده داده چې تکرار دلفظ دا دلالت کوي په تکرار دمعنی باندې اومقول کې خو دواړه دیوې قاعدې لاندې دي مخرج عنه چې مقوول دي هم د قاعدې لاندې دي ځکه دمجردو نه اسم مفعول په وزن دمفعول سره راځي اومقول هم دقاعدې لاندې دي ځکه دا قاعده ده چې حرف علت متحرک وي اوماقبل ترې نه ساکن وي حرکت ماقبل ته نقل کیږي نو چې حرکت نقل شو اجتماع دساکنینو راغله نو واو وغورځیدلو مقول شو نو په مغائرات قیاسیو کې دواړه دقاعدې لاندې دي .

| |
|---|
| وَ اَمَّا الْمُغَيِّرَاتُ الشَّاذَّةُ فَلَا نُسَلِّمُ اَنَّهَا مُخْرِجَةٌ عَنِ الصِّيَغِ الْاَصْلِيَّةِ فَاِنَّ الظَّاهِرَ اَنَّ مِثْلَ اَقْوُسٍ وَ |
| هرچې مغائرات شاذه دي نومونږنه منو چې دا خارج دي د صیغي اصلیې نه ځکه چې ظاهر په مثل د اقوس او |
| اَنْيُبٍ مِنَ الْجُمُوْعِ الشَّاذَّةِ لَيْسَتْ مُخْرِجَةً عَمَّا هُوَ الْقِيَاسُ فِيْهِمَا اَعْنِيْ اَقْوَاساً وَ اَنْيَاباً بَلْ اِنَّمَا جُمِعَ |
| انيب د جموع شاذو نه، نه دي خارج د هغه څه نه چې هغه قیاس دي په دې کې یعني اقواسا او انیابا بلکې جمع |
| الْاَقْوُسُ وَ الْاَنْيَابُ اِبْتِدَاءً عَلَى اَقْوُسٍ وَ اَنْيُبٍ عَلَى خِلَافِ الْقِيَاسِ مِنْ غَيْرِ اَنْ يُعْتَبَرَ جَمْعُهُمَا اَوَّلاً عَلَى |
| شوې اقوس او انياب اولاًپه اقوس او انیب سره خلاف القیاس په غیرددې نه چې معتبر شي جمع والي دهغوي اولاًپه |
| اَقْوَاسٍ وَ اَنْيَابٍ وَ اِخْرَاجُ اَقْوُسٍ وَ اَنْيُبٍ عَنْهُمَا وَ قَالَ بَعْضُ الشَّارِحِيْنَ قَدْ جَوَّزَ |
| اقياس او انياب سره اومعتبرشي اخراج د اقوس او انیب ددې نه ویلي دي بعضې شارحینوپه تحقیق سره جواز ور |
| بَعْضُهُمْ تَعْرِيْفَ الشَّيْءِ بِمَا هُوَ اَعَمُّ مِنْهُ اِذَا كَانَ الْمَقْصُوْدُ تَمْيِيْزَهُ عَنْ بَعْضِ مَا عَدَاهُ |
| کړې بعضې تعریف دشي په هغه څه سره چې عام وي ددې نه چې کله وي مقصود تمیز ددې د بعضې ماعدا نه |
| فَيُمْكِنُ اَنْ يُقَالَ الْمَقْصُوْدُ هٰهُنَا تَمْيِيْزُ الْعَدْلِ عَنْ سَائِرِ الْعِلَلِ لَا عَنْ كُلِّ مَا عَدَاهُ فَحَيْثُ |
| پس ممکن دي چې وویل شي چې مقصود دلته تمیز د عدل دې د نورو علتونونه. نه ماسوی د عدل نه په داسې |

حَصَلَ بِتَعْرِيْفِهِ هٰذَا التَّمِيْزُ لَا بَأسَ بِكَوْنِهٖ اَعَمُّ مِنْهُ فَحِيْنَئِذٍ

ـان چې حاصل به شي په تعریف د عدل سره دغه فرق نو باک نشته په کیدلو د عدل سره چې عام وي په دغه

لَا حَاجَةَ فِي التَّصْحِيْحِ هٰذَا التَّعْرِيْفَ اِلٰى اِرْتِكَابِ تِلْكَ التَّكَلُّفَاتِ.

وخت کې نو حاجت نشته په تصحیح ددې تعریف کې ارتکاب دغه تکلیفونو ته

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره صاحب کافیه د مغائراتو شاذو بیان کوي

**اغراض د جامي**: واما المغيرات الشاذة: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: چې تعریف د عدل ستا مانع نه شو د دخول دغیر نه داخل شو په کې مغیرات شاذه لکه اقوس او انیب چې دا مخرج دي د اقواس او انیاب نه چې دا جمع د قوس او ناب ده په اصل کې نیب و نو ستا دري واړه شروط په کې شته معنی یې هم متحده ده ماده یې هم باقي ده او اول چې اقواس او انیاب دي دي د قاعدې لاندې هم دي چې دغه وزن فعل فعل دا جمع کیږي په افعال سره اوداد وهم چې اقوس او انیب دي دقاعدې لاندې نه دي او سره ددې نه چې دې ته څوک معدول نه وایي.

**جواب**: زه دا نه منم چې قوس او نیب دا جمع شوي دي په اقواس او انیاب سره او بیا اقوس او انیب دا مخرج دي ددې نه بلکه قوس او ناب دا اولا جمع شوي دي په اقوس او انیب سره ددې وجې نه ورته جموع شاذه هم وایي.

وقال بعض الشارحين: په دې عبارت سره شارح رد کوي په ماتن باندې ، دلته یو تمهید ذکر کوو: یو معرَف دي او بل معرِف دي لکه د انسان تعریف وشي په حیوان ناطق سره نو انسان معرَف او حیوان ناطق معرِف دي نو په دې کې دوه شرائطه دي:

(۱) د معرَف او معرِف په مینځ کې به تساوي په حسب د مصداق سره وي یعنې چې معرَف په څه صادقیږي په هغې به معرِف هم صادقیږي لکه د انسان او د حیوان ناطق مصداق په خارج کې یو دي.

چې د دواړو به مینځ کې به [illegible] بحسب المفهوم وي لکه انسان معرَف دي او مفهوم یې حیوان [illegible] دي [illegible] معرِف چې [illegible] دي د حیوان مفهوم جسم نام حساس متحرک بالاراده دي او د [illegible] مفهوم مدرک الکلیات والجزئیات دي او تبائن به بحسب المفهوم وي [illegible] نه خلو [illegible] به لازم شي (۱) دواړه به الفاظ مترادفه او معنی به یې یوه شي ، (۲) یو شئ به هم معلوم وګرځي او هم مجهول په دې حیثیت سره چې معرَف موقوف دي په معرِف

باندې نو مجهول شو اوپه دې حیثیت سره چې ددواړو مفهوم يو دي نو معلوم شو (۳) توقف دشئ به راشي په خپل نفس معرَف به موقوف شي په معرف پورې اومعرِف به موقوف شي په معرَف پورې (۴) يو شئ به هم مقدم اوهم مؤخر وګرځي په دې حیثیت سره چې معرَف موقوف دي په معرِف نو معرَف موخر شو اوچې معرِف موقوف دي په معرَف نو معرِف مؤخر شو

اوهغه اوله خبره چې معرَف اومعرِف کې به تساوي وي په حسب دمصداق سره نوداځکه که تبائن په کې راشي نو معرِف اومعرَف خو يو په بل حمل کیږي نو حمل دتبائن به راشي په مبائن اخر باندې اوداخو محال دي .

دوهم داچې معرف به اعم نه وي دمعرف نه ځکه تعریف به مانع نه شي ددخول دغیر نه لکه دانسان تعریف وشي په حیوان سره نوحمار وغیره په کې داخل شول

دریم داچې تعریف بالاخص هم نه دي جائز ځکه چې بیا به تعریف جامع نه شي خپلو افرادو لره لکه تعریف دانسان په حیوان ناطق ابیض سره نو ناطق اسود ترې نه خارج شو ، دا مذهب دمحققینو دي .

نو قدماء وايي چې تعریف بالاعم جایز دي ځکه چې مقصود هغه امتیاز دمعرَف وي دبعضې ماعدا نه .

اوس دلته يو سوال راځي :

**سوال** : **العدل خروجه عن صیغته الاصلیة** دا کافي وو نور قیودات تا ولې ولړول ځکه چې تعریف بالاعم دا جائز دي .

**جواب** : تعریف بالاعم په هغه وخت کې جائز وي چې مقصود امتیاز دمعرَف وي دبعضې ماعدا نه اودلته مقصود هغه امتیاز دي دجمیع ماعدا نه یعنې داښودل غواړو چې داغیر منصرف دي اودا نه دي .

دلته يو بل سوال هم راځي :

**سوال** : دتعریف سره چې کوم قیودات لړولې شوې دا خو شارح لړولې ماتن خو نه دي لړولې نو دې خو رد کوي په خپل ځان باندې .

**جواب** : دغه قیودات دعدل دتعریف سره په امالیو دکافیه کې چې دادده خپله شرحه ده لړولې دي نو شارح رحمه الله ګویا کې نقل کړې دي دهغې نه .

| |
|---|
| وَاعْلَمْ اَنَّا نَعْلَمُ قَطعاً اَنَّهُمْ لَمَّا وَجَدُوْا ثُلٰثَ وَ مَثْلَثَ وَ اُخَرُ وَ جُمَعُ وَ عُمَرُ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ وَ لَمْ يَجِدُوْا |
| پوه شه چې مونږ قطعاً پوهيږو چې کله دوي مونده کړه ثلاث او مثلث اخر او جمع او عمر غير منصرف او مونده يې نه |
| فِيْهَا سَبَباً ظَاهِراً غَيْرَ الْوَصْفِيَّةِ اَوِ الْعَلَمِيَّةِ احْتَاجُوْا اِلٰى اِعْتِبَارِ سَبَبٍ آخَرَ وَ لَمْ يَصْلُحْ |
| کړو په دې کې سبب ظاهر په غير د وصف او د علميت نه نو محتاج شو دوي معتبرولو د سبب آخر ته او صالح نه وو |
| لِلْاِعْتِبَارِ اِلَّا الْعَدْلُ فَاعْتَبَرُوْهُ فِيْهَا لَا اَنَّهُمْ تَنَبَّهُوْا لِلْعَدْلِ فِيْمَا عَدَا |
| د پاره د اعتبار مگر عدل پس دوي معتبر کړل دا عدل په دې کې دا نه چې دوي خکاره کړو عدل په ماسوى د |
| عُمَرُ مِنْ هٰذِهِ الْاَمْثِلَةِ فَجَعَلُوْهُ غَيْرَ مُنْصَرِفٍ لِلْعَدْلِ وَ سَبَبٍ آخَرَ وَ لٰكِنْ |
| عمر کې په غير د دې دري مثالونو نه پس وي گرځول غير منصرف د وجې د عدل نه او د وجې د سبب آخر نه ليکن |
| لَا بُدَّ فِيْ اِعْتِبَارِ الْعَدْلِ مِنْ اَمْرَيْنِ اَحَدُهُمَا وُجُوْدُ اَصْلٍ لِلْاِسْمِ الْمَعْدُوْلِ وَ ثَانِيْهِمَا اِعْتِبَارُ اِخْرَاجِهِ |
| لابدي ده په معتبرولو د عدل کې د دوه امورونه چې يو وجود د اصل دي د پاره د اسم معدول او دوهم اعتبار د اخراج |
| عَنْ ذٰلِكَ الْاَصْلِ اِذْ لَا يَتَحَقَّقُ الْفَرْعِيَّةُ بِدُوْنِ اعْتِبَارِ ذٰلِكَ الْاِخْرَاجِ فَفِيْ بَعْضِ تِلْكَ الْاَمْثِلَةِ |
| د دغه اصل نه خکه چې نه متحقق کيږي فرعيت به غير د اعتبار د اخراج د اصل نه پس په بعضې د دغه مثالونو |
| يُوْجَدُ دَلِيْلٌ غَيْرُ مَنْعِ الصَّرْفِ عَلٰى وُجُوْدِ الْاَصْلِ الْمَعْدُوْلِ عَنْهُ فَوُجُوْدُهُ مُحَقَّقٌ بِلَا شَكٍّ وَ فِيْ بَعْضِهَا |
| کې دليل موجود دي په دليل د اصل معدول عنه باندې پس وجود يې ثابت دي په غير د شک نه او په بعضو کې |
| لَا دَلِيْلَ غَيْرَ مَنْعِ الصَّرْفِ فَيُفْرَضُ لَا اَصْلٌ لِيَتَحَقَّقَ الْعَدْلُ |
| دليل نشته په غير د منصرف باندې پس فرض کولی شي د هغې د پاره اصل د دې د پاره چې ثابت شي عدل په |
| بِاِخْرَاجِهِ عَنْ ذٰلِكَ الْاَصْلِ فَانْقِسَامُ الْعَدْلِ اِلَى التَّحْقِيْقِيِّ وَالتَّقْدِيْرِيِّ اِنَّمَا هُوَ بِاِعْتِبَارِ كَوْنِ ذٰلِكَ الْاَصْلِ |
| اخراج د هغې د دغه اصل نه پس تقسيم د عدل تحقيقي او تقديري ته دا په اعتبار د کيدلو د دغه اصل نه دي |
| مُحَقَّقاً اَوْ مُقَدَّراً وَ اَمَّا اِعْتِبَارُ اِخْرَاجِ الْمَعْدُوْلِ عَنْ ذٰلِكَ الْاَصْلِ لِيَتَحَقَّقَ الْعَدْلُ فَلَا دَلِيْلَ |
| حقيقتاً او يا تقديراً او هرچې اعتبار د اخراج د عدل دي د اصل نه دي د پاره چې ثابت شي عدل پس نشته دليل په |
| عَلَيْهِ اِلَّا مَنْعُ الصَّرْفِ فَعَلٰى هٰذَا قَوْلُهُ تَحْقِيْقاً مَعْنَاهُ خُرُوْجاً كَائِناً |
| دې باندې مگر غير منصرف کيدل نو بناء په دې چې دا قول د مصنف چې تحقيقاً معنى د دې هغه خروج چې کائن |
| عَنْ اَصْلٍ مُحَقَّقٍ يَدُلُّ عَلَيْهِ دَلِيْلٌ غَيْرَ مَنْعِ الصَّرْفِ كَثُلٰثَ وَ مَثْلَثَ. |
| وي د اصل ثابت نه چې دلالت کوي په هغې باندې دليل د غير منصرف لکه ثلاث او مثلث |

**خلاصه دمتن :** په دې عبارت سره صاحب کافيه په علامه فاضل هندي او علامه رضي باندې رد کول دي.

**اغراض دجامي :** واعلم انا نعلم قطعاً: په دې عبارت سره شارح اشاره کړي ده اختلاف ته ،

او اختلاف په تعریف دعدل تحقیقي اوعدل تقدیري کې دي په دې کې دوه مذاهب دي :

**اول مذهب دمحققینو** : دوي وایي چې عدل تحقیقي وایي خروج اعتباري ته داصل محقق نه ، او تقدیري وایي خروج اعتباري ته داصل اعتباري نه .

**دوهم مذهب دمشهورینو** : دوي وایي چې عدل تحقیقي وایي خروج تحقیقي ته داصل محقق نه ، اوعدل تقدیري وایي خروج اعتباري ته داصل اعتباري نه .

نو اختلاف صرف په خروج دعدل تحقیقي کې دي :

تحقیقي دې ته وایي چې په وجود داصل باندې ماسوا دمنع نه بل دلیل وي ، اوتقدیري چې په وجود داصل سوادمنع صرف نه بل دلیل نه وي ، دمشهورینو دپاره دري (۳) دلائل دي :

**اول دلیل** : تحقیقا او تقدیراً داصفات دخروج دي ددې نه معلومه شوه چې خروج به یو کې تحقیقي وي اوبل کې به اعتباري یعنې تقدیري وي .

**دوهم دلیل** : خروج خو په عدل تقدیري کې اعتباري دي په عدل تحقیقي کې هم اعتباري شي نو ددواړو په مینځ کې به فرق رانه شي .

**دریم دلیل** : دلیل په وجود داصل دابعینه دلیل وي په وجود دفرعې باندې اودلیل په وجود دفرعې دابعینه دلیل وي په خروج دفرعې ددغه اصل نه .

اودمحققینو دپاره صرف یو دلیل دي اوهغه داچې بعضې اسماء چې کله و [illegible]
دعربو کې غیر منصرف اوموجود نه وو په کې سبب دمنع صرف سوا دعلمیت [illegible]
وغیره اوسببیت واحده خو مؤثر نه وو په منع دصرف کې نو مجبور شو مونږ اعتبار د سبب آخر
ته اوصالح نه وو دپاره داعتبار دسبب آخر سوادعدل نه نومونږ په عدل معتبر کړو اوبیا په بعضو اسماو کې دلیل په اصل باندې موجود وو اوپه بعضو کې نه وو نو په کومو اسماو کې چې په اصل دلیل موجود وو نو تحقیقي اوکه نه موجود نو تقدیري .

نو محققین وایي چې خروج دمعدول دمعدول عنه نه مونږ معتبر کړې دي اودوي دمشهورینو ددریواړو دلائلو نه جواب هم کوي .

**اول دلیل** :چې دوي ویلې وو چې تحقیقاً اوتقدیراً داصفات دخروج دي نو محققین جواب کوي چې صفت په دوه قسمه دي : یو توصیف بحاله دي اوبل توصیف بحال متعلقه دي نو داتحقیقاً اوتقدیراً دا خروج دي خو بحال متعلقه چې متعلق یې مخرج عنه دي اودا اصل دي نو دا صفات په حقیقت کې داصل دي اواصل خو تاسو هم منې چې یو کې تحقیقي اوبل کې تقدیري وي .

**دوهم دليل** : چې دې ويلې وو چې فرق به رانه شي په عدل تحقيقي اوتقديري کې نو دوي جواب کوي چې فرق په اعتبار داصل سره شته چې يو کې اصل تحقيقي دي اوبل کې اعتباري دي

**دريم دليل** : نه جواب دا کوي چې دامنم چې دليل په وجود داصل دادليل دي په وجود دفرع خو دانه منم چې دليل په وجود دفرع دادليل دي په خروج دفرع داصل نه لکه **اقوس اوانيب** چې اصل يې اقواس اوانياب دي دليل په وجود داصل شته چې قياس يې تقاضا کوي نو دادليل دې په دې خبره چې اقوس اوانيب فرعه ده خو دادليل نه دي په دې خبره چې **اقوس اوانيب** مخرج دي داقواس اوانيب نه

**فانقسام العدل الى التحقيقي الخ** : په دې عبارت سره اشاره کوي ماهو الحق ته چې شارح دمحققينو مذهب ته ترجيح ورکړې ده .

**تحقيقا معناه خروجا کائنا عن اصل محقق** : په دې عبارت سره شارح د **تحقيقاً** دنصب وجه بيانوي اوپه **عن اصل محقق** سره جواب ورکوي دمشهورينو ددليل نه :

نو وايي چې دامنصوب دي بناء بر مفعول مطلق نو په دې باندې يو سوال واردېږي :

**سوال** : چې مفعول مطلق خو دې ته وايي چې فعل مشتمل وي په ده باندې دقبيلې داشتمال دکل نه په جزء باندې نو خروجه خو مشتلم دي په خروجاً باندې نه په تحقيقاً .

**جواب** : نو دې جواب کوي چې دامفعول مطلق دي بناء برموصوف محذوفه سره تقدير دعبارت داسې دي چې خروجه خروجا تحقيقا محققا يا عن اصل محقق ، نو په دې باندې بيا يو سوال راځي .

**سوال** : تاويل چې مفعول مطلق دې ته وايي چې فعل مشتمل وي په ده باندې دقبيلې د اشتمال د کُل نه په جزء باندې نو خروج خو فعل نه دي بلکه مصدُر دي ، ياخروجه هم مصدر دي اوخروجاً هم مصدر دي نو احدالمصدرين مستدرک اوبلا فائدې شو .

**جواب** : په خروجه کې دغه مصدر ، مصدر عامله دي اومصدر عامله دامؤل وي په تاويل د ان سره دفعل نه نو خروجه په معنی دان يخرج سره دي .

**عن اصل محقق** : په دې عبارت سره جواب دمشهورينو ددليل نه هم وشو . هغوي ويلې وو چې تحقيقاً داصفت دخروج دي نو دې وايي چې صفت داصل دي .

يدل عليه غير منع الصرف: په دې عبارت سره شارح دتحقيقا معنى ذكر كول دي نووايي چې په وجود داصل باندې سوا دمنع صرف نه بل دليل وي داتحقيقي دي

كثلاث ومثلث: په دې عبارت سره شارح تطبيق دمثال كوي دممثل سره

| |
|---|
| وَ الدَّلِيْلُ عَلٰى اَصْلِهِمَا اَنَّ فِيْ مَعْنَاهُمَا تَكْرَارٌ دُوْنَ لَفْظِهِمَا وَ الْاَصْلُ اَنَّهُ اِذَا كَانَ الْمَعْنٰى مُكَرَّراً يَكُوْنُ |
| او دليل په اصل ددې باندې چې معنى ددې مكرره ده نه لفظ، او قاعده داده كله چې وي معنى مكرره ، وي به |
| اللَّفْظُ اَيْضاً مُكَرَّراً كَمَا فِيْ جَاءَنِي الْقَوْمُ ثَلَاثَةً ثَلَاثَةً فَعُلِمَ اَنَّ اَصْلَهُمَا لَفْظٌ مُكَرَّرٌ وَ هُوَ ثَلَاثَةٌ |
| لفظ هم مكرر لكه په جاءني القوم ثلاثة ثلاثة كې نو معلومه شوه چې اصل ددې لفظ مكرره دي چې هغه ثلاثة |
| ثَلَاثَةٌ وَ كَذَا الْحَالُ فِيْ اُحَادَ وَ مَوْحِدَ وَ ثُنَاءَ وَ مَثْنٰى اِلٰى رُبَاعَ وَ مَرْبَعَ بِلَا خِلَافٍ وَ فِيْمَا وَرَاءَهَا |
| ثلاثة دي اوهمدا رنگې حال داحاد اوموحد اودثناء مثنى تر رباع اومربع پورې په غير دخلاف نه او ماسوى ددې نه |
| اِلٰى عُشَارَ وَ مَعْشَرَ خِلَافٌ وَ الصَّوَابُ مَجِيْئُهُمَا وَ السَّبَبُ فِيْ مَنْعِ صَرْفِ ثُلَثَ وَ مَثْلَثَ وَ |
| ترعشار اومعشر پورې خلاف دي اوصحيح خبره راتلل ددې دي اوسبب په منع صرف كې ثلث اومثلث او په |
| اَخَوَاتِهِمَا الْعَدْلُ وَ الْوَصْفُ لِاَنَّ الْوَصْفِيَّةَ الْعَرْضِيَّةَ الَّتِيْ كَانَتْ فِيْ ثَلَاثَةٍ ثَلَاثَةٍ صَارَتْ اَصْلِيَّةً |
| اخواتو دهغې كې عدل اووصف دي خكه چې وصفيت عرضي هغه چې دي په ثلاثة اوثلاثة كې وگرځيده اصلي |
| فِيْ ثُلَثَ وَ مَثْلَثَ لِاعْتِبَارِهَا فِيْمَا وُضِعَا لَهُ وَ اُخَرُ جَمْعُ اُخْرٰى مُؤَنَّثُ اٰخَرَ وَ اٰخَرُ اِسْمُ التَّفْضِيْلِ |
| په ثلاث اومثلث كې دوجې داعتبار داصل وضع نه او اخر چې جمع داخرى مؤنث دآخراوآخر اسم تفضيل دي او |
| لِاَنَّ مَعْنَاهُ فِي الْاَصْلِ اَشَدُّ تَاَخُّراً ثُمَّ نُقِلَ اِلٰى مَعْنٰى غَيْرٍ وَ قِيَاسُ اِسْمِ التَّفْضِيْلِ اَنْ يُسْتَعْمَلَ بِاللَّامِ |
| معنى يې په اصل كې اشدتاخرا دي بيانقل شوه معنى غيرقياسي ته اسم تفضيل كه چيرته مستعمل شي په لام |
| اَوِ الْاِضَافَةِ اَوْ كَلِمَةِ مِنْ وَ حَيْثُ لَمْ يُسْتَعْمَلْ بِوَاحِدٍ مِنْهَا عُلِمَ اَنَّهُ مَعْدُوْلٌ |
| اويا اضافت سره اويا په كلمې دمن اوحيث سره نه استعماليږي په يوددوې كې نومعلومه شوه چې دا معدول دي |
| مِنْ اَحَدِهَا فَقَالَ بَعْضُهُمْ اَنَّهُ مَعْدُوْلٌ عَمَّا فِيْهِ اللَّامُ اَيْ عَنِ الْاُخَرِ وَ قَالَ |
| يوددغو كلمونه پس ويلي دي بعضوچې دامعدول دي دهغه نه چې په هغې كې لام وي يعني د الآخر اوويلي دي |
| بَعْضُهُمْ هُوَ مَعْدُوْلٌ عَمَّا ذُكِرَهُ مَعَهُ مِنْ اَيْ عَنِ اٰخَرَ مِنْ اَنَّمَا لَمْ يَذْهَبْ اِلٰى تَقْدِيْرِ الْاِضَافَةِ |
| بعضو چې دا معدول دي د هغه نه چې په هغې كې من وي يعني اخرمن او ذهاب ونه كړو تقدير د اضافت نه |
| لِاَنَّهَا تُوْجِبُ التَّنْوِيْنَ اَوِ الْبِنَاءَ اَوْ اِضَافَةً اُخْرٰى مِثْلَهَا نَحْوُ حِيْنَئِذٍ وَ قَبْلُ وَ يَاتَيْمَ تَيْمَ عَدِيٍّ وَ لَيْسَ |
| خكه چې لازموي هغه تنوين يابناء يااضافت آخرته په مثل دهغې كې لكه حينئذ وقبل ويا تيم تيم عدي او نشته |
| فِيْ اُخَرَ شَيْءٌ مِنْ ذٰلِكَ فَتَعَيَّنَ اَنْ يَكُوْنَ مَعْدُوْلًا عَنْ اَحَدِ الْاُخَرَيْنِ وَ جُمَعُ جَمْعُ جَمْعَاءَ مُؤَنَّثُ |
| په اخركې هيڅ ددې نه پس معلومه شوه چې دا به وي معدول يو د آخرينونه او جمع چې جمع د جمعاء ده ا. د. نث د |

| |
|---|
| اَجْمَعُ وَ كَذٰلِكَ كُتَعُ وَ بُتَعُ وَ بُصَعُ وَ قِيَاسُ فِعْلِ مُؤَنَّثِ اَفْعَلُ اِنْ كَانَتْ صِفَةً اَنْ تَجْمَعَ عَلٰى |
| اجمع ده او همدارنګې كتع بتع بصع او وزن قياس دفعلامؤنث دافعل كه چيرته شي صفت كه چيرته جمع شي په |
| فِعْلِ كَحَمْرَاءَ عَلٰى حُمْرٍ وَ اِنْ كَانَتْ اِسْمًا اَنْ تَجْمَعَ عَلٰى فَعَالٍ اَوْ فِعْلَاوَاتٍ كَصَحْرَاءَ |
| وزن دفعل باندې لكه حمراءپه وزن دحمرباندې او ياوي اسم چې جمع شي په وزن دفعال او يا فعلاوات لكه صحرا |
| عَلٰى صَحَارِى اَوْ صَحْرَاوَاتٍ فَاَصْلُهَا اِمَّا جُمْعٌ اَوْ جَمَاعِىُّ اَوْ جَمْعَاوَاتٌ. |
| په صحارى او صحراوات پس اصل يې يا جمع ده يا جماعى ده او يا جمعاوات ده. |

خلاصه دمتن  په دې عبارت سره شارح دليل بيانوي دعدل تحقيقي دمثال دپاره .

**اغراض دجامي** : والدليل على اصلهما : په دې عبارت سره شارح دليل بيانوي دعدل تحقيقي په مثال باندې ځكه چې په اصل ددې باندې چې ثلاثة ثلاثة دي سواد منع صرف نه بل دليل موجود دي هغه داچې تكرار دمعنى دلالت كوي په تكرار دمعنى نو هركله چې دلته دثلاث اومثلث په معنى كې تكرار و اولفظ كې نه وو نو معلومه شوه چې اصل ددې ثلاثة ثلاثة دي .

وكذا الحال في احاد وموحد الخ : په دې عبارت سره شارح تعميم ذكر كوي او وايي چې لكه څنګه په ثلث مثلث كې عدل دي نو همدارنګې په احاد موحد ثنا اومثنىٰ رباع اومربع كې هم عدل تحقيقي او وصف دي .

وفيما وراها الى عشار ومعشر خلاف : په دې عبارت سره شارح اختلاف طرف ته اشاره كوي او هغه اختلاف داچې دڅلورو نه تر لسو پورې په دې كې عدل شته اوكه نه ؟ نو امام سيبويه رحمه الله وايي چې په دې كې هم عدل راتلې شي ځكه بعضو اشعارو كې يې استعمال راغلې دي ، او بعضې وايي چې نه شي راتلې ځكه چې دعربو نه يې سماع نه ده شوې ، دشارح په نزد د سيبويه مذهب غوره دي .

والسبب في منع الصرف : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : تا وويل چې ثلث او مثلث داغير منصرف دي ځكه چې يو په كې عدل او بل په كې وصف دي زه دانه منم چې په دې كې وصف شته ځكه چې وصف كې شرط دادې چې دابه په اصل وضع كې وصف وي او ثلث او مثلث كې خو په اصل وضع كې وصف نشته بلكه ددې وضعه دمرتبې معينې دپاره شوې ده چې مافوق الاثنين اوماتحت الاربع ده نو داخو دعلم په شان شو .

**جواب** : دا منم چې په دوي کې وصف عارضي دي خو چې کله مونږ په کې عدل معتبر کړ نو عدل دا په شان دوضع ثاني ده نو وصف هم په کې اصلي وګرځیده

واخر جمع اخری مؤنث آخر : په دې عبارت سره شارح تطبیق دمثال کوي دممثل سره : چې هرکله وموندلې شو اخر په کلام دعربو کې غیر منصرف اوموجود وو په کې یو سبب چې وصف دي نو لابدي شوه داعتبار دسبب آخر نه ، نو مونږ په کې عدل معتبر کړو ځکه چې جمع داخری ده اواخری مؤنث دآخر دي اودا اسم تفضیل دي اوقاعده په اسم تفضیل کې داده چې دابه مستعمل وي په یو دطرق ثلاثو سره چې هغه طرق ثلاثه : لام ، اضافت ، من دي دلته په دغه یو سره هم نه وو مستعمل نو معلومه چې دامعدول دي دالاخر یا آخر من نه .

فقال بعضهم : په دې عبارت سره شارح اشاره کوي اختلاف طرف ته : بعضې وايي چې دامعدول دي د الاخر نه نو په دې باندې یو سوال راځي :

**سوال** : چې دامعدول شو دالاخر نو آخر خو نکره ده او الاخر معرفه ده په کار ده چې دا هم معرفې شي .

**جواب** : دلته عدل مونږ لفظاً اومعناً دواړه ذکر کړي دي یعنې څرنګه مو چې لفظ کې الف لام لرې کړي همدارنګې مو دمعنی نه هم تعریف لرې کړي دي .

اوبعضې وايي چې دمعدول دي د آخر من نه .

وانما لم یذهب الی تقدیر الاضافة : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : چې تا وویل چې اسم تفضیل دا په یو ددریو طریقو سره استعمالیږي تا دلته وویل چې د الآخر یا آخر من نه معدول دي اضافت دې ولې ذکر نه کړو ؟

**جواب** : شارح وايي چې اضافت ته موځکه ذهاب ونه کړو چې که ته دامعدول کړي داضافت نه نو مضاف الیه خو به حذف وي نو بیا لابدي شوه دیو ددریو امورو نه یا به تنوین پرې راغلې وي په عوض دمضاف الیه کې لکه په حینئذ کې تنوین عوضي دي د اذاکان کذا نه اویابه مبني وي په ضمې سره لکه قبلُ اوبعدُ چې مضاف الیه یې حذف شوې ده اویابه تکرار داضافت کوي لکه یاتیم تیم عدي داول تیم مضاف الیه عدي حذف شوي دي تکرار یې کړي ، نو دلته په اخر نه ضمه وه نه تنوین نه تکرار وو نو معلومه شوه چې دامعدول دي په غیر داضافت نه .

وجمع جمع جمعاء مؤنث اجمع: په دې عبارت سره شارح تطبيق د مثال کوي د ممثل سره هغه داسې چې جمع د غير منصرف ده يو په کې وصف دې او بل عدل دې عدل په کې خکه دې چې جُمَعُ دا جمع د جمعاء ده او جمعاء مؤنث د اجمع دې او قاعده په جمعاء کې داده چې که دا صفتي وي نو جمع کيږي په جمع سره لکه حمراء چې جمع شوې په حمر سره او که اسمي وي نو جمع کيږي په فعالى فعلاوات سره لکه صحراء چې جمع شوې ده په صحارى صحراوات سره نو دلته په دغه وزن سره جمع شوې نه وو نو معلومه شوه چې دامعدول دې د جمع يا د جماعى يا د جمعاوات څخه

وکذلک کتع بتع الخ: په دې عبارت سره شارح تعميم ذکر کوي يعنې دا هم غير منصرف دې دوجې د عدل او وصف نه د جُمَعُ په شان

## دعدل اقسام:

| |
|---|
| فَإِذَا اعْتُبِرَ إِخْرَاجُهَا عَنْ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا تَحَقَّقَ الْعَدْلُ فَأَحَدُ السَّبَبَيْنِ فِيْهَا الْعَدْلُ التَّحْقِيْقِيُّ وَ |
| پس کله چې معتبر شو اخراج ددې يو ددې نه ثابت شو عدل پس يو د اسبابو ددې نه په کې عدل تحقيقي شو او |
| الْآخَرُ الصِّفَةُ الْأَصْلِيَّةُ وَ إِنْ صَارَتْ بِالْغَلَبَةِ فِيْ بَابِ التَّأْكِيْدِ إِسْماً وَ فِيْ أَجْمَعَ وَ أَخَوَاتِهِ |
| دوهم صفت اصلي شو اګر که ګرځيدلې وي په غلبې سره په باب د تاکيد کې اسم او په اجمع او په اخواتو د هغې |
| أَحَدُ السَّبَبَيْنِ وَزْنُ الْفِعْلِ وَ الْآخَرُ الصِّفَةُ الْأَصْلِيَّةُ وَ عَلَى مَا ذَكَرْنَا لَا يُرَادُ |
| کې يو د دوو سببونو دوزن فعل نه او دوهم د صفت اصلي نه هغه بيان چې کوم مونږ ذکر کړنه وارد يږي له دې نه په |
| الْجُمُوْعُ الشَّاذَّةُ كَأَنْيُبٍ وَ أَقْوُسٍ فَإِنَّهُ لَمْ يُعْتَبَرْ إِخْرَاجُهُمَا عَمَّا هُوَ الْقِيَاسُ فِيْهِمَا |
| جموع شاذ و باندې لکه انيب او اقوس خکه چې نه دې معتبر کړي نحويانو اخراج ددوي دوزن قياسي نه په دې |
| كَالْأَنْيَابِ وَ الْأَقْوَاسِ كَيْفَ وَ لَوِ اعْتُبِرَ جَمْعُهَا أَوَّلاً عَلَى أَنْيَابٍ وَ أَقْوَاسٍ فَلَا شُذُوْذَ |
| کې لکه انياب او اقواس نو څرنګه به معتبر کړې جمع ددې اولاً په انياب او اقواس باندې پس نشته شاذ والې په |
| فِيْ هٰذِهِ الْجَمْعِيَّةِ وَلَا قَاعِدَةَ لِلْإِسْمِ الْمُخْرَجِ لِيَلْزَمَ مِنْ مُخَالَفَتِهَا شُذُوْذٌ فَمِنْ |
| دې جموعو کې او نشته قاعده لپاره د اسم مخرج دې د پاره چې لازم شي مخالفت ددې نه شاذ والي پس د کوم |
| أَيْنَ يَحْكُمُ فِيْهِمَا بِالشُّذُوْذِ مِنْ هٰذَا تَبَيَّنَ الْفَرْقُ بَيْنَ الشَّاذِّ وَ الْمَعْدُوْلِ أَوْ تَقْدِيْراً |
| خای نه حکم کيدې شي په دې د شاذ والي او ددې خای نه معلوم شو فرق په مينځ د شاذ او د معدول کې يا تقديراً |
| أَيْ خُرُوْجاً كَائِناً عَنْ أَصْلٍ مُقَدَّرٍ مَفْرُوْضٍ يَكُوْنُ الدَّاعِيْ إِلَى تَقْدِيْرِهِ وَ فَرْضِهِ مَنْعُ الصَّرْفِ |
| يعنې وتل ددې کائن وي د اصل مقدر مفروضه نه چې وي داعي تقدير د هغې ته او تفريض د هغې ته غير منصرف |

لَا غَيْرَ كَعُمَرَ وَ كَذٰلِكَ زُفَرَ فَاِنَّهُمَا لَمَّا وُجِدَا غَيْرَ مُنْصَرِفَيْنِ وَ لَمْ يُوْجَدْ فِيْهِمَا سَبَبٌ

نه بل څه لکه عمر او همدا رنګې زفر خکه چې دا دواړه چې کله موجود شو غیر منصرف او نه وو په دې کې سبب

ظَاهِرٌ اِلَّا الْعَلَمِيَّةُ اُعْتُبِرَ فِيْهِمَا الْعَدْلُ وَ لَمَّا تَوَقَّفَ اعْتِبَارُ الْعَدْلِ عَلٰى وُجُوْدِ الْاَصْلِ

ظاهر مګر علمیت نو معتبر شو په دې دواړو کې عدل او چې کله موقوف وو په اعتبار د عدل کې په وجود د اصل

وَ لَمْ يَكُنْ فِيْهِمَا دَلِيْلٌ عَلٰى وُجُوْدِهٖ غَيْرَ مَنْعِ الصَّرْفِ قُدِّرَ فِيْهِمَا

باندې نو نه وو په دې دواړو کې دلیل په وجود د اصل نو مغائرت ورکړې شو غیر منصرف ته او مقدر شو په دې دواړو

اَنَّ اَصْلَهُمَا عَامِرٌ وَ زَافِرٌ مَعْدُوْلًا عَنْهُمَا اِلٰى عُمَرَ وَ زُفَرَ وَ مِثْلُ بَابِ قَطَامِ

کې چې اصل د دې دواړو عامر او زافر شو چې معدول شوي دي د هغې نه عمر او زفر او په مثل د باب د قطام چې

اَلْمَعْدُوْلَةُ عَنْ قَاطِمَةٍ وَ اَرَادَ بِبَابِهَا كُلُّ مَا هُوَ عَلٰى فَعَالِ عَلَمًا لِلْاَعْيَانِ الْمُؤَنَّثَةِ

معدول دي د قاطمة او اراده یې وکړه په باب د هغې هر هغه څه چې په وزن د فعال وي چې علم وي د پاره د اعیان مؤنثو

مِنْ غَيْرِ ذَوَاتِ الرَّاءِ فِيْ لُغَةِ بَنِيْ تَمِيْمٍ فَاِنَّهُمْ اعْتَبَرُوا الْعَدْلَ فِيْ هٰذَا الْبَابِ

په غیر د ذوات الرأی نه په لغت د بني تمیم کې خکه چې معتبر کړې دوي عدل په دغه باب کې دوجې د معتبر کولو

حَمْلًا لَهٗ عَلٰى ذَوَاتِ الرَّاءِ فِي الْاَعْلَامِ الْمُؤَنَّثَةِ مِثْلُ حَضَارِ وَ طَمَارِ فَاِنَّهُمَا مَبْنِيَّاتٌ وَ لَيْسَ فِيْهِمَا

د حمل نه په ذوات الرا باندې په اعلام مؤنثو کې لکه حضار او طمار خکه چې دا دواړه مبني دي او نشته په دې کې

اِلَّا سَبَبَانِ الْعَلَمِيَّةِ وَ التَّانِيْثُ وَ السَّبَبَانِ لَا يُوْجِبَانِ الْبِنَاءَ فَاعْتَبَرُوْا فِيْهِمَا الْعَدْلَ

مګر دوه سببونه چې علمیت او تانیث دي او دوه سببونه نه لازموي بناء پس معتبر شو په دې دواړو کې عدل

لِتَحْصِيْلِ سَبَبِ الْبِنَاءِ فَلَمَّا اِعْتَبَرُوْا فِيْهِمَا الْعَدْلُ لِتَحْصِيْلِ سَبَبِ الْبِنَاءِ اعْتَبَرُوْا فِيْمَا عَدَاهُمَا

د پاره د حصول د سبب د بناء پس کله چې معتبر شو په دې کې عدل د پاره د حصول د سبب د بناء نو معتبر کړو په ماسوی

مِمَّا جَعَلُوْهُ مُعْرَبًا غَيْرَ مُنْصَرِفًا اَيْضًا حَمْلًا لَهٗ عَلٰى نَظَائِرِهٖ

د دې دوو نه او هغه چې ګرځولي وو هغوي اسم معرب غیر منصرف دوجې د حمل د هغې نه په خپلو مذاهبو سره

مَعَ عَدَمِ الْاِحْتِيَاجِ اِلَيْهِ لِتَحَقُّقِ السَّبَبَيْنِ لِمَنْعِ الصَّرْفِ الْعَلَمِيَّةِ وَ التَّانِيْثِ فَاعْتِبَارُ الْعَدْلِ

د عدم احتیاج نه دې ته خکه چې ثابت شو دوه سببونه د غیر منصرف چې علمیت او تانیث دي پس اعتبار د عدل

فِيْهِ اِنَّمَا هُوَ لِلْحَمْلِ عَلٰى نَظَائِرِهٖ لَا لِتَحْصِيْلِ سَبَبِ مَنْعِ الصَّرْفِ.

په هغې کې دا د وجې د حمل د هغې نه په خپلو نظائرو باندې نه د وجې د حصول د سبب د غیر منصرف نه.

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافیې د عدل اقسام بیانوي عدل په دوه قسمه دي : (۱) عدل تحقیقي (۲) عدل تقدیري

(۱) **عدل تحقیقي** هغه ته وایي چې موجود وي دلیل په وجود د اصل سره په غیر د منع صرف .

(۲) **عدل تقديري** هغه ته وايي چې موجود نه وي دليل په وجود داصل سره په غير دمنع صرف

**اغراض د جامي** : فاحد السببين فيها العدل: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال** : دامنم چې دامعدول شي دجمع نه ځكه فعلي صفتي جمع كيږي په فعل سره نو په جمع كې هم وصف اوعلميت دي خو دانه منم چې معدول دجماع يا جماعاوات نه ځكه چې اسمي وي بيا په دغه وزن سره جمع كيږي اوجمع كې خو وصفيت دي .

**جواب** : شارح جواب كوي چې په اصل وضع كې خو وصف دي خو وروستو په استعمال كې بيا غلبه داسميت پرې راغلې ده اوغلبه داسميت په وصفيت باندې وصفيت ته نقصان نه رسوي خو چې په اصلِ وضع كې وصف وي .

وفي جمع واخواته: په دې عبارت سره شارح اشاره كوې دې خبرې ته چې لكه څنګه جمع كتع بتع بصع غير منصرف دي همدارنګې ددوي مفرد مذكر هم غير منصرف چې اجمع اكتع الخ دي په دې كې يو سبب وصف اوبل وزن فعل دي .

وعلى ما ذكرنا لا يرد جموع الشاذة: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : مخكې تا وويل چې په آخر كې عدل دي ځكه تا ويلې چې په اسم تفضيل كې قاعده داده چې دابه مستعمله وي په يود طرق ثلاثو سره اودلته نه دي مستعمل شوي نو معلومه شوه چې دامعدول دي دالاخر يا اخر من نه نو همدارنګې اقوس او انيب كې هم عدل معتبر كړه ځكه دغه وزن قوس او ناب جمع كيږي په افعال يعني اقواس او انياب سره اودلته نه وو جمع شوې نو معلومه شوه چې دا اقوس اوانيب معدول دي د اقواس او انياب نه .

**جواب** : اقوس اوانيب داجموع شاذه دي اوداعدم جمع والې داقوس اوانيب په اقوس اوانياب سره دا دليل دي دپاره دشاذوالي اوس كه چيرته دادليل شي دپاره دعدل نو بيا به دشاذوالي د پاره څه قاعده اودليل پاتې نه شي .

اوتقدير اى خروجا كائناً عن اصل مقدر: په دې عبارت سره شارح د تقديراً دنصب وجه بيانوي اودې په ضمن كې دمشهورينو ددليل نه جواب هم كوي .

نو وايي چې دامنصوب دي بناء بر مفعول مطلق نو په دې باندې يو سوال وارديږي :

**سوال** : چې مفعول مطلق خو دې ته وایي چې فعل مشتمل وي په ده باندې دقبیلې داشتمال دکل نه په جزء باندې نو خروجه خو مشتلم دې په خروجاً باندې نه په تحقیقاً .

**جواب** : نو دې جواب کوي چې دامفعول مطلق دې بناء برموصوف محذوفه سره تقدیر دعبارت داسې دي چې **خروجه خروجا تحقیقا محققا یا عن اصل محقق** ، نو په دې باندې بیا یو سوال راځي

**سوال** : تاوویل چې مفعول مطلق دې ته وایي چې فعل مشتمل وي په ده باندې دقبیلې د اشتمال د کُل نه په جزء باندې نو خروج خو فعل نه دې بلکه مصدر دې ، یاخروجه هم مصدر دي او **خروجاً** هم مصدر دي نو **احد المصدرین** مستدرک اوبلا فائدې شو

**جواب** : په خروجه کې دغه مصدر ، مصدر عامله دي اومصدر عامله دامؤل وي په تاویل د ان سره دفعل نه نو خروجه په معنی د ان **یخرج** سره دي .

**یکون الداعي** : په دې عبارت سره شارح داصل مقدر معنی بیانوي چې په وجود داصل باندې په غیر دمنع صرف نه بل دلیل نه وي موجود دغې ته اصل مقدر وایي ، په دې باندې یو سوال راځي :

**سوال** : عدل تقدیري ددریو وجوهو نه مقدر کولې شي یو داچې دپاره دمنع صُرف ، بل داچې سبب ثاني نه وي ، بل دا چې سبب ثاني وي خو صلاحیت دمنع صرف نه لري تا اولنې ذکر کړو اودا نور دوه دې پریخودل .

**جواب** : دا اولني یو وجودي دي اوثاني دوه داعدمي دي اوسبب نسبت وجودي ته اولی وي په نسبت سره عدمي ته .

**فانها** : **عمر** او **زفر** دا غیر منصرف دي ځکه چې دا کله وموندل شول په کلام دعربو کې غیر منصرف اوموجود نه وو په کې سبب ظاهر په غیر دعلمیت نه نو مونږه په کې معتبر کړو عدل .

**ولما توقف** : هر کله چې اعتبار دعدل داموصوف وو په وجود داصل اوپه وجود داصل باندې په **عمر** او **زفر** کې دلیل نه وو په غیر دمنع صرف نه نو فرض کړې شوه په کې داخبره چې اصل ددوي عامر او زافر دي اودا دواړه معدول دي د **عامر** او **زافر** نه **عمر** او **زفر** ته .

**ومثل باب قطام في لغة بني تمیم** : شارح قید د **مثل** ولړولو اشاره یې وکړه دې خبرې ته چې په **عمر** کې عدل معتبر کړې شوې وو دپاره دغیر منصرف والې اوپه باب د**قطام** کې معتبر شوې دي

عدل خو حملاً على نظائره چې هغه نظائر حضار او طمار دي

المعدولة عن قاطمة : په دې عبارت سره شارح بيان داصل د قطام کوي قطام دامعدول دي د قاطمة څخه . په دې يو سوال راځي

**سوال** : قاطمة دې وويل په غير د تاء بـه دې ويلې يعنې عن قاطم لکه عمر چې معدول دي د عامر نه

**جواب** : قطام داعلم دښځې دي په کار ده چې معدول عنه يې هم مؤنث شي په خلاف دعمر څکه داعلم دمذکر دي .

واراد ببابها : په دې عبارت سره شارح بيان دباب د قطام کوي عدل به معتبر کولې شي په هر هغه فعال وزن کې چې علم وي دپاره داعيان مؤنثو په غير د ذوات الراء بالاتفاق مبني وي .

**قاعده** : فعال دا په څلور قسمه دي

(۱) فعال چې اسم فعل وي لکه نزال دابه مبني وي بالاتفاق .

(۲) چې صفت دپاره دمؤنثو وي لکه فساق په معنى د فاسقة سره .

(۳) چې علم وي دپاره دمعنى مصدري لکه فجار په معنى د فجور يا فجرة سره .

دا دوه قسمه به هم مبني وي دوجه دمشابهت دنزال نه وزنا هم اوعدلاً يعنې ددواړو وزن هم يوشان دي او په نزال کې هم عدل شوې دي اوپه دې دواړو کې هم .

(۴) قطام دابه مبني وى په نزد د حجازيينو اومعرب اومعرب دي په نزد دبنو تميمو

**قاعده** : عدل دڅلورو وجوهو نه معتبر کولې شي .

(۱) دوجې دغير منصرف والې څخه لکه په عمر کې .

(۲) دپاره دبناء لکه حضار او طمار په دې کې دوه سببه دي يو علميت اوبل پـه کـې تانيث دي خو دسببينو دوجې نه يو اسم مبني نه گرځي نو مونږ په کې علميت معتبر کړو چې دامعدول دي د احضر اود اثمر نه نو هغه مبني وو نو داهم مبني شو .

(۳) عدل معتبر کولې شي دوجې دحمل نه په نظائرو باندې لکه په قطام کې نو دامعدول دي د قاطمة نه دا څکه چې داحمل دي په حضار اوطمار باندې

(۴) عدل معتبر کولې شي دپاره دمبالغې لکه نزال د:معدول دي دانزل نه د انزل معنى ده چې راکوز شه اود نزال معنى ده بار بار راکوز شه .

| |
|---|
| وَ لِهٰذَا يُقَالُ ذِكْرُ بَابِ قَطَامِ هٰهُنَا لَيْسَ فِيْ مَحَلِّهٖ لِاَنَّ الْكَلَامَ فِيْمَا قُدِرَ |
| ددې وجې نه ويلې شي ذكر دباب دقطام دلته نه دی په خپل محل حكه كلام په هغه كې وو چې كوم مقدروي په |
| فِيْهِ الْعَدْلُ لِتَحْصِيْلِ سَبَبِ مَنْعِ الصَّرْفِ وَ اِنَّمَا قَالَ فِيْ تَمِيْمٍ لِاَنَّ الْحِجَازِيِّيْنَ يَبْنُوْنَهٗ |
| هغې كې دپاره دحصول دسبب دغير منصرف اووو ا صنف في تميم حكه چې حجازين مبني گرخوي دغه اسم |
| فَلَا يَكُوْنُ مِمَّا نَحْنُ فِيْهِ وَالْمُرَادُ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ اَكْثَرُهُمْ فَاِنَّ الْاَقَلِّيْنَ مِنْهُمْ لَمْ يَجْعَلُوْا |
| اومونږ بحث نه كوو دهغې نه اومراد د بني تميم نه اكثر ددوي دي حكه چې اقل د هغوي نه دي گرحولي اسماء |
| ذَوَاتِ الرَّاءِ مَبْنِيَّةً بَلْ جَعَلُوْهَا غَيْرَهٗ مُنْصَرِفَةً فَلَا حَاجَةَ اِلٰى اِعْتِبَارِ الْعَدْلِ فِيْهَا التَّحْصِيْلُ |
| ذوات الراء مبني بلكې گرخولې غير منصرف پس ضرورت نشته اعتبار دعدل ته په هغې كې دوجې دحصول د |
| سَبَبُ الْبِنَاءِ وَ حَمْلُ مَا عَدَاهَا عَلَيْهَا. |
| سبب دبناء نه اوحمل دماسوى وو په هغې باندې |

**اغراض دجامي** : <u>ولهذا يقال</u> : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال** : باب قطام ته څه ضرورت نه وو ځكه زمونږ بحث په هغه عدل كې دی چې دغير منصرف كيدو دوجې نه راغلې وي .

**جواب** : باب قطام راوړلو كښاشاره ده دې خبرې ته چې عدل يواځې دغير منصرف والي دوجې څخه نه راځي بلكه دوجې دحمل نه په نظائرو هم راځي .

<u>وانما قال في تميم</u> : په دې عبارت سره شارح اشاره كوي اختلاف ته : د بنو تميم قيد يې ځكه ولږولو چې حجازيين باب د قطام مبني گرځوي اوزمونږ بحث په معرب كې دی چې غير منصرف دي ، مراد اكثر بنو تميم دي ځكه اقل وايي چې حضار او تمار غير منصرف دي نو عدل په كې معتبر نه شو دپاره دتحصيل دبناء اوقطام كې هم دعدل اعتبار كولو ته حاجت پاتې نه شو ځكه داخو حمل وو په حضار او تمار نو په هغې كې عدل نه وو نو په قطام كې هم عدل نشته .

## وصف:

| |
|---|
| اَلْوَصْفُ وَ هُوَ كَوْنُ الْاِسْمِ دَالًّا عَلٰى ذَاتٍ مُبْهَمَةٍ مَاْخُوْذَةٍ مَعَ بَعْضِ صِفَاتِهَا سَوَاءٌ |
| وصف اوداكيدل داسم دي چې دال وي په ذات مبهمه باندې چې ماخوذوي سره دبعضې صفاتوبرابره خبره ده |
| كَانَتْ هٰذِهِ الدَّلَالَةُ بِحَسْبِ الْوَضْعِ مِثْلُ اَحْمَرَ فَاِنَّهٗ مَوْضُوْعٌ لِذَاتٍ مَا اُخِذَتْ مَعَ بَعْضِ صِفَاتِهَا |
| كه دادلالت په اعتبار دوضع سره وي لكه احمرچې داموضوع ده دپاره ديوذات چې اراده شوې سره دبعضې صفاتو |

| |
|---|
| اَلَّتِيْ هِيَ الْحُمْرَةُ اَوْ بِحَسْبِ الْاِسْتِعْمَالِ مِثْلُ اَرْبَعٍ فِيْ مَرَرْتُ بِنِسْوَةٍ اَرْبَعٍ فَاِنَّهُ مَوْضُوْعٌ |
| چې هغه حمرت دي یاپه اعتبار د استعمال سره وي لکه اربع په مررت بنسوة اربع کې خکه چې دا موضوع دی د |
| لِمُرْتَبَةٍ مُعَيَّنَةٍ مِنْ مَرَاتِبِ الْعَدَدِ فَلاَ وَصْفِيَّةَ فِيْهِ بِحَسْبِ الْوَضْعِ بَلْ قَدْ تَعْرُضُهُ |
| مرتبې معینې دپاره دمراتبو دعدد نه پس وصفیت نشته به دې کې په اعتبار دوضع سره بلکې راخي دې ته کله |
| الْوَصْفِيَّةُ كَمَا فِي الْمِثَالِ الْمَذْكُوْرِ فَاِنَّهُ لَمَّا اُجْرِيَ فِيْهِ عَلَى النِّسْوَةِ الَّتِيْ هِيَ مِنْ قَبِيْلِ الْمَعْدُوْدَاتِ |
| وصفیت په مثال مذکوره کې پس کله چې جاري شو په دې باندې په هغه نسوو کې چې هغه دقبیلې دمعدوداتو |
| لَا الْاَعْدَادِ عُلِمَ اَنَّ مَعْنَاهُ مَرَرْتُ بِنِسْوَةٍ مَوْصُوْفَةٍ بِالْاَرْبَعِيَّةِ وَ هٰذَا مَعْنًى وَصْفِيٌّ |
| نه وي نه د عاداتو نه نو معلومه شوه چې معنی د مررت بنسوة موصوف ده په اربع سره اودا معنی وصفي ده چې |
| عَرَضَ لَهُ فِي الْاِسْتِعْمَالِ لَا اَصْلِيٌّ بِحَسْبِ الْوَضْعِ الْمُعْتَبَرِ فِيْ سَبَبِيَّةِ مَنْعِ الصَّرْفِ هُوَ الْوَصْفُ الْاَصْلِيُّ |
| پیش شوه دې ته په استعمال کې نه په اعتبار داصل وضع سره او معتبر په سببیت دمنع صرف کې وصف اصلي |
| لِاِصَالَتِهٖ لَا الْعَرْضِيُّ لِعَرْضِيَّتِهٖ فَلِذٰلِكَ قَالَ الْمُصَنِّفُ رَحِمَهُ اللّٰهُ. |
| دي دوجې داصل والي دهغې نه. نه عارضي دوجې دعروض دهغې نه ددې وجې نه وویل مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره صاحب دکافیې د وصف تعریف کوي.

**اغراض د جامي**: <u>الوصف وهو کون الاسم دالا علی ذات مبهمة مأخوذة مع بعض الخ</u>: په دې عبارت سره شارح تعریف دوصف کوي، اوبل په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: چې شمارل ستا وصف داسبابو دمنع صرف نه صحیح نه دي خکه وصف موصوف غواړي یاداعارض دي معرض غواړي نو دا خو ذات مع الوصف شو او نور اسباب داصرف صفات دي.

**جواب**: شارح جواب ورکړو په کون الاسم سره چې کون مصدر دي اومصدر صرف صفت وي.

<u>سواء کانت الدلالة</u>: په دې عبارت سره شارح دوصف اقسام بیانوي: وصف په دوه (۲) قسمه دي: یو هغه وصف چې واضع وضع کړې وي دپاره دوصف په اصل کې.

<u>مثل احمر فانه موضوع لذات ما</u>: په دې عبارت سره شارح توضیح بالمثال کوي چې په ذات کې تنوین دپاره دتعمیم دي یعني هر یو ذات چې وي او مانکره دپاره دتاکید ددغه تعمیم ده لکه احمر دا ذات من له الحمرة ته وایي.

<u>او بحسب الاستعمال</u>: په دې عبارت سره شارح بل قسم دوصف ذکر کوي، یا به په اصل وضع کې وصف نه وي بلکه په استعمال کې به په کې وصفیت راغلې وي لکه اربع شو په دې ترکیب

کې چې مررت بنسوة اربع په اصل کې د دې وضع دپاره دتعين دمرتبې معينې دعدد دپاره شوې ده چې مافوق الثلاثة او ماتحت الخمسة ده په دې ترکيب کې چونکه نسوة معدودات دي اعداد نه دي نو دا اربع صفت دي اى مررت بنسوة موصوفة بالاربعية اودا معنی وصفي ده چې عارضه شوې ده نسوة ته په استعمال کې

والمعتبر: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: چې وصف په دوه قسمه شو نو معتبر په کې کوم يو دي ؟

**جواب**: چې معتبر په کې وصف اصلي دي دوجې دقوت نه.

فلذلک قال المصنف: دلته يوه خارجي فائده ذکر کوو اوهغه داچې ماقبل د فلذلک اود من ثم نه دليل لمي وي اومابعد د دې نه دليل اني وي اودليل لمي دې ته وايي چې دليل ونيسي دجانب د علت نه په وجود دمعلول باندې لکه ته اور ووينې او ووايي چې دلته لوګي شته خو دا دشپې او دليل اني دې ته وايي چې دليل ونيسي دجانب دمعلول نه په وجود دعلت باندې لکه دورخې لوګي ووينې اوته ووايي چې دلته به اور هم وي نو وايي چې د انصرف نه عدم انصرف ته اړول داسبب قويه غواړي اوسبب قويه هغه وصف دي چې په اصلِ وضع کې وصف وي نو وصف عرضي معتبر نه دي اودې نه وروستو وايي چې شرط ورلره دادې چې په اصلِ وضع کې به وصف وي علت ورلره سبب قويه دي نو دليل اني شو.

## دوصف شرط:

| |
|---|
| شَرْطُهُ اَىْ شَرْطُ الْوَصْفِ فِيْ سَبَبِيَّةِ مَنْعِ الصَّرْفِ اَنْ يَّكُوْنَ وَصْفاً فِي الْاَصْلِ الَّذِيْ هُوَ الْوَضْعُ بِاَنْ يَّكُوْنَ |
| شرط د دې يعنې شرط د وصف په سببيت د منع صرف چې وي به وصف په اصل کې چې هغه وضع ده چې وي |
| وَضْعُهُ عَلَى الْوَصْفِيَّةِ لَا اَنْ تَعْرُضَهُ الْوَصْفِيَّةُ بَعْدَ الْوَضْعِ فِي الْاِسْتِعْمَالِ سَوَاءٌ بَقِيَ عَلَى |
| وضع دپاره دوصفيت نه پيش کيدل دوصفيت وروستودوضع نه په استعمال کې برابره خبره ده چې باقي وي په |
| الْاَصْلِيَّةِ اَوْ زَالَتْ عَنْهُ فَلَا تَضُرُّهُ بِاَنْ تُخْرِجَهُ عَنْ سَبَبِيَّةِ مَنْعِ الصَّرْفِ الْغَلَبَةُ اَىْ |
| اصليت باندې اويانه وي نو ضرر نه رسوي دې ته چې خارج کړي دې لره دسببيت دمنع صرف نه نوغلبه يعنې |
| غَلَبَةُ الْاِسْمِيَّةِ عَلَى الْوَصْفِيَّةِ وَ مَعْنَى الْغَلَبَةِ اخْتِصَاصُهُ بِبَعْضِ اَفْرَادِهِ بِحَيْثُ |
| غلبه داسميت په وصفيت باندې اومعنی دغلبې داده چې خاص کيدل داسم دې په بعضې افرادوپورې په داسې شان |
| لَا يَحْتَاجُ فِي الدَّلَالَةِ عَلَيْهِ اِلَى قَرِيْنَةٍ كَمَا اَنَّ اَسْوَدَ كَانَ مَوْضُوْعاً لِكُلِّ مَا فِيْهِ |
| چې محتاج نه وي په دلالت کې پردې يوقرينې ته لکه څنګه چې اسود وضع وو دپاره دهغه څه چې په هغې کې |

دَ ثُمَّ كَثُرَ اسْتِعْمَالُهُ فِي الْحَيَّةِ السَّوْدَاءِ بِحَيْثُ لَا يَحْتَاجُ فِي الْفَهْمِ عَنْهُ إِلَى قَرِينَةٍ

سواد وي بيا زيات شو استعمال يې په تور مار کې په داسې شان چې احتياج نه وي په فهم کې يوې قرينې ته نو د

فَلِذَلِكَ الْمَذْكُورُ مِنِ اشْتِرَاطِ اِصَالَةِ الْوَصْفِيَّةِ وَ عَدَمِ مُضِرَّةِ الْغَلَبَةِ صُرِفَ

دغه مذکور شرط دوجې چې هغه اصالت دوصف دي او عدم مضرت دغلبې دي نو منصرف وګرځولې شو دوجې

لِعَدَمِ اِصَالَةِ الْوَصْفِيَّةِ اَرْبَعٍ فِي قَوْلِهِمْ مَرَرْتُ بِنِسْوَةٍ اَرْبَعٍ وَ امْتَنَعَ مِنَ الصَّرْفِ لِعَدَمِ

دعدم اصالت دوصف نه اربع په قول دد ي کې چې مررت بنسوة اربع منع شو دمنصرف کيدلو نه دوجې دنشتوالي

مُضِرَّةِ الْغَلَبَةِ اَسْوَدُ وَ اَرْقَمُ حَيْثُ صَارَا اِسْمَيْنِ لِلْحَيَّةِ الْاَوَّلُ لِلْحَيَّةِ السَّوْدَاءِ وَ الثَّانِيْ لِلْحَيَّةِ الَّتِيْ

دضرر دغلبې نه اسود او ارقم ګرځيدلي دواړه نومونه دپاره دمار اول دپاره دتور مار او دوهم د پاره دهغه مار چې په

فِيْهَا سَوَادٌ وَ بَيَاضٌ وَ اَدْهَمُ حَيْثُ صَارَ اِسْمًا لِلْقَيْدِ مِنَ الْحَدِيْدِ لِمَا فِيْهِ مِنَ الدَّهْمَةِ اَعْنِيْ

هغه کې تور والي او سپين والي وي او ادهم چې ګرځيدلې نوم دپاره دکړۍ داوسپنې خکه چې په دې کې دهمت يعني

السَّوَادَ فَاِنَّ هٰذِهِ الْاَسْمَاءَ وَ اِنْ خَرَجَتْ عَنِ الْوَصْفِيَّةِ لِغَلَبَةِ الْاِسْمِيَّةِ لٰكِنَّهَا بِحَسْبِ

تور والي دي پس دا اسماء اګر که خارج شوې دوصفيت نه دوجې دغلبې دا سميت نه په دې باندې ليکن په اعتبار

اَصْلِ الْوَضْعِ اَوْصَافٌ لَمْ يُهْجَرْ اسْتِعْمَالُهَا فِيْ مَعَانِيْهَا الْاَصْلِيَّةِ اَيْضاً بِالْكُلِّيَّةِ فَالْمَانِعُ مِنَ

د اصل وضعې سره اوصاف دي نه دي پريخودل شوې استعمال دد ې په معنيو اصليو کې بالکلية پس مانع د

الصَّرْفِ فِيْ هٰذِهِ الْاَسْمَاءِ الصِّفَةُ الْاَصْلِيَّةُ وَ وَزْنُ الْفِعْلِ وَاَمَّا عِنْدَ اسْتِعْمَالِهَا فِيْ مَعَانِيْهَا الْاَصْلِيَّةِ فَلَا اِشْكَالَ فِيْ

صرف نه په دغو اسماو کې صفت اصليه دي او وزن فعل او استعمال دد ې په معنيو اصليو کې اشکال نشته په

مَنْعِ صَرْفِهَا لِوَزْنِ الْفِعْلِ وَ الْوَصْفُ فِي الْاَصْلِ وَ الْحَالِ.

منع صرف دد ې کې دوجې دوزن فعل او دوصف اصلي نه او دحال نه.

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره شارح شرط دوصف ذکر کوي.

**اغراض د جامي**: شرطه: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: تا وويل چې د وجود دوصف دپاره شرط دادې چې دا به په اصلِ وضع کې وصف وي زه به درته وښائم چې وصف به وي او په اصلِ وضع کې به نه وي.

**جواب**: شارح ورکړو چې شرط دوصف دپاره دسببيت دمنع صرف دادې نه دپاره دوجود دوصف.

**ان يكون وصفا في الاصل**: په وصفاً سره شارح اشاره کوي ترکيب ته چې في الاصل دکان پاره اسم دي او وصفا محذوف ورلره خبر دي.

الذي هو الوضع: په دې عبارت سره شارح معنی داصل بیانوي اوهغه داچې معنی داصل وضع ده.

بأن يكون وضعه: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي بیان دمتن ته او وایي چې ددغه وصف وضع به دوصفیت دپاره شوې وي داسې نه چې وضع دوصفیت دپاره نه وي شوې خو په استعمال کې وصفیت ورته عارض شوې وي په وصف اصلي کې بیا برابره خبره ده چې وصفیت په کې باقي وي اوکه ترې نه زائل شوې وي

فلا تضره: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: چې ته وایي چې غلبه داسمیت په وصفیت باندې وصفیت ته نقصان نه رسوي ولې یې نه رسوي مخکې عام وو او وروستو دغلبې داسمیت نه خاص شو.

**جواب**: مراد زمونږ خاص ضرر دي هغه داچې دغه وصف دسببیت دمنع صرف نه خارج نه کړي.

الغلبة: په دې عبارت سره شارح تعین دالف لام کوي چې په الغلبة کې الف لام عوضي دي چې عوض دي دمضاف اليه نه یعني غلبة الاسمية.

ومعنى الغلبة: دغلبې معنی ده چې دغه اسم خاص شي په بعضې افرادو ددغه اسم پورې په داسې شان چې په دلالت کې په دغه خاص اسم باندې قرینې ته ضرورت نه وي لکه اسود چې د مطلق تورڅيز دپاره وضع شوې دي بیا ددې استعمال په تور مار کې داسې زیات شو دي چې په فهمیدلو ددغه مار کې ددغه اسود نه قرینې ته ضرورت نشته.

فلذلك: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: مخکې دوه خبرې ذکر دي: یو اصالة في الوصفية او بل عدم ضرر دغلبې، نو که ذلک یو ته راجع کوي نو بل پاتې کیږي اوکه دواړو ته یې راجع کوي نو بیا مطابقت نه راځي په مینځ داشارې اودمشار اليه کې

**جواب**: ذلک مذکور ته راجع دي نو په مذکور کې دواړه راغلل

وامتنع: شارح اشاره کوي وجهې دامتناع ته چې غلبه داسمیت ... صفیت باندې وصفیت ته ضرر نه رسوي نو اسود او ارقم غیر منصرف شو

اسود وارقم للحية په حيث صار اسمين سره شارح اشاره کوي متعلق دللحية ته مخکښې اسود تو ځيز ته او ارق برګ ځيز ته ويل کيده نو وروستو اسود دتور ار دپاره نوم کيخودلې شو او ارقم دبرګ مار دپاره

<u>للقيد</u>: شارح اشاره کوي معنی دقيد ته چې داد اوسپنې هاتهـ کړئ ته وايي اوتطبيق دمثال کوي دممثل سره په داسې شان سره چې ادهم د دهمة څخه دي او دا توروالي ته وايي بيا وروستو دهاتهـ کړو دپاره نوم کيخودل شو ځکه چې په دې کې هم تور والي وي ، نو په دغه مذکورو اسماو کې سببين يو وزن فعل اوبل وصف اصلي دي اوکه چيرته دغه اسماء په وصف اصلي کې مستعمل شي نو بيا خو هيڅ اشکال نشته يو به په کې وصف حالي اوبل وزن فعل وي په کې اوکه غلبه داسميت په کې راشي نو بيا به په کې يو وصف اصلي اوبل وزن فعل وي .

| |
|---|
| وَ ضَعُفَ مَنْعُ اَفْعٰی اِسْمًا لِلْحَيَّةِ عَلٰی زَعْمِ وَصْفِيَّةِ لِتَوَهُّمِ اِشْتِقَاقِهِ |
| اوضعيف دي غير منصرف کيدل دافعی چې نوم شي دپاره دمار په ګمان دوصفيت ددې دوجې د توهم د اشتقاق |
| مِنَ الْفَعْوَةِ الَّتِيْ هِيَ الْخُبْثُ وَ كَذٰلِكَ مَنْعُ اَجْدَلُ لِلصَّقْرِ عَلٰی زَعْمِ وَصْفِيَّتِهِ |
| ددې دفعوة نه چې په معنی دخبث سره همدارنګې غير منصرف کيدل اجدل دباز دپاره په ګمان دوصفيت ددې |
| لِتَوَهُّمِ اشْتِقَاقِهِ مِنَ الْجَدْلِ بِمَعْنَی الْقُوَّةِ وَ اَخْيَلُ لِلطَّائِرِ اَیْ لِطَائِرٍ ذِیْ خَيَلَانٍ |
| دوجې دتوهم داشتقاق دجدل نه په معنی دقوت سره اواخيل دمارغه دپاره يعنې هغه مارغه چې خاوند دخالونو |
| عَلٰی زَعْمِ وَصْفِيَّتِهِ لِتَوَهُّمِ اشْتِقَاقِهِ مِنَ الْخَالِ وَ وَجْهُ ضُعْفِ مَنْعِ الصَّرْفِ فِيْ هٰذِهِ الْاَسْمَاءِ |
| وي په ګمان دوصفيت ددې دوجې دتوهم داشتقاق ددې دخال نه اووجه دضعف دمنع صرف په دغه اسماو کې |
| عَدَمُ الْجَزْمِ بِكَوْنِهَا اَوْصَافاً اَصْلِيَّةً فَاِنَّهَا لَمْ يَقْصُدْ بِهَا الْمَعَانِي الْوَصْفِيَّةَ مُطْلَقاً لَا |
| عدم يقين په کيدلو ددې دي صفات اصليه ځکه چې نه دي قصد شوې په دې سره معاني اصليه بالکل نه |
| فِي الْاَصْلِ وَلَا فِي الْحَالِ مَعَ اَنَّ الْاَصْلَ فِي الْاِسْمِ الصَّرْفُ. |
| په اصل کې اونه په حال کې سره ددې نه چې اصل په اسم کې منصرف دي |

**اغراض دجامي** : <u>وضعف منع افعیٰ للحية</u>: چا ويلي چې افعیٰ دفعوة نه دي اودا خباثت ته وايي دګنجي مار دپاره نوم وګرځولې شو ځکه داهم خبيث مار دي .

<u>اجدل للصقر</u>: چا ګمان کړې وو چې اجدل مشتق دي دجدل نه او داقوت ته وايي بيا وروستو د باز دپاره نوم کيخودل شو ځکه دا هم قوي وي .

<u>واخيل للطائر</u>: چا ګمان کړې چې اخيل دخيلان څخه دي اودا خال ته وايي بيا دهغه مارغه نوم

کيخودلې شو چې خال خال وي وجه دضعف يې يوه داده چې داخبره يقيني نه ده چې دا ددغو اسماو ځخه مشتق دي اوپه اصلِ وضع کې وصف وو

**سوال** : اصالة في الوصفيت يې ضعيف شو يعنې غير منصرف والې يې ضعيف شو نو انصراف يې هم ضعيف شو نو ته يې منصرف کوي ځنګه منصرف والې اوعدم انصراف په کې على السويه وګرځوه .

**جواب** : چې دليل موجود دي په انصراف ځکه چې هر کله په کې دواړه برابر وو نو اصل په اسماو کې انصراف وو نو مونږ منصرف کړو .

اَلتَّانِيْثُ اللَّفْظِيُّ الْحَاصِلُ بِالتَّاءِ لَا بِالْاَلِفِ فَاِنَّهٗ لَا شَرْطَ لَهٗ شَرْطُهٗ فِيْ سَبَبِيَّةِ

تانيث لفظي چې حاصل وي په تاء سره نه په الف سره ځکه چې د هغې د پاره شرط نشته شرط يې په سببيت د

مَنْعِ الصَّرْفِ الْعَلَمِيَّةُ اَیْ عَلَمِيَّةُ الْاِسْمِ الْمُؤَنَّثِ لِيَصِيْرَ التَّانِيْثُ لَازِماً لِاَنَّ الْاِعْلَامَ

منع صرف کې علميت دي يعنې علميت د اسم مؤنث چې وګرځي تانيث لازم د هغې د پاره ځکه چې اعلام

مَحْفُوْظَةٌ عَنِ التَّصَرُّفِ بِقَدْرِ الْاِمْكَانِ وَلِاَنَّ الْعَلَمِيَّةَ وَضْعٌ ثَانٍ وَ كُلُّ حَرْفٍ وُضِعَتِ الْكَلِمَةُ عَلَيْهِ

محفوظ دي دتسلط نه په قدر دامکان سره اوياعلميت وضعه ثاني ده اوهرحرف چې وضع شي کلمه ددې د

لَا يَنْفَكُّ عَنِ الْكَلِمَةِ وَ التَّانِيْثُ الْمَعْنَوِيُّ كَذٰلِكَ اَیْ لَا لِتَانِيْثِ اللَّفْظِيِّ بِالتَّاءِ فِيْ اِشْتِرَاطِ الْعَلَمِيَّةِ

پاره نه جدا کيږي دهغې نه کلمه تانيث معنوي په تاءدتانيث لفظي دي په تاء سره په شرط کولو د علميت سره

فِيْهِ اِلَّا اَنَّ بَيْنَهُمَا فَرْقاً فَاِنَّهَا فِي التَّانِيْثِ اللَّفْظِيِّ بِالتَّاءِ شَرْطٌ

په دې کې مګر په مينځ ددواړو کې فرق شته ځکه چې تانيث په تانيث لفظي کې په تاء سره شرط دي دپاره د

لِوُجُوْبِ مَنْعِ الصَّرْفِ وَ فِي الْمَعْنَوِيِّ شَرْطٌ لِجَوَازِهٖ فِيْ وُجُوْبِهٖ مِنْ

وجوددمنع صرف اوپه معنوي کې شرط دي دپاره دجواز دمنع صرف اوضروري ده په وجوب دمنع صرف کې د

شَرْطٍ آخَرَ كَمَا اَشَارَ اِلَيْهِ بِقَوْلِهٖ وَ شَرْطُ تَحَتُّمِ تَاْثِيْرِهٖ

شرط آخر نه لکه ځرنګې چې اشاره کړي ده دې ته مصنف په دې قول سره چې شرط دوجوب دتأثير دتانيث

اَیْ شَرْطُ وُجُوْبِ تَاْثِيْرِ التَّانِيْثِ الْمَعْنَوِيِّ فِيْ مَنْعِ الصَّرْفِ اَحَدُ الْاُمُوْرِ الثَّلٰثَةِ الزِّيَادَةُ عَلَى الثَّلٰثَةِ اَیْ زِيَادَةُ حُرُوْفِ

يعنې شرط دوجوب دتاثير معنوي په منع صرف کې يودامورو ثلاثونه دي زيادت په دريو يعنې زيادت دحروفو

الْكَلِمَةِ عَلٰى ثَلٰثَةٍ مِثْلُ زَيْنَبَ اَوْ تَحَرُّكِ الْحَرَكِ الْاَوْسَطِ مِنْ حُرُوْفِهَا الثَّلٰثَةِ مِثْلُ سَقَرَ اَوِ الْعُجْمَةُ مِثْلُ مَاهَ وَ جُوْرَ وَ

دکلمې په ثلاثو لکه زينب ياحرکت دحرف اوسط ددې درې حروفونه لکه سقر ياعجمه ده لکه ماه وجور اوپه

اِنَّمَا اشْتُرِطَ فِيْ وُجُوْبِ تَاْثِيْرِ التَّانِيْثِ الْمَعْنَوِيِّ اَحَدُ الْاُمُوْرِ الثَّلٰثَةِ لِيُخْرِجَ الْكَلِمَةَ بِثِقْلٍ

تحقيق سره شرط کړې شو په وجوب دتاثير دتانيث معنوي کې يودامور ثلاثو دې دپاره چې خارج شي کلمه دثقل

الْأُمُوْرِ الثَّلٰثَةِ عَنِ الْخِفَّةِ الَّتِيْ مِنْ شَاْنِهَا اَنْ تُعَارِضَ ثِقْلُ اَحَدُ السَّبَبَيْنِ فَتَزَاحَمَ تَاْثِيْرَهُ

ديو دا امور ثلاثو نه هغه خفت نه چې دشان دهغې نه معارض دی ثقل ديو دسببينو نه پس مقابل شو دهغې دتأثير

وَ ثِقْلُ الْاَوَّلَيْنِ ظَاهِرٌ وَ كَذَا الْعُجْمَةُ لِاَنَّ لِسَانَ الْعَجَمِ ثَقِيْلٌ عَلَى الْعَرَبِ فَهِنْدٌ يَجُوْزُ صَرْفُهُ

سره اوثقل داولينو ظاهر دي همدارنګې عجمه ځکه چې لسان دعجمو ثقيل دي په عربو پس هند جائز ده منصرف

نَظَرٌ إِلَى اِنْتِقَاءِ شَرْطِ تَحَتُّمِ تَاْثِيْرِ التَّانِيْثِ الْمَعْنَوِيِّ اَعْنِيْ اَحَدُ الْاُمُوْرِ الثَّلٰثَةِ.

کيدل ددی په نظر سره انتفاء دشرط دحتموالي دتاثير دتانيث معنوي يعنې يو ددريو امورو

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره شارح دتانيث لفظي تعريف کوي .

**اغراض دجامي** : التانيث اللفظي بالتاء: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي.

**سوال** : تا وويل چې التانيث بالتاء اومعنوي به هم همدرنګې وي تا تانيث بالتاء مقابل دمعنوي وګرځولو او دلته تقابل نه صحيح کيږي ځکه کله ناکله ظهور د تاء په تانيث معنوي کې هم کيږي .

**جواب** : مراد د تانيث بالتاء نه تانيث لفظي مراد دي اومعنوي په شان دلفظي دي خوبه شرط دعلميت کې .

الحاصل بالتاء : دلته شارح الحاصل صفت راوويستو نه حال ددې وجه داده چې تانيث لفظي سبب دمنع صرف دي اودا په حقيقت کې فاعل وي نو دې دپاره يې الحاصل مناسب دي .

لا بالالف: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې دا بالتاء قيد احترازي دي په دې سره احتراز راغې دالف مقصوره او ممدوده نه ځکه چې په هغې کې دا شرط نشته ځکه هغه لازم دي داسم سره .

شرطه في سببية منع الصرف: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي .

**سوال** : ته وايې چې شرط دپاره دتانيث هغه علميت دي زه به درته وښائم چې تانيث به په کې موجود وي اوعليمت به په کې نه وي لکه امرأة .

**جواب** : شرطيت دعليمت دادپاره دوجود دتانيث نه دي بلکې دپاره دسببيت دمنع صرف علميت شرط دي .

العلمية اى علمية اسم المؤنث: په دې عبارت سره شارح په العلمية کې کې دالف لام تعين کوي چې په العلمية کې الف لام ياعوض دي دمضاف اليه نه اويادا الف لام عهدِ خارجي دي معهود

په دې سره هغه علميت د اسم مؤنث دي

ليصير التأنيث لازما : علميت ورلره ځکه شرط دي چې دا تانيث لازم وګرځي د دغه علم سره ځکه اعلام محفوظ وي د تغير نه

بقدر الامکان : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال** : ته وايي چې اعلام محفوظ وي د تغير نه زه به درته وښائم چې علم به وي او تغير به په کې راغلې وي لکه په ترخيم د منادى کې لکه يا عثم .

**جواب** : اعلام محفوظ وي د تغير نه څومره چې ممکن وي

ولان العلمية : علميت د تانيث لفظي دپاره ځکه شرط وګرځولې شو چې علميت سره په کې ګويا وضع ثاني راغله او هر حرف چې وضع د کلمې راغلې وي په دغه حرف سره نو دانه جدا کيږي د کلمې نه

والتأنيث المعنوي : په دې عبارت سره شارح موصوف د المعنوي وښودلو چې التانيث موصوف دي .

اى كالتأنيث اللفظي بالتاء في اشتراط العلمية : ذکر دوجې د تشبيه د تانيث معنوي په شان د تانيث لفظي په اشتراط د علميت کې .

الا ان بينهما فرقا الخ : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : چې تانيث معنوي په شان د تانيث لفظي دي نو داسې به دې ويلې وي چې التانيث اللفظي والمعنوي شرطهما العلمية .

**جواب** : په تانيث لفظي او معنوي کې فرق دي په تانيث لفظي کې علميت شرط دي دپاره د وجوب د غير منصرف والې او په تانيث معنوي کې شرط دي علميت دپاره د جواز د غير منصرف والې .

ولابد في وجوبه من شرط آخر : که چيرته ته غواړې چې وجوب د غير منصرف والې راشي په تانيث معنوي کې خود هغه دپاره درې شروط دي .

وشرط تحتم تاثيره اى شرط : په دې عبارت سره شارح د تحتم معنى بيانوي او بل په تاثيره کې د ضمير مرجع متعينه کوي . نو معنى د تحتم وجوب ده ، او په تاثيره کې ضمير راجع دي تانيث معنوي ته ، په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب هم ورکوي :

**سوال** : تا کلمه د او راوړي او کلمه د او راحي دپاره دتشکیک نو ستاهم په کې شک دي په مؤثر والي کې ، یا سوال داسې دي چې او کله په معنی د واو سره راځي او واو دپاره دجمع راځي نو معنی دا شوه چې کله دا دریواړه شروط په یوځای راغلل نو بیا به وجوب راشي

**جواب** : او دپاره دتنویع دي یعنې هر یو ددغه امور ثلاثو څخه جدا جدا مؤثر دي .

الزيادة على الثلاثة اى زيادة حروف الكلمة على ثلاثة : په دې عبارت سره شارح تعین دالف لام کوي په الزيادة کې چې الف لام دا عوض دي دمضاف اليه نه ، او زینب سره مثال ذکر کوي .

اوتحرک الحرف الاوسط : شارح د الحرف قید راوړو دپاره دتعین دموصوف دالاوسط ، او سقر سره مثال ذکر کوي .

مثل ماه وجور : په دې عبارت سره شارح بیان دمثال دعجمي کوي .

وانما اشترط : په دې عبارت سره شارح وجه داشتراط ددې دریو شروطو ذکر کوي چې زيادة على الثلاثة دا ثقیل دي په نسبت سره ثلاثة ته ، او تحرک الاوسط دا ثقیل دي په نسبت سره ساكن الاوسط ته ، اوعجمه داثقیله ده په نسبت سره عربي ته نو ددې دریواړو ثقل داضعیف دي په نسبت سره ثقل دسببینو ته نو دامقابله دسببینو دثقل نه شي کولې نو غیر منصرف والې دا واجب شو اوچې کله داشروط ثلاثه نه وي نو بیا خفت دامقابله دثقل دسببینو کولې شي نو بیا په غیر منصرف والي صرف جواز لري اوبس .

| وَ يَجُوْزُ عَدَمُ صَرْفِهِ نَظَرًا إِلٰى وُجُوْدِ السَّبَبَيْنِ فِيْهِ وَ زَيْنَبَ وَ سَقَرَ عَلَمًا |
|---|
| اوجائزدي غیرمنصرف کیدل یې هم په نظرسره وجوددسببینو په دې کې زینب اوسقرچې داعلم دي دپاره د |
| لِطَبَقَةٍ مِنْ طَبَقَاتِ النَّارِ وَمَاهُ وَ جُوْر عَلَمَيْنِ لِلْبَلَدَيْنِ مُمْتَنِعٌ صَرْفُهَا أَمَّا زَيْنَبُ |
| طبقي داوراوماه اوجورچې علم دي دپاره دښاروڼومنع دي منصرف کیدل ددې هرچې زینب دي نودوجې د |
| فَلِلْعَلَمِيَّةِ وَ التَّأْنِيْثِ الْمَعْنَوِيِّ مَعَ شَرْطِ تَحَتُّمِ تَأْثِيْرِهِ وَ هُوَ الزِّيَادَةُ عَلَى الثَّلٰثَةِ أَمَّا سَقَر |
| علمیت اوتانیث معنوي نه په دې کې سره دشرط دختموالي دتاثیردي چې هغه زیادت دي په دریو هرچې سقر |
| فَلِلْعَلَمِيَّةِ وَ التَّأْنِيْثِ الْمَعْنَوِيِّ مَعَ شَرْطِ تَحَتُّمِ تَأْثِيْرِهِ وَ هُوَ تَحَرُّكُ الْأَوْسَطِ وَ أَمَّا |
| دي دوجې دعلمیت اوتانیث معنوي نه سره دشرط دختموالي دتاثیردي چې هغه حرکت دحرف اوسط دي اوهر |
| مَاه وَ جُوْر فَلِلْعَلَمِيَّةِ وَ التَّأْنِيْثِ الْمَعْنَوِيِّ مَعَ شَرْطِ تَحَتُّمِ تَأْثِيْرِهِ وَ هُوَ الْعُجْمَةُ فَإِنَّ |
| چې ماه اوجوردوجې دعلمیت دتانیث معنوي نه سره دشرط د ختموالي د تاثیر د هغې چې هغه عجمه ده پس که |

| سُمِّيَ بِهِ اَىْ بِالْمُؤَنَّثِ الْمَعْنَوِيِّ مُذَكَّرٌ فَشَرْطُهُ فِيْ سَبَبِيَّةِ مَنْعِ الصَّرْفِ الزِّيَادَةُ عَلَى الثَّلٰثَةِ لِاَنَّ الْحَرْفَ |
|---|
| مسمى شي په مؤنث معنوي سره مذكرنو شرط يې په سببت دمنع صرف كې زيادت دي په دريو خكه چې حرف |
| الرَّابِعَ فِيْ حُكْمِ تَاءِ التَّانِيْثِ قَائِمٌ مَقَامَهَا فَقَدَمٌ وَ هُوَ مُؤَنَّثٌ مَعْنَوِيٌّ سِمَاعِيٌّ بِاِعْتِبَارِ مَعْنَاهُ الْجِنْسِيِّ |
| رابع په حكم دتانيث كې قائم دي په مقام دتانيث پس قدم مؤنث معنوي سماعي دي په اعتبار د معنوى جنسي |
| اِذَا سُمِّيَ بِهِ رَجُلٌ مُنْصَرِفٌ لِاَنَّ التَّانِيْثَ الْاَصْلِيَّ زَالَ بِالْعَلَمِيَّةِ لِلْمُذَكَّرِ مِنْ غَيْرِ |
| سره چې كله مسمى شي پرې سړي اومنصرف دي خكه چې تانيث اصلي ختم شو په علميت سره مذكرته غير |
| اَنْ يَقُوْمَ شَيْءٌ مَقَامَهُ وَ الْعَلَمِيَّةُ وَحْدَهَا لَا يَمْتَنِعُ الصَّرْفِ وَ عَقْرَبٌ وَ هُوَ مُؤَنَّثٌ مَعْنَوِيٌّ |
| ددې نه چې قائم شي شئ آخر په مقام ددې اوعلميت خان ته كافي نه دي دمنع صرف دپاره عقرب مؤنث معنوي |
| سِمَاعِيٌّ بِاِعْتِبَارِ مَعْنَاهُ الْجِنْسِيِّ اِذَا سُمِّيَ بِهِ رَجُلٌ مُمْتَنِعٌ صَرْفُهَا لِاَنَّهُ |
| سماعي دي په اعتبار دمعنوى جنسي سره چې كله مسمى شي پرې سړي جائز نه دي منصرف كيدل ددې خكه |
| وَ اِنْ زَالَ التَّانِيْثُ بِعَلَمِيَّتِهِ لِلْمُذَكَّرِ فَالْحَرْفُ الرَّابِعُ قَائِمٌ مَقَامَهُ بِدَلِيْلِ اَنَّهُ |
| چې اګر كه ختم شو تانيث دوجې دعليمت نه مذكرته ليكن حرف رابع قائم دي په مقام دتانيث په دليل ددې |
| اِذَا صُغِّرَ قَدَمٌ ظَهَرُ التَّاءِ الْمَقْدُوْرَةِ كَمَا تَقْتَضِيْهُ قَاعِدَةُ التَّصْغِيْرِ فَيُقَالُ |
| چې كله تصغير وكړې شي نو خكاره شي تاء مقدره لكه ځرنګې چې مقتضي دي دقاعدې د تصغير پس ويلې |
| قُدَيْمَةٌ بِخِلَافِ عَقْرَبٍ فَاِنَّهُ اِذَا صُغِّرَ يُقَالُ عُقَيْرِبٌ مِنْ غَيْرِ اِظْهَارِ التَّاءِ لِاَنَّ |
| شي قديمة خلاف دعقرب خكه چې كله تصغير وكړې شي ويلې كيږي عقيرب په غير داظهار دتاء نه خكه چې |
| الْحَرْفَ الرَّابِعَ قَائِمٌ مَقَامَهُ فَعَقْرَبٌ اِذَا سُمِّيَ بِهِ رَجُلٌ اِمْتَنَعَ صَرْفُهُ |
| حرف رابع قائم دي په مقام دتاء پس عقرب چې كله مسمى شي په دې سره سړي نوجائزنه دي منصرف كيدل ددې |
| لِلْعَلَمِيَّةِ وَ التَّانِيْثُ الْحُكْمِيُّ. |
| دوجې دعلميت اوتانيث حكمي نه. |

**اغراض دجامي :** فهند يجوز صرفه : مخكې داخبره ذكر وه چې دتانيث لفظي دپاره علميت شرط دي اوهمدارنګه په تانيث لفظي كې خو په اول كې وجوب دمنع صرف راولي اوپه ثاني كې جواز دمنع صرف والي اوكه په تانيث معنوي كې كه غواړي چې منع صرف والې وجوبي شي نو دهغې دپاره دري شروط دي هغه شروط يې ذكر كړل اوس په هغې باندې تفريع ذكر كوي چې جائز دي صرف دهند جواز دلته په معنى دامكان خاص سره دي چې سلب دضرورت دجانبينو څخه راغلې وي يعنې انصراف اوعدام انصراف دواړه يې برابر وي

نظراً الى انتفاء شرط : په دې عبارت سره دليل ذكر كوي دپاره دانصراف منصرف والې يې خكه

جائز دي چې شرط دپاره دوجوب دمنع صرف والي دتانیث معنوي هغه شروط ثلاثه وو هغه په کې مفقود دي اوعدم انصراف یې هم جائز دي دوجې دوجود دسببینو نه چې یو علمیت اوبل تانیث معنوي دي

**وزینب وسقر وماه وجور ممتنع صرفها**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: نه وایي چې زینب او سقر او ماه جور دامتنع دي ممتنع خو نه دي بلکه موجود دي

**جواب**: مراد دامتناع نه امتناع صرفي ده نه امتناع وجودي

**اما زینب**: په دې عبارت سره شارح دلیل دغیر منصرف والې ذکر کوي زینب او سقر او ماه وجور دا غیر منصرف دي سببین په دې دریواړو کې یو علمیت اوبل تانیث معنوي دي اودوجوب دغیر منصرف والي شروط هم په کې موجود دي په زینب کې زیادة علی الثلاثة شرط شته او سقر کې تحرک الاوسط شرط شته او په ماه او جور کې شرط هغه عجمه ده .

**فان سمي به ای بالمؤنث المعنوي**: په دې عبارت سره شارح تعین دضمیر کوي د به ضمیر راجع دي مؤنث معنوي ته که چیرته مرنث معنوي دمذکر دپاره علم وګرځوي نو ددې دمنع صرف والي دپاره شرط هغه زیادة علی الثلاثة دي .

**فشرطه في سببیة منع الصرف**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال**: تا ویلي وو چې دمسمی کولو دمذکر دپاره په مؤنث معنوي سره ددې دپاره شرط هغه زیادت علی الثلاثة دي زه به درته وښائم چې زائد علی الثلاثة به نه وي اومسمی شوې به وي په دې سره مذکر لکه قدم

**جواب**: دوجود دپاره داشرط نه دي بلکه دمنع صرف والي دپاره یې بیا دا شرط دي .

**لان الحرف الرابع**: په دې عبارت سره دلیل ذکر کوي دپاره داشترط د حرف رابع ځکه حرفِ رابع داپه حکم دتاء التانیث کې دي اوقائمقام دهغه دي اوس ده زیادة علی الثلاثة معتبر کړو او هغه نور دوه یې مه بر نه کړل

**فقدم منصرف**: قدم دامنصرف دي چې کله یې علم دپاره د رجل وګرځوي ځکه تانیث خو ترې نه په علمیت سره زائل شو اودهغې قائمقام چې زیادة علی الثلاثة دي هم نشته اوصرف علمیت خو مؤثر نه ګرځي په منع دصرف کې

**وعقرب ممتنع صرفها**: عقرب دا چې کله علم وګرځولې شي دپاره درجل نو غير منصرف دي

**لانه وان زال**: په دې عبارت سره اول دليل ذکر کوي ځکه چې تانيث خو يې دعلميت دوجې نه ختم شوې ليکن حرف داقائمقام دتانيث دي .

**بدليل انه**: حرف رابع په عقرب کې ځکه قائمقام دتانيث دي چې دقدم تصغير کله راوړي نو تاء مقدره په کې ظاهريږي لکه څرنګه چې قاعده دتصغير تقاضا کوي نو قديمة ويلې شي په خلاف دعقرب ځکه ددې په تصغير کې تاء نه ظاهريږي نو معلومه شوه چې حرف رابع دا قائمقام دتانيث دي نو عقرب غير منصرف شو دوجې دتانيث معنوي اوعلميت نه

## معرفه :

| |
|---|
| اَلْمَعْرِفَةُ اَیْ التَّعْرِيْفُ لِاَنَّ سَبَبَ مَنْعِ الصَّرْفِ هُوَ وَصْفُ التَّعْرِيْفِ لَا ذَاتُ الْمَعْرِفَةِ شَرْطُهَا اَیْ شَرْطُ تَاْثِيْرِهَا فِیْ |
| معرفه يعنې تعريف ځکه چې سبب دغير منصرف وصف دتعريف دي نه ذات دمعرفې شرط دتاثير ددې په غير |
| مَنْعِ الصَّرْفِ اَنْ تَكُوْنَ عَلَمِيَّةً اَیْ كَوْنُ هٰذَا النَّوْعِ مِنْ جِنْسِ التَّعْرِيْفِ عَلٰی اَنْ يَّكُوْنَ الْيَاءُ مَصْدَرِيَّةً اَوْ مَنْسُوْبَةً |
| منصرف کې چې وي به علم يعنې کيدل ددې نوعي د جنس تعريف نه چې شي ياء مصدريه يا منسوبه |
| اِلَی الْعَلَمِ بِاَنْ تَكُوْنَ حَاصِلَةً فِیْ ضِمْنِهٖ عَلٰی اَنْ يَّكُوْنَ الْيَاءُ لِلنِّسْبَةِ وَ اِنَّمَا جُعِلَتْ مَشْرُوْطَةً بِالْعَلَمِيَّةِ |
| علم ته چې وي حاصله په ضمن دې کې اوچې وي ياء دپاره دنسبت اووګرځولې شوه معرفه مشروطه په علميت |
| لِاَنَّ تَعْرِيْفَ الْمُضْمَرَاتِ وَ الْمُبْهَمَاتِ لَا يُوْجَدُ اِلَّا فِی الْمَبْنِيَّاتِ وَ مَنْعُ الصَّرْفِ مِنْ اَحْكَامِ الْمُعْرَبَاتِ |
| سره ځکه چې تعريف دمضمراتو اومبهماتو نه موجود يږي مګر په مبنياتو کې نو غير منصرف داحکامو دمعرباتو نه |
| وَ التَّعْرِيْفُ بِاللَّامِ اَوِ الْاِضَافَةِ يَجْعَلُ غَيْرَ الْمُنْصَرِفِ مُنْصَرِفًا كَمَا سَيَجِیْءُ فَلَا يَتَصَوَّرُ |
| دي اوتعريف په لام او اضافت سره ګرځوي غير منصرف منصرف چې رابه شي ذکر ددې نو نه متصور کيږي |
| كَوْنُهٗ سَبَبًا لِمَنْعِ الصَّرْفِ فَلَمْ يَبْقَ اِلَّا التَّعْرِيْفَ الْعَلَمِیْ وَ اِنَّمَا جُعِلَ الْمَعْرِفَةُ سَبَبًا وَ |
| کيدل ددې سبب د پاره د غير منصرف پس پاتې نه شو مګر تعريف معنوي او وګرځولې شوه معرفه سبب او |
| الْعَلَمِيَّةُ شَرْطُهَا وَ لَمْ يَجْعَلِ الْعَلَمِيَّةُ سَبَبًا كَمَا جَعَلُ الْبَعْضِ لِاَنَّ فَرْعِيَّةَ |
| علميت يې شرط او وبه ګرځولې شي علميت سبب لکه څرنګې چې ګرځولې دي بعضو ځکه چې فرعيت د |
| التَّعْرِيْفِ لِلتَّنْكِيْرِ اَظْهَرُ مِنْ فَرْعِيَّةِ الْعَلَمِيَّةِ لَهٗ . |
| تعريف دپاره دتنکير داخکاره ده دپاره دفرعيت دعلميت نه تنکير ته |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب کافيه دمعرفې تعريف کوي

**اغراض دجامي** : **المعرفة ای التعريف**: په دې عبارت، سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال** : معرفه عبارت ده دهغه څیز نه چې وضع وي دپاره دذات معینه نو داخو ذات مع الوصف شو او نور اسباب دمنع صرف صفات دي فقط .

**جواب** : ذکر دمعرفې مراد ترې نه تعریف اوتعریف دا صرف وصف دي

لان سبب منع الصرف: شارح دلیل ذکر کوي چې مراد ترې نه تعریف ځکه دي چې سبب دمنع صرف هغه وصف دهمعرفه دي چې هغه تعریف دي نه ذات دمعرفې سبب دي .

شرطها اي شرط تاثیرها: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : تاوویل چې شرط دمعرفې دپاره علمیت دي زه به درته وښائم چې معرفه به وي اوعلم به نه وي لکه الرجل .

**جواب** : داشرط دپاره دوجود دمعرفې نه دي بلکه دسببیت دمنع صرف دپاره دي .

ای کون هذا النوع: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : تا وویل چې دمعرفې دپاره شرط علمیت دي نومعرفه کې خو علمیت پروت دي نو لازم شو شرطیت دشئ الی نفسه یاداچې معرفه په علمیت کې موجودیږي نو بیا خو ظرفیت د شئ الی نفسه راغلو ځکه ظرف او مظروف دواړه یو څیز دي .

**جواب** : معرفه جنس دي اومعرفه عامه ده علمیت الف لام موصولات مضمرات دا ټول په کې موجود دي نو ظرفیت یا شرطیت دخاص راغې عام لره .

وانما جعلت: دمعرفې نور اقسام مو معتبر نه کړو صرف علمیت مو معتبر کړو ځکه که د معرفې دپاره شرط مضمرات اومبهمات شي نو دا خومبني دي اوغیر منصرف خو دقبیلې د معرباتو څخه دي اوتعریف باللام اوبالاضافة خو یې شرط نه کړ ځکه چې دا خو غیر منصرف لره منصرف کوي نو صرف علمیت پاتې شو نو مونږ ورلره علمیت شرط کړو .

وانما جعل المعرفة سبباً: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي .

**سوال** : بناء دمتونو په اختصار سره وي چې په معرفه کې صرف علمیت شرط دي نو داسې وو ایه چې علمیت دا سبب دي او معرفه دا ورلره شرط دي یا داچې ستا کتاب ماخوذ دصاحب دمفصل نه هغه علمیت سبب ګرځولي اومعرفه یې ورلره شرط ګرځولې دي

**جواب** : ما معرفه سبب کره اوعلمیت یې ورلره شرط وګرځولو دپاره دیوې نکتې اوهغه داچې

اسباب دمنع صرف کې فرعيت دي اوفرعيت دمعرفې داظاهر دتنکير دپاره په نسبت سره فرعيت دعلميت ته تنکير لره ځکه تعريف دا فرعه دتنکير ده بلا واسطه ځکه اول به يو شئ نکره وي بيا به معرفه ګرځي لکه درجل نه الرجل ، او علميت دافرع دتنکير ده خو په واسطې دمعرفې سره ځکه داقسم دي دمعرفې نه اومعرفه فرعه دتنکير ده .

## عُجمه :

| |
|---|
| اَلْعُجْمَةُ وَ هِيَ كَوْنُ اللَّفْظِ مِمَّا وَضَعَهُ غَيْرُ الْعَرَبِ وَ لِتَاْثِيْرِهَا فِيْ مَنْعِ الصَّرْفِ شَرْطَانِ |
| اوعجمه داکيدل دلفظ دي چې وضع کړې دي غيردعربواوتاثيردغيرمنصرف کيدلودپاره دوه شرطونه دي |
| شَرْطُهَا الْاَوَّلُ اَنْ تَكُوْنَ عَلَمِيَّةً اَیْ مَنْسُوْبَةً اِلَى الْعَلَمِ فِي اللُّغَةِ الْعَجَمِيَّةِ بِاَنْ تَكُوْنَ مُتَحَقِّقَةً فِيْ ضِمْنِ |
| شرط اول يې دادې چې منصوبه به وي علميت ته په لغت دعجموکې په داسې شان چې وي به محققه په ضمن |
| الْعَلَمِ فِي الْعَجَمِ حَقِيْقَةً كَاِبْرَاهِيْمَ اَوْ حُكْماً بِاَنْ يَنْقُلَهُ الْعَرَبُ مِنْ لُغَةِ الْعَجَمِ |
| دعلم کې په لغت عجمي کې حقيقتاًلکه ابراهيم اوياحکماپه داسې شان چې نقل کړي عربو دلغت دعجمونه |
| اِلَى الْعَلَمِيَّةِ مِنْ غَيْرِ تَصَرُّفٍ فِيْهِ قَبْلَ النَّقْلِ كَقَالُوْن فَاِنَّهُ كَانَ فِي الْعَجَمِ اِسْمُ جِنْسٍ سُمِّيَ |
| علميت ته په غير دبدلون نه په دې کې مخکې دنقل نه لکه قالون دااګرچې په عجموکې اسم جنس دي بيا مسمی |
| بِهِ اَحَدُ رُوَاةِ الْقُرَّاءِ لِجَوْدَةِ قِرَاءَتِهِ قَبْلَ اَنْ يَتَصَرَّفَ فِيْهِ الْعَرَبُ فَكَاَنَّهُ كَانَ عَلَماً |
| شوپه دې يو دقراونه دوجې دښه قرأت دهغې نه مخکې ددې نه چې تصرف وکړي په دې کې عرب نوګوياچې داعلم |
| فِي الْعَجَمِيَّةِ وَ اِنَّمَا جُعِلَتْ شَرْطاً لِئَلاَّ يَتَصَرَّفَ فِيْهَا الْعَرَبُ مِثْلُ تَصَرُّفَاتِهِمْ |
| شوپه لغت عجمي کې اوو ګرځولې شوداشرط ځکه چې تصرف ونه کړي په دې کې عرب په شان دخپلوتصرفاتو |
| فِيْ كَلَامِهِمْ فَتَضْعُفُ فِيْهِ الْعُجْمَةُ فَلَا تَصْلُحُ سَبَبًا لِمَنْعِ الصَّرْفِ فَعَلٰى هٰذَا |
| په خپل کلام کې پس ضعيف شي په دې کې عجيمت نوبياصالح نه ګرځي دپاره دمنع صرف بناء په دې باندې |
| لَوْ سُمِّيَ بِمِثْلِ لِجَامٍ لَا يَمْتَنِعُ صَرْفُهُ لِعَدَمِ عَلَمِيَّتِهِ فِي الْعُجْمَةِ |
| که چيرته مسمی شي په مثل دلجام جائزنه دي غيرمنصرف کيدل دهغې د وجې د عدم علميت نه په عجمه کې |
| وَ شَرْطُهَا الثَّانِيْ اَحَدُ الْاَمْرَيْنِ تَحَرُّكُ الْحَرْفِ الْاَوْسَطِ اَوِ الزِّيَادَةِ عَلَى الثَّلٰثَةِ اَیْ عَلٰى ثَلٰثَةِ اَحْرُفٍ لِئَلَّا |
| دوهم شرط يودامرينونه حرکت د حرف اوسط يا زيادت دي په حروفوثلاثو يعنې په دريو حروفو ددې د پاره چې |
| يُعَارِضَ الْخِفَّةَ اَحَدُ السَّبَبَيْنِ فَنُوْحٌ مُنْصَرِفٌ هٰذَا تَفْرِيْعٌ بِالنَّظَرِ اِلَى الشَّرْطِ الثَّانِيْ فَانْصِرَافُ |
| معارض نه شي خفت يو دسببينو سره پس نوح منصرف دي داتفريع ده په نظر سره شرط ثاني ته متصرف کيدل |
| نُوْحٍ اِنَّمَا هُوَ لِاِنْتِفَاءِ الشَّرْطِ الثَّانِيْ وَ هٰذِهٖ اِخْتِيَارُ الْمُصَنِّفِ اَلْعُجْمَةُ سَبَبٌ ضَعِيْفٌ |
| دنوح دوجې دانتفاء دشرط ثاني نه شو اوداغوره مذهب دمصنف دي ځکه چې عجميت سبب ضعيفه دي |

لِاَنَّهٗ اَمْرٌ مَعْنَوِيٌّ فَلَا يَجُوْزُ اِعْتِبَارُهَا مَعَ سُكُوْنِ الْاَوْسَطِ وَ اَمَّا التَّانِيْثُ فَاِنْ
دي ځکه چې هغه امر معنوي دي پس جائز نه دي مغیرول دهغې سره دسکون داوسط نه هرچې تانیث دي پس

لَهٗ عَلَامَةٌ مُقَدَّرَةٌ تَظْهَرُ فِيْ بَعْضِ التَّصَرُّفَاتِ فَلَهٗ نَوْعُ قُوَّةٍ فَجَا
شته دهغې دپاره علامه مقدره چې ښکاره کیږي په بعضو تصرفاتو کې نوشته دهغې دپاره یو قسم قوة پس جائز

اَنْ يُعْتَبَرَ مَعَ سُكُوْنِ الْاَوْسَطِ وَ اِنْ لَا يُعْتَبَرَ فَاِنْ قُلْتَ قَدِ اعْتُبِرَتِ الْعُجْمَةُ مَاهٌ
شوچې مغیرشي سره دسکون داوسط نه اویامغیرنه شي که ته ووایې په تحقیق سره مغیرشوې عجیمت په ماه او

جُوْر مَعَ سُكُوْنِ الْاَوْسَطِ فِيْمَا سَبَقَ فَلِمَ لَمْ تُعْتَبَرْهَا قُلْنَا اِعْتِبَارُهَا فِيْمَا ... اِنَّمَا ...
جور کې سره دسکون داوسط نه مخکې ولې معتبرنه شودلته مونږوایو اعتبار دهغې نه په ماسبق ... ئې دا د وجې د

لِتَقْوِيَتِهٖ بِسَبَبَيْنِ آخَرَيْنِ لِئَلَّا يُقَاوِمَ سُكُوْنُ الْاَوْسَطِ اَحَدَهُمَا فَلَا يَلْزَمُ مِنْ اِعْتِبَارِهَا
تقویت دسببینو رادي ددې دپاره چې مقاومت ونه کړي سکون داوسط یو ددووسره پس نه لازمیږي اعتبار دهغې

لِقُوَّةِ سَبَبٍ آخَرَ اِعْتِبَارُ سَبَبِيَّتِهَا بِالْاِسْتِقْلَالِ وَ شَتَرٌ وَهُوَ اِسْمُ حِصْنٍ بِهٖ دِيَارُ بَكْرٍ وَاِبْرَاهِيْمَ
نه دپاره دتقویت دسبب آخر اعتبار دسببیت دهغې مستقلاً او شتر چې نوم دقلاده په آبادۍ د بکر کې او ابراهیم

مُمْتَنِعٌ صَرْفُهُمَا لِوُجُوْدِ الشَّرْطِ الثَّانِيْ فِيْهِمَا فَاِنَّ فِيْ شَتَرَ تَحَرُّكَ الْاَوْسَطِ
ممتنع دي متصرف کیدل ددواړو دوجې دوجود دشرط ثاني نه په دواړو کې ځکه چې په شتر کې حرکت داوسط دی

وَفِيْ اِبْرَاهِيْمَ الزِّيَادَةُ عَلَى الثَّلٰثَةِ وَ اِنَّمَا خُصَّ التَّفْرِيْعُ بِالشَّرْطِ الثَّانِيْ لِاَنَّ غَرَضَهُ التَّنْبِيْهُ
اوپه ابراهیم کې زیادت په دریودي اوخاص کړومصنف تصریح په شرط ثاني ځکه چې غرض دده خبرداری ورکول

عَلٰى مَا هُوَ الْحَقُّ عِنْدَهٗ مِنِ انْصِرَافِ نَحْوِ نُوْحٍ وَ لِهٰذَا قَدَّمَ انْصِرَافَهٗ
دي په هغه څه چې حق دي په نزد دده چې هغه منفردکیدل دنوح دي ددې وجې نه چې مخکې کړو منصرف کیدل د

مَعَ اَنَّ مُتَفَرِّعٌ عَلَى انْتِفَاءِ الشَّرْطِ الثَّانِيْ وَ الْاَوْلٰى تَقْدِيْمُ مَا هُوَ مُتَفَرِّعٌ عَلٰى وُجُوْدِهٖ
نوح سره ددې نه چې دامتفرع ده په انتفاء دشرط ثاني سره او اولی تقدم دهغه څه ووچې کوم متفرع ووپه وجود

كَمَا لَا يَخْفٰى.
دشرط ثاني لکه چې داپټه نه ده

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره صاحب کافیه د عجمې تعریف او وضاحت کوي.

**اغراض د جامي**: <u>وهي كون اللفظ مما وضع الخ</u>: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: عجمه دا ذات مع الوصف دي او نور اسباب دمنع صرف ټول اوصاف دي نو شمارل ددې د اسبابو دمنع صرف څخه صحیح نه شو

**جواب** : مراد دعجمي نه کون اللفظ مما وضع غير العرب دي نو کون دا مصدر دي اومصدر دا صرف وصف وي

**في اللغة**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال** : عجمه مشروط ده او په ان تکون کې بيا ضمير راجع دي عجمې ته نو لازم شو ظرفيت د شئ الى نفسه يا في په معنى دظرفيت ده اوظرفيت داپه دوه قسمه دي حقيقي لکه الماء في الکوز، مجازي لکه ظرفيت دخاص وي دپاره دعام اودلته يو هم نه دي داول عدم صحت خو ظاهر دي او دوهم هغه نه صحيح کيږي ځکه دلته ظرفيت دخاص عام لره نشته دي

**جواب** : في اللغة العجمة دلته عجمه عامه ده اولغت داخاص دي نو ظرفيت دخاص راغې عام لره .

**حقيقتاً او حکماً**: دابه په عجمه کې حقيقتا علم وي لکه ابراهيم اويابه حکماً علم وي مطلب داچې په عجمو کې نوم نه وو اوعربو رانقل کړي اوعلم يې ګرځولې اوهيڅ قسم تغير يې په نه دي کړي لکه قالون داپه عجمو کې هر جيد څيز ته ويل کيدو يعنې اسم جنس وو اوعربو بيا دا رانقل کړو اوديو جيد قاري دپاره چې حضرت نافع رضى الله عنه وو علم وګرځولو نو داحکماً علم وو په عجمو کې .

**وانما جعلت شرطاً**: علميت دعجمې دپاره ځکه شرط وګرځول شو چې دتصرف کولو څخه بچ شي چې ضعف په کې رانه شي نو بيا صلاحيت دمنع صرف والي نه لري .

**فعلى هذا**: بناء په دې چې دغه اسم به علم وي په عجمه کې نو که په مثل د لجام يې علم وګرځولو دپاره ديو کس نو دابه غير منصرف نه وي ځکه چې داعلم نه وو په عجمه کې اودليل په دې چې داعلم نه وو په عجمه کې ځکه عربو په ې کې تصرف کړې دي دلګام نه لجام ته .

**وشرطها الثاني احد الامرين**: سيبويه اواکثر نحاة دا وايي چې زيادة على الثلاثة وي نو تحرک الاوسط ته ضرورت نشته دي .

**اى على ثلاثة احرف**: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي الف لام ته چې الف لام په الثلاثة کې عوض دي دمضاف اليه نه چې احرف دي .

**لئلا يعارض الخفة احد السببين** : داشرطين ځکه ولږولې شول چې خفت دامعارضه داحد السببين ونه کړي چې بيا به سببين مؤثر ونه ګرځي په منع دصرف کې

فأنصراف: نوح منصرف دي

وهذا اختيار المصنف: په دې عبارت کې اشاره ده اختلاف ته ، يو مذهب دمصنف دي دې وايي چې نوح منصرف دي ځکه عجمه سبب ضعيفه دي اوداسبب والې امر معنوي دي علامه لفظيه دې لره نشته نو جائز نه دي معتبر کول دعجمې سره دسکون داوسط نه ، دوهم مذهب د جار الله زمحشري دي . دې وايي چې نوح په شان د هند دي هلته جواز دوجهين وو دلته به هم جواز د وجهينو وي

واما التانيث: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال**: تا وويل چې عجمه دا امر معنوي دي نو تانيث خو هم امر معنوي دي هلته دې جواز د وجهينو غوره کړې وو دلته هم داسې وکړه يعنې په عجمه کې

**جواب**: دتانيث معنوي دپاره علامه شته چې په بعضو تصرفاتو کې ظهور راځي لکه په تصغير کې نو تانيث لره يو نوعه قوت شته نو ددې وجې هلته سره دسکون داوسط نه جواز دوجهين معتبر کولې شي اوپه عجمه کې نه .

فان قلت: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال**: تا عجمې سره دسکون داوسط معتبر کړې دي په ماه وجور کې اودلته يې نه معتبروي

قلنا: په دې سره جواب ورکوي چې په ماه وجور کې مونث عجمه معتبر کړي دپاره دتقويت د سببين آخرينو دپاره ددې چې سکون داوسط دامقابل دسببينو ونه ګرځي اوددې خبرې نه چې داد پاره دتقويت دسببينو معتبر کړي شوې دانه لازميږي چې دامستقل سبب دي .

صرفهما: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال**: ته وايي چې ابراهيم او شتر دا ممتنع دي دا خو ممتنع نه دي دا خو راغلې دي .

**جواب**: مراد امتناع وجودي نه ده بلکه امتناعي حرفي مراد ده

لوجود الشرط الثاني فيهما: دا تفريع ده په شرط ثاني باندې

وانما اختص التفريع بالشرط الثاني: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال**: دعجمې دپاره دوه شرطه وو يو علميت اوبل احد الامرين په دويم شرط دې تفريع هم وجودا اوهم عدماً وکړه اوپه اول شرط دې ونه کړه ، يا دا چې صحيح ده په دوهم شرط دې تفريع کوله خو په وجودي باندې اولى چې مخکې يې کړي اوتاعدمي مقدم کړي .

**جواب** : زمونږ مقصود تفریع کول نه وو بلکه تعین اوبیان د ماهو الحق وو چې په انصراف او عدم انصراف کې د نوح کوم یو حق دي .

| |
|---|
| وَ اعْلَمْ اَنَّ اَسْمَاءَ الْاَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ مُمْتَنِعَةٌ عَنِ الصَّرْفِ اِلَّا سِتَّةً مُحَمَّدٌ وَ صَالِحٌ وَ شُعَيْبٌ وَ هُوْدٌ |
| پوه شه چې اسماء دانبیاوعلیهم السلام جائزنه دي منصرف کیدل دهغې مګر د شپږ ومحمد ،صالح ،شعیب ،هود |
| لِكَوْنِهَا عَرَبِيَّةً وَ نُوْحٌ وَ لُوْطٌ لِخِفَّتِهِمَا وَ قِيْلَ اِنَّ هُوْداً كَنُوْحٍ لِاَنَّ سِيْبَوَيْهِ قَرَنَهُ مَعَهُ |
| چې داعربي دي اونوح اولوط دوجې دخفت دد ې نه چاویلي دي چې هودپه شان دنوح دي ځکه چې سیبویه یوځای |
| يُؤَيِّدُهُ مَا يُقَالُ مِنْ اَنَّ الْعَرَبَ مِنْ وُلْدِ اِسْمٰعِيْلَ وَ مَنْ كَانَ قَبْلَ ذٰلِكَ |
| کړي دهغې سره تائیدوي داخبره کول چې ویل کیږي چې عرب داولاد داسماعیل نه دي اوڅوک چې مخکې دده |
| فَلَيْسَ بِعَرَبِيٍّ وَ هُوْدٌ قَبْلَ اِسْمٰعِيْلَ فِيْمَا يَذْكُرُ فَكَانَ كَنُوْحٍ . |
| نه ووهغه عربي نه وواو هودوومخکې داسماعیل نه لکه څنګه چې ذکر شوي په تاریخ کې نوشوپه شان دنوح |

**اغراض د جامي** : واعلم ان اسماء الانبياء عليهم السلام : په دې عبارت سره شارح یوه قاعده کلیه بیانوي هغه داچې اسماء دانبیاو علیهم السلام ټول غیر منصرف دي په غیر د محمد ، صالح ، شعیب او هود نه ځکه داعربي اسماء دي او نوح او لوط ځکه چې داخفیف دي

وقيل ان هودا كنوح : په دې عبارت سره شارح اشاره کوي اختلاف ته . بعضې وایي چې هود په شان د نوح دي یعنې جواز دوجهینو په کې دي اودلیل چې سیبویه دا پیوسته کړي د نوح سره اوتائید دسیبویه دقول داخبره کوي چې عرب داداولاد داسماعیل علیه السلام وه اوددې نه مخکې عرب نه وو او هود علیه السلام هم مخکې تیر شوې دي .

## جمع :

| |
|---|
| اَلْجَمْعُ وَ هُوَ سَبَبٌ قَائِمٌ مَقَامَ السَّبَبَيْنِ شَرْطُهُ اَيْ شَرْطُ قِيَامِهِ مَقَامَ السَّبَبَيْنِ صِيْغَةُ مُنْتَهَى الْجُمُوْعِ وَ هِيَ |
| جمع چې داسبب قائم مقام دسببینودي شرط یعنې شرط دپاره دقیام دسببینوصیغه دمنتهی الجموع ده داهغه |
| الصِّيْغَةُ الَّتِيْ كَانَ اَوَّلُهَا مَفْتُوْحًا وَ ثَالِثُهَا اَلِفًا وَ بَعْدَ الْاَلِفِ حَرْفَانِ اَوْ ثَلٰثَةٌ اَوْسَطُهَا سَاكِنٌ |
| صیغه ده چې اول یې مفتح وي دریم یې الف وي اووروستودالف نه دوه یادري حرفه وېې چې اوسط یې ساکن |
| وَ هِيَ الصِّيْغَةُ الَّتِيْ لَا تُجْمَعُ جَمْعَ التَّكْسِيْرِ مَرَّةً اُخْرٰى وَ لِهٰذَا سُمِّيَتْ صِيْغَةُ مُنْتَهَى الْجُمُوْعِ |
| وي داهغه صیغه ده چې دوهم ځل په جمع تکسیره نه جمع کیږي ددې وجې نه مسمی شوپه منتهی الجموع سره |
| لِاَنَّهَا جُمِعَتْ فِيْ بَعْضِ الصُّوَرِ مَرَّتَيْنِ تَكْسِيْراً فَانْتَهٰى تَكْسِيْرُهَا |
| ځکه چې په بعضوصورتونوکې داجمع شوې دوه ځل په جمع تکسیرسره پس آخر ته ورسیده تکسیر ددې کوم |

الْمُغَيِّرُ لِلصِّيغَةِ.

چې مغیر دي صیغې لره

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب کافیه د جمع تعریف کوي

**اغراض د جامي** : الجمع وهو سبب قائم مقام : په دې عبارت سره شارح اول تعین دالف لام کوي چې الف لام په الجمع کې عهدي دي اومعهود په دې سره هغه جمع ده چې قائمقام د سببینو وي .

شرطه اې شرط قیامه : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي .

**سوال** : ته وایې چې دجمع دپاره صیغه دمنتهی الجمع شرط ده زه به درته وښائم چې جمع به وي او منتهی الجموع به نه وي لکه مسلمون

**جواب** : شرط دپاره دقیام ددې دي په مقام دسببینو .

منتهی : داصیغه دمصدر میمي ده نو دلته اضافت دمصدر شوې فاعل ته نو تقدیر داسې شو چې صیغة ینتهی بها الجمع .

وهي الصیغة اللتي : داهغه صیغه ده چې اول یې مفتوح وي اوثالث یې الف وي اومابعد د الف یې دوه حرفه وي اویادري وي خو اوسط حرف یې ساکن وي لکه مساجد او مصابیح .

ولهذا سمیت : وجه تسمیه ددې بیانوي ددې وجې ه چې دا بیا په جمع تکسیري نه جمع کیږي مسمی کړې شوه په منتهی الجموع سره

لانها جمعت في بعض الصور الخ : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : جموع جمع ده او اقل دجمع دري وي نو معنی دا شوه چې داجمع به کم از کم دري کرته جمع شوې وي او سره ددې نه چې په بعضو ځایونو کې دوه کرته جمع شوې لکه اناعیم او بعضو ځایونو کې یو کرت جمع شوې وي لکه مساجد .

**جواب** : مراد دجموع نه مافوق الواحد ده نه به جمع کیږي په تکسیري سره . خو که چیرته جمع شوه په سالمې سره نو جمع کیداې شي لکه ایامن داجمع ده صیغه دمنتهی الجموع ده اوغیر منصرف ده اوجمع شوې په ایامنین سره اوهمدارنګه صواحب داجمع شوې په صواحبات سره .

| فَأَمَّا جَمْعُ السَّلَامَةِ فَإِنَّهُ لَا يُغَيِّرُ الصِّيغَةَ فَيَجُوزُ أَنْ تُجْمَعَ جَمْعُ السَّالِمِ كَمَا |
|---|
| هرچې جمع سالمه ده پس نه بدليږي صيغه په هغې کې جائزدي چې جمع شي په جمع سالمې سره لکه څرنګې |
| تُجْمَعُ أَيَامَنَ جَمْعَ أَيْمَن عَلَى أَيَامِنِيْنَ وَ صَوَاحِبُ صَاحِبَةٍ عَلَى صَوَاحِبَاتٍ وَ إِنَّمَا اشْتُرِطَتْ |
| چې جمع کيږي ايامن چې جمع د ايمن ده په ايامنين سره او صواحب چې جمع د صاحبة ده په صواحبات سره او شرط کړې |
| لِتَكُوْنَ صِيغَتُهُ مَصُوْنَةً عَنْ قُبُوْلِ التَّغَيُّرِ فَتُؤَثِّرَ بِغَيْرِ |
| شو دا منتهى الجموع دې دپاره چې شي صيغه محفوظه دقبول دتغير نه مؤثره ګرځي منتهى الجموع په غير د |
| هَاءٍ مُنْقَلِبَةٍ عَنْ تَاءِ التَّانِيْثِ حَالَةَ الْوَقْفِ أَوِ الْمُرَادُ بِهَا تَاءُ التَّانِيْثِ |
| هاء نه چې په بدل کې راوړلې شوې وي د تاء تانيث نه په حالت وقفي کې يا مراد په دې سره تاء د تانيث ده په |
| بِاعْتِبَارِ مَا يُؤَوَّلُ إِلَيْهِ حَالَةَ الْوَقْفِ فَلَا يَرِدُ نَحْوُ فَوَارِهِ جَمْعُ فَارِهَةٍ وَ إِنَّمَا اشْتُرِطَ |
| اعتبار د ما يؤول اليه سره په حالت وقفي کې پس نه وارديږي په مثال د فواره چې جمع د فارهة ده او شرط کړې شو |
| كَوْنُهَا بِغَيْرِهَا لِأَنَّهَا لَوْ كَانَتْ مَعَ هَاءٍ كَانَتْ عَلَى زِنَةِ الْمُفْرَدَاتِ كَفَرَزَانَةٍ فَإِنَّهَا عَلَى |
| کيدل د هغې په غير د هاء نه ځکه چې که چيرته وي سره د هاء نه نو وي به په وزن د مفرداتو لکه فرازنة چې دا په |
| زِنَةِ كَرَاهِيَةٍ وَ طَوَاعِيَةٍ بِمَعْنَى الْكَرَاهَةِ وَ الطَّاعَةُ فَيَدْخُلُ فِيْ قُوَّةِ جَمْعِيَّتِهِ فُتُوْرٌ |
| وزن د کراهية ده او طواعية چې په معنى د کراهيت او د طاعت راځي پس داخل شو په قوت د جمعيت کې کوتاه |
| وَلَا حَاجَةَ إِلَى إِخْرَاجِ نَحْوِ مَدَائِنِيْ فَإِنَّهُ مُفْرَدٌ مَحْضٌ لَيْسَ جَمْعاً لَا فِي الْحَالِ وَلَا فِي الْمَآلِ |
| والې او حاجت نشته اخراج په مثل د مدائني ځکه چې دا مفرد محضه دي نه جمع نه په حال کې او نه په مال کې |
| وَإِنَّمَا الْجَمْعُ مَدَائِنُ وَهُوَ لَفْظٌ آخَرُ بِخِلَافِ فَرَازِنَةٍ فَإِنَّهَا جَمْعُ فَرْزَيْنٍ أَوْ فِرْزَانٌ بِكَسْرِ الْفَاءِ. |
| هرچې جمع د مدائن ده دا لفظ آخر دي په خلاف د فرازنة چې دا جمع د فِرزين يا فِرزان ده په کسرې د فاء سره ده. |

**اغراض د جامي : وانما اشترط** : په دې عبارت سره شارح وجه د اشتراط بيانوي د جمع دپاره شرط دا وګرځولې شو چې دا به صيغه د منتهى الجموع وي دپاره د دې چې دا صيغه محفوظه شي د قبلولو د تغير نه.

**بغير هاء منقلبة عن تاء** : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : چې په غير د هاء نه وي نو غير منصرف به وي نو فرازنة صيغه د منتهى الجموع ده په غير د هاء ده نو غير منصرف دې شي.

**جواب** : مراد د هاء نه هغه هاء ده چې منقلبه وي د تاء تانيث څخه په حالت د وقف کې.

او المراد منه: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي.
**سوال**: فواره صيغه د منتهى الجموع ده دريم الف دى او بعده حرفان هم دي او په غير د هاء نه ده په کار ده چې منصرف شي
**جواب**: مراد د هاء نه تاء تانيثي ده چې په آينده کې هاء ګرځي اودا خو هاء د نفس کلمې څخه ده ځکه په مفرد کې هم موجوده ده
وانما اشترط: دا په غير د هاء شرط ځکه ولګولې شو که چيرته سره د هاء نه شي نو دا به بيا په وزن د مفرداتو شي لکه فرازنة چې په وزن د کراهية اوطواعية سره ده نو په دې سره به نقصان راشي په قوت د جمعيت کې.
ولا حاجة: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:
**سوال**: مدائني دا صيغه د منتهى الجموع ده ځکه بعدالالف حرفان شته اوغير منصرف نه دي.
**جواب**: بعضو خلکو داسې جواب کړي چې د مصنف په متن کې يو بل قيد لګول په کار وو چې ولا ياء نسبية.
نو شارح رد وکړو دا سوال هم غلط دي اوجواب يې هم ځکه چې مدائني دا مفرد محض دي نه في الحال جمع ده اونه في المآل اوجمع هغه مدائن ده او غير منصرف هم دي په خلاف د فرازنة سره ځکه دا جمع ده نو په غير د هاء قيد يې د دې د خروج د پاره ولګولو.

| فَعُلِمَ مِمَّا سَبَقَ اَنَّ صِيغَةَ مُنْتَهَى الْجُمُوْعِ عَلٰى قِسْمَيْنِ اَحَدُهُمَا مَا يَكُوْنُ بِغَيْرِ هَاءٍ وَ ثَانِيْهِمَا |
|---|
| پس معلومه شوه د ماسبق نه چې صيغه د منتهى الجموع په دوه قسمه ده يو هغه چې په غير د هاء نه وي دوهم |
| مَا يَكُوْنُ بِهَاءٍ فَاَمَّا مَا كَانَ بِغَيْرِ هَاءٍ فَمُمْتَنِعٌ صَرْفُهُ لِوُجُوْدِ شَرْطِ تَاْثِيْرِهَا |
| هغه چې وي سره د هاء نه هرچې په غير د هاء وي جائزنه دي منصرف کيدل د هغې دوجې د شرط د تاثير د غير |
| كَمَسَاجِدَ لَمَّا بَعْدَ اَلِفِهٖ حَرْفَانِ وَ مَصَابِيْحَ مِثَالُ لَمَّا |
| منصرف نه لکه مساجد مثال د هغې جمع دي چې وروستو د الف نه دوه حرفه وي او مصابيح مثال د هغه دي چې |
| بَعْدَ اَلِفِهٖ ثَلٰثَةُ اَحْرُفٍ اَوْسَطُهَا سَاكِنٌ وَ اَمَّا فَرَازِنَةُ وَ اَمْثَالُهَا مِمَّا هِيَ عَلٰى صِيغَةِ مُنْتَهَى الْجُمُوْعِ |
| وروستو د الف نه دري حروفه وي اوسط يې ساکن وي هرچې فرازنة اومثل د دې دي چې په صيغه د منتهى الجموع |
| مَعَ الْهَاءِ فَمُنْصَرِفٌ لِفَوَاتِ شَرْطِ تَاْثِيْرِ الْجَمْعِيَّةِ وَ هُوَ كَوْنُهَا بِلَا هَاءٍ |
| وي سره د هاء نه دا منصرف دي دوجې د فوت کيدو د شرط د تاثير د جمعيت نه چې هغه کيدل دي په غير د هاء نه |

وَ حَضَاجِرُ عَلَمًا لِلضَّبُعِ هٰذَا جَوَابُ سُؤَالٍ مُقَدَّرٍ تَقْدِيْرُهُ اَنَّ حَضَاجِرَ عَلَمُ جِنْسٍ لِلضَّبُعِ يُطْلَقُ

اوحضاجرچې علم شي دپاره دليوه داجواب دسوال مقدردي هغه داچې حضاجرعلم جنس دي دپاره دضبع اطلاق

عَلَى الْوَاحِدِ وَ الْكَثِيْرِ كَمَا اَنَّ اُسَامَةَ عَلَمُ جِنْسِ الْاَسَدِ فَلَا جَمْعِيَّتَهُ فِيْهِ وَ صِيْغَةُ

يې په واحد او كثير دواړو كيږي لكه اسامه علم جنس دي د اسد د پاره پس نشته جمعيت په دې كې او صيغه د

مُنْتَهَى الْجُمُوْعِ لَيْسَتْ مِنْ اَسْبَابِ مَنْعِ الصَّرْفِ بَلْ هِيَ شَرْطٌ لِلْجَمْعِيَّةِ فَيَنْبَغِيْ اَنْ يَكُوْنَ مُنْصَرِفًا

منتهى الجموع نه ده داسبابودمنع صرف نه بلكې داشرط دي دپاره دجمعيت پس مناسب دي چې شي منصرف

لٰكِنَّهُ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ وَ تَقْرِيْرُ الْجَوَابِ حَضَاجِرُ حَالَ كَوْنِهِ عَلَمًا لِلضَّبُعِ غَيْرُ

ليكن داغيرمنصرف دي بيان دجواب دادې چې حضاجرپه حال كون ددې كې چې داعلم وي دضبع دپاره غير

مُنْصَرِفٌ لَا لِلْجَمْعِيَّةِ الْحَالِيَّةِ بَلْ لِلْجَمْعِيَّةِ الْاَصْلِيَّةِ لِاَنَّهُ مَنْقُوْلٌ عَنِ الْجَمْعِ فَاِنَّ

منصرف دي نه دوجې دجمعيت حاليه نه بلكې دوجې دجمعيت اصليه نه ځكه چې دامنقول دي دجمع نه ځكه

كَانَ فِي الْاَصْلِ جَمْعُ حِضْجَرٍ بِمَعْنَى عَظِيْمُ الْبَطْنِ سُمِّيَ بِهِ الضَّبُعُ مُبَالَغَةً فِيْ عِظَمِ

چې داپه اصل كې جمع د حضجرده معنى دغټ خيټې سره مسمى شويه دې سره ليوه دپاره دمبالغې په غټ والي

بَطْنِهَا كَاَنَّ كُلَّ فَرْدٍ مِنْهَا جَمَاعَةٌ مِنْ هٰذَا الْجِنْسِ بِالْمُعْتَبَرِ فِيْ مَنْعِ صَرْفِهِ هُوَ

د خيټې د هغه كې گويا چې هر فرد د هغې نه جماعت دي ددغه جنس نه پس معتبر په منع منصرف د هغې كې

الْجَمْعِيَّةُ الْاَصْلِيَّةُ.

جمعيت اصليه دي.

**اغراض دجامي :** فعلم مما سبق : په دې عبارت سره خلاصه ذكر كوي خلاصه دا چې صيغه دمنتهى الجموع دا په دوه قسمه ده يو سره دهاء اوبل په غير دهاء ، په غير دهاء نه داغير منصرف ده اوسره دهاء نه چې وي نو دامنصرف ده .

**واما فرازنة :** بعضو شارحينو ويلي چې كه دا اما تفصيلي وي نو اجمال كوم دي اوكه واو عاطفه وي نو معطوف عليه كوم دي ځكه داصحيح نه ده .

بعضو شارحينو ويلي چې واو استنافيه دي اوداتصريح بماعلم التزاما ده او اما هم داستئناف دپاره اوداجمله معترضه ده او وضع شوې دپاره ددفع دتوهم چې متوهم به ويل چې فرازنة خو په غير د هاء څخه ده .

اوبعضو ويلي چې واو عاطفه دي اومعطوف عليه مقدر دي چې **اما الجمع اذا وجد الشروط فقد علم حكمه واما فرازنة** .

واما فرازنة فمنصرف: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:
**سوال**: فرازنة مبتدا او منصرف ورلره خبر دي نو مطابقت بين المبتدا والخبر رانغلو.
**جواب**: منصرف دا خبر دي خو داجامد دي ځکه دا نوم دي دپاره دهرهغه اسم چې منصرف وي نو مطابقت هله ضروري وي چې خبر مشتقي وي اودلته خو خبر جامد شو.
وحضاجر علماً للضبع: په دې کې دوه نسخې دي: يو داچې دا علمٌ دامرفوع دي اوخبر دي دپاره د مبتدا محذوفې چې وهو دي دامبتدا اوخبر دواړه خبر دي دپاره د حضاجر مبتدا اوغير منصرف دا ورلره خبر ثاني دي
دوهمه نسخه داده چې دا علماً منصوب دي اوحال دي دمبتدا نه چې حضاجر دي اوحال دمبتدا نه صحيح دي په نزد دابن مالک.
په دې يو سوال راځي:
**سوال**: چې لکه څرنګه چې دمضاف اليه په مضاف باندې تقديم نه دي جائز همدارنګې متعلقات دمضاف اليه هم په مضاف نه شي مقدم کيدې نو دلته هم داسې ويل په کار دي چې وحضاجر غير منصرف علماً
**جواب**: قاضي بيضاوي په غيرالمنصرف کې داتحقيق ذکر کړې چې غير داپه دوه قسمه دي: صفتي، په معنى د لانافيې سره اودابيا په حقيقت کې مضاف مضاف اليه نه وي په دې صورت کې بيا تقديم دمضاف اليه اودمتعلقاتو دواړو جائز دي په مضاف ځکه داپه حقيقت کې مضاف مضاف اليه نه وي نو دلته هم غير په معنى ثاني سره دي.
هذا جواب سوال مقدر: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:
**سوال**: حضاجر او سراويل دا خو مفردات دي نو خروج عن البحث راغلو.
**جواب**: شارح جواب ورکړو چې دا جواب دسوال مقدره څخه وو.
اوهغه داچې حضاجر داصيغه دمنتهى الجموع اوصيغه ياوزن دمنتهى الجموع داخو ورلره شرط دي اوسبب په حقيقت کې جمع ده نو چې شرط راغلو اوشروط نشته نو حضاجر بيا ولې ...ر منصرف استعماليږي.
...اب: جمع په دوه قسمه ده: (١) حالاً، (٢) اصالتاً، که دا حالا جمع نه وي نو اصالتاً جمع ده
...ه دامنقول ده دجمع نه لکه رجال ديو سړي دپاره نوم وګرځوي نو اصالتاً جمع ده

فانه كان في الاصل : په حضاجر كې جمعيت اصلي دي ځكه دا منقول دي د جمع نه ځكه دا په اصل كې جمع د حضجر د ه په معنى د عظيم البذن سره په دې سره وضع مسمى كړې شوه گويا كې هر فرد د دوي يو جماعت د عظيم البطن دي نو معتبر په حضاجر كې جمعيت اصلي دي

## د يو سوال جواب :

| فَإِنْ قُلْتَ لَا حَاجَةَ فِيْ مَنْعِ صَرْفِهٖ إِلَى اِعْتِبَارِ الْجَمْعِيَّةِ الْاَصْلِيَّةِ فَإِنَّ فِيْهِ |
|---|
| كه ته سوال وكړې چې نشته حاجت په منع صرف د هغې كې اعتبار د جمعيت اصليه ته ځكه چې په دې كې |
| الْعَلَمِيَّةَ وَ التَّانِيْثَ لِاَنَّ الضَّبُعَ هِيَ اُنْثَى الضِّبْعَانِ قُلْنَا عَلَمِيَّتُهٗ غَيْرُ مُؤَثِّرَةٍ وَ اِلَّا لَكَانَ |
| علميت او تانيث شته ځكه چې ضبع دا مؤنث د ضبعان دي مونږ وايو چې علميت د دې غير مؤثره دي ورنه گرځيدلې |
| بَعْدَ التَّنْكِيْرِ مُنْصَرِفاً وَ التَّانِيْثُ غَيْرُ مُسَلَّمٍ لِاَنَّهٗ عَلَمُ الْجِنْسِ الضَّبُعِ مُذَكَّرًا كَانَ اَوْ مُؤَنَّثًا |
| به وو وروستو د تنكير نه منصرف او تانيث غير مسلم دي ځكه چې دا علم دي د پاره د جنس ضبع مذكر وي او كه مؤنث |
| وَ اِنَّمَا اِكْتَفَى الْمُصَنِّفُ فِي التَّنْبِيْهِ عَلَى اِعْتِبَارِ الْجَمْعِيَّةِ الْاَصْلِيَّةِ بِهٰذَا الْقَوْلِ وَ لَمْ يَقُلِ الْجَمْعُ شَرْطُهٗ اَنْ |
| وي او اكتفاء وكړه په خبرداري كې په اعتبار د جمعيت اصليه سره په دې قول او وې نه ويل چې جمع شرط د ده د |
| يَكُوْنَ فِي الْاَصْلِ كَمَا قَالَ فِي الْوَصْفِ لِئَلَّا يَتَوَهَّمَ اَنَّ الْجَمْعِيَّةَ |
| هغې چې وي به په اصل كې لكه ځرنگه چې ويل شوي په وصف كې د دې د پاره چې توهم ونه شي چې جمعيت |
| كَالْوَصْفِ قَدْ تَكُوْنُ اَصْلِيَّةً مُعْتَبَرَةً وَ قَدْ تَكُوْنُ عَارِضَةً غَيْرَ مُعْتَبَرَةٍ وَ لَيْسَ الْاَمْرُ كَذٰلِكَ اِذْ لَا |
| په شان د وصف دي كله اصلي معتبر وي او كله عارضي غير معتبر وي حالانكه خبره داسې نه ده ځكه چې نه |
| يَتَصَوَّرُ الْعُرُوْضُ فِي الْجَمْعِيَّةِ. |
| متصور كيږي وروستو په جمعيت كې. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب كافيه د يو سوال جواب وركوي.

**اغراض د جامي** : فان قلت : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : په منع صرف د حضاجر كې جميعت اصلي معتبرولو ته څه ضرورت نه وو ځكه يو په كې علميت دي او بل په كې تانيث دي چې ضبع مؤنث د ضبعان دي.

**جواب** : په قلت سره شارح جواب وركوي چې جمعيت اصلي ځكه معتبروو چې علميت په كې مؤثر نه دي كه چيرته مؤثر وي په كار وه چې بعد التنكير دا منصرف گرځيدلې وي او سره د دې نه چې غير منصرف وي او تانيث هم په كې غير معتبر دي ځكه چې دا علم جنس د ضبع دي مذكر او مؤنث په كې برابر دي.

وانما اکتفی المصنف: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال**: تا چې د جمع ځخه اصالتاً جمع واخسته نو په کار ده چې ويلې دې وې چې شرطه ان يکون جمعا في الاصل لکه په وصف کې دې چې ويلې وو

**جواب**: دا د پاره د دې چې متوهم دا وهم ونه کړي چې جمع يو اصلي ده او بله عارضي او اصلي به غير منصرف وي او عارضي به نه وي او سره د دې نه چې جمع عارضي بالکل نشته.

| |
|---|
| وَ سَرَاوِيْلَ جَوَابٌ عَنْ سُؤَالٍ مُقَدَّرٍ تَقْدِيْرُهٗ اَنْ يُقَالَ قَدْ تَقَضَّيْتَ عَنِ الْاِشْكَالِ الْوَارِدِ عَلٰى |
| او سراويل دا جواب دې د سوال مقدر چې ويل کيږي چې تا خان خلاص کړو د هغه اشکال نه کوم چې وارد وو په |
| قَاعِدَةِ الْجَمْعِ بِحَضَاجِرَ يَجْعَلُ اَعَمُّ مِنْ اَنْ يَّكُوْنَ فِي الْحَالِ اَوْ فِي الْاَصْلِ فَمَا تَقُوْلُ فِيْ |
| قاعدې د جمع د حضاجر په ګرځولو د جمع ،عام د دې نه چې وي په حال کې او يا په اصل کې هغه چې ته وايې په |
| سَرَاوِيْلَ اِسْمُ جِنْسٍ يُطْلَقُ عَلَى الْوَاحِدِ وَ الْكَثِيْرِ وَلَا جَمْعِيَّةَ فِيْهِ لَا فِي الْحَالِ وَلَا فِي الْاَصْلِ |
| سراويل کې دا اسم جنس دې اطلاق يې په واحد او کثير کيږي او جمعيت نشته په دې کې نه په حال او نه په اصل کې |
| فَاَجَابَ بِاَنَّهٗ قَدِ اخْتَلَفَ فِيْ صَرْفِهٖ وَ مَنْعِهٖ فَهُوَ اِذَا لَمْ يُصْرَفْ |
| مصنف جواب ورکړو چې اختلاف شوی په منصرف کيدو او غير منصرف کيدو د دې کې کله چې دا منصرف نه شي |
| وَ هُوَ الْاَكْثَرُ فِيْ مَوَارِدِ الْاِسْتِعْمَالِ فَيَرِدُ بِهِ الْاَشْكَالُ عَلٰى قَاعِدَةِ الْجَمْعِ |
| او دا د اکثرو راى ده او دا زيات وي په مورد د استعمال کې نو وارديږي په دې سره اشکال په قاعدې د جمعې |
| كَمَا قُلْتَ فَقَدْ قِيْلَ فِي التَّفَصِّيْ عَنْهُ اَنَّهٗ اِسْمٌ اَعْجَمِيٌّ لَيْسَ بِجَمْعٍ |
| باندې لکه ځنګه چې تاوويل په تحقيق سره ويل شوې دې په خلاصي کې د هغې نه چې دا اسم عجمي دې جمع نه ده |
| لَا فِي الْحَالِ وَلَا فِي الْاَصْلِ حَمَلَ فِيْ. مَنْعُ الصَّرْفِ عَلٰى مَوَازِنِهٖ اَىْ عَلٰى مَا يُوَازِنُهٗ مِنَ الْجُمُوْعِ |
| نه په حال او نه په اصل کې چې حمل شوی په منع صرف د هغې کې په خپلو وزنونو باندې يعني په هغه وزنونو د جمعو |
| الْعَرَبِيَّةِ كَاَنَا عَلَمٌ وَ مَصَابِيْحُ فَاِنَّهٗ فِيْ حُكْمِهَا مِنْ حَيْثُ الْوَزْنِ فَهُوَ وَ اِنْ لَمْ يَكُنْ مِنْ قَبِيْلِ الْجَمْعِ حَقِيْقَةً |
| عربيو لکه اناعيم او مصابيح ځکه چې په حکم د هغې کې د حيثيته د وزن نه دا اګر که نه ده د قبيلې د جمع نه حقيقتاً |
| لٰكِنَّهٗ مِنْ قَبِيْلِهٖ حُكْمًا. |
| ليکن د قبيلې د جمع نه حکماً ده. |

**اغراض د جامي**: وسراويل جواب عن سوال مقدر: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال**: سراويل صيغه د منتهى الجموع ده او جمع نه ده او صيغه د منتهى الجموع دا يواځې

مؤثر نه وي په منع دصرف کې په غير دجمع نه اوس دلته په کار ده چې سراويل دامنصرف شي او سره ددې نه چې غير منصرف دي.

**جواب**: نو شارح په فاجاب سره جواب ورکړو چې ددې په منصرف والي او غير منصرف والي کې اختلاف دي خو اکثر استعمال يې په غير منصرف کې کيږي ، نو چې غير منصرف شو نو دا سوال پرې راځي نو ددې جواب داده چې داعربي اسم نه دي بلکه عجمي دي اوحمل دي په موازنو خپلو چې مصابيح او اناعيم دي نو مع په دې کې اګر چې حقيقتا نه ده بلکه حکماً ده.

| فَالْجَمْعِيَّةُ عَلَى هَذَا التَّقْدِيْرِ اَعَمُّ مِنْ اَنْ تَكُوْنَ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً فَبِنَاءُ هَذَا الْجَوَابِ عَلَى تَعْمِيْمِ |
|---|
| پس جمعيت په دغه تقدير باندې عام دي چې حقيقتاً وي او که حکماً وي په دې کې او دا جواب بناء بر تعميم |
| الْجَمْعِيَّةِ لَا عَلَى زِيَادَةِ سَبَبٍ آخَرَ عَلَى الْاَسْبَابِ التِّسْعَةِ وَ هُوَ الْحَمْلُ عَلَى الْمَوَازِنِ وَ قِيْلَ |
| جمعيت دي نه په سبب دزيادت دسبب آخر داسبابو تسعونه چې هغه حمل دي په موازنو باندې چاويلي دي چې |
| هُوَ اِسْمٌ عَرَبِيٌّ لَيْسَ بِجَمْعٍ تَحْقِيْقاً لِاَنَّهُ اِسْمُ جِنْسٍ يُطْلَقُ عَلَى الْوَاحِدِ وَالْكَثِيْرِ لٰكِنَّهُ جَمْعُ سِرْوَالَةٍ |
| دااسم عربي دي نه جمع ده حقيقتاً ځکه چې دااسم جنس دي اطلاق يې کيږي په واحد او کثير ليکن جمع دسروالة |
| تَقْدِيْراً اَوْ فَرْضاً فَاِنَّهُ لَمَّا وَجَدَ غَيْرَ مُنْصَرِفٍ وَ مِنْ قَاعِدَتِهِمْ اَنَّ هَذَا الْوَزْنَ بِدُوْنِ الْجَمْعِيَّةِ |
| ده تقديراً او فرضاً ځکه چې کله موجود شو غير منصرف او قاعده دنحويانو داده چې دغه وزن په غير دجمعيت نه، |
| لَمْ يَمْنَعِ الصَّرْفَ قَدَّرَ حِفْظاً لِهَذِهِ الْقَاعِدَةِ اَنَّهُ جَمْعُ سِرْوَالَةٍ فَكَاَنَّهُ سُمِّيَ |
| نه منع کول منصرف کيدلو لره نو مقدر کړې شو دپاره دحفاظت ددې قاعدې چې داجمع دسروالة ده ګوياچې مسمی |
| كُلُّ قِطْعَةٍ مِنَ السَّرَاوِيْلِ سِرْوَالَةً ثُمَّ جَمَعَتْ سِرْوَالَةٌ عَلَى سَرَاوِيْلَ. |
| کړې شوه هرې ټوټه په سراويل سره سروالة بيا جمع شو سروالة په سراويل سره |

**اغراض د جامي** : <u>فبناء هذا الجواب</u>: په دې عبارت سره شارح رد په بعضو خلکو کوي بعضې خلکو ويلې وو چې داجواب مبني دي په زيادت دسبب آخر باندې چې هغه حمل دي په موازينو خپلو نو ده پرې رد وکړو چې داجواب مبني دي په تعميم دجمع باندې نه په زيادت دسبب عاشر باندې.

<u>تقديراً فرضاً فانه</u>: په دې عبارت سره شارح دتقديراً معنی بيانوي چې دتقديراً معنی ده فرضاً.

| وَ اِذَا صُرِفَ اَيْ سَرَاوِيْلُ لِعَدَمِ تَحْقِيْقِ جَمْعِيَّتِهِ تَحْقِيْقاً وَ الْاَصْلُ فِي الْاَسْمَاءِ |
|---|
| نو کله چې منصرف کړې شي دا سراويل د وجې د عدم تحقق د جمعيت نه حقيقتاً او بل چې اصل په اسماو کې |
| اَلصَّرْفُ فَلَا اِشْكَالَ بِالنَّقْضِ بِهِ عَلَى قَاعِدَةِ الْجَمْعِ لِيَحْتَاجَ اِلَى التَّفَقُّصِ |
| منصرف کيدل دي پس هيڅ اشکال نشته په نقض دقاعدې دجمع باندې چې احتياج پيدا شي ځان خلاصولو ته |

| |
|---|
| عَنْهُ وَ نَحْو جَوَارٍ اَیْ كُلُّ جَمْعٍ مَنْقُوْصٍ عَلٰى فَوَاعِلَ يَائِيًّا كَانَ اَوْ وَاوِيًّا |
| د اشكال نه او په مثال د جوار يعني هغه جمع منقوصه چې په وزن د فواعل وي يائي وي او كه واوي وي لكه |
| كَالْجَوَارِىْ وَالدَّوَاعِىْ رَفعاً وَ جَرًّا اَیْ فِيْ حَالَتَيِ الرَّفْعِ وَالْجَرِّ كَقَاضٍ اَیْ فِيْ حُكْمِهٖ حُكْمُ قَاضٍ بِحَسْبِ الصُّوْرَةِ |
| جواري او دواعي په حالت د رفع او جر كې يعني په حالت د رفع او جر كې په شان د حكم د قاضٍ دي په اعتبار د صورت |
| فِيْ حَذْفِ الْيَاءِ عَنْهُ وَ اِدْخَالُ التَّنْوِيْنِ عَلَيْهِ تَقُوْلُ جَاءَتْنِيْ جَوَارٍ وَ مَرَرْتُ بِجَوَارٍ كَمَا |
| سره په حذف د ياء كې د هغې نه او په ادخال د تنوين كې په دې باندې ويل كيږي جاءتني جوارٍ و مررتُ بجوارٍ لكه |
| تَقُوْلُ جَاءَنِيْ قَاضٍ وَ مَرَرْتُ بِقَاضٍ وَ اَمَّا فِيْ حَالَةِ النَّصْبِ فَالْيَاءُ مُتَحَرِّكَةٌ مَفْتُوْحَةٌ نَحْو رَأَيْتُ |
| څنګه چې ته وايې جاءني قاضٍ و مررتُ بقاضٍ هر چې په حالت د نصب دي نو ياء به متحركه مفتوحه وي لكه رأيت |
| جَوَارِيَ فَلَا اِشْكَالَ فِيْ حَالَةِ النَّصْبِ لِاَنَّ الْاِسْمَ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ لِلْجَمْعِيَّةِ مَعَ |
| جواريَ پس هيڅ اشكال نشته په حالت رفعي كې ځكه چې اسم غير منصرف دي د وجې د جمعيت نه سره د |
| صِيْغَةِ مُنْتَهَى الْجُمُوْعِ بِخِلَافِ حَالَتِيِ الرَّفْعِ وَ الْجَرِّ فَاِنَّهٗ قَدِ اخْتَلَفَ فِيْهِ فَذَهَبَ |
| صيغې د منتهى الجموع خلاف د حالت رفعي او جري كې ځكه چې اختلاف كړل شوې په دې كې او ذهاب كړې |
| بَعْضُهُمْ اِلٰى اَنَّ الْاِسْمَ مُنْصَرِفٌ وَ التَّنْوِيْنُ فِيْهِ تَنْوِيْنُ الصَّرْفِ لِاَنَّ الْاِعْلَالَ الْمُتَعَلِّقَ |
| بعضو دې ته چې دا اسم منصرف دي او تنوين په كې تنوين د منصرف دي ځكه چې اعلال كوم چې متعلق دي په |
| بِجَوْهَرِ الْكَلِمَةِ مُقَدَّمٌ عَلٰى مَنْعِ الصَّرْفِ الَّذِيْ هُوَ مِنْ اَحْوَالِ الْكَلِمَةِ بَعْدَ تَمَامِهَا فَاصِلٌ. |
| اصل كلمې پورې دا مقدم دي په منع صرف باندې هغه چې د احوالو د كلمې نه دي وروستو د پوره كيدو د هغې نه |

**اغراض د جامي** : <u>واذا صرف اى سراويل</u> : سراويل غير منصرف د سره نه دي ځكه دا جمع حقيقتا نه ده .

<u>**بالنقض به على قاعدة الجمع**</u> : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : اشكال نكره ده او نكره چې واقع شي په سياق د نفي كې عموم فائده كوي نو معنى دا شوه چې جنس اشكال نه وارديږي سره د دې نه چې خاص اشكال خو وارديږي هغه چې مونږ وئيلي چې فرازنة دا به په غير د هاء نه وي كه چيرته شي نو خرابي به په كې راشي ځكه وزن به يې د مفرد شي او په جمعيت كې به يې فتور راشي او س مصابيح او اناعيم دا په وزن د سراويل دي او دا مفرد دي په كار ده چې د مفرد د موازنت د وجې نه منصرف شي .

**جواب** : مراد زمونږ خاص اشكال دي چې په سراويل كې واقع كيده .

ونحو جوار اى كل جمع : واو اعتراضيه ده داجمله معترضه ده بين الكلامين اومقصود هغه بيان د حكم د جوار دي يا واو عاطفه دي اودا جمله عطف ده په سراويل للقرب اوپه حضاجر للاصل

رفعاً وجرا اى في حالتي الرفع والجر : رفعاً جرا منصوب بنابر ظرفيت يامنصوب دي على نزع الخافض تقدير د عبارت داسې دي چې حالها كقاض حالتي الرفع والجر

كقاض : په دې عبارت سره شارح وجه د مشابهت بيانوي چې جوارٍ په شان د قاضٍ دي ، دلته يو سوال وارديږي :

**سوال** : جوارٍ جمع او قاض مفرد دي نو تشبيه د جوار د قاض سره صحيح نه شوه .

**جواب** : تشبيه يې بحسب الصورة دي په حذف د ياء اوپه ادخال دتنوين كې .

تقول : په دې عبارت سره شارح توضيح بالمثال كوي لكه جاءتني جوار ومرت بجوار .

واما في حالة النصب : په حالت رفعي اوجري كې په شان دقاضٍ دي اوحالت نصبي كې وايي چې دا په شان دقاضٍ نه دي لكه رأيت جواريَ .

فذهب بعضهم : په دې عبارت سره دزجاج مذهب بيانوي دې وايي چې قبل الاعلال اوبعد الاعلال منصرف دي بعدالاعلال ځكه چې صيغه دمنتهي الجموع نه ده پاتې اوقبل الاعلال ځكه چې اعلال مقدم وي نو دا اسم په معرض دزوال كې دي نو كالزائل شو .

والتنوين : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : تنوين خو په پنځه قسمه دي تنوين حرف خو په كې نشته .

**جواب** : مراد دحرف نه تمكن دي نو تنوين دتمكن شو .

| وَ جَوَارٍ فِيْ قَوْلِكَ جَاءَتْنِيْ جَوَارٍ جَوَارِيُ بِالضَّمِّ وَ التَّنْوِيْنِ بِنَاءً عَلَى اَنَّ الْاَصْلَ فِي الْاِسْمِ الصَّرْفِ |
|---|
| اوجوارٍ په دې قول ستا كې چې جاءتني جوارٍ جواريٌ ووپه ضمې اوتنوين سره بناء په دې چې اصل په اسم كې منصرف |
| فَبَقَى الْاِعْلَالُ عَلَى مَا هُوَ الْاَصْلُ ثُمَّ اُسْقِطَتِ الضَّمَّةُ لِلثِّقْلِ وَ الْيَاءِ |
| كيدل دي پس مبني كړې شو اعراب په هغه څه چې كوم اصل دي بيا ساقطه شوه ضمه د وجې دثقل نه او ياء د |
| لِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ فَصَارَ جَوَارٍ عَلَى وَزْنِ سَلَامٍ وَ كَلَامٍ فَلَمْ يَبْقَ عَلَى صِيْغَةِ مُنْتَهَى الْجُمُوْعِ فَهُوَ |
| وجې دالتقاء ساكنينو نه پس وګرځيدو جوارٍ په وزن دسلام اودكلام پس پاتې نه شوصيغه دمنتهي الجموع نو دا |
| بَعْدَ الْاِعْلَالِ اَيْضاً مُنْصَرِفٌ وَ التَّنْوِيْنُ فِيْهِ لِلصَّرْفِ كَمَا كَانَ قَبْلَ |
| وروستو د اعلال نه همدارنګې منصرف او تنوين په دې كې د پاره د صرف دي لكه څرنګې چې وه مخكې د |

الْإِعْلَالِ كَذٰلِكَ وَ ذَهَبَ بَعْضُهُمْ إِلٰى أَنَّهٗ بَعْدَ الْإِعْلَالِ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ لِأَنَّ فِيْهِ الْجَمْعِيَّةَ مَعَ
اعراب نه ذهاب كړي بعضو چې دا وروستو د اعلال نه غير منصرف دي ځكه چې په دې كې جمعيت دې سره د
صِيْغَةِ مُنْتَهَى الْجُمُوْعِ لِأَنَّ الْمَحْذُوْفَ بِمَنْزِلَةِ الْمُقَدَّرِ وَ لِهٰذَا لَا يَجْرِي الْإِعْرَابُ عَلَى الرَّاءِ وَ
منتهى الجموع ځكه چې محذوف په منزله د مقدر وي دد ې وجې نه، نه جاري كيږي اعراب په راء باندې او
التَّنْوِيْنِ فِيْهِ تَنْوِيْنُ الْعِوَضِ فَإِنَّهٗ لَمَّا أُسْقِطَ تَنْوِيْنُ الصَّرْفِ عِوَضَ
تنوين په دې كې تنوين د عوض دي ځكه چې كله ساقط كړې شو تنوين د منصرف، كيدو په عوض كې راوړې شو
عَنِ الْيَاءِ الْمَحْذُوْفَةِ أَوْ عَنْ حَرَكَتِهَا هٰذَا التَّنْوِيْنُ وَ عَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ حَالَةُ الْجَرِّ بِلَا تَفَاوُتٍ وَ فِي لُغَةِ بَعْضِ
د ياء محذوفه نه يا د حركت د هغې نه دا تنوين همدارنګې حال د حالت جري دې په غير د فرق نه او په لغت د بعضې
الْعَرَبِ إِثْبَاتُ الْيَاءِ فِي حَالَةِ الْجَرِّ كَمَا فِي حَالَةِ النَّصْبِ تَقُوْلُ مَرَرْتُ
عربو كې ثابتيدل د ياء دې په حالت جري كې لكه څرنګې چې په حالت نصبي كې دې ته به وايې چې مررت
بِجَوَارِيَ كَمَا تَقُوْلُ رَأَيْتُ جَوَارِيَ وَ بِنَاءُ هٰذِهِ اللُّغَةِ عَلٰى تَقْدِيْمِ مَنْعِ الصَّرْفِ عَلَى الْإِعْلَالِ
بجواريَ لكه څنګه چې ته وايې رأيت جواريَ او بناء په دغه لغت باندې په تقديم د منع صرف په اعلال باندې پس
فَإِنَّهٗ حِيْنَئِذٍ تَكُوْنُ الْيَاءُ مَفْتُوْحَةً فِي حَالَةِ الْجَرِّ وَ الْفَتْحَةُ خَفِيْفَةٌ فَمَا وَقَعَ فِيْهِ إِعْلَالٌ وَ أَمَّا
شي به په دغه وخت كې ياء مفتوحه په حالت جري كې او فتحه خفيفه هغه چې واقع شوې په دې كې اعلال او هر
فِي حَالَةِ الرَّفْعِ فَأَصْلُ جَوَارٍ جَوَارِيُ بِالضَّمَّةِ بِلَا تَنْوِيْنٍ حُذِفَتِ الضَّمَّةُ لِلثِّقْلِ
چې حالت رفعي دې نو اصل د جوارٍ جواريُ وو په ضمې سره په غير د تنوين نه حذف كړې شوه ضمه د وجې د ثقل نه
وَ عُوِّضَ عَنْهَا التَّنْوِيْنُ فَسَقَطَتِ الْيَاءُ لِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ فَصَارَ جَوَارٍ وَ عَلٰى هٰذِهِ اللُّغَةِ
او په عوض كې راوړې شو تنوين پس ساقطه شوه ياء د وجې د التقاء د ساكنينو نه وګرځيدو جوار او بناء په دې لغت
لَا إِعْلَالَ إِلَّا فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ بِخِلَافِ اللُّغَةِ الْمَشْهُوْرَةِ فَإِنَّ فِيْهِ الْإِعْلَالَ فِي حَالَتَيْنِ كَمَا عَرَفْتَ.
نشته اعلال مګر په يو حالت كې خلاف د لغت مشهوره نه ځكه چې شته په دې كې په دواړو حالاتو كې.

**اغراض دجامي :** بناء علی ان الاصل: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال :** اعلال مقدم دي په غير منصرف نو په منصرف هم مقدم دي نو بيا دې منصرف هم شي.

**جواب :** منصرف مقدم دي په غير منصرف ځكه اصل انصراف دي .

وذهب بعضهم : په دې عبارت سره شارح د بعضو قول بيانوي چې دا غير منصرف دي قبل الاعلال او بعد الاعلال دواړه ، قبل الاعلال خو صيغه د منتهى الجموع ده او بعد الاعلال ځكه چې

المحذوف كالملفوظ وي

دلته يو سوال راځي

**سوال**: تنوين د كوم ځاى نه راغلو چې غير منصرف شو

**جواب**: تنوين عوضي دي تنوين الصرف او ياء دواړه حذف شو او ياء نه مو تعبير په تنوين عوضي سره وكړو.

وفي لغة بعض العرب: په دې عبارت سره شارح دبعضو عربو قول ذكر كوي: دوي وايي چې په حالت جري كې به هم ياء ثابته وي لكه په حالت نصبي كې چې وه مثلاً رأيت جواريَ ومررت بجواريَ. دوي وايي چې اعلال باندې انصراف او عدم انصراف مقدم دي نو چې اعلال په كې نه دي شوي نو صيغه د منتهى الجموع باقي ده نو غير منصرف شوه.

## تركيب:

| |
|---|
| اَلتَّرْكِيْبُ وَ هُوَ صَيْرُوْرَةُ كَلِمَتَيْنِ اَوْ اَكْثَرَ كَلِمَةً وَاحِدَةً مِنْ غَيْرِ حَرْفِيَّةِ جُزْءٍ فَلَا يَرِدُ النَّجْمُ وَ بَصْرِيٌّ |
| تركيب دا گرځيدل د كلمودي يا دوه يرو كلمه يوه غير دحرفيت دجزء نه پس نه وارديږي چې نجم او بصري دا دوه |
| عَلَمَيْنِ شَرْطُهُ الْعَلَمِيَّةُ لِيَأْمَنَ مِنَ الزَّوَالِ فَيَحْصُلَ لَهُ قُوَّةٌ فَيُؤَثِّرُ بِهَا فِيْ مَنْعِ |
| علمونه دي شرط دهغې علميت دي چې په امن كې شي دزوال نه پس حاصل به شي هغه ته قوت مؤثره په منع |
| الصَّرْفِ وَ اِنْ لَّا يَكُوْنُ بِاِضَافَةٍ لِاَنَّ الْاِضَافَةَ تُخْرِجُ الْمُضَافَ اِلَى الصَّرْفِ اَوْ اِلٰى حُكْمِهٖ |
| صرف كې اونه به وي په اضافت سره ځكه چې اضافت خارجوي مضاف منصرف ته يا حكم دمنصرف كيدو ته |
| فَكَيْفَ تُؤَثِّرُ فِي الْمُضَافِ اِلَيْهِ مَا يُضَادُّهُ اَعْنِيْ مَنْعَ الصَّرْفِ وَلَا اِسْنَادٍ |
| بيا به څنگه تاثيروكړي په مضاف اليه كې هغه څيز كوم چې ضد دهغې وي يعني غير منصرف او په غير د اسناد |
| لِاَنَّ الْاِعْلَامَ الْمُشْتَمِلَةَ عَلَى الْاِسْنَادِ مِنْ قَبِيْلِ الْمَبْنِيَّاتِ نَحْوُ تَأَبَّطَ شَرًّا فَاِنَّهَا بَاقِيَةٌ |
| نه ځكه چې اعلام كوم چې مشتمل دي په اسناد باندې دقبيلې دمبنياتو نه دي لكه تأبط الشرا ځكه چې دا باقي |
| فِيْ حَالَةِ الْعَلَمِيَّةِ عَلٰى مَا كَانَتْ عَلَيْهَا قَبْلَ الْعَلَمِيَّةِ فَاِنَّ التَّسْمِيَةَ بِهَا اِنَّمَا |
| دي په حالت دعلميت كې هغه حالت په كوم باندې چې مخكې د علميت نه وو ځكه چې تسميه په دې سره داد |
| هِيَ لِدَلَالَتِهَا عَلٰى قِصَّةٍ غَرِيْبَةٍ فَلَوْ تَطَرَّقَ اِلَيْهَا التَّغَيُّرُ يُمْكِنُ اَنْ تَفُوْتَ تِلْكَ الدَّلَالَةُ وَ |
| وجې د دلالت نه ده په بود عجيبه قصه پس كه لاړ بياموزي دې ته بدلون ممكن دي چې فوت شي دغه دلالت او |
| اِذَا كَانَتْ مِنْ قَبِيْلِ الْمَبْنِيَّاتِ فَكَيْفَ يَتَصَوَّرُ فِيْهَا مَنْعُ الصَّرْفِ الَّذِيْ هُوَ مِنْ اَحْكَامِ |
| كله چې وو دغه د قبيلې د مبنياتو نه نو څنگه به متصور سي په هغې كې غير منصرف چې هغه د احكامو داسم |

| اَلْمُعْـرَبَـاتِ. |
| --- |
| معرب به دي |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب کافيه د ترکيب تعريف اوتفصيل بيانوي .

**اغراض دجامي** : التركيب: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي .

**سوال** : د ترکيب شمارل ستا د اسبابو دمنع صرف نه صحيح نه دي ځکه چې اسباب دمنع صرف من قبيل المفردات دي .

**جواب** : دا هم اوس بعد التركيب مفرد ګرځيدلې دي .

**وهو صيرورة الكلمتين** : په دې عبارت سره شارح بيان دمعنی دترکيب کوي ، او تعين دمعنی هلته کيږي چې چيرته احتمالات متعدد وي دترکيب ډيرې معاني دي : (۱) **جعل المتكلم الكلام مركباً** ، (۲) **حاصل بالمصدر** ، (۳) **صيرورة كلمتين** ، دلته دريمه معنی مراد ده چې هغه **صيرورة كلمتين** ده .

**من غير حرفية جزء** : په دې عبارت سره شارح بيان ديو قيد کوي چې دوه کلمې اويازياتې خو به يوه کلمه وګرځوي خو حرف به په کې جزء نه وي حرفية مضاف اوجزء مضاف اليه اوپه مضاف مضاف اليه کې مقصود هغه مضاف وي دلته مقصود نفي دحرفية ده دجزئيت نه ده .

**فلايرد** : په دې عبارت سره شارح فائده دقيد ذکر کوي چې که داقيد نه وي نو سوال راتلو چې **النجم** دوه کلمې دي بصرې دوه کلمې دي که دايو کس ته نوم کيږدي په کار ده چې غير منصرف شي اوسره ددې نه چې دامنصرف دي ، نو جواب دادې چې دا يوجزء حرف دي .

**العلمية ليأمن** : په دې عبارت سره شارج وجه داشتراط ذکر کوي .

**وان لايكون باضافة** : دانور شروط ذکر کوي په **لان الاضافة** سره شرط ذکر کوي **اضافة** غير منصرف منصرف کوي نو دې به څنګه غير منصرف لره شرط شي .

**او الى حكمه** : په دې عبارت کې اشاره ده اختلاف ته چې **جميع الباب** باللام سره داغير منصرف منصرف شو بعضې وايي چې نه غير منصرف باقي دي صرف حکم يې دمنصرف شو .

**لان الاعلام** : يو مرکب چې په کې اسنادي وي اوته يې چاله نوم کړي دادقبيلې دمبنياتو څخه شو لکه **تأبط شرا** فعل فاعل مفعول ، ولې په دې کې اسناد دي اوداقبيلې دمبنياتو څخه دي اګر چې علم شي ځکه په دې کې اشاره ده هغه قصې غريبې ته که تغير اوتبديل په کې وکړي نو

په هغه قصه غريبه کې فرق راځي

## د يو سوال جواب :

| |
|---|
| فَإِنْ قُلْتَ كَانَ عَلَى الْمُصَنِّفِ اَنْ يَّقُوْلَ وَ اَنْ لَا يَكُوْنَ الْجُزْءُ الثَّانِيْ مِنَ الْمُرَكَّبِ صَوْتًا وَلَا مُتَضَمِّنًا |
| که ته سوال وکړې چې لازم وو په مصنف چې ويلي ووچې نه به وي جزء ثاني د مرکب نه صوت او نه به متضمن وي د |
| لِحَرْفِ الْعَطْفِ لِيَخْرُجَ مِثْلَ سِيْبَوَيْهِ وَ نَفْطَوَيْه وَ مِثْلَ خَمْسَةَ عَشَرَ وَ سِتَّةَ عَشَرَ |
| پاره د حرف عطف چې خارج شي په دې سره په مثل د سيبويه او نفطويه او په مثل د خمسة عشر او ستة عشر چې دا |
| عَلَمَيْنِ قُلْنَا كَاَنَّهُ اِكْتَفَىٰ فِيْ ذٰلِكَ بِمَا ذَكَرَهُ فِيْمَا بَعْدَ اَنَّهُمَا مِنْ قَبِيْلِ الْمَبْنِيَّاتِ |
| دواړه علمين دي مونږ وايو گويا چې اکتفاء وکړه مصنف په دې کې هغه چې ذکر شو چې دا د قبيلې د مبنياتو نه |
| وَ اَمَّا الْاَعْلَامُ الْمُشْتَمِلَةُ عَلَى الْاِسْنَادِ فَلَمْ يَذْكُرْ بِنَاءَهَا اَصْلًا فَلِذٰلِكَ اِحْتَاجَ |
| دي او هر چې اعلام مشتمله په اسناد باندې پس ذکر يې نه کړل بناء د هغې بالکل د دې وجې نه احتياج پيدا شو |
| إِلٰى اِخْرَاجِهَا مِثْلُ بَعْلَبَكَّ فَاِنَّهُ عَلَمٌ لِبَلْدَةٍ مُرَكَّبٌ مِنْ بَعْلٍ هُوَ اِسْمُ صَنَمٍ وَ بَكٍّ هُوَ |
| شو اخراج د هغې ته لکه بعلبک دا علم دی د پاره د يو ښار چې مرکب دی د بعل نه چې دا نوم دی د بُت او بک چې دا |
| اِسْمُ صَاحِبِ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ جُعِلَا اِسْمًا وَاحِدًا مِنْ غَيْرِ اَنْ يَّقْصَدَ بَيْنَهُمَا |
| نوم دی د صاحب د دې ښار پس وگرځولې شو دواړه يو اسم په غير د دې نه چې قصد کړې شي په مينځ د دوي کې |
| نِسْبَةٌ اِضَافِيَّةٌ اَوْ اِسْنَادِيَّةٌ اَوْ غَيْرُهُمَا. |
| نسبت اضافي او يا اسنادي او يا غير د دې دواړو نه . |

**خلاصه د متن :** په دې عبارت کې صاحب کافيه د يو سوال جواب ورکوي .

**اغراض د جامي :** فان قلت: په دې عبارت سره شارح بيان د يو سوال کوي : چې د مصنف رحمه الله په عبارت کې قصور دی ځکه په مصنف يو سوال راځي او د هغې د پاره يو قيد لړول په کار وو او هغه نشته دي لکه **خمسة عشر سيبويه نفطويه** دا څلور نوم کيږد ترکيب په کې شته او علميت په کې راوله نو غير منصرف دې شي سره د دې نه چې دا د مبنياتو نه دي .

قيل: والا وايي چې اضافت به نه وي اسناد به نه وي او حرف صوت به نه وي نو **سيبويه** ووتلو او جزء ثاني به متضمن حرف لره نه وي نو **خمسة عشر** ووتلو نو د دې جواب کوي چې

حملنا: ما دا قيد ونه لړولو ځکه دا مي په مبني کې ويلي وو چې جزء ثاني به متضمن نه وي حرف لره او حرف صوت به نه وي ، په دې باندې يو بل سوال راځي

**سوال :** نو بيا به دې ورسره ولا اسنادا هم نه ذکر کولې کنه .

**جواب**: دا مې هلته نه وو ذکر کړي دلته مې ولا اسنادا وویلو

مثل بعلبک: په دې عبارت سره شارح تطبيق دمثال کوي دممثل سره

## الف او نون زائدتان:

| |
|---|
| اَلْاَلِفُ وَ النُّوْنُ الْمَعْدُوْدَتَانِ مِنْ اَسْبَابِ مَنْعِ الصَّرْفِ تُسَمِّيَانِ مَزِيْدَتَيْنِ لِاَنَّهُمَا مِنَ الْحُرُوْفِ |
| الف اونون هغه چې معدوده وي د اسبابو دمنع صرف نه نوم ورکولی شي هغې ته دزائدتانو خکه چې دادحروف |
| الزَّوَائِدِ وَ تُسَمِّيَانِ مُضَارِعَتَيْنِ اَيْضاً لِمُضَارِعَتِهِمَا لِاَلِفَيِ التَّانِيْثِ فِيْ مَنْعِ |
| زوائدونه دي اوهمدارنګې مسمى کولی شي په مضارعتين سره دوجې دمنع کولودالفودتانيث په منع کيدود |
| دُخُوْلِ تَاءِ التَّانِيْثِ عَلَيْهِمَا وَ لِلنُّحَاةِ خِلَافٌ فِيْ اَنَّ سَبَبِيَّتَهُمَا لِمَنْعِ الصَّرْفِ اِمَّا لِكَوْنِهِمَا مَزِيْدَتَيْنِ |
| دخول د تاء تانيثه کې نحويان اختلاف لري چې سببيت د منع صرف د الف او د نون يا کيدل ددې دي مزيدتين |
| وَ فَرْعِيَّتَهُمَا لِلْمَزِيْدِ عَلَيْهِ وَ اِمَّا لِمُشَابِهَتِهِمَا لِاَلِفَيِ التَّانِيْثِ وَ الرَّاجِحُ هُوَ الْقَوْلُ الثَّانِيْ |
| اوفرع کيدل ددې دي مزيد عليه باندې اويادمشابهت ددې دواړو نه دالفيو دتانيث سره اوراجح دوهم قول دي |
| ثُمَّ اِنَّهُمَا اِنْ كَانَتَا فِيْ اِسْمٍ يَعْنِيْ بِهِ مَا يُقَابِلُ الصِّفَةَ فَاِنَّ الْاِسْمَ |
| بيا که چيرته دا دواړه وي په اسم کې، يعني په هغه اسم کې چې کوم مقابل د صفت وي خکه چې هغه اسم چې |
| الْمُقَابِلَ لِلْفِعْلِ وَ الْحَرْفِ اِمَّا اَنْ لَا يَدُلَّ عَلٰى ذَاتٍ مَا لُوْحِظَ مَعَهَا صِفَةٌ مِنَ الصِّفَاتِ |
| هغه مقابل دفعل اودحرف وي يابه دلالت نه کوي په ذات کوم چې ملحوظ وي په هغې سره په يو صفت دصفاتو |
| كَرَجُلٍ وَ فَرَسٍ اَوْ يَدُلَّ كَاَحْمَرَ وَ ضَارِبٍ وَ مَضْرُوْبٍ فَالْاَوَّلُ يُسَمّٰى |
| نه لکه رجل او فرس يا به دلالت کوي په صفت د يو صفاتو لکه احمر او ضارب او مضروب نو اول مسمى کولی شي |
| اِسْمًا وَالثَّانِيْ صِفَةً فَالْمُرَادُ بِالْاِسْمِ الْمَذْكُوْرِ هٰهُنَا هُوَ هٰذَا الْمَعْنٰى لَا الْاِسْمُ الشَّامِلُ لِلْاِسْمِ وَ الصِّفَةِ. |
| اسم اودوهم صفت نومراد په اسم مذکور سره دلته دغه معنى ده نه هغه اسم چې شامل وي اسم اوصفت ته. |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره صاحب کافيه دالف اونون زائدتان تعريف کوي.

**اغراض دجامي**: الالف والنون: په دې عبارت سره شارح تعين دالف لام کوي چې په الالف کې الف لام عهد خارجي دي مراد ترې نه هغه الف نون دي چې په اجمال کې ذکر دي.

تسميان: په دې عبارت سره شارح وجه دتسميې کوي چې دادحروف زوائدو څخه دي حروف زوائد پس دتمام دکلمې څخه راځي.

وللنحاة: په دې عبارت سره شارح دالف نون په سببيت کې اختلاف بيانوي بصريان وايي چې دافرع دمزيد عليه دي مشابه دي دفعل سره په وجود دفرعيتين کې نو مشابهت سره دااسم

مشابهت سره داسم خواص لاړل چې جر او تنوین دي .

**کوفیان** وايي چې داسبب دي دمنع صرف دوجې دمشابهت دالفین دتانیث سره هغه سبب وو نو داهم سبب شو .

**والراجح**: په دې عبارت سره شارح راجح قول بیانوي چې راجح قول دوهم دي چې دادوجې د مشابهت دالفین دتانیث نه سبب دي نه دوجې دوجود دفرعیتین نه ځکه ددمانـة کې فرعیت دي او سره ددې نه چې غیر منصرف نه دي داقول دماتن نه شارح نقل کړي محققین وايي چې اول قول غوره دي ځکه که دادمشابهت دوجې نه سبب شي نو دابه مسبب شي .

**ثم ان کانتا في اسم یعني به**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي .

**سوال** : تا وویل چې ان کانتا في اسم او في صفة اسماء صفت کې دي مقابله راوستله دامقابله نه ده صحیح ځکه کله ناکله یو اسم او صفت یو ځای جمع کیدای شي لکه ضارب .

**جواب** : اسم کله مقابل دفعل او حرف وي او کله مقابل دلقب او دکنیت وي او کله مقابله د صفت وي او دلته مراد هغه اسم دي چې مقابل دصفت راځي هغه صفت نه چې جمع کیږي نو د فرق څه شو نو هغه اسم چې مقابل دفعل او دحرف دي دا اسم به یادلالت کوي په صرف ذات لکه رجل او فرس او کله به دلالت په ذات مع الصفة کوي لکه دلالت صرف په ذات کوي نو دا اسم شو او چې صفت ورسره وي نو بیا داصفت وي .

## دالف او نون زائدتان شرائط :

| فَشَرْطُهُ اَيْ شَرْطُ الْاَلِفِ وَالنُّوْنِ فِيْ مَنْعِهِمَا عَنِ الصَّرْفِ وَاِفْرَادِ الضَّمِيْرِ بِاِعْتِبَارِ اَنَّهُمَا سَبَبٌ وَاحِدٌ |
|---|
| شرط ددې یعني د الف او د نون په منع صرف کې افراد د ضمیر په اعتبار ددې سره چې دا دواړه سبب واحد دي |
| اَوْ شَرْطُ ذٰلِكَ الْاِسْمِ فِيْ اِمْتِنَاعِهٖ مِنَ الصَّرْفِ الْعَلَمِيَّةُ تَحْقِيْقًا لِلُزُوْمِ زِيَادَتِهِمَا |
| یا په اعتبار د شرط ددغه اسم کې دامتناع دمنع صرف نه علمیت دي حقیقتاً دوجې د لزوم د زیادت ددې دواړو |
| اَوْ لِيَمْتَنِعَ دُخُوْلُ التَّاءِ فَيَتَحَقَّقُ مُشَابَهَتُهُمَا بِاَلِفَيِ التَّانِيْثِ |
| یا دې د پاره چې منع کړي دخول د تاء په دې دواړو پس ثابت به شي مشابهت ددې دواړو دالفیو دتانیث سره لکه |
| عُمْرَانَ اَوْ كَانَتَا فِيْ صِفَةٍ فَانْتِفَاءُ فَعْلَانَةٍ اَيْ اِنْ كَانَ الْاَلِفُ وَ النُّوْنُ فِيْ صِفَةٍ فَشَرْطُهُ |
| عمران او یابه وي په یو صفت کې پس انتفاء دفعلانة یعني که چیرته وي الف او نون په یو صفت کې پس شرط د |
| انْتِفَاءُ فَعْلَانَةٍ يَعْنِي امْتِنَاعُ دُخُوْلِ تَاءِ التَّانِيْثِ عَلَيْهِ لِيَبْقٰى مُشَابَهَتُهُمَا لِاَلِفَيِ التَّانِيْثِ عَلٰى |
| انتفاء دفعلانة یعني امتناع ددخول دتاء تانیث ددې د پاره چې پاتې شي مشابهت ددې د الفیو د تانیث سره په |

| حَالِهَا وَ لِذَا اِنْصَرَفَ عُرْيَانٌ مَعَ اَنَّ صِفَةً لِاَنَّ مُؤَنَّثَةَ عُرْيَانَةٌ |
|---|
| خپل حال باندې او ددې وجې نه منصرف شو عريان سره ددې نه چې صفت دې خکه چې دا مؤنث د عريانة دي |
| وَ قِيْلَ شَرْطُهُ وُجُوْدُ فُعْلَى لِاَنَّهُ مَتٰى كَانَ مُؤَنَّثَةً فُعْلٰى لَا يَكُوْنُ فَعْلَانَةٌ فَيَبْقٰى |
| او چا ويلي دي چې شرط يې وجود د فعلى دي خکه چې کله دا وي مؤنث د فعلى نو نه راخي فعلانة پس باقي |
| مُشَابَهَةُ مَا لِاَلِفَيِ التَّانِيْثِ عَلٰى حَالِـهَا. |
| پاتې شو مشابهت ددې دالفيو دتانيث سره په خپل حال. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب کافيه د الف نون زائدتان شرط بيانوي .

**اغراض د جامي** : فشرطه اى شرط الالف والنون: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : تا وويل چې شرط يې علميت دي زه به درته وښائم چې علميت به په کې نه وي لکه سکران .

**جواب** : داشرط دوجود دپاره نه دي بلکه دسببيت دمنع صرف دپاره دي .

واقراد الضمير : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : مخکې الف نون دوه شيان دي او تا وويل چې شرطه نو شرطها ويل په کار وو .

**جواب** : ضمير مو خکه مفرد راوړو سره ددې نه چې دوه شيان دي خکه چې دا دواړه سبب واحد دي .

او شرط ذلک الاسم : په دې سره شارح دوهم جواب کوي : په شرطه کې ضمير الف نون ته نه دي راجع بلکه اسم ته راجع دي خو دا جواب ضعيف دي ، خکه داد ماسبق سره مخالف دي مخکې ضمائر ټول اسبابو ته راجع وو اودلته اسم ته راجع شو .

العلمية تحقيقا : په دې عبارت سره شارح وجه داشتراط بيانوي چې الف نون زائدتين ولې سبب دي ياله وجې دمشابهت نه اوياله وجې دفرعيت نه اوعلميت په کې شرط دي چې فرعيت يې قوي شي خکه اعلام محفوظ وي دتغير نه ياعلميت په کې شرط دي دپاره ددې چې محفوظ شي ددخول د تاء نه .

کعمران : الف نون مزيدتان به اسم کې وي ددې درې حالات دي عثمان سلمان عمران او چې صفت کې وي هلته دوه حالات راتلې شي مفتوح لکه سکران مضموم لکه عريان .

فانتفاء فعلانة اى ان كان : دا عطف شو په في اسم د هغې نه مخكې وو ان كانتا او س وايي ان كانتا في صفة اى ان كان الالف والنون يعني امتناع .

وقيل شرطه وجود فعلى لانه متى : په دې عبارت سره شارح وجه د اشتراط بيانوي چا ويلي چې شرط وجود د فعلى وي نو په دې تاء نه راخي مقصود د دواړو هغه نفي د تاء تانيثي ده .

| |
|---|
| وَ مِنْ ثَمَّ اَیْ وَ مِنْ اَجْلِ الْمُخَالَفَةِ فِي الشَّرْطِ اخْتَلَفَ فِي رَحْمَن فِي اَنَّهُ مُنْصَرِفٌ اَوْ غَيْرُ |
| اوددې وجې نه يعني دوجې د مخالفت نه په شرط كې اختلاف شوي په رحمان كې چې دا منصرف دي او يا غير |
| مُنْصَرِفٍ فَاِنَّهُ لَيْسَ لَهُ مُؤَنَّثٌ اِلاَّ رَحْمَانَةٌ وَلَا رَحْمَانَةٌ لِاَنَّهُ صِفَةٌ خَاصَّةٌ اللهِ تَعَالَى لَا |
| منصرف خكه چې دانه لري مؤنث مگر رحمانة اونشته رحمانة خكه چې داصفت خاصه د الله تعالى دي نه كيږي |
| يُطْلَقُ عَلَى غَيْرِهِ تَعَالَى لَا عَلَى مُذَكَّرٍ وَ لَا عَلَى مُؤَنَّثٍ فَعَلَى مَذْهَبِ مَنْ شَرَطَ |
| اطلاق يې په غير د الله تعالى نه په بل چا نه په مذكر او نه په مؤنث پس په مذهب د هغه چا چې شرط يې لرولي |
| انْتِفَاءُ فَعْلَانَةٍ فَهُوَ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ وَ عَلَى مَذْهَبِ مَنْ شَرَطَ وُجُوْدُ فَعْلَى هُوَ مُنْصَرِفٌ دُوْنَ سُكْرَانَ |
| انتفاء د فعلانة دا غير منصرف دي او په مذهب د هغه چا چې شرط كړي وجود د فعلى دا منصرف دي نه سكران |
| فَاِنَّهُ لَا خِلَافَ فِي مَنْعِ صَرْفِهِ لِوُجُوْدِ الشَّرْطِ عَلَى الْمَذْهَبَيْنِ فَاِنَّهُ مُؤَنَّثُهُ |
| خكه چې خلاف نشته په منع صرف دهغې كې د وجې د وجود د شرط نه په دواړو مذاهبو كې خكه چې مؤنث د |
| سُكْرَى لَا سُكْرَانَةٌ وَ دُوْنَ نَدْمَانٍ فَاِنَّهُ لَا خِلَافَ فِي صَرْفِهِ لِانْتِفَاءِ الشَّرْطِ |
| هغې سكرى دي نه سكرانة اونه ندمان خكه چې خلاف نشته په منصرف كيدو دهغې كې دوجې دانتفاء دشرط |
| عَلَى الْمَذْهَبَيْنِ لِاَنَّهُ مُؤَنَّثُهُ نَدْمَانَةٌ لَا نَدْمَى هَذَا اِذَا كَانَ نَدْمَانٌ بِمَعْنَى النَّدِيْمِ وَ اَمَّا اِذَا كَانَ |
| په دواړو مذاهبو خكه چې مؤنث دهغې ندمانة دي نه ندمى دا هله چې كله وي ندمان په معنى د نديم اوچې كله |
| بِمَعْنَى النَّادِمِ فَهُوَ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ بِالْاِتِّفَاقِ لِاَنَّ مُؤَنَّثَهُ نَدْمَى لَا نَدْمَانَةٌ. |
| په معنى د نادم شي داغير منصرف دي بالاتفاق خكه چې مؤنث يې بيا ندمى دي نه ندمانة. |

**اغراض دجامي** : ومن ثم : چې مخالفت د شرط راشي .

اختلف رحمن : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : رحمن كې خو خلاف نشته داخو د الله نوم دي .

**جواب** : په انصراف اوعدم انصراف كې يې اختلاف دي په رحمن كې الف نون مزيدتان راغلي دي مؤنث يې فعلانة رحمانة نشته دي نو شرط په كې موجود شو نو غير منصرف شو .

دون سكران : دلته معنى د دون داده چې په دې کې خلاف نشته دې چې غير منصرف دې اتفاقا. خکه مؤنث يې سکرانة نه راځي او سکرى راځي .

و دون ندمان : ندمان کې اختلاف نشته چې منصرف دې معنى د دون اى لاخلاف في صرفه .

هذا اذاكان ندمان : په دې عبارت سره قول آخر ذکر کوي چې ندمان د ندیم نه شي په معنى د ملګري سره بيا منصرف دې اوچې ندمان د ندم نه شي نو بيا غير منصرف دې خکه شرطين په کې موجود دې چې مؤنث يې ندمى راځي ندمانة نه راځي .

## وزن الفعل :

| |
|---|
| وَزْنُ الْفِعْلِ وَ هُوَ كَوْنُ الْاِسْمِ عَلٰى وَزْنٍ يُعَدُّ مِنْ اَوْزَانِ الْفِعْلِ وَ هٰذَا الْقَدْرُ لَا يَكْفِيْ فِيْ سَبَبِيَّةِ |
| وزن فعل دا کیدل د اسم دې په داسې وزن چې شمارلې شي د اوزانو د فعل نه اودا قدر نه دې کافي په سببيت د |
| مَنْعِ الصَّرْفِ بَلْ شَرْطُهٗ فِيْهَا اَحَدُ الْاَمْرَيْنِ اِمَّا اَنْ يَّخْتَصَّ فِي اللُّغَةِ الْعَرَبِيَّةِ بِهٖ اَيْ بِالْفِعْلِ |
| منع صرف کې بلکې شرط د هغې کې يو دوو امرينو دي يابه خاص وي په لغت عربيه سره په دې پورې يعني په فعل |
| يَعْنِيْ اَنَّهٗ لَا يُوْجَدُ فِي الْاِسْمِ الْعَرَبِيِّ اِلَّا مَنْقُوْلاً مِنَ الْفِعْلِ كَشَمَّرَ عَلٰى صِيْغَةِ الْمَاضِي الْمَعْلُوْمِ مِنَ |
| کې يعني داچې نه به موجود يږي په اسم عربي کې مګرمنقول د فعل نه لکه شمر په صيغې د ماضي معلوم سره د |
| التَّشْمِيْرِ فَاِنَّهٗ نُقِلَ مِنْ هٰذِهِ الصِّيْغَةِ وَ جُعِلَ عَلَماً لِلْفَرَسِ وَ كَذٰلِكَ بَذَّرَ لِمَاءٍ وَ |
| تشمير نه خکه چې دا نقل شوې د دې صيغې نه او ګرځولې شي علم د پاره د آس او همدا رنګې بذر د پاره د اوبو او |
| عَثَّرَ لِمَوْضِعٍ وَ خَضَّمَ لِرَجُلٍ اَفْعَالٌ نُقِلَتْ اِلَى الْاِسْمِيَّةِ وَ اَمَّا نَحْوُ بَقَّمَ |
| عثر د پاره د يو خاى او خضم د پاره د سړي دا ټول افعال دي چې نقل شوي دي اسميت ته او هرچې په مثل د بقم چې |
| اِسْماً لِصَبْغٍ مَعْرُوْفٍ وَ هُوَ الْعَنْدَمُ وَ شَلَّمَ عَلَماً لِمَوْضِعٍ بِالشَّامِ فَهُوَ مِنَ الْاَسْمَاءِ |
| نوم دي د پاره د معلوم رنګ چې هغه عندم (دم الاخوين) دي او شلم دا نوم دي د يو خاى په شام کې نو دا د اسماء |
| الْعَجَمِيَّةِ الْمَنْقُوْلَةِ اِلَى الْعَرَبِيَّةِ فَلَا يَقْدَحُ فِيْ ذٰلِكَ الْاِخْتِصَاصِ وَ مِثْلُ ضُرِبَ عَلَى الْبِنَاءِ |
| عجميو نه دي چې نقل شوي دي عربي ته پس نه منع کيږي په دې کې اختصاص او په مثل د ضُرب بنا مبر صيغه |
| لِلْمَفْعُوْلِ اِذَا جُعِلَ عَلَماً لِشَخْصٍ فَاِنَّهٗ اَيْضاً غَيْرُ مُنْصَرِفٍ لِلْعَلَمِيَّةِ وَ وَزْنِ الْفِعْلِ. |
| مفعول چې کله وګرځولې شي علم د پاره د يو شخص نو دا هم غيرمنصرف دي دوجې د علميت او وزن فعل نه. |

**خلاصه د متن :** په دې عبارت سره صاحب کافيه د وزن فعل تعريف کوي

**اغراض د جامي :** وزن الفعل وهو كون الاسم على وزن : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : دوزن اضافت شوې دي فعل ته او متبادر داضافت نه اضافت لامي وي او اضافت لامي مفيد دتخصيص وي نو معنى دا شوه چې دا وزن به خاص وي په فعل پورې نو چې دا فائده حاصله شوه نو وروسته عبارت ته حاجت پاتې نه شو چې هغه دا دې ان يختص به .

**جواب** : چې مراد دوزن نه هغه وزن دي چې يعد من اوزان الفعل اوس فعل پورې خاص وي او كه نه نو دا عام شو

وهذا القدر لا يكفي: په دې عبارت سره شارح توضيه اوتمهيد دمتن آتي دپاره ذكر كوي .

احد الامرين: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : تا وويل چې شرطه ان يختص به او يكون في اوله الخ او راخي دپاره دتشكيك نو ستا هم په دې كې شک دي چې كوم يو به په كې وي .

**جواب** : او د پاره دتقسيم دي چې يو به ددې دوارو څخه په كې وي .

باللغة العربية: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : تا وزن فعل دپاره شرط هغه اختصاص وګرځولو په فعل پورې زه به درته وښائم چې وزن فعل به هم په كې وي اوعلميت به هم په كې وي اودغه وزن به خاص نه وي په فعل بلكه داول نه به په دغه اسم كې موجودوي لكه بقم .

**جواب** : مراد دوزن هغه وزن دلغت عربي دي او بقم خو وزن عجمي دي .

كشمر على صيغة الخ: په دې عبارت سره شارح تطبيق دمثال كو دممثل سره ، اوبل دا چې اسم دي او وزن يې دفعل ماضي معلوم دي .

وكذلک بذر: په دې عبارت سره شارح تعميم ذكر كوي چې د شمر په شان بذر هم غير منصرف دي دوجې دوزن فعل لوبل داچې بذر علم دي دپاره دماء او عثر هم دا غير منصرف دي ، او همدارنګې خضم .

ومثل ضرب: دا ماضي مجهول ده .

| وَ اِنَّمَا قَيَّدْنَا بِالْبِنَاءِ لِلْمَفْعُوْلِ فَاِنَّهُ عَلَى الْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ غَيْرُ مُخْتَصٍّ بِالْفِعْلِ وَ لَمْ يَذْهَبْ |
| --- |
| اومقيد كړو مونږ دا په بناء للمفعول باندې ځكه چې دابنا برفاعليت غيرمختص ده تر فعل پورې اوذهاب نه دي |
| اِلَى مَنْعِ صَرْفِهِ اِلَّا بَعْضُ النُّحَاةِ اَوْ يَكُوْنَ غَيْرَ مُخْتَصٍّ وَ لٰكِنْ يَكُوْنُ فِيْ اَوَّلِهِ اَيْ فِيْ اَوَّلِ |
| كړي غير منصرف كيدو ددې ته مګر بعضو نحويانو اويا به وي غير مختص ليكن وي به په اول ددې يعني په اول |

| |
|---|
| وَزْنِ الْفِعْلِ اَوْ اَوَّلُ مَا كَانَ عَلٰى وَزْنِ الْفِعْلِ زِيَادَةٌ اَىْ زِيَادَةُ حَرْفٍ اَوْ حَرْفٌ زَائِدٌ مِنْ حُرُوْفِ |
| دوزن فعل کښ اويا په اول د هغه څه چې په وزن دفعل وي زيادت يعنې زيادت دحرف اويا يوحرف زائدد حروف |
| اَتَيْنَ كَزِيَادَتِهٖ اَىْ مِثْلُ زِيَادَةِ حَرْفٍ اَوْ حَرْفٌ زَائِدٌ فِيْ اَوَّلِ الْفِعْلِ غَيْرَ قَابِلٍ اَىْ حَالَ كَوْنِ |
| اتين نه لکه زيادت يعنې په شان د زيادت د حرف او يا حرف زائد په اول د فعل کښې غير قابل يعنې په حال کون |
| وَزْنٍ بِالْفِعْلِ اَوْ مَا كَانَ عَلٰى وَزْنِهٖ غَيْرَ قَابِلٍ لِلتَّاءِ لِاَنَّهٗ يَخْرُجُ الْوَزْنُ |
| ددې چې په وزن دفعل وي اوياهغه څه چې په وزن دفعل وي غير قابل وي دپاره دتاء ځکه چې خارجيږي وزن په |
| بِهٰذِهِ التَّاءِ لِاخْتِصَاصِهَا بِالْاِسْمِ عَنْ اَوْزَانِ الْفِعْلِ. |
| دې تاءسره دوجې داختصاص دتاء نه داسم سره دوزن فعل نه |

**اغراض د جامي : وانما قيدنا بالبناء للمفعول**: داځکه مبني للفاعل نه دي چې هغه مختص نه دي په فعل پورې .

**ولم يذهب الى منع صرفه** : دماضي معلوم چې کله دا وزن وي نو په دې کښې اختلاف دي بعضې وايي چې دا غير منصرف دي ځکه دا وزن مشترک دي چې په اسم کښې موجوديږي نودا به منقول وي دفعل نه ، نو خاص شو دا وزن په فعل پورې ، جمهور وايي چې نه دامنصرف دي ځکه چې په دواړو کښې جدا جدا استعماليږي منقول نه دي دچا نه او نه يې دچا پورې اختصاص شته .

**اويکون غير مختص**: په دې عبارت سره شارح اشاره وکړه قاعدې دعطف ته چې او يکون عطف دي په ان يختص نو دشرطه لاندې راغلو نو تقدير دعبارت داسې شو چې فشرطه ان يختص بالفعل اويکون في اوله .

**في اوله اى في اول وزن الفعل او على ماكان على وزن الفعل**: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي ذکر داحتمالينو ته چې د اوله ضمير ياراجع دي وزن فعل ته ياراجع دي على ماكان على وزنه ته .

**زيادة اى زيادة حرف اوحرف زائد**: په دې عبارت سره شارح داخبره ذکر کوي چې که داوله ضمير راجع شي وزن فعل ته نو زيادة به په معنى مصدري سره استعماليږي تقدير دعبارت به داسې وي چې في اول وزن الفعل زيادة حرف اوکه د اوله ضمير راجع شي اول د ماكان على وزن الفعل ته نو بيا به زيادت په معنى دفاعل سره وي تقدير دعبارت به داسې شي چې في اول ماكان على وزن الفعل حرف زائد .

**کزيادته اى مثل**: په دې عبارت سره شارح تعين دضمير کوي .

| |
|---|
| وَ لَوْ قَالَ غَيْرَ قَابِلٍ لِلتَّاءِ قِيَاساً وَ بِالْاِعْتِبَارِ الَّذِيْ اِمْتَنَعَ مِنَ الصَّرْفِ |
| اوكه چيرته ويلې وې مصنف چې غير قابل به وې د پاره د تاء قياساً او په هغه اعتبار سره چې منع کوي د صرف نه |
| لِاَجْلِهٖ لَمْ يَرِدْ عَلَيْهِ اَرْبَعٌ اِذَا سُمِّيَ بِهٖ فَاِنَّ لُحُوْقَ التَّاءِ بِهٖ |
| دوجې د تاء نه نه وارديږي په مصنف باندې لفظ داربع چې كله مسمى شي په دې سره ځکه چې لحوق د تاء په |
| لِلتَّذْكِيْرِ فَلَا يَكُوْنُ قِيَاساً وَلَا اَسْوَدُ فَاِنَّ مَجِيْئَ التَّاءِ فِيْ اَسْوَدَةٍ |
| دې اربع پورې د پاره د تذكير وي نه قياساً او نه لفظ د اسود ځکه چې راتلل د تاء په اسودة کې چې علم وي د پاره |
| لِلْحَيَّةِ الْاُنْثٰى لَيْسَ بِاِعْتِبَارِ الْوَصْفِ الْاَصْلِيِّ الَّذِيْ لِاَجْلِهٖ يَمْتَنِعُ مِنَ الصَّرْفِ بَلْ |
| د مؤنث مار د پاره نه دې په اعتبار د وصف اصلي سره هغه چې دوجې دهغې نه منع كيږي منصرف كيدل بلكې |
| بِاِعْتِبَارِ غَلَبَةِ الْاِسْمِيَّةِ الْعَارِضِيَّةِ وَ مِنْ ثَمَّ اَیْ وَ مِنْ اَجْلِ اِشْتِرَاطِ عَدَمِ قُبُوْلِ التَّاءِ اِمْتَنَعَ اَحْمَرُ عَنِ |
| په اعتبار د غلبت د اسميت عارضه سره او د دې وجې نه يعني دوجې د اشتراط د عدم قبول د تاء نه منع شو احمر د |
| الصَّرْفِ لِوُجُوْدِ الزِّيَادَةِ الْمَذْكُوْرَةِ مَعَ عَدَمِ قُبُوْلِ التَّاءِ وَانْصَرَفَ يَعْمَلُ لِقُبُوْلِهٖ |
| منصرف کيدو نه دوجې د وجود د زيادت مذکوره سره د نښتوالي د قبول د تاء او منصرف شو يعمل دوجې د قبول د |
| التَّاءِ لِمَجِيْئِ يَعْمَلَةٍ لِلنَّاقَةِ الْقَوِيَّةِ عَلَى الْعَمَلِ وَ السَّيْرِ وَ مَا فِيْهِ عَلَمِيَّةٌ مُؤَثِّرَةٌ |
| تاء نه ځکه چې مستعمليږي يعملة د قوي كار كړې اوښې د پاره او هغه څه چې په هغې كې علميت مؤثره وي |
| اَیْ كُلُّ اِسْمٍ غَيْرِ مُنْصَرِفٍ تَكُوْنُ فِيْهِ عَلَمِيَّةٌ مُؤَثِّرَةٌ فِيْ مَنْعِ الصَّرْفِ بِالسَّبَبِيَّةِ الْمَحْضَةِ اَوْ مَعَ الشَّرْطِيَّةِ |
| يعني هر هغه اسم چې وي په هغې کې علميت مؤثره په منع صرف کې په سببيت محضه سره يا سره د شرطيت سره |
| بِسَبَبٍ آخَرَ. |
| په بل سبب سره. |

**اغراض د جامي :** غير قابل ای حال كون وزن الفعل: په دې عبارت کې يو وجه دنصب دغير قابل ذكر كوي او بل بيان داحتمالينو كوي ، غير قابل دا حال دې د اوله دضمير نه اودا ضمير مضاف اليه دې او حال واقع كيدل دمضاف اليه نه صحيح دې په هغه صورت كې چې حذف د مضاف جائز وي او مضاف اليه قائمقام كيدای شي ددغه مضاف ځخه او دلته هم داسې دې نو تقدير به داسې شي چې او يكون في وزن الفعل زيادة ای حال كون وزن الفعل او ما كان على وزن الفعل په دې سره دوهم غرض هم وشو .

غير قابل للتاء لانه يخرج الوزن: په دې عبارت سره شارح دليل ذكر كړې چې قابل د تاء به ولې نه وي ځکه چې په دې تاء سره دغه وزن داوزانو دفعل ځخه وځي ځكه تا خاص ده په اسم پورې.

ولو قال غير قابل للتاء قياساً: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : اربع دا ديو سړي نوم کيده په کار ده چې دا منصرف شي ځکه وزن فعل اوعلميت په کې شته خو شرط په کې نشته چې غير قابل للتاء بلکه قابل د تاء وي .

**جواب** : مراد د تاء نه تاء قياسيه ده او اربع کې خو تاء غير قياسي ده ځکه په اسماء عددو کې تاء خلاف القياس راځي دپاره دفرق په مينځ دمذکر اومؤنث کې .

ومن ثم امتنع احمر : اودوچې داشتراط دعدم قبول دتاء ځخه احمر غير منصرف دې ځکه يو حرف دحروفو اتينو ځخه هم په کې زيات شوې اوعدم قابل دتاء هم دې .

وانصرف يعمل : يعمل دا منصرف دې ځکه چې قابل د تاء دې .

وما فيه علمية مؤثرة : ددې ځای نه شارح اسباب دانصراف ذکر کوي ، دانصراف پنځه اسباب دي دوه يې مخکې کړل چې يو ضرورت شعري اوبل تناسب وو اوس هغه نور دري ذکر کوي چې العلم اذا نکر صرف دې اوبل جميع الباب باللام اوبالاضافة ينجر بالکسر دي ذکر کوي ، دلته يو قاعده ذکر کوو :

**قاعده** : هر هغه اسباب دمنع صرف چې علميت په کې سبب اوشرط دواړو وي نو چې کله دغه اسم نکره کړې شي نو بلا سببه به پاتې شي نو منصرف به ګرځي اوچې علميت ورلره سبب ثاني وي شرط ورله نه وي نو چې کله نکره کړې شي نو په سبب واحد سره به پاتې شي نو ددې وجې نه به منصرف ګرځي او چې علميت ورسره جمع شوې وي نه ورلره شرط وي اونه سبب نو چې کله نکره کړې شي نو بيا به غير منصرف وي لکه په الفين دتانيث کې اوپه جمع کې .

اى کل اسم غير منصرف : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : وما فيه علمية مؤثرة داقضيه مهمله ده اومهملات په حکم دجزئياتو کې وي اوقضايا جزئيه دا ممنوع في العلوم وي .

**جواب** : دامنم چې داقضيه مهمله ده خودانه منم چې هره مهمله په حکم دجزئيه کې وي بلکه مهمله په دوه قسمه ده مهمله په محاوراتو کې اومهمله په علومو کې مهمله په محاوراتو کې داپه حکم دجزئي کې وي اومهمله په علومو کې داپه حکم دجزئي کې نه وي اومونږ دلته بحث په علومو کې کوو .

مؤثرة في منع الصرف بالسببية المحضة او مع الشرطية : چې مؤثر دامعنى چې ياصرف سبب وي

اوياسبب هم وي اوشرط هم .

| |
|---|
| وَ احْتَرَزَ بِذٰلِكَ عَمَّا تَجَامَعَ اَلِفِ التَّانِيْثِ اَوْ صِيْغَةُ مُنْتَهَى الْمُجُمُوْعِ فَاِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ |
| او احتراز يې وکړو په دې سره د هغه څه نه چې جمع کېږي الف د تانيث ياصيغه د منتهى الجموع چې هريوواحد |
| مِنْهُمَا كَافٍ فِيْ مَنْعِ الصَّرْفِ لَا تَاْثِيْرَ فِيْهِ لِلْعَلَمِيَّةِ اِذَا نُكِّرَ بِاَنْ يُّؤَوَّلَ |
| ددې نه کافي دي په منع صرف کې په غير د تاثير د علميت نه کله چې نکره کړې شي په دې شان چې تاويل وکړې |
| الْعَلَمُ بِوَاحِدٍ مِنَ الْجَمَاعَةِ الْمُسَمَّاةِ بِهٖ نَحْوُ هٰذَا زَيْدٌ وَ رَاَيْتُ زَيْداً آخَرَ فَاِنَّهٗ اُرِيْدَ |
| شي د علم په واحد سره د هغه جماعت نه چې مسمى وي په هغې سره لکه هذا زيد ورأيت زيداً اخر پس اراده وکړې |
| بِهِ الْمُسَمّٰى بِزَيْدٍ اَوْ يُجْعَلُ عِبَارَةً الْوَصْفِ الْمُشْتَهِرِ صَاحِبِهٖ |
| شوه په دې سره مسمى د زيد او وګرځولې شو عبارت د هغه وصف نه چې کوم مشهور وي په هغې سره صاحب د |
| بِهٖ نَحْوُ قَوْلِهِمْ لِكُلِّ فِرْعَوْنٍ مُوْسٰى اَيْ لِكُلِّ مُبْطِلٍ مُحِقٌّ صُرِّفَ لَمَّا تَبَيَّنَ اَيْ ظَهَرَ |
| هغې سره لکه د اقول لکل فرعون موسى يعني لکل مبطل محق نو منصرف کړې شو دوچې د ظهورنه يعني ظاهر شو په |
| حِيْنَ بَيِّنَ اَسْبَابَ مَنْعِ الصَّرْفِ وَ شَرَائِطِهَا فِيْمَا سَبَقَ مِنْ اَنَّهَا اَيِ الْعَلَمِيَّةِ لَا تُجَامِعُ |
| هغه وخت کې چې بيان يې کړل اسباب د منع صرف اوشرائط د هغې په فيما سبق کې چې د اعلميت نه جمع کيږي |
| مُؤَثِّرَةً اِلَّا مَا اَيْ السَّبَبُ الَّذِيْ هِيَ اَيِ الْعَلَمِيَّةُ شَرْطٌ فِيْهِ وَذٰلِكَ فِي التَّانِيْثِ بِالتَّاءِ لَفْظاً اَوْ مَعْنًى وَالْعُجْمَةُ وَالتَّرْكِيْبُ وَ |
| مؤثر مګر هغه سبب چې علميت شرط وي په هغې کې اودا په تانيث بالتاء کې لفظاً اومعناً او عجمه اوترکيب او |
| الْاَلِفُ وَالنُّوْنُ الْمَزِيْدَتَيْنِ فَاِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْ هٰذِهِ الْاَسْبَابِ الْاَرْبَعَةِ مَشْرُوْطٌ بِالْعَلَمِيَّةِ اِلَّا الْعَدْلُ وَ وَزْنُ الْفِعْلِ |
| الف اونون زائدتان ځکه چې هريوواحد ددې اسباب اربعونه مشروط دي بالعلمية په غير د عدل او وزن فعل نه دا |
| اِسْتِثْنَاءٌ مِمَّا بَقِيَ مِنَ الْاِسْتِثْنَاءِ الْاَوَّلِ اَيْ لَا تُجَامِعُ غَيْرَ مَا هِيَ شَرْطٌ فِيْهِ |
| استثناء د مابقي نه شوه د استثناء اولى نه يعني نه جمع کيږي غير د هغه نه چې شرط شوې وي په هغې کې علميت |
| اِلَّا الْعَدْلُ وَ وَزْنُ الْفِعْلِ فَاِنَّ الْعَلَمِيَّةَ تُجَامِعُهَا مُؤَثِّرَةً كَمَا فِيْ عُمَرَ وَ اَحْمَدَ وَ لَيْسَتْ شَرْطًا |
| مګر عدل اووزن فعل ځکه چې علميت جمع کيږي ددې سره مؤثره لکه په عمر او احمد کې اونه دي علميت شرط |
| فِيْهِمَا كَمَا فِيْ ثُلَثَ وَ اَحْمَرَ. |
| په دې دواړو کې لکه څنګه چې شرط دي په ثلاث او احمر کې. |

**خلاصه دمتن :** په دې عبارت سره صاحب کافيه فائده دقيد ذکر کوي .

**اغراض د جامي :** واحترز بذلک: په دې عبارت سره شارح فائده دقيد ذکر کوي چې د مؤثره قيد نه هغه اسباب خارج شو چې علميت ورسره صرف جمع شوې نه سبب وي اونه شرط لکه الفين د تانيث او صيغه د منتهى الجموع ځکه دا دواړه جدا جدا قائمقام د سببينو دي

علميت لره په کې څه تاثير نشته .

اذا نکره صرف : اذا شرطيه ده او صرف يې جزا شوه .

بأن يؤول العلم : طريقه دتنکير داده چې دا علم واحد من الجماعة وګرځوي لا على التعين لکه هذا زيد ورأيت زيدا آخر ، زيد دانکره ده ځکه صفت يې نکره راغلې ده که چيرته معرفه وي نو صفت به يې هم معرفه راغلې وي .

اويجعل عبارة : په دې عبارت سره شارح دوهمه طريقه دتنکير بيانوي اوهغه داچې داعلم وګرځوي هغه وصف چې مشهور وي په هغې سره صاحب ددغه علم لکه فرعون دامشهور دي په مبطل سره او موسى مشهور دي په محق سره او ته د لکل فرعون موسى نه لکل مبطل محق واخلې .

لما تبين اى ظهر حين : معنى دتبين بيانوي چې معنى دتبين ظهور ده اوبل داچې علم کله نکره کړې شي نومنصرف ګرځي هغه اسم چې داعلميت په کې سبب اوشرط دواړه وي اودا ظاهرېږي په تانيث لفظي اومعنوي اوپه عجمه ترکيب اوالف نون مزيدتين کې .

الا ما اى السبب الذي : په دې عبارت سره شارح د تعين دما کوي چې دا موصوله ده اوبل ذکر د مشار اليه کوي چې دهغې دپاره شرط فيه او عليمت مشار اليه ده .

الا العدل ووزن الفعل استثناء من مابقي من الاستثناء الاول الخ : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي ، خو دسوال نه مخکې يوه قاعده ذکر کوو :

**قاعده** : چې يوه مستثنى منه راشي اودهغې نه وروستو استثناء راشي اوددې نه وروستو بله استثناء راشي نو کتابونه ليکي چې دوه مستثنى ګانې ديومستثنى منه څخه نه دي جائز اود عدم جواز دپاره يې مشهوره وجه دابنودلې ده چې فصل راځي په مينځ دمستثنى منه او استثناء ثاني کې په استثناء اولى سره لکه جاء في القوم الا زيدا الا عمروا خو داوجه کمزوري دي ځکه چې فصل داپه صفت اوموصوف کې نه دي جائز په مستثنى منه اواستثناء کې خو جائز دي .

بل داچې محققينو ذکر کړې دي اوهغه داچې مستثنى اوله داپه حقيقت کې مفعول اول او مستثنى ثاني دامفعول ثاني وي اوقاعده داده چې فعل کله متعدي کېږي مفعول اول ته او بيايې ته متعدي کوي مفعول ثاني ته نو اعاده دعاطف داضروري وي نو لهذا دلته هم اعاده د مستثنى منه ضروري ده داستثناء ثاني دپاره داسې ويل په کار دي چې لاتجامع مؤثره الا ما هي

شرط فيه ولاتجامع مؤثرة الا العدل ووزن الفعل .

**جواب** : دلته مستثنی منه يوه نه ده بلکه داستثناء ثاني دپاره مستثنی منه مابقي داستثناء اولی ده تقدير دعبارت داسې دي چې لاتجامع مؤثرة الا ماهي شرط فيه او لاتجامع غير ماهي شرط فيه الا العدل ووزن الفعل .

كما في عمر واحمد : په دې عبارت سره شارح توضيح بالمثال کوي .

| |
|---|
| وَ هُمَا أَيِ الْعَدْلُ وَ وَزْنُ الْفِعْلِ مُتَضَادَّانِ لِأَنَّ الْأَسْمَاءَ الْمَعْدُوْلَةَ بِالْإِسْتِقْرَاءِ عَلَى أَوْزَانٍ مَخْصُوْصَةٍ |
| اودا عدل او وزن فعل متضادان دي خکه چې اسماء معدوله په استقرا سره موجود يږي په يو څو خاص وزنونو او |
| لَيْسَ شَيْءٌ مِنْهَا مِنْ أَوْزَانِ الْفِعْلِ الْمُعْتَبَرَةِ فِيْ مَنْعِ الصَّرْفِ فَلَا يَكُوْنُ مَعَهَا أَيْ |
| نشته هيڅ څيز دغه وزنونو داوزان فعل نه چې معتبروي په غير منصرف کې پس نه به وي دعلميت سره يعني |
| لَا يُوْجَدُ مَعَهَا شَيْءٌ مِنَ الْأَمْرِ الدَّائِرِ بَيْنَ مَجْمُوْعِ هٰذَيْنِ السَّبَبَيْنِ وَ بَيْنَ أَحَدِهِمَا فَقَطْ إِلَّا أَحَدُهُمَا |
| نه به موجود يږي يو څيز دامر دائر په مينځ دمجموع ددوارو سببينو کې يا په مابين د يو ددې کې مګر يو ددې نه |
| فَقَطْ لَا مَجْمُوْعُهُمَا فَإِذَا نُكِّرَ غَيْرُ الْمُنْصَرِفِ الَّذِيْ أَحَدُ أَسْبَابِهِ الْعَلَمِيَّةُ بَقِيَ |
| فقط نه مجموعاً پس کله چې نکره کړې شي غير منصرف چې يو داسبابو دهغې نه علميت وي باقي به پاتې شي |
| بِلَا سَبَبٍ أَيْ لَمْ يَبْقَ فِيْهِ سَبَبٌ مِنْ حَيْثُ هُوَ سَبَبٌ فِيْمَا هِيَ شَرْطٌ مِنَ الْأَسْبَابِ |
| بلاسببه يعني پاتې به نه شي په هغې کې داسې سبب چې د حيثيته ددې نه چې دا سبب مشروطه وي د اسباب |
| الْأَرْبَعَةِ الْمَذْكُوْرَةِ لِأَنَّهُ قَدِ انْتَفَى أَحَدُ السَّبَبَيْنِ الَّذِيْ هُوَ الْعَلَمِيَّةُ بِذَاتِهَا وَ السَّبَبُ |
| اربعومذکورونه خکه چې په تحقيق سره منتفي شويودسببينوهغه چې هغه علميت وو په خپل ذات کې اوسبب |
| الْآخَرُ الْمَشْرُوْطُ بِالْعَلَمِيَّةِ مِنْ حَيْثُ صِفَةِ سَبَبِيَّتِهِ فَلَا يَبْقَى فِيْهِ سَبَبٌ مِنْ حَيْثُ |
| آخرچې هغه مشروط بالعلميت وودحيثيت دوصف نه نوباقي پاتې نه شوپه دې کې سبب دحيثيت ددې نه چې |
| هُوَ سَبَبٌ أَوْ عَلَى سَبَبٍ وَاحِدٍ فِيْمَا هِيَ لَيْسَتْ بِشَرْطٍ فِيْهِ مِنَ الْعَدْلِ وَ |
| دا سبب وي په خپل ذات کې او يا به پاتې شي په يو سبب په هغه ځای کې چې نه وي شرط په هغې کې د عدل او |
| وَزْنِ الْفِعْلِ هٰذَا وَ قَدْ قِيْلَ عَلَى قَوْلِهِ وَ هُمَا مُتَضَادَّانِ إِنَّ اصْمِتْ بِكَسْرَتَيْنِ عَلَمًا |
| وزن فعل نه اوويل شوي دي په دې قول دمصنف چې وهمامتضادان چې لفظ د اصمت په کسرتينوسره چې علم دي |
| لِلْمَفَازَةِ مِنْ أَوْزَانِ الْفِعْلِ مَعَ وُجُوْدِ الْعَدْلِ فِيْهِ فَإِنَّهُ أَمْرٌ مِنْ صَمَتَ يَصْمُتُ وَ قِيَاسُهُ |
| دپاره دبيابان داوازانو دفعل نه دي سره دوجود دعدل نه په دې کې خکه چې داامر دي د صمت يصمتُ نه اوقياس |
| أَنْ يَجِيْءَ بِضَمَّتَيْنِ فَلَمَّا جَاءَ بِكَسْرَتَيْنِ عَلِمْ أَنَّهُ مَعْدُوْلٌ عَنْهُ وَ الْجَوَابُ |
| دادې چې راځي په دووضموسره پس کله چې راغلوپه دوو کسروسره نومعلومه شوه چې دامعدول عنه دې جواب |

| |
|---|
| اَنَّ هٰذَا اَمْرٌ غَيْرُ مُحَقَّقٍ لِجَوَازِ وُرُوْدِ اُصْمُتْ بِكَسْرَتَيْنِ وَ اِنْ لَمْ يَشْتَهِرْ |
| دادې چې داامر غير محقق دي دوجې دجواز دراتلو د اصمت نه په كسرتينو سره اګر كه دا مشهور نه دي پس هغه |
| فَالْاَوْزَانُ الَّتِيْ تَحَقَّقَ فِيْهَا الْعَدْلُ تَحْقِيْقاً كَانَ اَوْ تَقْدِيْراً لَمْ تُجَامِعْ مَعَ وَزْنِ الْفِعْلِ وَ اَيْضاً قَدْ |
| اوزان چې محقق وي په هغې كې عدل تحقيقي او يا تقديري ، نه جمع كوي هغې لره وزن فعل او همدارنګې تا |
| عَرَفْتَ فِيْمَا تَقَدَّمَ اَنَّ مُجَرَّدَ وُجُوْدِ اَصْلٍ مُحَقَّقٍ لَا يَكْفِيْ فِيْ اِعْتِبَارِ الْعَدْلِ التَّحْقِيْقِيْ بِدُوْنِ اقْتِضَاءِ مَنْعِ |
| پيژندلې مخكې چې مجردوجود داصل محقق كافي نه وي په معتبرولودعدل حقيقي كې په غيرداقتضاء دمنع |
| الصَّرْفِ اِيَّاهُ وَ اِعْتِبَارُ خُرُوْجِ الصِّيْغَةِ عَنْ ذٰلِكَ الْاَصْلِ وَ هٰهُنَا لَا يَقْتَضِيْهِ لِوُجُوْدِ السَّبَبَيْنِ فِيْ |
| صرف نه ده لره او اعتبار دخروج دصيغې ددغه اصل نه او دلته تقاضا نه كوي دغه دوجې دوجود دسببينو نه په |
| اُصْمُتْ وَرَاءَ الْعَدْلِ وَ هُمَا الْعَلَمِيَّةُ وَ التَّانِيْثُ. |
| اصمت كې ماسوى دعدل نه چې هغه علميت اوتانيث دي. |

**اغراض دجامي** : وهمامتضادان: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : داقاعده دې نه منم چې اذا نكر صرف ځكه يو ځاى كې عدل وزن فعل علميت راغلي وي نو چې علم نكره كړې شي نو بياهم دوه سببه دمنع صرف پاتې شول نه ځرنګه وايې چې صرف ؟ .

**جواب** : عدل او وزن فعل متضاد دي .

اى العدل ووزن الفعل: په دې عبارت سره شارح تعين دضمير كوي .

لان الاسماء المعدولة: په دې عبارت سره شارح دليل دتضاد ذكر كوي : متضادين په دوه قسمه دي : بحسب المفهوم ، بحسب الاعتبار والاصطلاح : بحسب المفهوم لكه صفت اوعلميت صفت دا هغه دي چې دلالت كوي په ذات مبهمه سره دبعضو صفاتو ، اوعلميت داهغه دي چې دلالت كوي په ذات معينه په غير دصفاتو ځخه . بحسب الاعتبار والاصطلاح لكه مونږ په عربو كې وګرځيدو دعدل اوزان يو هم دوزن فعل په شان نه وو.

فلايكون معهما الا احدهما: عدل او وزن فعل دا دواړه متضادين دي دانه جمع كيږي دواړه د علميت سره مګر يو جدا جدا .

اى لايوجد شئ من الامر الدائر: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : فلايكون معهما الا احدهما استثناء ده داد چاځخه ده كه مطلق سبب ځخه وي نو كذب

لازمیږي ځکه بیا به معنی داسې شي چې علمیت نه جمع کیږي دمطلق سبب سره مګر عدل او وزن فعل سره اوحالانکه ددوي نه علم وه نورو سره هم جمع کیږي لکه الف نون مزیدتینو سره یا عجمي سره اوکه مستثنی منه عدل وګرځوي نو معنی به داسې شي چې نه جمع کیږي علمیت دعدل سره مګر داحدهما سره جمع کیږي نو لازم شوه استثناء دشئ دخپل نفس ځخه ځکه احدهما کې هم عدل شته اوکه مستثنی منه دا وزن فعل وګرځوي نو بیا هم لازمیږي استثناء د شئ دخپل نفس ځخه اوکه مستثنی منه دواړه وګرځوي یعنې عدل او وزن فعل نو مطابقت نه راځي په مرجع اوراجع کې ځکه یکون کې ضمیر مفرد دي .

**جواب** : خلاصه دجواب داده چې ضمیر دواړو ته راجع دي یعنې **امر دائر بینهما** ته **لاعلی التعین** اوس امر دائر عام شو او **احدهما** خاص شو نو استثناء دخاص راغله دعام نه اودا جائز ده .

**فاذا نکر ای غیر المنصرف** : په دې عبارت سره شارح تعین دضمیر کوي چې په نکر کې ضمیر هغه غیر منصرف ته راجع ده .

**ای لم یبق** : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : ته وایې چې علمیت په کومو اسبابو کې شرط وي اوکره شي نو بقي بلا سبب نو سبب خو باقي دي صرف نقصان په کې راغلې دي .

**جواب** : مراد دسبب نه سبب کامل دي اوسبب کامل هغه دي چې شرط ورسره موجود وي او دلته خو شرط ورسره نشته داداسې دي لکه صفت چې ورسره نه وي .

**اوعلی سبب واحد** : تعین دهغه غیر منصرف کوي چې وروستو دتنکیر نه باقي **علی سبب** وي .

**فیما هي لیست بشرط فیه** : هغه غیر منصرف چې وروستو دتنکیر نه باقي وي په سبب واحده سره هغه یو وزن فعل اوبل عدل دي .

**وقد قیل** : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : ته وایې چې عدل او وزن فعل نه جمع کیږي زه به درته وښائم چې جمع شوې به وي لکه اصت داوزن فعل هم دي اوعدل په کې هم شته ځکه چې دا امر دي د صمت یصمت کَصَرَ نه او قاعده داده چې امر دنصر نه بضمتین راځي اودلته بکسرتین راغله نو ددې نه معلومه شوه چې دامعدول دي د بضمتین ځخه .

**والجواب** : په دې سره جواب اول ذکر کوي : زه دانه منم چې دنصر ځخه دي بلکه دا احتمال شته

چې د ضرب نه وي نو بيا خو دضرب نه امر بکسرتين راځي اوچې په کتابونو کې دنصر ځنځه راغلي نوهغه مشهوردي. خوداجواب ضعيف دي ځکه چې ده لجوازوويل اودجوازمعنى امکان ده اوامکان وايي احتمال ته اواحتمال دې ته وايي چې کيداى شي دابالکل نه وي دضرب نه.

وايضاً قد عرفت: په دې عبارت سره شارح دوهم جواب ذکر کوي: داخبره تا مخکې پيژندلې ده چې دعدل دپاره يواځې وجود داصل کافي نه وي بلکه ضروري وي اعتبار دخروج اوخروج په وخت دضرورت کې راځي اوضرورت دلته کې نشته دي ځکه سببين موجود دي ځکه په اصمت کې يو علميت دي اوبل په کې تانيث دي.

## دامام سيبويه او داخفش اختلاف:

| |
|---|
| ثُمَّ اَنَّهُ اَشَارَ اِلٰى اِسْتِثْنَاءِ مِثْلُ اَحْمَرَ عَلَمًا اِذَا نُكِّرَ عَنْ هٰذِهِ الْقَاعِدَةِ عَلٰى قَوْلِ |
| بيااشاره وکړه مصنف استثنا ءته په مثل داحمرکې چې علم دي چې کله نکره کړې شي، ددغه قاعدې نه په قول |
| سِيْبَوَيْهِ بِقَوْلِهِ وَ خَالَفَ سِيْبَوَيْهِ الْاَخْفَشُ الْمَشْهُوْرُ هُوَ اَبُو الْحَسَنِ تِلْمِيْذُ |
| دسيبويه په دې قول خپل سره چې مخالفت کړي سيبويه داخفش نه چې مشهوردي په ابوالحسن سره چې شاګرد |
| سِيْبَوَيْهِ وَ لَمَّا كَانَ قَوْلُ التِّلْمِيْذِ اَظْهَرَ مَعَ مُوَافَقَتِهِ لِمَا ذَكَرَهُ مِنَ الْقَاعِدَةِ جَعَلَهُ |
| دسيبويه دي اوهرکله چې وو قول دشاګردظاهرسره دموافقت دهغه څه سره چې مونږذکرکړل نووګرځول مصنف |
| اَصْلاً وَ اَسْنَدَ الْمُخَالَفَةَ اَيِ الْاُسْتَاذُ وَ اِنْ كَانَ غَيْرُ مُسْتَحْسَنٍ تَنْبِيْهاً عَلٰى ذٰلِكَ فِيْ |
| دا قول اصل او اسناد د مخالفت يې وکړواستاذ ته اګرکه داغيرمستحسن ده خبرداري يې ورکړو په دې کې په |
| اِلصِّرَافِ مِثْلِ اَحْمَرَ عَلَماً اِذَا نُكِّرَ وَ الْمُرَادُ بِمِثْلِ اَحْمَرَ مَا كَانَ مَعْنَى |
| منصرف کيدلو په مثل د احمرچې علم وي کله چې نکره کړې شي اومرادپه مثل داحمرهغه دي چې وي معنى د |
| الْوَصْفِيَّةِ فِيْهِ قَبْلَ الْعَلَمِيَّةِ ظَاهِراً غَيْرَ خَفِيٍّ فَيَدْخُلُ فِيْهِ سُكْرَانُ وَ اَمْثَالُهُ وَ |
| وصفيت په دې کې مخکې د علميت نه ظاهره غير مخفي پس داخليږي په دې کې سکران او امثال ددې او |
| يَخْرُجُ عَنْهُ اَفْعَلُ التَّاكِيْدِ نَحْوُ اَجْمَعُ فَاِنَّهُ مُنْصَرِفٌ عِنْدَ التَّنْكِيْرِ بِالْاِتِّفَاقِ لِضُعْفِ |
| خارجيږي ددې نه افعل التاکيدلکه اجمع ځکه چې دامنصرف دي په وخت د تنکير کې بالاتفاق دوجې دضعف د |
| مَعْنَى الْوَصْفِيَّةِ فِيْهِ قَبْلَ الْعَلَمِيَّةِ لِكَوْنِهِ بِمَعْنَى كُلٍّ وَ كَذٰلِكَ اَفْعَلُ التَّفْضِيْلُ |
| معنى وصفيت نه په دې کې مخکې دعلميت نه ځکه چې داپه معنى دکل سره دي اوهمدارنګې افعل التفضيل |
| اَلْمُجَرَّدُ عَنْ مِنَ التَّفْضِيْلِيَّةِ فَاِنَّهُ بَعْدَ التَّنْكِيْرِ مُنْصَرِفٌ بِالْاِتِّفَاقِ لِضُعْفِ مَعْنَى الْوَصْفِيَّةِ فِيْهِ |
| چې مجرد وي دتفضيليت نه داوروستودتنکيرنه منصرف دي بالاتفاق د وجې د ضعف د معنى د وصفيت نه په |

| |
|---|
| حَتّٰى صَارَ اَفْعَلُ اِسْماً وَ اِنْ كَانَ مَعَهُ مِنْ فَلَا يَنْصَرِفُ بِلَا خِلَافٍ لِظُهُوْرِ |
| دې کې تردې چې وګرځيده افعل اسم او که چيرته وي دهغې سره من بيا منصرف نه ګرځي بلاخلاف دوجې دخکاره |
| مَعْنَى الْوَصْفِيَّةِ فِيْهِ بِسَبَبِ مِنَ التَّفْضِيْلِيَّةِ اِعْتِبَارًا لِصِفَةِ الْاَصْلِيَّةِ اَىْ اِنَّمَا خَالَفَ |
| کيدو دمعنی دوصفيت نه په دې کې په سبب دمن تفضيلي دوجې داعتبار دصفت اصليه نه معنی مخالفت وکړو |
| سِيْبَوَيْهِ الْاَخْفَشَ لِاَجْلِ اِعْتِبَارِهِ الْوَصْفِيَّةَ الْاَصْلِيَّةَ بَعْدَ التَّنْكِيْرِ فَاِنَّهُ لَمَّا زَالَتِ الْعَلَمِيَّةُ بِالتَّنْكِيْرِ |
| سيبويه داخفش نه دوجې د معتبرولو دوصفيت اصلي وروستو دتنکير نه ځکه چې کله زائل شو علميت په تنکير |
| لَمْ يَبْقَ فِيْهِ مَانِعٌ مِنْ اِعْتِبَارِ الْوَصْفِيَّةِ فَاعْتَبَرَهَا وَ جَعَلَهُ |
| سره پاتې نه شو يو مانع د معتبرولو د وصفيت اصليه نه پس معتبر کړو دوي دا وصفيت او وي ګرځول د هغې نه |
| غَيْرُ مُنْصَرِفٍ لِلصِّفَةِ الْاَصْلِيَّةِ وَ سَبَبٍ آخَرَ كَوَزْنِ الْفِعْلِ وَ الْاَلِفِ وَ النُّوْنِ الْمَزِيْدَتَيْنِ. |
| غيرمنصرف دوجې دصفت اصليه نه او دبل سبب نه لکه وزن فعل او الف اونون زائدتان. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب کافيه اختلاف بيانوي .

**اغراض دجامي** : <u>ثم انه اهار</u>: په دې عبارت سره شارح توطيه اوتمهيد ذکر کوي .

<u>المشهور هو ابوالحسن</u>: په دې عبارت سره شارح تعين داخفش کوي : اخافش درې دي :

(۱) استاذ دسيبويه چې دهغې اسم کنيه ابوالخطاب ده .

(۲) دده شاګرد چې دهغه اسم کنيه ابوالحسن سعيدابن سعده دي اودلته مراد هم دادې .

(۳) دده ملګرې چې دهغه اسم کنيه حسن على ابن سليمان دي .

<u>ولماكان قول التلميذ الخ</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : هرکله چې استاذ سيبويه شو نو دمخالفت نسبت کول استاذ ته سوء ادب دې ځکه څوک چې مخالفت کوي نو په هغه کې يو نوعه تحقير وي اودتحقير نسبت کول شاګرد ته په کار وو چې اخفش وو.

**جواب** : دشاګرد قول موافق وو دقاعدې سره چې اذا نکر صرف نو دايې اصل وګرځولو اود مخالفت نسبت يې استاذ ته وکړو اګرچې داغير مستحسنه ده .

<u>والمراد بمثل احمر</u>: په دې عبارت سره شارح يوه قاعده ذکر کوي : قاعده داده چې داحمر څخه هر هغه اسم تفضيل مراد دې چې قبل دعلميت نه په کې وصفيت ظاهر وي .

<u>فيدخل فيه</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال**: ستا داحمر نه باب د احمر مراد دي اوکه نه ، نو که باب داحمر دې مراد وي نو په سکران کې په کار ده چې دا اختلاف نه وي اوسره ددې نه چې په سکران کې هم دا اختلاف شته.

**جواب**: مراد د احمر نه نوع د احمر مراد ده نو سکران په کې هم داخل شو.

وکذلک افعل: په دې عبارت سره شارح تقسیم د افعل کوي : افعل داپه دوه قسمه دي یعنې اسم تفضیل : یو هغه دي چې مجرد وي د مِن څخه دابعد التنکیر بالاتفاق منصرف دي څکه معنی د وصفیت په کې قبل العلمیة ظاهره نه وه تردې چې دا افعل اسمي ګرځیدلی دي . دوهم افعل چې من ورسره ذکر وي نو دامنصرف نه دي بلاخلاف یعنې بالاتفاق منصرف نه دي څکه معنی دوصفیت په کې ظاهره ده قبل العلمیة فلاینصرف بلاخلاف.

نو اکثرو شارحینو معنی داسې کړي چې منصرف نه دي بالاتفاق خو دا توجیه اومعنی صحیح نه ده څکه ده مخکې وویل چې مثل د احمر کې اختلاف دي خو چې معنی دوصفیت په کې قبل العلمیة ظاهره وي اوس دلته په افعل کې چې مِن ورسره وي نو دا غیر منصرف بالاتفاق نو په عبارت کې تضاد راغلو.

دوهمه وجه داده چې ده وویل چې فلاینصرف اودلیل دا وایي چې بلاخلاف نو دانه صحیح کیږي څکه قاعده داده چې کله یو فعل مقید وي په یو قید سره اوپه هغه فعل نفي داخله شي نو نفي متوجه وي قید ته لکه ماجاءني زید راکباً نو دلته نفي متوجه ده رکوب ته نه فعل ته چې مجیئت دي خو داقاعده اکثریه ده کلیه نه ده څکه الله تعالی فرمایي : وَأَنَّ اللهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ ، اوس ظلام مبالغه ده په ظالم کې اوس دامبالغه هم قید دي نو لیس دلته متوجه دي قید اومقید دواړو ته اوکه داسې نه شي نو په معنی کې فساد راځي معنی به یې داسې شي چې الله ډیر ظالم نه دي او لږدي اوحالانکه الله تعالی خو بالکل ظالم نه دي.

اوس دلته ینصرف فعل مقید دي په بلاخلاف سره نو نفي پرې داخله شوه نو قید یې ختم کړو نو معنی داشوه چې غیر منصرف دي خو بلاخلاف نه بلکه سره داختلاف نه.

ای الما خالف: په دې عبارت سره شارح تعین دلام کوي په للصفة الاصلیة کې چې په للصفة الاصلیة کې لام اجلیه دي.

فانه لمازالت: په دې عبارت سره شارح ذکر دنتیجې اوخلاصې کوي : خلاصه داده چې سیبویه په مثل د احمر کې بعد التنکیر وصفیت اصلي معتبروي اودلیل دا وایي چې مانع دوصفیت

اصلي چې علمیت وو ختم شو په تنکیر سره نو احمر غیر منصرف شو دوجې د وصفیت اصلي او وزن فعل څخه

## دیو سوال جواب:

فَإِنْ قُلْتَ كَمَا أَنْ لَا مَانِعَ مِنِ اعْتِبَارِ الْوَصْفِيَّةِ الْأَصْلِيَّةِ لَا بَاعِثَ عَلَى اِعْتِبَارِهَا

که ته سوال وکړې چې لکه څنګه مانع نشته اعتبار دوصفیت اصلیه نه نو باعث هم نشته په اعتبار دهغې باندې

أَيْضاً فَلِمَ اعْتَبَرَهَا وَ ذَهَبَ إِلَى مَا هُوَ خِلَافُ الْأَصْلِ أَعْنِي مَنْعَ الصَّرْفِ

همدارنګې نو بیا ولې معتبر کړې شوا وذهاب وکړې شو هغه څه ته چې هغه خلاف اصل دې یعنې غیر منصرف ته

قُلْنَا الْبَاعِثُ عَلَى اِعْتِبَارِهَا اِمْتِنَاعُ أَسْوَدَ وَ أَرْقَمَ مَعَ زَوَالِ الْوَصْفِيَّةِ عَنْهُمَا

جواب کې ویل شوې دې باعث په معتبرولو دهغې کې امتناع داسود اود ارقم ده سره دزوال دوصفیت ددوې نه

حِيْنَئِذٍ وَ فِيْهِ بَحْثٌ لِأَنَّ الْوَصْفِيَّةَ لَمْ تَزُلْ عَنْهُمَا بِالْكُلِّيَّةِ بَلْ بَقِيَ

په دغه وخت کې او په دې کې بحث شته څکه چې وصفیت نه دې زائله شوې ددوې نه بالکلیه بلکې پاتې دې

فِيْهِمَا شَائِبَةٌ مِنَ الْوَصْفِيَّةِ لِأَنَّ الْأَسْوَدَ اِسْمٌ لِلْحَيَّةِ السَّوْدَاءِ وَ الْأَرْقَمُ اِسْمٌ

په دې دووکې یو شائبه دوصفیت اصلي نه څکه چې اسوددا نوم دې دپاره د تک تور مار او ارقم نوم دې د پاره د

لِلْحَيَّةِ الَّتِيْ فِيْهَا سَوَادٌ وَ بَيَاضٌ وَ فِيْهِمَا شَمَّةٌ مِنَ الْوَصْفِيَّةِ فَلَا يَلْزَمُ مِنِ

هغه مار چې په هغې کې سپین والې او تور والې وي او په دې دواړو کې بوې د وصفیت شته پس نه لازمیږي په

اِعْتِبَارِ الْوَصْفِيَّةِ فِيْهِمَا اِعْتِبَارُهَا فِيْ أَحْمَرَ بَعْدَ التَّنْكِيْرِ لِأَنَّهَا قَدْ زَالَتْ

معتبرولو دوصفیت نه په دې دواړو کې معتبرول دوصفیت په احمر کې وروستو دتنکیر نه څکه چې زائله شوې

بِالْكُلِّيَّةِ وَ أَمَّا الْأَخْفَشُ فَذَهَبَ إِلَى أَنَّهُ مُنْصَرِفٌ فَإِنَّ الْوَصْفِيَّةَ

دې په دې کې وصفیت بالکلیه هرچې اخفش دې نوذهاب یې کړې دې ته چې دا منصرف دې څکه چې وصفیت

قَدْ زَالَتْ بِالْعَلَمِيَّةِ وَ الْعَلَمِيَّةُ بِالتَّنْكِيْرِ وَ الزَّائِلُ لَا يُعْتَبَرُ مِنْ غَيْرِ ضَرُوْرَةٍ فَلَمْ يَبْقَ

زائله شوې دې په علمیت سره اوعلمیت په تنکیر سره اوزائل نه معتبریږي په غیر دضرورت نه پس پاتې نه شو

فِيْهِ إِلَّا سَبَبٌ وَاحِدٌ هُوَ وَزْنُ الْفِعْلِ وَالْأَلِفُ وَالنُّوْنُ وَ هٰذَا الْقَوْلُ أَظْهَرُ وَلَمَّا اعْتَبَرَ سِيْبَوَيْهِ

په دې کې یو سبب چې هغه وزن فعل او الف او نون دې نو دا قول ډیر مناسب دې نو کله چې معتبر کړو سیبویه

الْوَصْفَ الْأَصْلِيَّ بَعْدَ التَّنْكِيْرِ وَ إِنْ كَانَ زَائِلًا لَزِمَهٗ يُعْتَبِرَهٗ فِيْ حَالِ الْعَلَمِيَّةِ أَيْضاً

وصف اصلي وروستو د تنکیر نه اګر که هغه زائله وو لازم شو په ده چې معتبر یې کړې په حال د علمیت کې هم

فَيَمْتَنِعُ نَحْوُ حَاتَمٍ مِنَ الصَّرْفِ لِلْوَصْفِ الْأَصْلِيِّ وَ الْعَلَمِيَّةِ.

پس غیر منصرف وګرځید لکه حاتم د منصرف کیدو نه دوجې دوصف اصلي نه اوعلمیت نه.

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب کافیه د یو سوال جواب کوي .

**اغراض دجامي** : **فإن قلت** : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : چې مانع داعتبار دوصفیت اصلیه څخه موجود نه وو نو باعث په معتبرولو دوصفیت ،

څه دي سره ددې نه چې غیر منصرف والې خلاف الاصل دي .

**قیل** : په دې عبارت سره شارح جواب ورکوي :

**جواب** : وصفیت اصلیه یې ځکه معتبر کړو چې اسود او ارقم دا بعد التنکیر هم غیر منصرف

دي دوجې دوصفیت اصلي نه چې کوم زائل شوې وو اودوجې دوزن فعل څخه نو مونږ احمر هم

پرې قیا .س کړو .

**وفیه بحث** : په دې عبارت سره شارح ذکر د رد کوي : خلاصه د رد داده چې احمر مقیس دې او

أسود او أرقم دامقیس علیه دي اوعلت جامعه اعتبار دوصفیت اصلیه دي نو قیاس داحمر په

أسود او أرقم قیاس مع الفارق دي ځکه احمر څخه صفت اصلیه بالکلیه ختم شوې دي اوپه أسود

او أرقم کې یې څه شائبه نشته ځکه أسود تور مار ته وایي او أرقم برګ مارته وایي نو لهذا

قیاس د أحمر په أسود او أرقم باندې صحیح نه دي .

**واما الاخفش** : په دې عبارت سره شارح بیان دمذهب داخفش کوي : امام اخفش وایي چې احمر

وغیره به منصرف وي بعد التنکیر ځکه وصفیت زائله شو په علمیت سره اوعلمیت زائله شو

په تنکیر سره اوزائل څیزنه شي معتبر کیدې په غیر دضرورت نه نو ضرورت ورته نشته نو

احمر وغیره چې سکران دي په سبب واحده سره پاتې شو چې یو په کې وزن فعل اوبل په کې الف

نون مزیدتان دي نو فینصرف .

**وهذا القول اظهر** : په دې عبارت سره شارح ماهو الراجح قول ذکر کوي :دامام اخفش قول دا

ظاهر دي ددریو وجهو نه : اول داچې دامذهب موافق دې دقاعدې سره چې العلم اذا نکر صرف ،

دوهم دا چې په مذهب دسیبویه باندې مخکې اعتراض وارد شو چې باعث په معتبرکولو

دوصفیت اصله باندې څه شئ دي ، دریم داچې بل اعتراض هم پرې واردیږي د ولایلزم سره .

**ولما اعتبر سیبویه** : سیبویه صفت اصلیه معتبر کړي اګر چې زائل شوي نو په دې باندې یو

سوال راځي :

**سوال** : خاتم داد يو سړي نوم دی يو په کې وصفيت اصليه دی او بل علميت نو په احمر کې وصفيت اصليه زائله شوې وو او يو محال شئ وو او تا فرض کړې ؤ نو همدا رنګې په باب د خاتم کې هم يو علميت دی او بل په کې وصف اصلي معتبر کړه .

| فَأَجَابَ عَنْهُ الْمُصَنِّفُ بِقَوْلِهِ وَلَا يَلْزَمُهُ أَيْ سِيْبَوَيْهِ مِنِ اعْتِبَارِ |
|---|
| نو جواب ورکړو د دې نه مصنف په دې قول سره چې نه لازميږي دده نه يعني نه لازميږي د سيبويه نه په اعتبار |
| الْوَصْفِيَّةِ الْأَصْلِيَّةِ بَعْدَ التَّنْكِيْرِ فِيْ مِثْلِ أَحْمَرَ عَلَمًا بَابُ خَاتَمٍ أَيْ كُلُّ عَلَمٍ كَانَ فِي الْأَصْلِ |
| وصفيت اصلي لره پس د تنکير نه په مثل د احمر کې چې علم وي باب د خاتم يعني هر هغه علم چې وي په اصل |
| وَصْفًا مَعَ بَقَاءِ الْعَلَمِيَّةِ بِأَنْ اِعْتَبَرَ فِيْهِ أَيْضًا الْوَصْفِيَّةُ الْأَصْلِيَّةُ وَ حُكِمَ |
| کې وصف سره د بقاء د علميت نه په داسې شان چې معتبر شي په هغې کې هم وصفيت اصلي او حکم وکړې شي |
| بِمَنْعِ صَرْفِهِ لِلْعَلَمِيَّةِ وَ الْوَصْفِيَّةِ الْأَصْلِيَّةِ لَمَّا يَلْزَمُ فِيْ بَابِ خَاتَمٍ عَلَى تَقْدِيْرِ مَنْعِهِ |
| په منع صرف د هغې دوجې د علميت او د وصفيت اصلي نه ځکه چې لازم به شي په باب د حاتم په تقدير د منع |
| مِنَ الصَّرْفِ مِنِ اعْتِبَارِ الْمُتَضَادَيْنِ يَعْنِي الْوَصْفِيَّةَ وَ الْعَلَمِيَّةَ فَإِنَّ الْعَلَمَ لِلْخُصُوْصِ وَ الْوَصْفَ |
| صرف باندې په اعتبار د متضادينو يعني وصفيت او علميت ځکه چې علم د پاره د تخصيص وي او وصف |
| لِلْعُمُوْمِ فِيْ حُكْمٍ وَاحِدٍ وَ هُوَ مَنْعُ صَرْفِ لَفْظٍ وَاحِدٍ |
| دپاره د تعميم وي نو لازم به شي اعتبار د متضادينو په حکم واحده کې چې هغه منع صرف د لفظ واحده دی په |
| بِخِلَافِ مَا إِذَا اعْتُبِرَتِ الْوَصْفِيَّةُ الْأَصْلِيَّةُ مَعَ سَبَبٍ آخَرَ كَمَا فِيْ أَسْوَدَ وَ أَرْقَمَ . |
| خلاف د هغه چې معتبر شي وصفيت اصليه سره د سبب آخر نه لکه په اسود او ارقم کې . |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب کافيه جواب ورکوي :

**اغراض د جامي** : ولايلزمه اى سيبويه : په دې عبارت سره شارح د سوال جواب ذکر کوي :

**جواب** : خلاصه د جواب داده چې دا سوال نه واردیږي ځکه که په خاتم کې علميت سره وصف اصلي هم معتبر کړي نو لازم به شي اعتبار د متضادينو په حکم واحده کې چې غير منصرف والي دی .

باب خاتم اى كل علم : په دې عبارت سره شارح بيان د خاتم کوي چې د خاتم نه مراد هر هغه علم دی چې په اصل کې وصف وي سره د بقاء د علميت نه .

بان اعتبر فيه : په دې عبارت سره حاصل د سوال ذکر کوي : چې حاصل د سوال دا دې چې په خاتم کې دې وصف اصلي معتبر کړې شي او حکم وکړې شي په منع صرف والي د دې باندې

دوجې د علميت او وصف اصلي نه .

يعني الوصفية والعلمية: په دې عبارت سره شارح تعين د متضادينو کوي چې هغه متضادين وصفيت او علميت دي او بل دليل د تضاد ذکر کوي او دليل د تضاد هغه دا چې په علم کې خصوصيت وي او په وصف کې خصوصيت نه وي .

في حكم واحد: په دې عبارت سره شارح تعين د حکم کوي چې حکم واحد هغه منع صرف والې دي په لفظ واحد کې .

## د يو سوال جواب :

| |
|---|
| فَإِنْ قُلْتَ التَّضَادُ إِنَّمَا هُوَ بَيْنَ الْوَصْفِيَّةِ الْمُحَقَّقَةِ وَ الْعَلَمِيَّةِ لَا بَيْنَ الْوَصْفِيَّةِ الْأَصْلِيَّةِ الزَّائِلَةِ وَ |
| که ته سوال وکړې چې تضاد په مينځ د وصفيت متحققه او علميت کې دي نه په مينځ د وصفيت اصليه زائله او |
| الْعَلَمِيَّةِ فَلَوِ اعْتُبِرَتِ الْوَصْفِيَّةُ الْأَصْلِيَّةُ وَ الْعَلَمِيَّةُ فِيْ مَنْعِ صَرْفِ مِثْلُ حَاتِمٍ لَا |
| علميه کې نو که چيرته معتبر کړې شي وصفيت اصليه او علميت په غير د منع صرف کې په مثل د حاتم کې نه |
| يَلْزِمُ اجْتِمَاعُ الْمُتَضَادَّيْنِ قُلْنَا تَقْدِيْرُ أَحَدِ الضِّدَّيْنِ بَعْدَ زَوَالِهِ مَعَ ضِدٍّ آخَرَ فِيْ حُكْمٍ وَاحِدٍ |
| لازميږي اجتماع د متضادينو مونږ وايو چې تقدير د يو ضد دينو پس د زوال د دې نه سره د ضد آخر لري حکم واحد |
| وَ إِنْ لَمْ يَكُنْ مِنْ قَبِيْلِ اجْتِمَاعِ الْمُتَضَادَّيْنِ لٰكِنَّهُ شَبِيْهٌ بِهِ فَاعْتِبَارُهُمَا مَعاً |
| اګر که نه وي د قبيلې د اجتماع د متضادينو لکه دا مشابه دي د متضادينو سره پس معتبرول د دې دواړو يو ځای |
| غَيْرُ مُسْتَحْسِنٍ . |
| امر غير مستحسن دي . |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب کافيه د يو سوال جواب ورکوي .

**اغراض د جامي** : فان قلت: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : تضاد خو په وصفيت او علميت کې په هغه وخت کې وي چې وصفيت خو متحقق وي نو وصفيت خو زائله دي صرف اعتبار يې وکړه .

قلنا: شارح په قلنا سره جواب ورکوي :

**جواب** : فرض کول د يو د متضادينو د ضد آخر سره پس د زوال نه دا په حکم د واحد کې دي اوس دا اګر که د قبيلې د اجتماع د ضدينو څخه نه دي ليکن مشابه دي د اجتماع د ضدينو سره او اعتبار د ضدينو معاً دا غير مستحسن دي .

دلته يو سوال راځي :

**سوال** : يو فعل چې کله مقيد وي په يو قيد سره نو کله چې نفي داخله شي په دغه فعل نو نفي به متوجه وي قيد ته نه مقيد ته نو دلته يلزم فعل دي مقيد دي په لما يلزم سره اونفي پرې داخله شوې نو اوس به دا نفي متوجه وي لما يلزم قيد ته نو معنى داشوه چې سوال نه واردېږي په باب د خاتم باندې دوجې د اعتبار د متضادينو څخه بلکه د بل څه د وجې څخه واردېږي اوحالانکه بالکل په خاتم سوال نه واردېږي .

**جواب** : دا قاعده اکثريه ده کليه نه ده .

## د غير منصرف باب کله مجرور کېږي ؟

| وَ جَمِيْعُ الْبَابِ اَىْ بَابُ غَيْرِ الْمُنْصَرِفِ بِاللَّامِ اَىْ بِدُخُوْلِ لَامِ التَّعْرِيْفِ عَلَيْهِ اَوْ بِالْاِضَافَةِ |
|---|
| اوټول باب يعنې ټول باب د غير منصرف په لام سره يعنې په دخول د لام تعريفي سره پردې اويا په اضافت سره |
| اَىْ اِضَافَتُهُ اَىْ غَيْرَهُ يَنْجَرُّ اَىْ يَصِيْرُ مَجْرُوْرًا بِالْكَسْرِ اَىْ بِصُوْرَةِ الْكَسْرِ |
| يعنې اضافت ددې يعنې غير ددې نه جرورکوي يعنې ګرځي مجرور په کسرې سره يعنې په صورت د کسرې سره |
| لَفْظًا اَوْ تَقْدِيْرًا وَ اِنَّمَا . لَمْ يَكْتَفِ بِقَوْلِهٖ يَنْجَرُّ لِاَنَّ الْاِنْجِرَارَ قَدْ يَكُوْنُ بِالْفَتْحِ وَلَا |
| لفظاًاوتقديراًاواکتفاء يې ونه کړه په دې قول سره چې جرورکوي څکه چې جرورکول کله وي په فتحې سره اونه |
| بِاَنْ يَقُوْلَ يَنْكَسِرُ لِاَنَّ الْكَسْرَ يُطْلَقُ عَلَى الْحَرَكَاتِ الْبِنَائِيَّةِ اَيْضًا وَ لِلنُّحَاةِ |
| په دې قول سره چې کسره ورکوي څکه چې اطلاق د کسرې راځي په حرکات بنائيوسره همدارنګې اوشته نحويانو |
| خِلَافٌ فِيْ اَنَّ هٰذَا الْاِسْمَ فِيْ هٰذِهِ الْحَالَةِ مُنْصَرِفٌ اَوْ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ فَمِنْهُمْ مَنْ ذَهَبَ اِلٰى اَنَّهٗ |
| دپاره اختلاف چې دا اسم په دې حالت کې منصرف دي اويا غير منصرف دي نو بعضو ذهاب کړې دې ته چې دا |
| مُنْصَرِفٌ مُطْلَقًا لِاَنَّ عَدَمَ اِنْصِرَافِهٖ اِنَّمَا كَانَ لِمُشَابَهَةِ الْفِعْلِ فَلَمَّا ضَعُفَتْ |
| منصرف دي مطلقاًڅکه چې عدم انصراف دهغې وودوجې د مشابهت ددې نه دفعل سره هر کله چې ضعيف شو |
| هٰذِهِ الْمُشَابَهَةُ بِدُخُوْلِ مَا هُوَ مِنْ خَوَاصِّ الْاِسْمِ اَعْنِيْ اَللَّامَ اَوِ الْاِضَافَةُ قُوِيَتْ جِهَةُ الْاِسْمِيَّةِ |
| دغه مشابهت په دخول دهغه څه سره چې هغه خواص دي د اسم يعنې الف لام او اضافت نو قوي شو طرف د اسميت |
| فَرَجَعَ اِلٰى اَصْلِهِ الَّذِيْ هُوَ الصَّرْفُ فَدَخَلَهُ الْكَسْرُ دُوْنَ التَّنْوِيْنِ لِاَنَّهٗ لَا يَجْتَمِعُ |
| پس راجع شو خپل اصل ته چې هغه منصرف دي داخلېږي په هغې باندې کسره نه تنوين څکه چې تنوين نه جمع |
| مَعَ اللَّامِ وَ الْاِضَافَةِ وَ مِنْهُمْ مَنْ ذَهَبَ اِلٰى اَنَّهٗ غَيْرُ مُنْصَرِفٍ مُطْلَقًا وَ الْمَمْنُوْعُ مِنْ غَيْرِ الْمُنْصَرِفِ |
| کېږي د الف لام او اضافت سره اوبعضو ذهاب کړې دې ته چې دا غير منصرف دي مطلقاًاوممنوع د غير منصرف |
| بِالْاِضَافَةِ هُوَ التَّنْوِيْنُ وَ سُقُوْطُ الْكَسْرِ اِنَّمَا هُوَ بِتَبْعِيَّةِ التَّنْوِيْنِ وَ حَيْثُ ضَعُفَتْ مُشَابَهَتُهٗ لِلْفِعْلِ |
| نه په اضافت کې هغه تنوين دي اوسقوط د کسرې وتابع د تنوين اوکله چې ضعيف شو مشابهت يې دفعل سره |

| لَمْ تُؤثِّرِ اِلَّا فِيْ سُقُوطِ التَّنْوِيْنِ دُوْنَ تَابَعَهُ الَّذِيْ هُوَ الْكَسْرُ فَعَادَ الْكَسْرُ إِلٰى حَالِهِ |
|---|
| تاثیري ونه کړومګرپه سقوط دتنوین کې نه په تابع کې چې هغه کسره ده پس راواپس شوه کسره خپل حالت ته |
| وَ سُقُوْطُ التَّنْوِيْنِ لِامْتِنَاعِهِ مِنَ الصَّرْفِ. |
| اوساقط شو تنوین ځکه چې هغه منع وه دمنصرف نه . |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب کافیه دا بیانوي چې باب د منصرف کلمه مجرور کیږي .

**اغراض دجامي** : اي باب: په دې عبارت سره شارح يو تعين دالف لام کوي چې په الباب کې الف لام عهدي دي معهود په دې سره ټول باب دغير منصرف دي اوبل غرض دا چې باب مجرور دي چې تفسير شي د الباب دپاره ځکه اعراب دمفسر اومفسر منه يو وي او باب مرفوع دي اومستقله جمله ده .

باللام اي بدخول لام التعريف: په دې عبارت سره شارح تعين دالف لام کوي کوي چې په باللام کې الف لام عهدي دې مراد ترې نه لام تعريفي دي ، اوپه دې عبارت باندې د يوسوال جواب هم ورکوي :

**سوال** : ته وايي چې ټول باب دغير منصرف په لام سره منصرف ګرځي نو په دنيا د خداى کې خو غير منصرف بالکل پاتې نه شو .

**جواب** : مراد دلام نه وجود دلام نه دي بلکه دخول دلام ترې نه مراد دي .

اي اضافته الى غيره: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : ته وايي چې په اضافت سره غير منصرف ، منصرف ګرځي زه به درته وښايم اضافت به وي اوغير منصرف به نه وي منصرف شوې لکه مررت بغلام احمد .

**جواب** : مراد د اضافت نه مضاف دي چې دغير منصرف اضافت به بل چاته شوې وي نه اضافت دغير ده ته لکه مررت باحمدکم .

اي بصورة الکسر : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : ته وايي چې غير منصرف په دخول دالف لام او اضافت سره ينجر بالکسر زه به درته وښايم دخول الف لام او اضافت به نه وي او کسره به راغلې وي لکه مررت باحمد دلته په احمد حکماً کسره راغلې ده ځکه حالت نصبي تابع دجري وي په غير منصرف کې .

**جواب**: مراد د کسرې نه کسره لفظي یاتقدیري ده نه حکمي کسره.

وانما لم یکتف په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: بناء دمتونو په اختصار وي داسې به دې ویلې وي چې وجمیع الباب باللام او الاضافة ینجر، بالکسر به دې نه ویلې.

**جواب**: ینجر ما ځکه ونه ویل چې جر کله په فتحې سره هم راځي.

ولا بأن یقول: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: چې د ینجر سره هغه نقصان لازمیده نو حرف ینکسر به دې ویلې وي.

**جواب**: ینکسر مو ځکه ونه ویل چې د کسرې اطلاق په حرکاتو بنائیو سره هم کیږي نو خلکو به داتوهم کولو چې وجمیع الباب باللام اوالاضافة یصیر مبنیا، اوحالانکه خبره خو داسې نه ده.

وللنحاة خلاف: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ینجر او ینکسر دواړه به دې نه ویلې ینصرف به دې ویلې وي.

**جواب**: ینصرف مو ځکه ونه ویل چې په انصراف اوعدم انصراف کې یې اختلاف دي پس د دخول دلام نه اوداضافت نه اوپه مجرور ګرځیدلو کې په کسرې سره په دې کې اتفاق دي.

| |
|---|
| وَ مِنْهُمْ مَنْ ذَهَبَ إِلَى اَنَّ الْعِلَّتَيْنِ كَانَتَا بَاقِيَتَيْنِ مَعَ اللَّامِ اَوِ الْإِضَافَةُ كَانَ الْإِسْمُ غَيْرَ مُنْصَرِفٍ وَ اِنْ |
| اوبعضوذهاب کړې دې ته چې هغه علتونه اګرکه وي باقي سره دلام اواضافت نه وي به اسم غیرمنصرف اګرکه |
| زَالَتَا مَعًا اَوْ زَالَتْ اَحَدُهُمَا كَانَ مُنْصَرِفًا وَ بَيَانُ ذٰلِكَ اَنَّ الْعَلَمِيَّةَ تَزُوْلُ بِاللَّامِ وَ |
| زائله شوي وي یوځای یازائله وي یو ددې نه وي به اسم منصرف بیان یې دادې چې علمیت زائله کیږي په لام او |
| الْإِضَافَةِ كَانَ فَاِنْ كَانَتِ الْعَلَمِيَّةُ شَرْطًا لِلسَّبَبِ الْاٰخَرِ زَالَتَا مَعاً كَمَا فِيْ اِبْرَاهِيْمَ وَ اِنْ |
| اضافت سره پس که شي چیرته علمیت شرط د پاره د سبب آخر نو زائله به شي یوځای لکه په ابراهیم کې او که |
| لَمْ تَكُنْ شَرْطًا كَمَا فِيْ اَحْمَدَ زَالَتْ اَحَدُهُمَا وَ اِنْ لَمْ تَكُنْ هُنَاكَ عَلَمِيَّةٌ كَمَا فِيْ اَحْمَرَ |
| چیرته نه ووشرط لکه په احمد کې نوزائله کیږي یو ددې دواړو نه اوکه چیرته نه وو هلته علمیت لکه په احمر کې |
| بَقِيَتِ الْعِلَّتَانِ عَلَى حَالِهِمَا وَ هٰذَا الْقَوْلُ اَنْسَبُ بِمَا عُرِفَ بِهٖ |
| نوباقي پاتې کیږي دواړه علتونه په خپل حال اوداقول ډیر مناسب دي دهغه څه نه چې تعریف کړې په هغې سره |
| الْمُص غَيْرَ الْمُنْصَرِفِ. |
| مصنف دغیر منصرف. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب کافیه بیان داختلاف کوي .

**اغراض دجامي** : فمنهم من ذهب : په دې عبارت سره شارح بیان داختلاف کوي : اختلاف په دې کې دي چې غیر منصرف په دخول دلام او اضافت سره منصرف گرځي اوکه نه په دې کې دري مذاهب دي :

**اول مذهب** : دوي وايي چې دغه غیر منصرف منصرف گرځي مطلقاً دامعنی چې علتین په کې پس ددخول دالف لام نه موجود وي اوکه نه اوهمدارنگه پس داضافت نه اودلیل دا وايي چې دا غیر منصرف وو دوجې دمشابهت دفعل نه اوس چې په ده خواص داسم راغلل نو مشابهت یې دفعل سره ضعیف شو نو جهت داسمیت په کې قوي شو نو اوس به یې رجوع کیږي اصل خپل ته چې انصراف دي .

فدخله الکسر دون التنوین : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : چې ته وايي منصرف گرځي نو کسره پرې راغله تنوین پرې ولې نه راځي ؟

**جواب** : دتنوین ذاتا دالف لام اواضافت سره تضاد دي ځکه الف لام راځي دپاره دتعریف او تنوین راځي دپاره دتنکیر اواضافت راځي دپاره داتصال اوتنوین راځي دپاره دانقطاع .

**دوهم مذهب** : دوي وايي چې غیر منصرف به پس ددخول دالف لام نه اواضافت نه مطلقاً غیر منصرف وي .

والممنوع من غیر المنصرف : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : چې غیر منصرف شو نو کسره پرې ولې راځي ؟

**جواب** : ممنوع په غیر منصرف باندې اصالتاً تنوین وو اوکسره دتبعیت دتنوین نه پس منع شو ځکه تنوین خاصه داسم وه نو کسره هم خاصه داسم ده نو چې مشابهت یې دفعل سره ضعیف شو نو کسره چې تابع ده داپرې راتلې شي اومؤثر شو علتین صرف په سقوط دتنوین کې .

فمنهم من ذهب : په دې عبارت سره شارح دریم مذهب بیانوي : چې مونږ به گورو که علتین په کې موجود وو سره دلام او اضافت نه نو اسم به غیر منصرف وي اوکه په کې نه وو موجود نو اسم به منصرف وي .

وبيان ذلك: په دې عبارت سره شارح يوه قاعده کليه بيانوي: قاعده بناء ده په دې خبره چې مونږ به دا څرنګه معلوموو چې علتين په کې يو پاتې دي يا يو هم نشته اويا دواړه شته.
نو قاعده داده چې علميت د سبب آخر د پاره شرط وي نو اسم به منصرف ګرځي په دخول دالف لام او اضافت سره ځکه علميت به هم ختم شي اومشروط به هم اسم به بلا سببه پاتې شي لکه ابراهيم اوکه چيرته علميت سبب وو نو اسم به على سبب واحد پاتې شي نو منصرف به شي.
او که په دغه اسم کې علميت نه وو نو علتان به دواړه باقي وي لکه په أحمر کې يو وصفيت دي اوبل وزن فعل دي نو دغه اسم به غير منصرف وي.
وهذا القول انسب: په دې عبارت سره شارح بيان د ماهو الراجح کوي چې دا آخري مذهب راجح دي ځکه چې مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ هم دغير منصرف داتعريف کړي چې مافيه علتان.



# د مرفوعاتو نقشه :

# المرفوعات :



بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# ﴿اَلْمَرْفُوْعَاتُ﴾ :

## دمرفوعاتو تعريف :

| |
|---|
| اَلْمَرْفُوْعَاتُ جَمْعُ الْمَرْفُوْعِ لَا الْمَرْفُوْعَةِ لِاَنَّ مَوْصُوْفَهُ الْاِسْمِ وَ هُوَ مُذَكَّرٌ لَا يَعْقِلُ وَ يَجْمَعُ |
| المرفوعات دالمرفوع جمع ده نه دالمرفوعة خكه چې دمرفوع موصوف اسم دى او هغه مذكر غير ذوي العقول دى او جمع |
| هٰذَا الْجَمْعُ مُطَّرِدًا صِفَةُ الْمُذَكَّرِ الَّذِيْ لَا يَعْقِلُ كَالصَّافِنَاتِ لِلذُّكُوْرِ مِنَ الْخَيْلِ وَ جِمَالٍ سِبَحْلَاتٍ اَيْ ضَخْمَاتٍ |
| كيږي دامذكر غير عاقل هميشه دالف او تا سره دلكه صافنات دمذكر آسونو دپاره او جمال سحلات يعنى مضبوط اوښان |
| وَكَالْاَيَّامِ الْخَالِيَاتِ هُوَ اَيِ الْمَرْفُوْعُ الدَّالُّ عَلَيْهِ الْمَرْفُوْعَاتُ لِاَنَّ التَّعْرِيْفَ اِنَّمَا يَكُوْنُ لِلْمَاهِيَةِ لَا |
| او لكه أيام خاليات او دامرفوع چې په كوم باندې مرفوعات دلالت كوي خكه چې تعريف دماهيت دپاره وي نه د |
| لِلْاَفْرَادِ مَا اشْتَمَلَ اَيْ اِسْمٌ نِ اشْتَمَلَ عَلٰى عَلَمِ الْفَاعِلِيَّةِ اَيْ عَلَامَةِ كَوْنِ الْاِسْمِ فَاعِلًا وَ |
| افرادودپاره هغه دې چې مشتمل وي په علامت دفاعل باندې يعنى داسم دفاعل كيدو په علامت باندې او |
| وَ هِيَ الضَّمَّةُ وَ الْوَاوُ وَ الْاَلِفُ وَ الْمُرَادُ بِاشْتِمَالِ الْاِسْمِ عَلَيْهَا اَنْ يَّكُوْنَ مَوْصُوْفًا |
| علامت هغه ضمه، واو او الف دى او مراد داشتمال داسم نه په علامت دفاعليت باندې دا دې چې اسم دې علامت ته |
| بِهَا لَفْظاً اَوْ تَقْدِيْراً اَوْ مَحَلاًّ وَلاَ شَكَّ اَنَّ الْاِسْمَ مَوْصُوْفٌ بِالرَّفْعِ الْمَحَلِّيْ اِذْ مَعْنَى الرَّفْعِ الْمَحَلِّيْ اَنَّهُ |
| موصوف وي لفظاً يا تقديراً يا محلاً او څه شک نشته چې اسم رفع محلي سره موصوف وي خكه چې درفع |
| فِيْ مَحَلٍّ لَوْ كَانَ ثَمَّهُ مُعْرَبٌ لَكَانَ مَرْفُوْعًا لَفْظاً اَوْ |
| محلي معنى داده چې اسم په يوداسې محل كې وي چې كه چيرته په دې خاى اسم معرب وي نو دا به لفظاً يا |
| تَقْدِيْراً فَكَيْفَ يَخْتَصُّ الرَّفْعُ بِمَاعَدَا الرَّفْعِ الْمَحَلِّيْ وَ هُوَ يَبْحَثُ مَثَلاً عَنْ اَحْوَالِ الْفَاعِلِ |
| تقديراً مرفوع وي نو رفع درفع محلي سره څنګه خاص كيدى شي لكه مصنف مثلاً دفاعل داحوالو نه بحث كوي |
| اِذَا كَانَ مُضْمَراً مُتَّصِلًا كَمَا سَيَجِيْءُ . |
| په هغه وخت كې چې ضمير متصل وي زر ده چې ددې بيان به راشي . |

**دمتن خلاصه** : هو ما اشتمل على علم الفاعلية : دعلم نحوي دمباديا تو او مقدماتو نه دفارغيدو نه پس علامه ابن حاجب رَحِمَهُ اللّٰهُ داسم مرفوع تعريف كوي چې مرفوع هغه اسم دي چې د فاعليت په علامت مشتمل وي .

**اغراض جامي** : عام طور باندې چې كله شارح شرحه ليكي نو ددې څلور اهم اغرض كيدي

شي : (۱) وضاحت دمتن ، دماتن عبارت مجمل وي شارح داجمال وضاحت کوي .(۲) دفع د سوال مقدر چې په متن باندې کوم اعتراض کيږي شارح ددې اعتراض مقدر په خپله شرحه کې جواب ورکوي (۳) ماتن په متن کې کوم قاعده کليه بيان کړي وي چې دهغه قاعدې ځه شرائط اوقيودات وي اوماتن نه وي ذکر کړي نو شارح داقيودات اوشرائط په خپله شرحه کې ذکر کوي (۴) شارح کله په خپله دماتن په متن باندې اعتراض کوي ، اوددې نه غير نور اغراض هم کيدې شي ليکن اکثر دا څلور اغراض وي .

اوس شارح دهر عبارت نه مخکې غرض بيانوي چې په هغې سره دشارح دعبارت مفهوم په يادولو کې آساني وي دې ته په اصطلاح کې دعبارت تقطيع اويا دشارح اغراض وايي ، نو دجمع المرفوع نه ترکالايام الخاليات پورې ديوسوال مقدر جواب دی ،ای المرفوع سره دفع دخل مقدر اولان التعريف انما يکون للماهية لا للافراد کې ديو سوال مقدر جواب دی ، ای اسم اشتمل د دوه مقدر سوالونو جواب دی ، علامة کون الاسم فاعلاً هم ديو سوال مقدر جواب دی ، وهي الضمة والواو والالف کې دفاعليت دعلامت مصداق بيانوي ، والمراد باشتمال نه دراتلونکې متن اذاکان مضمراً متصلاً کما سيجئ پورې ديو سوال مقدر جواب دی .

**سوال :** مصنف رَحِمَهُ اللهُ دمرفوعاتو بحث په منصوباتو اومجروراتو په بحث باندې ولې مقدم کړو ؟

**اول جواب :** ځکه چې مرفوعات اصل دی په نسبت سره منصوباتو اومجروراتو ته ، ځکه چې دا مرفوعات عمده في الکلام وي يعنې په فاعل او مبتداء باندې مشتمل کيږي او منصوبات او مجرورات فرع دی او اصل په فرع باندې مقدم وي .

**دوهم جواب :** ددې وجې نه چې دا په حرکت قويه يعنی په ضمه باندې مشتمل دی .

**ترکيب دمرفوعاتُ :** دا مرفوع ، منصوب ، مجرور اوساکن په څلوروطريقوسره ويلې شي:

(۱) ساکن: په دې بناء چې دادباب اودفصل په شان يو عنوان دی اوپه دې هيڅ اعراب نشته لا محل لها من الاعراب لکه اسماء معدوده ، زيد ، عمرو،بکر وغيره . (۲) مرفوع ويلو په صورت کې دري ترکيبونه کيدی شي : (۱) دا خبر دی د مبتداء محذوف د هذه ، دا په اصل کې وو : هذه المرفوعات . (۲) دا مبتداء ده او ددې خبر محذوف دی دا په اصل کې وو: المرفوعات هذه .

(۳) دا مبتداء ده اوددې خبر : هو ما اشتمل على الخ دی . (۳) دمنصوب ويلو په صورت کې به دا

مفعول وي د اقْرَأْ يا خُذْ يعنى اقرا المرفوعات يا خُذ المرفوعات . (۴) د مجرورويلو په صورت کې به دا مضاف اليه وي د دې مضاف بحث محذوف دی دا په اصل کې وو : هذا بحث المرفوعات .

جمع المرفوع : په دې عبارت سره شارح د جامي غرض د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مرفوعات د چا جمع ده ؟ د المرفوع يا د المرفوعة ؟ اودا دواړه احتمالونه دي اول احتمال د دې وجې نه صحيح نه دي چې المرفوع مذکر دی نو د دې جمع مرفوعون په واو راځي نه مرفوعات ، او دوهم احتمال داچې دا د دې وجې نه صحيح نه دي چې مرفوعات صيغه د صفت ده چې تقاضا کوي د موصوف او د دې موصوف الاسماء دي ځکه دلته د اسم مرفوع بحث کيږي نو تقدير د عبارت به داسې شي الاسماء المرفوعات او قاعده ده چې اتصاف الجمع بالجمع تقاضا کوي د اتصاف المفرد بالمفرد د دې قاعدې په رڼا کې د المرفوعات مفرد صفت به جوړ شي د الاسماء مفرد نو عبارت به داسې شي الاسم المرفوعة نو په دې صورت کې موصوف (الاسم) او صفت (المرفوعة) په مينځ کې مطابقت پاتې نه شو ځکه چې موصوف (الاسم) مذکر دی او صفت (المرفوعة) مؤنث دی حالانکه د موصوف او صفت په مينځ کې مطابقت ضروري دی

**جواب** : مرفوعات دا د مرفوع جمع ده ، نه د مرفوعة او وجه د دې داده چې د دې موصوف الاسم دی اودا مذکر دی نو صفت به هم مذکر وي د دې د پاره چې د موصوف او صفت په مينځ کې مطابقت پاتې شي ، پاتې شو دا سوال چې بيا د دې جمع مرفوعات په الف او تاء سره ولې ده مرفوعون ولې نه ده ؟ نو د دې جواب دادې چې المرفوع د الاسم صفت دی او الاسم مذکر غير عاقل دی او قاعده داده چې مذکر غيرعاقل صفت جمع په الف او تاء سره راتلې شي ، شارح د جامي رَحِمَهُ اللّٰهُ د دې دري مثالونه بيان کړي دي : (۱) لکه صافن ، داد خيل (آس) صفت دی چې مذکر غيرعاقل دی او د دې جمع په الف او تاء سره صافنات راځي . (۲) او دويم مثال لکه سجل دا د جمل (اوبن) صفت دی چې مذکر غير عاقل دی نو د دې جمع په الف او تاء سره سجلات راځي (۳) او دريم مثال لکه الخالي ديَوْم (ورځ) صفت دی چې مذکر غير عاقل دی نو د دې جمع په الف او تاء سره خاليات راځي ، همدارنګې المرفوع د الاسم صفت دی او دا مذکر غير عاقل دی نو د دې جمع هم په الف او تاء سره راځي نو د دې وجې نه يې مرفوعات راوړو .

**فائده** : سِبحَلْ په کسرې د سين او په فتحې د باء او په سکون د حاء سره دی ، په معنی د

مضبوط

ای ضماراً: د دې نه يې مقصد تفسير د غير مشهور په مشهور سره دی.

**سوال**: د مذکر غير ذوي العقول جمع په الف او تاء (جمع مؤنث) سره ولې راځي په واو او نون سره ولې نه راځي؟

**جواب**: ځکه چې مؤنث هم ناقص العقل کيدی شي نو د ناقص العقل د کيدو په وجه ګويا چې په دوي کې عقل د نشت برابر دی او دا په منزله د غير عاقل کې دي نو د دې مناسبت د وجې نه مذکر غير ذوي العقول (چې په هغې کې عقل نه وي) د دې جمع هم په الف او تاء سره راتلی شي.

هو ای المرفوع الدال عليه المرفوعات: په دې عبارت سره شارح د جامي غرض د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: د هُوَ ضمير په مرجع کې دوه احتماله دي: (۱) يا به د هُوَ مرجع المرفوعات وي. (۲) او يا به المرفوع وي، او دا دواړه باطل دي: (۱) المرفوعات د دې وجې نه صحيح نه دی چې په دې کې دري اشکاله دي: (۱) د راجع او مرجع په مينځ کې مطابقت نشته ځکه چې هُوَ ضمير د واحد دی او مرفوعات جمع ده. (۲) ضمير مذکر دی او مرفوعات مؤنث دی. (۳) المرفوعات جمع ده او جمع په افرادو باندې دلالت کوي نو د افرادو تعريف لازمي شو، حالانکه تعريف د ماهيت کيدی شي نه د افرادو، ضابطه او قاعده داده چې: التعريف للماهية بالماهية، چې تعريف د ماهيت په ماهيت وي (۲) او المرفوع د دې وجې نه صحيح نه دی چې د مرجع ماقبل کې ذکر کول ضروري دي او دلته د مرفوع ذکر په ماقبل کې نشته، لهذا اضمار قبل الذکر لازم راځي کوم چې جائز نه دي.

**جواب**: د هُوَ مرجع المرفوع دی پاتې شو دا سوال چې په دې صورت کې اضمار قبل الذکر لازم راځي کوم چې جائز نه دي، نو د دې جواب دا دې چې د مرجع په ذکر کولو کې دوه صورتونه دي: (۱) کله مرجع صراحتاً مذکور وي. (۲) او کله ضمناً، معنیً او دلالة مذکور وي. دلته مرجع د المرفوع اګر چې صراحتاً مذکور نه ده ليکن د المرفوعات په ضمن کې مذکور ده ځکه چې په هره جمع کې د دې مفرد مذکور او موجود وي او د مذکور مرجع ضمني طرف ته ضمير راجع کول

صحیح دی لکه اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ کې دضمیر مرجع عدل دی چې د اعْدِلُوا په ضمن کې مذکور دی ځکه چې په هر مشتق کې مصدر موجود وي نو لهذا اضمار قبل الذکر والاخرابي به لازم رانه شي ځکه چې اضمار قبل الذکر په هغه وخت کې لازم راځي چې کله مرجع نه صراحة مذکور وي اونه ضمناً. شارح د ملا جامي په الدال علیه المرفوعات سره دې ضمني مرجع طرف ته اشاره کوي.

لان التعریف: په دې سره شارح دجامي غرض اومقصد دیو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د هُوَ په ځای هِيَ ولې نه راوړو ددې دپاره چې ضمیر المرفوعات طرف ته راجع شوي وي او دماقبل والااعتراض به هم نه کیدو ؟ یا د هُوَ ضمیر مرجع المرفوعات ولې نه جوړول یا په مذکور کې تاویل کړي وي ددې دپاره چې په راجع اومرجع کې تذکیر اوتانیث مفرد تثنیه جمع په اعتبار سره عدم مطابقت اشکال ختم شوي وي او هُوَ ضمیر المرفوعات په تاویل سره مذکور طرف ته راجع کیدو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دا دوه صورتونه ولې اختیار کړي ؟.

**جواب**: دجواب نه مخکې یو تمهیدي خبره یاده وساتي چې تعریف همیشه دماهیت کیږي د افرادو نه کیږي ، منلي شوي قاعده ده چې: التعریف للماهیة بالماهیة مثلاً چې کله مونږ د کلمې تعریف په لفظ د وضع الخ سره کوو نو مونږ دکلمې دماهیت تعریف کوو دکلمې د افراد: اسم ، فعل ، حرف تعریف نه کوو ، اوس دجواب حاصل دادي چې مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دالمرفوعات مرجع جوړه نه کړه اومذکوره دواړه صورتونه یې اختیار نه کړو ځکه چې المرفوعات جمع ده اوپه جمع کې دافرادو لحاظ ساتلې شي ، که چیرته دضمیر مرجع المرفوعات جوړ شي نو تعریف دافرادو به وشي حالانکه دذکر شوي ضابطې او قاعدې لاندې تعریف دافرادو نه کیږي بلکې دماهیت کیږي ددې وجې نه مرجع المرفوع ( مفرد ) یې جوړه کړه .

هو ما اشتمل: په دې سره صاحب دکافیې غرض دمرفوع تعریف کول دي چې مرفوع هغه اسم دي چې د فاعلیت په علامت مشتمل وي .

ای اسم: په دې سره شارح دجامي مقصد ددري مقدرو سوالونو جواب ورکول دي :

**اول سوال**: دمصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ په عبارت کې کلمه د ما په ظاهره دعموم دپاره ده اوددې نه شئ مراد د: لهذا دمرفوع تعریف ددخول دغیر نه مانع نه دي ځکه چې دا دریهد په هغه دال باندې

صادق راځي کوم چې په جاء زیدٌ کې واقع دی ځکه چې د زید دال فاعلیت په علامت، د ضمې باندې مشتمل دی حالانکه صرف دال مرفوع نه شي ویلي بلکه زید مکمل مرفوع ویلي شي ، همدارنګې د مرفوع تعریف په پوره جمله د جاءني زید باندې صادقه راغله ځکه چې پوره جمله یو شي دی چې مشتمل ده په علامت دفاعل باندې حالانکه پوره جمله مرفوع نه شي ویلي بلکه مرفوع صرف زید دی نو تعریف مانع پاتې نه شو .

**دوهم سوال** : د مرفوع تعریف په فعل مضارع باندې صادق راځي ځکه چې هغه هم یو شي دی چې په علامت دفاعلیت باندې مشتمل دي حالانکه دې ته مرفوع نشي ویلي

**دریم سوال** : هُوَ مبتداء دي او مَااشتمل موصول صله یوځاې شو نو خبر شو اوموصول معرفه وي نو قاعده داده چې کله مبتداء اوخبر دواړه معرفه وي نو ضمیر دفصل راوړل ضروري دي نو لهذا دماتن عبارت صحیح نه دي ؟

**جواب** : ای اسم یې راوړو شارح دجامي ددري واړو سوالونو جواب ورکوي چې ما دعموم د پاره نه دي بلکې ما نه مراد اسم دی قرینه پرې داده چې دلته داسم مرفوع بحث کیږي لهذا د مرفوع تعریف د زید په دال باندې صادق نه راځي ځکه چې دا اسم نه دي بلکه حرف دی ، د دویم سوال جواب هم وشو ځکه چې فعل مضارع فعل دي ځکه چې د مانه مراد اسم دی ځکه تعریف په فعل مضارع باندې صادق رانه غلو ، د دریم سوال جواب دادې چې اسم یې نکره راوړه دې طرف ته یې اشاره وکړه چې ددې نه مراد ماموصوفه ده ماموصوله نه ده قرینه پرې داده چې دلته ما خبر واقع کیږي اوپه خبر کې اصل تنکیر دی لهذا ضمیر دفصل راوړل ضروري نه دی همدارنګې په جمله باندې هم صادق رانه غلو ځکه چې د ما نه مراد اسم دی او اسم دمفرد دقسم نه دي .

<u>ای علامة</u>: په دې سره دشارح غرض دیوسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : علامه ابن حاجب رَحِمَهُ اللهُ علم الفاعلية راوړو اودفاعلیت دعلاماتو نه مراد ضمه ، واو ، الف دی حالانکه دعَلَم تعریف په دې باندې صادق رانه غلو ځکه چې دعلم تعریف دی ما وضع لشيء بعینه غیر متناول غیره بوضع واحد چې علم هغه دي چې دیو معین څیز دپاره وضع شوي وي او وضع دواحد سره غیر ته شامل نه وي ، اوضمه ، الف او واو په دی معنی فاعل اومرفوع علم

نه دي لهذا د مرفوع تعریف صحیح نه دي.

**جواب**: د عَلَم ډیرې معاني دي (۱) جهنډا (۲) غر (۳) علامت (۴) علم په معنی د **ماوضع لشيء معین**، نو شارح علامة وویل معنی یې متعینه کړه چې دلته عَلَم په معنی د علامت دي په معنی د **ماوضع لشيء معین** نه دی، نو لهذا اشکال دفع شو.

کون الاسم فاعلاً: په دې سره د شارح مقصد د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: په عبارت کې اصل اختصار وي او ابن حاجب خو د ډیر اختصار قائل دي نو ده ته په کار وو چې د **علم الفاعلیة** په ځاې **علم الفاعل** ویلي وي د تاء او یاء مصدریت اضافه یې ولې وکړه؟

**جواب**: مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د یا او یاء مصدریه اضافه وکړه دې طرف ته اشاره وکړه چې رفع د یو شي د فاعل کیدو علامت دي نه د ذات د فاعل، ځکه چې ذات د فاعل رفع نه په غیر هم موندل کیږي لکه په رایت زیداً کې، یا په بل عبارت د سوال مقدر جواب یې هم کړي چې په **الفاعلیة** کې یاء د نسبت ده نو تقدیر د عبارت به داسې وي چې **علامة الشيء الذي هو منسوب الی الفاعل** مطلب به داوي چې اسم مرفوع هغه دي چې مشتمل وي د هغه څیز په علامت باندې چې دا څیز منسوب وي فاعل طرف ته حالانکه دا مطلب غلط دي ځکه چې اسم مرفوع بعینه په علامت د فاعل باندې مشتملیږي نه د دې څیز په علامت باندې چې **منسوب الی الفاعل** وي. کون الاسم نه شارح د جامي د دې اشکال جواب ورکوي چې **الفاعلیة** کې یاء د نسبت د پاره نه ده بلکې یاء مصدریه ده نو مطلب به داوي چې اسم مرفوع هغه دي چې د فاعل کیدو په علامت باندې مشتمل وي.

**سوال**: د اسم مرفوع تعریف: **وهو ما اشتمل علی علم الفاعلیة**، د مرفوعاتو ټول انواعو ته جامع نه دي دا تعریف هغو انواعو ته خو شامل دي چې په **علم الفاعلیة** باندې مشتملیږي او چې کوم انواعو د **علم الفاعلیة** ته نه مشتملیږي لکه مبتداء خبر، نو دا تعریف دوي ته نه دي شامل، حالانکه تعریف د پاره جامع کیدل ضروري دي.

**جواب**: په فاعل کې تعمیم دی فاعل که حقیقي وي یا حکمي، مبتداء او خبر حکما فاعل کیږي ځکه چې د فاعل دوه خاصیتونه دي (۱) د جملې جزء ثاني وي. (۲) مسند الیه وي. په

مبتداء کې مسند الیه والا او په خبر کې اول خاصیت د جملې جزء ثاني کیدل مونډل کیږي ځکه چې داحکماً فاعل دي اود مرفوعاتو تعریف خپلو ټولو انواعو ته شامل دي.

**وهي الضمة**: په دې سره دشارح غرض د علم الفاعلية مصداق بیانول دي چې ددې مصداق دري شیان دي: (۱) ضمه لکه جاء زید (۲) واو لکه جاء ابوک. (۳) الف لکه جاء رجلان.

**والمراد**: نه دشارح غرض دیو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: داشتمال څو قسمونه دي (۱) اشتمال الكل على الجزء. (۲) اشتمال الظرف على المظروف. (۳) اشتمال الموصوف على الصفة. (۴) اشتمال ذي الحال على الحال. (۵) اشتمال الكلي على الجزئي باعتبار الصدق. نو دلته د اشتمال کوم قسم مراد دي؟.

**جواب**: دلته اشتمال الموصوف على الصفة مراد دي ګویا چې اسم مرفوع په منزله دموصوف دي او علامة الفاعلية ضمه وغیره په منزله دصفت کې دي او اشتمال نه مراد اشتمال الموصوف على الصفة ددې وجې نه دي چې لکه څنګه دصفت نه پس موصوف وي نو همدارنګې دعلامة الفاعلية نه پس به هم بعد الاسم مرفوع وي په منزله دتابع.

**لفظاً اوتقديراً**: په دې سره شارح مقصد دیو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دمرفوع تعریف جامع نه دي ځکه چې دا په فتیٰ باندې صادق نه راځي چې کوم په جاءني فتی کې واقع دي ځکه چې په دې کې علامت دفاعلیت: ضمه، الف او واو کې په یو باندې هم مشتمل نه دي حالانکه دا مرفوع دي؟

**جواب**: په اشتمال على علم الفاعلية کې تعمیم دی برابره خبره ده چې دالفظاً وي او یاتقدیراً او په مثال مذکور کې فتیٰ اګر چې لفظاً علامت دفاعلیت ورته شامل نه دي لیکن تقدیراً ورته مشتمل دي ځکه چې په فتی کې رفع تقدیري ده.

**اومحلاً**: په دې سره دشارح غرض دیو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دمرفوع تعریف جامع نه دي ځکه چې دا په هؤلاء باندې صادق نه راځي چې کوم په قام هؤلاء کې واقع دي ځکه چې دانه لفظا په علامت دفاعلیت باندې مشتمل دي اونه تقدیراً ځکه چې اعراب لفظي اوتقدیري دواړه دمعرب سره خاص دی او هؤلاء مبني دي په دې باندې نه لفظي اعراب راتلی شي اونه تقدیري نو تعریف دې جامع پاتې نه شو؟

**جواب** : اشتمال على علم الفاعلية كې يو قسم بل تعميم هم دي كه دالفظاً وي اوكه تقديراً اوكه محلاً ، او په مثال مذكور هؤلاء كې كه لفظاً يا تقديراً ورته علامت دفاعل شامل نه دى ليكن محلا ورته شامل دي اود رفع محلي معنى داده چې اسم په داسې محل كې واقع وي چې كه چيرته دده په ځاې باندې اسم معرب وي نو په دې باندې به رفع وي اودلته همداسې دي چې كه چيرته د هؤلاء په ځاې باندې زيد وي نو دا به لفظاً مرفوع وي .

ولا شك: په دې سره غرض دجامي علامه رضي اوشارح هندي باندې رد كول دي هغوي دذكر شوي سوال جواب دا وركړي چې ما اشتمل على علم الفاعلية مطلق داسم مرفوع تعريف نه دى كوم چې معرب اومبني دواړو ته شامليږي بلكه دا تعريف صرف دمرفوع معرب دي ګويا معرف خاص دي نو تعريف به يې هم خاص وي اومعرب دمرفوع كيدو همدا دوه صورتونه دي لفظاً يا تقديراً او هؤلاء چونكې معرب نه دي بلكې مبني دي لهذا كه چيرته تعريف په دې صادق نه راځي نو دا ددې دجامعيت دپاره مضر نه دي ځكه چې دا دمعرف فرد دسره دي نه .

**جواب** :ولاشک نه علامه جامي په هغوبعضوشارحينو باندې ردكوي چې حاصل يې دادي چې معرف خاص نه دي بلكې عام دى معرب اومبني دواړو ته شامل دي ځكه چې دمرفوع ( يعنې فاعل وغيره ) په شان چې دامعرب وي نو همدارنګې مبني هم كيدى شي چنانچې څو كرخې پس به مصنف د هغه فاعل نه بحث كوي چې ضمير متصل وي اوظاهره ده چې ضمير متصل مبني وي اودده رفع محلي وي لهذا دا ويل چې معرف مطلق مرفوع نه دي بلكې مرفوع معرب دي صحيح نه ده بلكې معرف مطلق مرفوع وي كه دامعرب وي اوكه مبني لفظا وي اوكه تقديرا يا محلا ، لهذا جواب او تشريح هماغه صحيح ده كومه چې ددې نه مخكې مونږه كړي ده.

## فاعل :

| فَمِنْهُ اَىْ مِنَ الْمَرْفُوْعِ اَوْ مِنْمَا اشْتَمَلَ عَلٰى عَلَمِ الْفَاعِلِيَّةِ الْفَاعِلُ وَ اِنَّمَا قَدَّمَهُ |
|---|
| نو ددې نه يعنې دمرفوع نه اويادهغه څه نه چې په علامت دفاعل مشتمل وي فاعل دي اودايې ځكه مقدم كړو |
| لِاَنَّهُ اَصْلُ الْمَرْفُوْعَاتِ عِنْدَ الْجَمْهُوْرِ لِاَنَّهُ جُزْءُ الْجُمْلَةِ الْفِعْلِيَّةِ الَّتِىْ هِىَ اَصْلُ الْجُمَلِ وَ |
| چې داپه مرفوعاتوكې اصل دى دجمهورپه نزدځكه چې دادجمله فعليه جزدي كوم چې دتولوجملواصل دي او |
| لِاَنَّ عَامِلَهٗ اَقْوٰى مِنْ عَامِلِ الْمُبْتَدَا وَ قِيْلَ اَصْلُ الْمَرْفُوْعَاتِ الْمُبْتَدَا لِاَنَّهٗ |
| داځكه چې دفاعل عامل دمبتدادعامل نه ډيرقوي دي اوځاويلي چې دتولومرفوعاتواصل مبتداده ځكه چې |

| بَاقٍ عَلَى مَا هُوَ الْاَصْلُ فِي الْمُسْنَدِ اِلَيْهِ وَهُوَ التَّقَدُّمُ بِخِلَافِ الْفَاعِلِ وَلِاَنَّهُ يُحْكَمُ عَلَيْهِ بِكُلِّ |
| --- |
| په هغه حالت باقي دي کوم چې په مسنداليه کې اصل وي په خلاف دفاعل اوداځکه چې په دې حکم کولی هر |
| حُكْمٍ جَامِدٍ اَوْ مُشْتَقٍ فَكَانَ اَقْوٰى بِخِلَافِ الْفَاعِلِ فَاِنَّهُ لَا |
| يو حکم دجامدسره يامشتق سره لهذا مبتدا دفاعل په نسبت ډيره قوي ده په خلاف دفاعل کې ځکه چې نشي |
| يُحْكَمُ عَلَيْهِ اِلَّا بِالْمُشْتَقِّ . |
| کولی حکم په دې باندې مګر صرف په مشتق سره. |

**اغراض دجامي** : ددې ځاې نه دمرفوعات دهر يو قسم تعريف اودهر يو قسم احکاماتو دبيانولو شروع کوي.

**وجه دحصر دمرفوعاتو** : دمرفوعاتو عامل به يالفظي وي اويامعنوي ، که چيرته معنوي نو بيابه خالي نه وي يابه په مسنداليه کې عامل وي يا په مسند کې ، که چيرته په مسنداليه کې عامل وي نو مبتداء ، اوکه چيرته په مسند کې عامل وو نو بيا خبر دی ، اوکه چيرته عامل لفظي وي نويا به فعل شبه وي اويا حرف ، که چيرته فعل شبه وي نوقائم بالمعمول به وي يا به واقع على المعمول که چيرته قائم بالمعمول وو نو فاعل به يا واقع على المعمول وي نونائب فاعل او که چيرته عامل حرف وي نو يابه په مسنداليه کې عامل وي اويا په مسند کې که چيرته په مسند اليه کې عامل وي نو يابه په کلام موجب کې وي اويابه کلام غيرموجب کې ، که چيرته په کلام موجب کې وي نو دافعال ناقصه اسم به وي اوکه چيرته په کلام غيرموجب کې وي نو د ما ولامشبه بليس اسم اوکه چيرته په مسند کې عامل وي نو يابه کلام موجب وي اويا به غير موجب که چيرته کلام موجب وي نو دمشبه بالفعل خبر اوکه چيرته کلام غير موجب وي نو د لائ نفي جنس خبر به وي.

<u>اى من المرفوع</u> : ددې نه دشارح غرض بيان دمرجع دي ، فَمِنْهُ کې د (ه) ضمير مرجع متعين کول دي د ضمير مرجع کې اختلاف دی دبعضو په نزد دضمير مرجع المرفوع ده اودليل هغه دليل پيش کوي چې په دې صورت کې ددواړو ضميرونو مرجع يوه وي يعنې لکه څنګه چې مخکې هُوَ ضمير مرجع المرفوع وو نو دلته هم المرفوع مرجع کيدل په کار دي . (۲) فمنه الفاعل نه د مرفوع دتعريف نه پس دتقسيم بيان کوي اوپه تقسيم کې دمقسم ذکر کول ضروري وي اود بعضو په نزد دضمير مرجع ما اشتمل على علم الفاعلية دي هغوي دا دليل بيانوي چې : (۱) دا قريب دي او حق للاقرب وي . (۲) دا مرجع صراحةً ذکر ده او المرفوع ضمناً مذکور ده . حاصل

داچې که چیرته اتحاد دمرجع ته وکتل شي نو مرجع المرفوع زیاته مناسب ده اوکه چیرته دنږدي والي دمرجع لحاظ وکړل شي نو ما اشتمل علی علم الفاعلیة مرجع جوړول ډیر زیات مناسب دي

دزیات تفصیل دپاره وګورئ سوال باسولي ص ۱۷۸: **اعلم ان في مرجع ضمیر منه خلاف ارجع البعض الی المرفوع بوجهین: احدهما اتحاد المرجع للضمیرین والآخر کونه معرفا. وارجع البعض الی ما اشتمل بوجهین: احدهما قرب المرجع والآخر کونه مرجعا صریحاً**.

**وانما قدم**: په دې سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: سوال دادې چې فاعل یې په نورو مرفوعاتو ولې مقدم کړو؟

**جواب**: وانما قدم سره جواب ورکوي چې دهغې حاصل دادې چې په دې باره کې دنحویانو دوه مسلکه دي چې په مرفوعاتو کې اصل کوم یو دي: (۱) نو دجمهورو په نزد په مرفوعاتو کې اصل فاعل دي نو ځکه یې دامقدم کړو، دجمهورو دوه دلیلونه دي:

**اول دلیل**: داچې فاعل دجمله فعلې جز وي اوجمله فعلیه په ټولو جملو کې اصل دي نو ددې وجې نه فاعل هم په ټولو مرفوعاتو کې اصل دي.

**سوال**: جمله فعلیه په ټولو جملو کې اصل ولې دي؟

**جواب**: ځکه دجملې نه مراد اومقصد مخاطب ته فائده ورسول دي اودا مقصد په جمله فعلیه کې ډیر موندل کیږي په نسبت سره جمله اسمیه ته ځکه چې په جمله فعلیه کې دفعل سره فاعل (کار کوونکي) هم معلومیږي ځکه چې دفعل وضع دده دپاره شوي وي چې دده اسناد شوي وي فاعل ته همدارنګې په جمله فعلیه کې زمانه هم موندل کیږي اودا خوبیانې په جمله اسمیه کې نشته، نو چونکې فاعل دجملې فعلې جزء دي نو ددې وجې نه دا اصل المرفوعات شو. دجمله فعلیه داصل کیدو دویمه وجه یې دا بیان کړي چې دجملې نه مراد ربط بالغیر وي اوپه جمله فعلیه کې ربط بالغیر زیات موندل کیږي په نسبت سره جمله اسمیه ته چې دامستقل بالذات وي اودکوم څیز سره دربط تقاضا نه کوي. دجمله فعلیه داصل کیدو دریمه وجه یې یوه داهم بیان کړي ده چې دجملې نه مقصود اخبار اوانشاء وي اوفعل ددواړو دپاره موضوع اومفید وي، په خلاف دجمله اسمیه کې چې دا صرف داخبار فائده ورکوي اود انشاء دپاره نه ده وضع، خارجي عوارض او ادوات خارجیه لکه استفهام، تمني، ترجي وغیره

چې ددې دوجې نه دانشاء معنی ورکوي

**دويم دليل** : داچې دفاعل عامل دمبتدا دعامل نه قوي وي ځکه چې دفاعل عامل لفظي موجود ، محسوس او مسموع وي اودمبتداء عامل معنوي معدوم اومعقول وي اودمؤثر قوت داثر دقوت تقاضا کوي لهذا فاعل اصل او قوي شو .

**فائده** : دفاعل داصل کيدو يوه وجه داهم بيانولې شي چې په دې کې معنی دفاعليت بالاصالت موندل کيږي اوپه نورومرفوعاتوکې بالتبع اودفاعل سره دمشابهت دوجې نه موندل کيږي . او يوه وجه يې داهم بيان کړي چې دفاعل حذف جائز نه دي مګر شاذ اونادر . اودنورو مرفوعاتوحذف جائز دی او همدارنګې دحضرت علي کرم الله وجهه نه منقول دي چې **کل فاعل مرفوع** ددې نه هم دفاعل اصل کيدل معلوميږي .

**وقيل : (قائله سيبويه)** : په دې سره دشارح غرض اومقصد دعلامه سيبويه رَحِمَهُ اللهُ مذهب بيانول دي ، علامه سيبويه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې په مرفوعاتو کې اصل مبتدا ده نوددې وجې نه په مرفوعاتو کې ددې مخکې کول زيات مناسب دي ددې دوه دليله دي .

**اول دليل** : په مسند اليه کې اصل تقديم دي اومبتداء په خپل اصل باندې باقي ده نو لهذا مبتدا اصل شوه

**دويم دليل** : په مبتداء باندې په جامد اومشتق دواړو سره حکم لږولې شي په خلاف دفاعل کې چې په دې سره دمشتق سره حکم لږولې شي اوجامد سره حکم نشي لږولې نو ددې وجې نه مبتداء اصل او اقوی شوه

**محاکمه** : په دې کې راجح مسلک دجمهورو دي اودعلامه سيبويه رَحِمَهُ اللهُ داول دليل جواب دادې چې فاعل داصل په اعتبار سره خو مقدم دي ليکن ديومانع په وجه يې دامقدم نه کړو هغه مانع دادې چې دفاعل دمبتداء سره التباس لازم رانه شي لکه ضرب زيد نو ثابته شوه چې دفاعل تاخير ضروري دي . **وتاخير الضروري لا يفيد شيئاً من الضعف** ددوهم دليل جواب دادي چې په مبتداء کې تعميم دي چې په دې باندې په اسم جامد اومشتق هر قسمه حکم لږولې شي او په فاعل کې تخصيص دي صرف په اسم مشتق سره حکم لږولې شي ، اوپه تعميم کې کمزوري موجود وي اوپه تخصيص کې رفعت او اوچتوالي وي لهذا **فاعل اصل المرفوعات** شو همدارنګې مونږ داجواب هم ورکولې شي چې اصل دادې چې په کوم څيز باندې حکم دمشتق

سره قلیلونه شي نو دجامد سره حکم لیږول خلاف اصل تقلیل اوغیر معتد دي لهذا ددې څه
اعتبار نه شي کولې

## دفاعل تعریف:

وَهُوَ اَيِ الْفَاعِلُ مَا اَيْ اِسْمٌ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً لِيَدْخُلَ فِيْهِ مِثْلُ قَوْلِهِمْ اَعْجَبَنِيْ اَنْ ضَرَبْتَ زَيْداً

اودا یعني فاعل هغه یعني هغه اسم دی حقیقةً یاحکماً چې داخل شي په دې کې داقول دنحاتو اَعْجَبَنِيْ اَنْ ضَرَبْتَ زَيْداً

اُسْنِدَ اِلَيْهِ الْفِعْلُ بِالْاِصَالَةِ لَا بِالتَّبْعِيَّةِ لِيَخْرُجَ عَنِ الْحَدِّ تَوَابِعُ الْفَاعِلِ

چې اسناد یې شوي وي دې ته دفعل بالاصالة نه بالتبعیة ددې دپاره چې ووځي دفاعل دتعریف نه توابع دفاعل

وَكَذَا الْمُرَادُ فِيْ جَمِيْعِ حُدُوْدِ الْمَرْفُوْعَاتِ وَالْمَنْصُوْبَاتِ وَالْمَجْرُوْرَاتِ غَيْرُ التَّابِعِ بِقَرِيْنَةِ ذِكْرِ التَّوَابِعِ

اوهمدا مراد په ټولو تعریفونو د مرفوعاتو منصوباتو او مجروراتو کې تابع دغیر مراد دي په قرینه دذکر کولو دتوابع

بَعْدَهَا اَوْ شِبْهُهُ اَيْ مَا يُشْبِهُهُ فِي الْعَمَلِ وَ اِنَّمَا قَالَ ذٰلِكَ

پس ددې نه یا ددې دمشابهه یعني دا چې په عمل کې دفعل سره مشابهت لري اودا یې ددې وجې نه وویل چې

لِيَتَنَاوَلَ فَاعِلَ اِسْمِ الْفَاعِلِ وَالصِّفَةِ الْمُشَبَّهَةِ وَ الْمَصْدَرِ وَاِسْمِ الْفِعْلِ وَ اَفْعَلِ التَّفْضِيْلِ وَالظَّرْفِ.

د فاعل د تعریف اسم فاعل، صفت مشبه، مصدر، اسم فعل، اسم تفضیل او د ظرف فاعل ته شامل شي.

**خلاصه دمتن**: وهو ما اسند الیه الفعل او شبهه الخ. په دې کې علامة ابن حاجب رَحِمَهُ اللّٰهُ دفاعل تعریف کوي چې فاعل هغه اسم دي کوم طرف ته چې دفعل یادشبه فعل اسنادو کړې شي اودافعل شبه فعل ددې اسم نه مخکې وي اوددې اسم سره قائم وي اوپه دې واقع نه وي دفعل مثال قام زید اود شبه فعل مثال زید قائم ابوه، دلته د ابوه اسناد دي قائم طرف ته.

**اغراض دجامي**: په پورتني عبارت کې علامه جامي رَحِمَهُ اللّٰهُ دفاعل تعریف، ددې دقیودو، فوائدو او په دې باندې کیدونکي سوال جواب اودصاحب دکافیې دعبارت وضاحت کوي چې دهغې تفصیل په لاندې ډول دي:

اي الفاعل: په دې سره غرض دشارح بیان دمرجع ده، علامه جامي رَحِمَهُ اللّٰهُ اي الفاعل وویل د هُوَ ضمیر مرجع یې متعینه کړه چې دضمیر مرجع فاعل دی.

اي اسم: په دې سره غرض دشارح دیوسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: د ما نه مراد ماموصوله ده چې کوم معرفه وي ځکه دا په ذهن کې کثیرالوقوع ده او قاعده دا ده چې کله مبتدا اوخبر دواړه معرفه وي نوضمیر دفصل راوړل ضروري وي او دلته یې نه دي راوړي؟

**جواب** : اى اسم يې راوړو علامه جامي ددې سوال جواب ورکوي چې دلته ما موصوفه ده چې کومه نکره وي قرينه پرې داده چې داپه محل دخبر کې ده اوپه خبر کې اصل نکره وي لهذا ضمير دفصل راوړل ضروري نه دي .

حقيقة او حكماً: په دې سره غرض دشارح ديوسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : چې کله دما نه مراد اسم دى نو دفاعل تعريف جامع نشو ځکه چې دا تعريف اعجبني ان ضربت زيداً کې ان ضربت باندې صادق نه راځي ځکه چې دااسم نه دي بلکې دا جمله ده حالانکې دا فاعل دي

**جواب** : په اسم کې تعميم دي که دا حقيقتاً وي اوکه حکماً اوپه ذکر شوي مثال کې ان ضربت اګر چې حقيقتا اسم نه دي ليکن حکماً اسم دي ځکه چې ان ضربت کې د ان مصدريه دوجې نه په تاويل د ضربک کې په حکم داسم کې دې .

بالاصالة: په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : تعريف دفاعل ددخول دغير نه مانع نه دي ځکه چې دادفاعل تابع دي مثلاً جاءني زيد وعمرو کې عمرو باندې صادق راځي ځکه چې دا اسم دي چې دې طرف ته فعل مسند دي اوفعل ددې نه مقدم دي اوددې سره قائم هم دي حالانکه دا فاعل نه دي بلکې تابع دفاعل دي ؟

**جواب** : بالاصالة سره علامه جامي رَحِمَهُ اللهُ ددې سوال جواب ورکوي چې دفاعل په تعريف کې اسناد نه مراد اسنادبالاصالة دى نه اسناد بالتبعية اوپه ذکر شوي مثال کې اګرچې عمرو طرف ته دفعل اسناد دي ليکن بالاصالة نه دي بلکې بالتبعية دي لهذا دفاعل تعريف په دې باندې صادق نه راځي .

وكذا المراد: ددې نه دشارح غرض بيان ديوې فائدې دي :

**فائده** : شارح وايي چې همدارنګې دټولو مرفوعاتو ،منصوباتو اومجروراتو په تعريفاتو کې هم اسنادنه مراد اسناد بالاصالة دي په دې باندې قرينه داده چې مصنف رَحِمَهُ اللهُ د مرفوعاتو، منصوباتو اومجروراتو نه پس دتوابعو بحث يې مستقل ذکر کړي دي.

اي مايشبهه: ددې نه غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مصنف رَحِمَهُ اللهُ د فاعل تعريف کړي دي چې کوم طرف ته د فعل نسبت شوي وي يا د

شبه فعل ، نو داتعریف په دې ابوه باندې صادق رانه غلو کوم چې په زید قائم ابوه کې واقع دي ځکه چې دې طرف ته دقائم نسبت دي اوقائم شبه فعل نه ده بلکه دامشابه بالفعل ده ځکه چې شبه مصدر نوم دي د هغه نسبت کوم چې دمشبه اودمشبه به په مینځ کې وي لهذا دفاعل تعریف په ابوه باندې صادق رانه غلو نو تعریف دې جامع نه شو .

**جواب** : په شبهه کې مصدر داسم فاعل په معنی باندې دي په معنی دمشابهه لهذا تعریف په قائم ابوه باندې صادق راغي .بیا مشابه اسم فاعل صیغه دصفت ده چې تقاضا کوي د موصوف ځکه چې مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د ما موصوفه اضافه وکړه نو په دې سره یې حذف دموصوف طرف ته اشاره کړي . بیا دلته په دې باندې اعتراض واردیږي چې د ما نه مراد شيء دي کومه چې نکره ده اوشبه په معنی دمشابه اسم فاعل دضمیر په طرف دمضاف کیدو دوجې نه معرفه وي نو دموصوف صفت په مینځ کې مطابقت نشته ددې اعتراض نه دبچ کیدو دپاره شارح رَحِمَهُ اللّٰهُ دمشابه دفعل مضارع سره تعبیر وکړو ، اوس یشبه فعل دخپل فاعل اودمفعول سره یوځاې شو نو جمله فعلیه ترې جوړه شوه اوجمله فعلیه دنکرې په حکم کې راځي ځکه چې په موصوف اوصفت کې مطابقت موندل کیږي اومذکوره اعتراض به لازم رانه شي .

في العمل: دا وجه دشبه بیان دي چې مشابهت په عمل کې مراد دي یا دا دیو سوال مقدر جواب دي :

**سوال** : شبه فعل ته دکوم مشابهت دوجې نه شبه فعل وایي ځکه چې مشابهت بالفعل ددرې حالتو نو به خالي نه وي : (۱) که چیرته معنی حدثي مشابهت دوجې نه وي نو صحیح نه ده ځکه چې فی الدار زید کې في الدار ظرف شبه فعل دي لیکن په دې کې معنی حدثي نشته .(۲) او که چیرته دحرکاتو او سکناتو په اعتبار سره وي نوبیاهم نه ده صحیح ځکه چې هیهات شبه فعل دي اوحرکاتو اوسکناتو کې دفعل مشابه نه دي . (۳) اوکه چیرته دمشتق کیدو مشابهت وي نو داهم صحیح نه دي ځکه چې اعجبني ضرب زید کې ضرب مصدر شبه فعل دي لیکن مشتق نه دي بلکه مشتق منه دي نو تاسو دکوم مشابهت په بناء شبه فعل ته فعل وایي ؟

**جواب** : په في العمل سره یې جواب ورکړو چې دمشابهت مذکورو درې صورتونو نه ، یو هم مراد نه دي بلکه مشابهة في العمل مع الفعل مراد دي یعنې لکه څنګه چې فعل خپل فاعل ته رفع او مفعول ته نصب ورکوي همدارنګې شبه فعل هم فاعل ته رفع اومفعول ته نصب ورکوي .

**وانما قال**: په دې سره اوشبهه دقيد فائدې بيانوي چې ماتن شبهه د دې وجې نه وويل چې دفاعل تعريف په اسم الفاعل ، صفت مشبه ، مصدر ، اسم الفعل ، افعل التفضيل اوظرف فاعل ته هم شامل شي ځکه چې دا ټول په عمل کې دفعل مشابه دي .

## په اسم باندې د فعل او يا د شبه فعل تقديم :

| |
|---|
| وَ قُدِّمَ اَيِ الْفِعْلُ اَوْ شِبْهُهُ عَلَيْهِ اَىْ عَلٰى ذٰلِكَ الْاِسْمِ وَ احْتَرَزَ بِهٖ عَنْ نَحْوِ زَيْدٌ فِيْ |
| اومخکې يې کړې يعني فعل ياشبه فعل په دې يعني په دې اسم اوپه دې سره يې احترازوکړود زَيْدٌ نه کوم چې |
| زَيْدٌ ضَرَبَ لِاَنَّهٗ مِمَّا اُسْنِدَ اِلَيْهِ الْفِعْلُ لِاَنَّ الْاَسْنَادَ اِلٰى ضَمِيْرِهٖ |
| په زَيْدٌ ضَرَبَ کې دې ځکه چې دا دهغه قبيل نه دې چې هغه طرف ته دفعل اسناد شوې وي ځکه چې اسناد ضمير |
| فَىْءٍ اِسْنَادٌ اِلَيْهِ فِي الْحَقِيْقَةِ لٰكِنَّهٗ مُؤَخَّرٌ عَنْهُ وَ الْمُرَادُ تَقْدِيْمُهٗ عَلَيْهِ وُجُوْباً |
| ديوڅيزته په حقيقت کې اسناد همدې څيز طرف ته وي ليکن د دې نه اسم مؤخر دې اومراد د تقديم نه په دې کې وجوباً |
| لِيَخْرُجَ عَنْهُ الْمُبْتَدَاُ الْمُقَدَّمُ عَلَيْهِ خَبَرُهٗ نَحْوُ كَرِيْمٌ مَنْ يُّكْرِمُكَ فَاِنْ |
| دې د دې دپاره چې هغه مبتدا اترې خارجه شي چې دهغې خبر د دې نه مقدم وي لکه كَرِيْمٌ مَنْ يُّكْرِمُكَ که چيرته |
| قُلْتَ قَدْ يَجِبُ تَقْدِيْمُهٗ اِذَا كَانَ الْمُبْتَدَا نَكِرَةً وَ الْخَبَرُ ظَرْفًا نَحْوُ فِي الدَّارِ رَجُلٌ قُلْتُ |
| ته ووايې چې کله تقديم دخبرواجب وي چې کله مبتدانکره اوخبر ظرف وي لکه فِي الدَّارِ رَجُلٌ نوموږ وايوپه جواب |
| الْمُرَادُ وُجُوْبُ تَقْدِيْمِ نَوْعِهٖ وَ لَيْسَ نَوْعُ الْخَبَرِ مِمَّا يَجِبُ تَقْدِيْمُهٗ بِخِلَافِ |
| کې چې مراد دفعل شبه دفعل دنوع تقديم دې اودخبرنوع د دې نه نه دې چې د دې تقديم واجب وي بالعکس |
| نَوْعِ مَا اُسْنِدَ اِلَى الْفَاعِلِ . |
| دهغه څيزچې دهغې اسناد وشي فاعل طرف ته . |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره غرض دشارح په تعريف دفاعل کې دلړيدلي دويم قيد وقدم عليه متعلق بحث کوي :

**اغراض د جامي** : **اى الفعل** : په دې سره غرض دشارح ديوسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د قدم ضمير مرجع فعل او شبه فعل دواړو ته راجع دي نو راجع کيدل د ضمير واحد تثنيې ته ( د واحد ضمير تثنيې طرف ته راګرځول ) لازم راغلو کوم چې صحيح نه دي ؟

**جواب** : په قدم کې دضمير مرجع فعل اوشبه فعل ددواړو مجموعه نه ده بلکه احد الامرين دي؟

ای علی ذلک الاسم: په دې سره غرض دشارح بیان دمرجع ده ، د علیه ضمیر مرجع یې متعینه کړه چې دضمیر مرجع ما ده کوم چې عبارت دې داسم نه .

واحترز به: په دې سره غرض دشارح د قدم علیه دقید فائدې بیانوي چې دا قید احترازي دې په دې کې احتراز دې دهغه زید نه چې په زید ضرب کې واقع دې اګرچه زید طرف ته فعل ضرب مسند دې لیکن فعل مقدم نه دې بلکه مؤخر دې لهذا زید فاعل به نه وي .

لان الاسناد الی ضمیر شیء: په دې سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : په زید ضرب کې ضرب ، زید طرف ته مسند نه دې بلکه دضمیر طرف ته مسند دی ، چې کله دزید طرف ته فعل ضَرَبَ مسند نه وي نودابه د ما اسند الیه الفعل دقید نه به خارج وي لهذا قدم علیه دقید اضافه کولو سره دا خارجول اخراج دمخرج شو

**جواب** : دیو شیز ضمیر طرف ته اسناد په حقیقت کې همدې طرف ته اسناد وي ، لهذا دضرب زید د ضمیر په طرف اسناد ګویا زیدطرف ته اسناد دې ځکه ددې دویستلو دپاره دمذکوره قید ضرورت راغي .

والمراد: په دې سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : تعریف دفاعل دخول دغیر نه مانع نه دې ځکه چې دا تعریف په هغه مَن باندې صادق راځي کوم چې په کریم من یکرمک کې واقع دې ځکه چې هغه اسم دې اودې طرف ته شبه فعل یعنې کریم مسند دې اوداددې نه هم مقدم دې اوددې سره قائم هم دې پـه دې واقـع نـه دې حالانکه دا فاعل نه دې بلکه مبتداء ده .

**جواب** : قدم دتقدیم نه مراد تقدیم وجوبي دې ځکه چې قاعده ده : المطلق اذا یطلق یراد به الفرد الکامل او فرد کامل تقدیم وجوبي دې اوبه ذکر شوي مثال کې کریم اګرچې په مَنْ باندې مقدم دې لیکن ددې تقدیم وجوبي نه دې ( بلکې جوازي دې ) همدارنګې داهم ویلې شو چې من یکرمک کریم ، نو لهذا تعریف مانع دې .

فان قلت: په دې غرض دشارح یو اعتراض نقل کړي وو اوبه قلت سره ددې جواب ورکوي :

**اعتراض** : تعریف دفاعل ددخول دغیر نه مانع نه دې ځکه چې دا تعریف په رجل باندې

صادق راځي کوم چې في الدار رجل کې واقع دي ځکه چې دا اسم دی چې کوم طرف ته شبه فعل يعنې ظرف (في الدار) مسند دي اودا مقدم دي اوتقديم يې هم وجوبي دي ځکه چې قاعده ده چې کله خبر ظرف وي اومبتداء نکره وي نو دخبر تقديم په مبتداء باندې واجب وي ، نو لهذا د في الدار تقديم په رجل باندې واجب دي حالانکه رجل فاعل نه دي بلکې دا مبتداء ده .

**جواب** : دلته دقدم نه مراد دمسند دنوعې تقديم وجوب دي چې دا مسند (فعل ياشبه فعل) نوع مقدم کول واجب وي ، دخبر په نوع باندې تقديم دمبتداء واجب نه ده بلکې ددې بعض افراد (دبعضې عوارضو دوجې نه) تقديم واجب دي په خلاف د ما اسند الى الفاعل کې چې ددې نوعې تقديم په فاعل باندې واجب دي .

| عَلٰى جِهَةِ قِيَامِهِ اَىْ اِسْنَادًا وَاقِعًا عَلٰى طَرِيْقَةِ قِيَامِ الْفِعْلِ اَوْ شِبْهِهٖ بِهٖ اَىْ بِالْفَاعِلِ |
|---|
| په جهت دقيام ددې يعنې داسې اسناد چې واقع وي په طريقې دقيام دفعل يادشبه فعل ددې سره يعنې دفاعل سره |
| فَطَرِيْقُ قِيَامِهٖ بِهٖ اَنْ يَّكُوْنَ عَلٰى صِيْغَةِ الْمَعْلُوْمِ اَوْ عَلٰى مَا فِيْ حُكْمِهَا كَاِسْمِ الْفَاعِلِ وَ الصِّفَةِ الْمُشَبَّهَةِ وَ |
| نوطريقه دقيام داده چې دابه په صيغې دمعلوم سره وي اويا په حکم ددې کې وي لکه اسم فاعل صفت مشبه او |
| احْتَرَزَ بِهٰذَا الْقَيْدِ عَنْ مَفْعُوْلِ مَالَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهٗ كَزَيْدٌ فِيْ ضُرِبَ زَيْدٌ عَلٰى صِيْغَةِ الْمَجْهُوْلِ وَ الْاِحْتِيَاجُ |
| په دې قيد سره يې احترازو کړو: مفعول مالم يسم فاعله نه لکه زَيْدٌ په ضُرِبَ زَيْدٌ په صيغه دمجهول اوضرورت |
| اِلٰى هٰذَا الْقَيْدِ اِنَّمَا هُوَ عَلٰى مَذْهَبِ مَنْ لَّمْ يَجْعَلْهُ دَاخِلًا فِي الْفَاعِلِ كَالْمُصَنِّفِ وَ اَمَّا |
| دې قيد ته دهغه چاپه مذهب باندې چې مفعول مالم يسم فاعله په فاعل کې نه داخلوي لکه مصنف اوهرچې د |
| عَلٰى مَذْهَبِ مَنْ جَعَلَهٗ دَاخِلًا فِيْهِ كَصَاحِبِ الْمُفَصَّلِ فَلَا حَاجَةَ اِلٰى هٰذَا الْقَيْدِ بَلْ يَجِبُ اَنْ لَّا |
| هغه چا په مذهب چې داخلوي يې لکه صاحب دمفصل نو بيا حاجت نشته دې قيد ته بلکې واجب دي چې نه |
| يُقَيَّدَ بِهٖ مِثْلُ زَيْدٌ فِيْ قَامَ زَيْدٌ فَهٰذَا مِثَالٌ لِمَا اُسْنِدَ اِلَيْهِ الْفِعْلُ وَمِثْلُ اَبُوْهُ فِيْ زَيْدٌ قَائِمٌ اَبُوْهُ |
| شي مقيد لکه زَيْدٌ په قَامَ زَيْدٌ کې نو دا مثال دهغه فاعل دي چې دفعل اسناد شوي وي ورته اوپه اَبُوْهُ په زَيْدٌ قَائِمٌ اَبُوْهُ |
| فَهٰذَا مِثَالٌ لِمَا اُسْنِدَ اِلَيْهِ شِبْهُ الْفِعْلِ . |
| کې نو دا مثال دهغه چې اسناد شوي وي دې فاعل ته دشبه فعل . |

**خلاصه دمتن** : په پورتني عبارت کې دفاعل په تعريف کې دموجود دويم قيد فائده اوپه دې باندې کيدونکي سوال اوجواب تفصيل دي :

**اغراض دجامي** : اى اسنادا واقعا: دايې وويل شارح دې ته اشاره وکړه چې على جهة قيامه متعلق محذوف دي چې کوم واقعاً دي او واقعاً صفت دي د اسناداً محذوف ، اسناداً واقعاً

موصوف صفت يوځاې شو د اُسند مفعول مطلق دي .

علیٰ طریقة : په دې عبارت کې شارح د جهت معنی متعینه کړه چې جهت په معنی د طريقې سره دي .

قیام الفعل اوشبهه : په دې سره غرض د شارح بیان د مرجع دی ، د قیامه د ضمیر مرجع يې متعينه کړه چې د ضمير مرجع احد الامرين دی لکه د کلمې د اوْ نه معلومیږي .

فطريق قيامه : په دې سره غرض د شارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال ( ۱ )** : د فاعل تعريف جامع نه دي ځکه چې داتعریف په هغه فاعل باندې صادق نه راځي کوم چې په مات زید او طال عمرو کې واقع دي ځکه چې د قیام مطلب په ظاهر همدا دي چې د فاعل نه هغه فعل صادر وي حالانکه په دې مثالونو کې مرګ او اوږدیدل داد فاعل ( زید) نه، نه دي صادر شوي ؟

**سوال ( ۲ )** : دوهم سوال داچې د فاعل تعریف دې جامع نه دي ځکه چې د فعل منفي په فاعل باندې صادق نه راځي لکه ما ضُرب زید په دې کې د ضرب د زید سره قیام نه دي بلکې د قیام نفي او عدم دي .

**جواب** : د فاعل سره فعل یا شبه فعل د قیام مطلب دادې چې فعل په صیغې د معلوم سره وي یا په حکم د معلوم کې لکه اسم تفضیل ، صفت مشبه وغیره اوس داتعریف په هغه فاعل باندې صادق راځي کوم چې په مات زید او طال عمرو کې واقع دي ځکه چې په دې کې فعل په صيغې د معلوم سره دي، همدارنګې فعل منفي ماضُرِبَ زید باندې هم داتعريف صادق راځي ځکه چې کله چې د قیام نه مراد فعل معلوم وي نو دا عام دي که منفي وي او که مثبت .

واحترز بهذا : په دې سره غرض د شارح د علی جهة قیامه د قید فائدې بیانول دي چې دا قید احترازي دي په دې سره د مفعول مالم يسم فاعله نه احتراز دي او په دې کې د هغه زید نه هم احتراز دي چې کوم په ضُرِبَ زیدٌ کې واقع دي ځکه چې په دې کې صیغه د معلوم نه ده بلکې صیغه د مجهول ده .

والاحتياج : په دې سره غرض د شارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : صاحب د مفصل او عبد القاهر جرجاني د فاعل په تعریف کې علی جهة قیامه به نه دي

ذكر كړي نو ابن حاجب ته هم په كار وو چې نه يې وو ذكر كړي د هغوي خلاف ابن حاجب ولې و كړو ؟ حالانكه هغه دواړه هم دنحوې امامان منلي شي

**جواب** : په اصل كې صاحب دمفصل اودعبدالقاهر جرجاني په نزد **مفعول مالم يسم فاعله** په فاعل كې داخل دي لهذا د هغوي په نزد ددې قيد د لړولو ضرورت نشته ، او ابن حاجب او نور نحويان وايي چې **مفعول مالم يسم فاعله** په فاعل كې داخل نه دي بلكه دفاعل نه غير د مرفوعاتو جدا قسم دي لهذا ددوي په نزد ددې قيد ضرورت دي ددې دپاره چې ددې نه **مفعول مالم يسم فاعله** خارج كړې شي .

**زيد في**: دا يې زيات كړو شارح دا بيانوي چې محل داستشهاد **دقام زيد** مجموعه نه ده بلكه صرف زيد دي چې كوم په **قام زيد** كې واقع دي اودا **قام** فاعل دي دا خبره دسوال اوجواب په صورت كې هم زده كولې شي نو په دې وخت كې به غرض دجامي دفع او حل ديو مقدر سوال وي :

**سوال** : په تاباندې دفاعل مثال پيش كول لازم وو ، اوپه **قام زيد** كې **قام** فعل دی نودامثال صحيح نه دي؟

**جواب** : مقصود خودفاعل مثال وو ليكن دفاعل سره يې فعل هم ذكر كړو ددې دپاره چې دا معلومه شي چې دادچا فاعل دي نو په **قام زيد** كې **قام** فعل او **زيد** فاعل دي او **زيد** محل داستشهاد دي .

**فهذا مثال**: په دې سره دممثل له تعين كوي چې زيد دهغه فاعل مثال دي چې كوم طرف ته فعل مسند وي ، همدارنګې دمثل لفظ يې زيات كړو دې خبرې طرف ته يې اشاره وكړه چې د جملې عطف په جملې باندې دي .

**ابوه في**: په دې كې شارح دا بيانوي چې محل داستشهاد **دزيد قائم ابوه** مجموعه نه ده بلكه صرف **ابوه** دي چې كوم په زيد قائم ابوه كې واقع دي .

**فهذا مثال**: په دې سره دممثل له تعين كوي چې ابوه دهغه فاعل مثال دي چې كوم طرف ته شبه فعل مسند دي .

**سوال** : صاحب دکافيې دفاعل دوه مثالونه ذکر کړي دي : (۱) قام زيد (۲) زيد قائم ابوه ، حالانکه مثال دوضاحت دپاره وي ددې دپاره يومثال کافي وو دوه مثالونه يې ولې ذکر کړل ؟

**جواب** : صاحب دکافيې دلته دوه مثالونه ددې وجې نه راوړل چې دلته ممثل له متعدد وو يو مثلل د ماأسند اليه الفعل دي اودويم مثال د ما اسند اليه شبه الفعل دي لهذا چې کله ممثل متعدد وي نو په مثالونو کې تعدد ضروري دي .

## د فاعل دپاره يوه ضابطه او قاعده :

وَ الْأَصْلُ فِي الْفَاعِلِ أَيْ مَا يَنْبَغِي أَنْ يَكُوْنَ الْفَاعِلُ عَلَيْهِ إِنْ لَمْ يَمْنَعْ مَانِعٌ

اواصل په فاعل کې يعنې هغه حالت چې په هغې باندې فاعل کيدل مناسب وي که چيرته نه وو موجود مانع چې

أَنْ يَلِيَ الْفِعْلَ الْمُسْنَدَ إِلَيْهِ أَيْ يَكُوْنُ بَعْدَهُ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَتَقَدَّمَ عَلَيْهِ شَيْئٌ

فاعل متصل وي د مسند اليه سره يعنې فاعل دفعل نه پس وي غير ددې نه چې مخکې کړي شي په دې باندې بل

آخَرُ مِنْ مَعْمُوْلَاتِهِ لِأَنَّهُ كَالْجُزْءِ مِنَ الْفِعْلِ لِشِدَّةِ اِحْتِيَاجِ الْفِعْلِ اِلَيْهِ وَ يَدُلُّ

څيز د معمولاتو دفعل نه ځکه دا په شان دجز دي دفعل نه دوجې دسخت احتياج د فعل نه فاعل ته او دلالت کوي

عَلَى ذٰلِكَ إِسْكَانُ اللَّامِ فِي ضَرَبْتُ لِأَنَّهُ لِدَفْعِ تَوَالِي أَرْبَعِ حَرَكَاتٍ فِيْمَا هُوَ بِمَنْزِلَةِ كَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ

په دې باندې ساکن کول دلام په ضَرَبْتُ کې دوجې دفع کولو دتسلسل دځلورو حرکاتو کوم چې په منزله ديوې کلمې

فَلِذٰلِكَ الْأَصْلِ الَّذِي يَقْتَضِي تَقَدُّمَ الْفَاعِلِ عَلَى سَائِرِ مَعْمُوْلَاتِ الْفِعْلِ جَازَ ضَرَبَ غُلَامَهُ زَيْدٌ

دې نو دهغه اصل دوجې نه چې تقاضا کوي تقدم دفاعل په ټولو معمولاتو دفعل باندې جائز دي ضَرَبَ غُلَامَهُ زَيْدٌ دوجې

لِتَقَدُّمِ مَرْجِعِ الضَّمِيْرِ وَهُوَ زَيْدٌ رُتْبَةً فَلَا يَلْزَمُ الْإِضْمَارُ قَبْلَ الذِّكْرِ مُطْلَقًا بَلْ لَفْظًا فَقَطْ وَذٰلِكَ جَائِزٌ

دتقدم دمرجع دضميرنه اوهغه زَيْدٌ دې رتبةً نو نه لازميږي اضمار قبل لذکر مطلقاً بلکې صرف لفظاً او دا جائز دي

وَامْتَنَعَ ضَرَبَ غُلَامُهُ زَيْدًا لِتَأَخُّرِ مَرْجِعِ الضَّمِيْرِ وَهُوَ زَيْدٌ لَفْظًا وَرُتْبَةً فَيَلْزَمُ الْإِضْمَارُ قَبْلَ الذِّكْرِ

اوممتنع دي ضرب غلامه زيدا دوجې دتاخير دمرجع نه چې زيد دي لفظاً او رتبتاً نو لازم راغي اضمار قبل الذکر

لَفْظًا وَرُتْبَةً وَذٰلِكَ غَيْرُ جَائِزٍ خِلَافًا لِلْأَخْفَشِ وَابْنِ جِنِّيٍّ وَمُسْتَنَدُهُمَا فِي ذٰلِكَ قَوْلُ الشَّاعِرِ شِعْرٌ

لفظاً او رتبتاً او دا غير جائز دي خلاف ثابت دي اخفش او ابن جني لره او دليل ددوي دا قول د شاعر دي، شعر

| | |
|---|---|
| جَزٰى رَبُّهُ عَنِّيْ عَدِيَّ بْنَ حَاتِمٍ | جَزَاءَ الْكِلَابِ الْعَاوِيَاتِ وَ قَدْ فَعَلَ |
| سزا دې ورکړي الله عدي بن حاتم ته | په شان دغپيدونکو سپو او دا کار الله تعالى وکړو |

وَ أُجِيْبَ عَنْهُ بِأَنَّ هٰذَا لِضَرُوْرَةِ الشِّعْرِ وَ الْمُرَادُ عَدَمُ جَوَازِهِ فِي سَعَةِ الْكَلَامِ وَ بِأَنَّهُ

اوجواب ورکوودې نه چې دا دضرورت شعري دوجې نه دي او مراد عدم جواز دي په وسعت دکلام کې او دا چې

| لَا نُسَلِّمَ اَنَّ الضَّمِيْرَ يَرْجِعُ اِلَى الْعَدِيِّ بَلْ اِلَى الْمَصْدَرِ الَّذِيْ يَدُلُّ عَلَيْهِ |
| --- |
| مونږ داخبره نه منو چې ضمير عدي طرف ته راجع کيږي بلکې ددې دمصدر طرف ته چې په کوم باندې فعل |
| الْفِعْلُ اَيْ جَزٰى رَبُّ الْجَزَاءِ. |
| دلالت کوي يعني جَزٰى رَبُّ الْجَزَاءِ. |

**خلاصه د متن**: دمتن په عبارت کې دفاعل متعلق يو حکم بيان کړي چې فاعل په اصل کې دادي چې د فعل سره متصل وي.

بيا ماتن په دې ضابطه باندې يو تفريع ذکر کړي چې چونکې په فاعل کې اصل دادې چې دا د فعل سره متصل وي ددې وجې نه د ضَرَبَ غُلَامَهُ زيدٌ ترکيب جائز دي او ضَرَبَ غُلَامُهُ زيداً ترکيب ممتنع دي.

داول ترکيب دجائزکيدو وجه داده چې په دې کې دغلامه‌د ضمير مرجع زيد دي کوم چې دفاعل کيدو په بنا باندې رتبتاً دغلام نه مخکې دي ځکه چې اضمار قبل الذکر لازم رانه شي.

اودوهم ترکيب ددې وجې نه ناجائز دي چې په دې کې دغلامه ضمير مرجع زيد دي کوم چې مفعول به دي او دا لفظاً او رتبتاً په دواړو اعتبارو سره دضمير نه پس دي نوددې وجې نه اضمار قبل الذکر لفظاً او رتبةً په دواړو اعتبارو سره لازم راغي اودا جائز نه دي.

**اغراض دجامي**: دفاعل دتعريف دفارغيدو نه پس اوس دپورتني عبارت نه دفاعل احکامات بيانوي:

في الفاعل: په دې سره غرض د شارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: الاصل مبتدا او وروسته جمله ان يلي الفعل خبر دي اوخبر حمل کيږي په مبتداء باندې اودلته الاصل عام اومبهم دي ځکه چې معلومه نه ده چې اصل نه کوم اصل مراد دي اصل في الفاعل يا اصل في المبتدا يا اصل في الخبر وغيره او خبر (ان يلي الفعل) دا خاص دي اودخاص حمل په عام اومبهم باندې جائز نه دي؟

**جواب**: د في الفاعل لفظ مقدر راويستو سره علامه جامي جواب ورکوي چې الاصل عام اومبهم نه دي بلکه په دې باندې الف، لام عهد خارجي دي ددې نه مراد اصل في الفاعل دي قرينه پرې داده چې بحث دفاعل جاري دي لهذا مبتداء هم خاص ده نو حمل صحيح دي.

اى ماينبغي: په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داصل مشهوره معنی قاعده کلیه ده اوقاعده کلیه هغه ده چې په خپلو ټولو افرادو او جزئیاتو باندې منطبق وي نو دمصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دعبارت مطلب به داوي چې په فاعل کې قاعده کلیه داده چې داد فعل سره متصل وي فعل اوددې په مینځ کې هیڅ فاصله نه وي حالانکه ډیر ځایونه دي چې هلته فاعل دفعل سره متصل نه وي بلکه په مینځ کې یې فاصله وي مثلا (۱) ما ضرب عمروا الا زيد (۲) ضربک زيد ، نو قاعده کلیه دې منقوضه اوماته شوه ؟

**جواب** : اى ماينبغي سره شارح جواب ورکوي چې داصل ډيرې معاني دي : (۱) اصل په معنی دقاعدې کليې (۲) اصل په معنی ددليل سره (۳) اصل په معنی د اولی اومناسب ، نو شارح دلته دريمه معنی متعينه کړې چې دلته اصل په معنی د اولی اومناسب دي يعنې دفاعل دپاره اولی اومناسب داده چې دادفعل سره متصل وي .

ان لم يمنع: په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مونږ داخبره نه منو چې په فاعل کې اولی اومناسب داده چې دفعل سره متصل وي ځکه چې ما ضَرَبَ عمروا الا زيدٌ کې زيد فاعل دي اودده سره دضرب متصل کيدل مناسب اواولی نه دي بلکې ممنوع دي ؟

**جواب** : جواب دادې چې دفاعل دفعل سره متصل کيدل مناسب اواولی په هغه وخت کې دي چې کله کوم مانع نه وي اوپه ذکر شوي مثال کې مانع موجود دي او هغه مانع دفاعل إلاَّ نه پس واقع کيدل دي .

المسند اليه: په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : لکه څنګه چې دفاعل دفعل سره متصل کيدل اولی اومناسب دي همدارنګې فاعل د شبه فعل سره متصل کيدل هم اولی دي نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ شبه فعل ولې ذکر نه کړو ؟

**جواب** : المسند اليه سره شارح جواب ورکړې چې دلته دفعل نه مراد مسند الى الفاعل دي او دا فعل او شبه فعل دواړو ته شامل دي .

اى يكون بعده: په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : علامه ابن حاجب فرمايلي دي چې دفاعل دپاره اصل دادې چې دادفعل سره متصل

وي ، ددې اتصال دوه صورتونه دي (۱) دفعل نه مقدم اومتصل وي (۲) دفعل نه مؤخر او متصل وي ، او دلته کوم صورت مراد دي ؟

**جواب** : اى يكون بعده سره شارح دجامي جواب ورکړي چې دلته دايلاء دوهم قسم مراد دي يعنې دفعل نه مؤخر اومتصل وي اومقدم نه وي .

<u>من معمولاته</u> : په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : تاسو وويل چې که چيرته مانع نه وي نو دفاعل سره دفعل متصل کيدل مناسب دي مونږ درته مثال درکوو چې کوم مانع هم نشته ليکن ددې باوجود دفاعل سره فعل متصل نه دي لکه ليضربن زيد په مينځ کې يې نون ثقيله فاصله ده ، يا لکه كفىٰ بالله شهيداً کې لفظ دالله فاعل دى كفىٰ فعل دى ددواړو په مينځ کې باء فاصله ده دفاعل دفعل سره اتصال نشته ؟

**جواب** : مراد دادې چې دفعل نور معمولات (مفعول به وغيره) دفاعل نه مخکې نه وي لهذا نون ثقيله په مينځ کې راتلل يا بالله کې د با راتلل دقاعدې خلاف نه دي ځکه چې دادفعل دمعمولاتو نه .نه دي .

<u>لانه كالجزء من الفعل</u> : ددې نه دفاعل دفعل سره دمتصل کيدو داولى کيدو دليل بيانوي :

**حاصل** : د فاعل سره دفعل دمتصل کيدو اود ولويت ددليل حاصل دادي چې فاعل په منزله دفعل د جُزء دى ، دشارح په عبارت کې داجمله صغرى ده اوکبرى داده چې هر هغه څيز چې ديو څيز دجز په شان وو په هغې کې اصل او اولى داده چې دهغه څيز سره به متصل وي . لهذا دفاعل دپاره اولى داده چې دافعل سره متصل وي .

<u>لشدة</u> : په دې سره غرض دشارح دخپلې مخکينې دعوه دصغرى دليل بيانوي چې حاصل يې دادې چې فعل دفاعل په طرف شدت احتياج وي لکه کل چې جز ته په شدت سره محتاج دي ددې نه معلومه شوه چې فاعل دفعل دجز په شان دي .

<u>ويدل</u> :ددې نه دفاعل په منزله دجز کيدو دليل بيانوي چې په ضربتُ کې لام کلمه (يعنې باء) ساکن کول دلالت کوي چې فاعل دفعل دجز په شان دي ځکه چې لام کلمهٔ (باء) ددې وجې نه يې ساکن کړو چې توالي داربع جرکاتو لازم رانه شي اوتوالي داربع حرکاتو په يو کلمه کې منع ده نه په دوه کلمو کې نو ثابته شوه چې ضربت فعل فاعل يو ځاې يو کلمه ده ددې نه شدت اتصال اوشدت احتياج ثابتيږي .

**فلذلك**: داعبارت په ماقبل باندې تفريع ده چې دهغې حاصل دادې چې چونکې فاعل په اصل کې دادې چې دادفعل سره متصل وي دهمدې وجې نه ضرب غلامه زيد ترکيب جائز دي او ضرب غلامه زيداً ترکيب ممتنع دي

**الاصل الذي الخ**: په دې شارع د ذلک مشار اليه متعين کړه چې دذلک مشار اليه اصل دي يعنې ددې وجې نه دې اصل ته چې تقاضا کوي دفاعل تقدم دفعل په باقي معمولاتو باندې جائز دی ضرب غلامه زيد

**لتقدم**: په دې سره غرض دشارح دضرب غلامه زيد دترکيب دجواز وجه بيانوي چې غلامهُ کې د ضمير مرجع زيد دي اګر چې لفظاً مؤخر دي ليکن رتبتاً مقدم دي ددې وجې نه زيد فاعل دي او فاعل رتبتاً مفعول نه مقدم شو دفعل سره متصل وي لهذا لفظاً اضمار قبل الذکر لازم راغي نه رتبتاً او اضمار قبل الذکر لفظاً جائز دي .

**لتاخر**: په دې عبارت سره غرض دشارح دضرب غلامه زيداً دترکيب دممتنع کيدو وجه بيانول دي چې په غلامه کې د ضمير مرجع زيد دي چې کوم لفظاً هم مؤخر دي او رتبتاً هم مؤخر دی ، لفظاً خو ظاهردي او رتبتاً ددې وجې نه مؤخر دي چې دامفعول به دي اومفعول به رتبتاً مؤخر وي ، لهذا لفظاً او رتبتاً اضمار قبل الذکر لازم راغي چې کوم جائز نه دي .

**خلافاً للاخفش وابن جني**: په دې سره غرض دشارح بيان داختلاف دي بعضې شارحينو ددې عبارت وضاحت دابيان کړي چې ددې عبارت تعلق ذلک غير جائز سره دي اوددې مطلب دادې چې دجمهورو په نزد اضمار قبل الذکر لفظا اورتبتاً ناجائز دی په خلاف داخفش اوابن جني که دهغه په نزد اضمار قبل الذکر لفظاً اورتبتاً جائز دي .ليکن علامه جامي ددې عبارت دا مطلب بيانول صحيح نه دي ځکه چې اضمار قبل الذکر لفظاً اورتبتاً بالاتفاق ناجائز دي ، بلکه ددې صحيح وضاحت دادې چې ددې عبارت تعلق وذلک غير جائز سره نه دي بلکه ددې تعلق د فيلزم سره دي اوس به دعبارت حاصل دا وي چې دجمهورو په نزد په ذکر شوي مثال کې اضمار قبل الذکر لفظاً اورتبتاً لازم راځي ددې وجې نه ددوي په نزد ذکر شوي مثال ممتنع دي ، اواخفش اوابن جني په نزد په مثال مذکور کې لفظاً اورتبتاً لازم نه راځي ددې وجې نه ددوي په نزد ذکر شوي مثال جائز دي .

**ددوي دليل دادې** چې لکه ځنګه فعل په شدت کې فاعل ته محتاج وي همدارنګې فعل

په شدت کې دمفعول هم محتاج وي په دواړو کې اصل دادې چې دادفعل سره متصل وي نو په ذکر شوي ترکیب کې لفظاً اورتبتاً اضمار قبل الذکر لازم نه راځي بلکه صرف لفظاً **اضمار قبل الذکر** لازم راغې چې کوم جائز دي ،ددې وجې نه ذکر شوي مثال جائز دي،او اخفش او ابن جني د يو شاعر دشعر نه استدلال کوي

**جَزٰى رَبُّهُ عَنِّيْ عَدِيَّ بِنَ حَاتِمٍ ۞ جَزَاءَ الْكِلَابِ الْعَاوِيَاتِ وَقَدْ فَعَلَ**

په دې کې محل داستشهاد رَبُّهُ دي ، طريقه داستدلال داده چې رَبُّهُ د جَزٰى فاعل دي اوددې سره ضمير دمفعول متصل دي چې عدي بن حاتم طرف ته راجع دي چې کوم مفعول به دي او د فاعل نه مؤخر دي نو ددې نه معلومه شوه چې که چيرته دفاعل سره ضمير وي اوداضمير راجع وي مفعول مؤخر طرف ته نودا جائز دي .

**اجيب:** په دې سره غرض دشارح داخفش اوابن جني ددليل دوه جوابونه ورکوي اول جواب تسليمي دي اودوهم جواب عدم تسليمي دي :

**(۱) جواب :** مونږ منو چې د ربه ضمير عدي بن حاتم طرف ته راجع دي ددې باوجود هغه مؤخر دي ليکن دادضرورت شعري دوجې نه دي ، قاعده داده چې : **يجوز للشاعر ما لايجوز لغيره** اوداچې کوم وويل شي چې دفاعل سره دضمير اتصال سره دتاخير دمفعول نه جائز نه دي دا په وسعت کلام ( يعنې په نثر ) کې دي .

**(۲) جواب :** مونږ دا نه منو چې د رَبُّهُ ضمير مرجع عدي بن حاتم دي بلکه مرجع جزا مصدر دي چې په دې باندې جَزٰى فعل دلالت کوي تقدير دعبارت به داسې شي چې : **جزى رب الجزاء .**

**د شعر ترکيب :** جَزٰى صيغه د واحد مذکر غائب فعل ماضي معلوم . رَبُّهُ مرکب اضافي د جزى فاعل شو عني جار مجرور متعلق جزى فعل **عدي بن حاتم عدي** موصوف بن مضاف **حاتم** مضاف اليه ، مضاف سره د مضاف اليه صفت شو د پاره د موصوف ، موصوف سره د خپل صفت نه مفعول به شو د جزیٰ فعل ، **جزا** مضاف **الكلاب العاويات** مرکب توصيفي مضاف اليه ، مضاف سره د مضاف اليه نه مفعول مطلق شو د جزى فعل ، فعل سره د خپل فاعل او سره د مفعول به او سره د مفعول مطلق نه دا جمله فعليه خبريه شو ه ، **وقد فعل** دا جمله خبريه ددې نه حال واقع شو .

## د فاعل د تقديم وجوبي ځايونه:

وَ إِذَا انْتَفَى الْإِعْرَابُ الدَّالُّ عَلَى فَاعِلِيَّةِ الْفَاعِلِ وَ مَفْعُوْلِيَّةِ الْمَفْعُوْلِ بِالْوَضْعِ

اوچې كله نفي شو اعراب چې د فاعل په فاعليت او د مفعول په مفعوليت باندې د وضع په اعتبار سره دلالت كوي

لَفْظاً فِيْهِمَا أَيْ فِي الْفَاعِلِ الْمُتَقَدِّمِ ذِكْرُهُ صَرِيْحًا وَ فِي ضِمْنِ الْأَمْثِلَةِ وَ الْمَفْعُوْلِ

لفظاً په دواړو كې يعني په فاعل كې چې د هغې ذكر مخكې صراحتاً او د مثالونو په ضمن كې تير شو او د مفعول

الْمُتَقَدِّمِ ذِكْرُهُ فِي ضِمْنِ الْأَمْثِلَةِ وَ الْقَرِيْنَةِ أَيْ الْأَمْرُ الدَّالُّ عَلَيْهِمَا لَا بِالْوَضْعِ

متقدم ذكر په ضمن د مثالونو كې تير شو او قرينه يعني هغه څيز چې په فاعل او مفعول باندې بلا وضع دلالت كوي

إِذْ لَا يُعْهَدُ أَنْ يُطْلَقَ عَلَى مَا وُضِعَ بِإِزَاءِ شَيْءٍ أَنَّهُ قَرِيْنَةٌ عَلَيْهِ

ځكه چې معلومه نه دا چې اطلاق وشي په هغه څيز چې وضع شوي وي د پاره د يو څيز چې گڼې دا قرينه ده په هغه څيز

فَلَا يَرِدُ عَلَيْهِ أَنَّ ذِكْرَ الْإِعْرَابِ مُسْتَغْنًى عَنْهُ إِذِ الْقَرِيْنَةُ شَامِلَةٌ لَهُ وَ هِيَ إِمَّا لَفْظِيَّةٌ نَحْوُ

نو نه وارديږي اعتراض چې د اعراب د ذكر ضرورت نشته چې قرينه اعراب ته شامله ده او قرينه به يا لفظي وي لكه

ضَرَبَتْ مُوْسٰى حُبْلٰى أَوْ مَعْنَوِيَّةٌ نَحْوُ أَكَلَ الْكُمَّثْرٰى يَحْيٰى أَوْ كَانَ الْفَاعِلُ مُضْمَرًا مُتَّصِلًا بِالْفِعْلِ بَارِزًا كَضَرَبْتُ زَيْدًا

ضَرَبَتْ مُوْسٰى حُبْلٰى يا معنوي لكه أَكَلَ الْكُمَّثْرٰى يَحْيٰى يا وي فاعل ضمير متصل د فعل سره بارز لكه ضَرَبْتُ زَيْدًا

أَوْ مُسْتَكِنًّا كَزَيْدٌ ضَرَبَ غُلَامَهُ بِشَرْطِ أَنْ يَكُوْنَ الْمَفْعُوْلُ مُتَأَخِّرًا عَنِ الْفِعْلِ لِئَلَّا يَنْتَقِضَ بِمِثْلِ

يا مستتر لكه زَيْدٌ ضَرَبَ غُلَامَهُ په دې شرط چې مفعول به د فعل نه موخر وي د دې د پاره چې مات نه شي دا قول د مصنف

زَيْدًا ضَرَبْتُ أَوْ وَقَعَ مَفْعُوْلُهُ أَيْ مَفْعُوْلُ الْفَاعِلِ بَعْدَ إِلَّا بِشَرْطِ تَوَسُّطِهَا بَيْنَهُمَا

زَيْدًا ضَرَبْتُ يا واقع وي مفعول د دې يعني مفعول د فاعل نه پس د إِلَّا په دې شرط چې إِلَّا به په مينځ كې وي په دواړو

فِي صُوْرَتَيِ التَّقْدِيْمِ وَالتَّأْخِيْرِ نَحْوُ مَا ضَرَبَ زَيْدٌ إِلَّا عَمْرواً أَوْ بَعْدَ مَعْنَاهَا نَحْوُ إِنَّمَا ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرواً وَجَبَ

صورتونو په تقديم او تاخير كې لكه مَا ضَرَبَ زَيْدٌ إِلَّا عَمْرواً يا پس د معنى د إِلَّا نه لكه إِنَّمَا ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرواً نو واجب دي

تَقْدِيْمُهُ أَيْ تَقْدِيْمُ الْفَاعِلِ عَلَى الْمَفْعُوْلِ فِي جَمِيْعِ هٰذِهِ الصُّوَرِ أَمَّا فِي صُوْرَةِ انْتِفَاءِ الْإِعْرَابِ فِيْهِمَا وَالْقَرِيْنَةِ

تقديم يعني د فاعل په مفعول په دې ټولو صورتونو كې هر چې په صورت د انتفاء د اعراب او د قرينې په دې دواړو كې

فَلِلتَّحَرُّزِ عَنِ الْاِلْتِبَاسِ وَ أَمَّا فِي صُوْرَةِ كَوْنِ الْفَاعِلِ ضَمِيْرًا مُتَّصِلًا فَلِمُنَافَاةِ الْاِتِّصَالِ الْاِنْفِصَالَ

نو د بچ كيدو د التباس نه او هر چې په صورت د كيدو د فاعل كې ضمير متصل نو د وجې د منافاة د اتصال د انفصال سره

وَ أَمَّا فِي صُوْرَةِ وُقُوْعِ الْمَفْعُوْلِ بَعْدَ إِلَّا لٰكِنْ بِشَرْطِ تَوَسُّطِهَا بَيْنَهُمَا

او هر چې په صورت د واقع كيدو د مفعول پس د إِلَّا لكن په شرط د مينځ كې واقع كيدو په مينځ د فاعل او مفعول كې

فِي صُوْرَتَيِ التَّقْدِيْمِ وَ التَّأْخِيْرِ فَلِئَلَّا يَنْقَلِبَ الْحَصْرُ الْمَطْلُوْبُ فَإِنَّ الْمَفْهُوْمَ مِنْ قَوْلِهِ مَا ضَرَبَ

په دواړو صورتونو د تقديم او تاخير كې نو د دې وجې نه چې حصر مطلوب بدل نه شي ځكه چې د قائل دا قول مَا ضَرَبَ

| |
|---|
| زَيْدٌ اِلَّا عَمْرَوا اِنْحِصَارُ ضَارِبِيَّةِ زَيْدٍ فِيْ عَمْرٍو مَعَ جَوَازِ اَنْ يَّكُوْنَ عَمْرٌو مَضْرُوْبًا لِشَخْصٍ آخَرَ |
| زَيْدٌ اِلَّا عَمْرَوا نه مفهوم دزيد دضاربيت انحصار دي په عمرو كي سره دجواز ددې چې عمرو ديوبل چامضروب وي |
| وَالْمَفْهُوْمُ مِنْ قَوْلِهٖ مَاضَرَبَ عَمْراً اِلَّازَيْدٌ اِنْحِصَارُ مَضْرُوْبِيَّةِ عَمْرٍو فِيْ زَيْدٍ مَعَ جَوَازِ اَنْ يَّكُوْنَ زَيْدٌ |
| اوډقائل ددې قول مَاضَرَبَ عَمْراً اِلَّازَيْدٌ انحصار دمضروبيت دعمرو په زيد كې دي سره دجواز ددې چې وي زيد |
| ضَارِبًا لِشَخْصٍ آخَرَ فَلَوْ اِنْقَلَبَ اَحَدُهُمَا بِالْآخَرِ لَانْقَلَبَ الْحَصْرُ الْمَطْلُوْبُ وَاِنَّمَا قُلْنَا بِشَرْطِ تَوَسُّطِهَا بَيْنَهُمَا |
| ضارب دبل كس كه چيرته بدل شي يو دبل نه نوحصر مطلوب به بدل شي اومونږ وايو په شرط دمينځ كې واقع كيدو |
| فِيْ صُوْرَتَيِ التَّقْدِيْمِ وَ التَّاخِيْرِ لِاَنَّهٗ لَوْ قُدِّمَ الْمَفْعُوْلُ عَلَى الْفَاعِلِ مَعَ اِلَّا فَيُقَالُ مَا ضَرَبَ |
| په دواړو صورتو دتقديم اوتاخيرخكه كه چيرته مخكې كړې مفعول په فاعل سره دالانوويلي به شي چې مَاضَرَبَ |
| اِلَّا عَمْرَوً زَيْدٌ فَالظَّاهِرُ اَنَّ مَعْنَاهُ اِنْحِصَارُ ضَارِبِيَّةٍ فِيْ عَمْرٍو اِذِ الْحَصْرُ اِنَّمَا هُوَ فِيْ |
| اِلَّاعَمْرَوً زَيْدٌ نوظاهره داده چې ددې معنى دزيد دضاربيت انحصار دي په عمرو كي خكه حصر په دې كې كيږي |
| مَا يَلِيْ اِلَّا فَلَا يَنْقَلِبُ الْحَصْرُ الْمَطْلُوْبُ فَلَا يَجِبُ تَقْدِيْمُ الْفَاعِلِ لٰكِنْ لَمْ يَسْتَحْسِنْهُ |
| كوم چې د الاسره متصل دي لهذاحصر مطلوب به منقلب نه وي نو نه دي واجب دي تقديم د فاعل لكن خه نه دي |
| بَعْضُهُمْ لِاَنَّهٗ مِنْ قَبِيْلِ قَصْرِ الصِّفَةِ قَبْلَ تَمَامِهَا وَ اِنَّمَا قُلْنَا الظَّاهِرُ اَنَّ مَعْنَاهُ كَذَا |
| كنړلي بعضوخكه چې داقصر دقبيلې دصفت نه دي مخكې دتماموالي دصفت نه اومونږ دا الظَّاهِرُ اَنَّ مَعْنَاهُ كَذَا |
| لِاِحْتِمَالِ اَنْ يَّكُوْنَ مَعْنَاهُ مَا ضَرَبَ اَحَدًا اَحَدٌ اِلَّا عَمْرَوا زَيْدٌ فَيُقْصَدُ اِنْحِصَارُ صِفَةِ |
| ددې احتمال دوجې نه ويلي ووچې ددې معنى به داوي چې مَاضَرَبَ اَحَدًا اَحَدٌ اِلَّا عَمْرَوً زَيْدٌ نوقصد كوي انحصار دصفت |
| كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي الْآخَرِ وَ هُوَ اَيْضًا خِلَافُ الْمَقْصُوْدِ وَ اَمَّا وُجُوْبُ تَقْدِيْمِهٖ عَلَيْهِ |
| دهريو ددې نه په بل كې اودا هم دارنګې خلاف مقصود دې اوهرچې وجوب دتقديم دمفعول دې پس دفاعل نه |
| فِيْ صُوْرَةِ وُقُوْعِ الْمَفْعُوْلِ بَعْدَ مَعْنَى اِلَّا لِاَنَّ الْحَصْرَ هٰهُنَا فِي الْجُزْءِ الْاَخِيْرِ فَلَوْ اُخِّرَ |
| په صورت دواقع كيدو دمفعول پس دمعنى دالانه خكه چې حصر دلته په آخرني جزكې دي لهذاكه چيرته وروسته |
| الْفَاعِلُ لَانْقَلَبَ الْمَعْنٰى قَطْعاً. |
| كړو فاعل نومعنى به يې يقيناً بدله شي. |

**خلاصه دمتن:** غرض دصاحب دكافيه دهغو عوارضو بيانول دي چې دهغې په وجه دفاعل تقديم په مفعول باندې واجب دى هغه عوارض څلور دي : (۱) په فاعل اومفعول دواړو كې اعراب لفظي اوقرينه منتفي وي لكه ضرب موسىٰ عيسىٰ . (۲) دفاعل ضمير متصل بالفعل وي لكه ضربتُ زيداً . (۳) مفعول د الا نه پس واقع وي لكه ماضرب زيد الا عمرواً . (۴) مفعول د الا د

معنی نه پس واقع وي لکه انما ضرب زيد عمرواً .

**اغراض دجامي** : الدال : داد اعراب صفت کاشفه دي داعراب تعريف نه دي مطلب دادې چې کله اعراب منتفي شي چې کوم بالوضع دفاعل په فاعليت اودمفعول په مفعوليت دلالت کوي که چيرته بالوضع سره ددې تشريح ونه کړي نو ويلي شي چې اعراب خو به په هر صورت کې موجود وي که لفظاً نه وي نو تقديراً به وي ، که تقديراً نه وي نو محلاً به وي ددې وجې نه يې وويل چې داعراب نه مراد هر اعراب نه دي بلکه صرف هغه اعراب مراددي چې دهغې وضع دفاعل په فاعليت اودمفعول په مفعوليت باندې دلالت دپاره وي

في الفاعل : په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : په فيهما کې دضمير مرجع فاعل اومفعول دواړه دي دفاعل ذکر خو تير شوي دي ليکن د مفعول ذکر نه دي تير شوي نو لهذا په مفعول کې اضمار قبل الذکر لازم راغې کوم چې جائز نه دي .

**جواب** : دفاعل ذکر صراحتا شوي اودمثالونو په ضمن کې هم شوي اودمفعول ذکر اګرچې صراحتاً نه دي شوي ليکن دمثالونو په ضمن کې شوي اومذکور ضمني طرف ته ضمير راجع کول صحيح دي لهذا اضمار قبل الذکر لازم رانغلو .

اى الامر الدال : په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داعراب ذکر مستدرک اوبې فايدې دي ځکه چې قرينه اعراب ته هم شامل دي ځکه چې دقرينې تعريف دادې چې ديو څيز په تعين باندې دلالت کوي اوداخبره په اعراب کې هم موندل کيږي ، لهذا اعراب ذکر کول بې فائدې شو ، مصنف رَحِمَهُ اللهُ ته دا ويل په کار وو چې اذا انتفى القرينة فيهما ، د اعراب ذکر کول نه وو پکار ؟ .

**جواب** : دقرينې لفظ اعراب ته شامل نه دي ځکه چې قرينه هغه ده چې ديو څيز په تعين باندې په غير دوضع نه دلالت کوي اواعراب هغه دي چې ديو څيزپه تعين باندې بالوضع دلالت کوي نو په دواړو کې فرق دي نوددې وجې نه قرينه اعراب ته شامل نه شوه ، نو لهذا داعراب ذکر بې فائدې نه شو .

فلا يرد : دا په ماقبل باندې تفريع ده چې کله داخبره معلومه شوه چې په قرينه اواعراب کې فرق دي ، دقرينې دلالت ديوڅيز په تعين باندې بې دوضع ، اوداعراب دلالت ديو څيز په تعين

باندې بالوضع ، نو دا اعتراض به وارد نه وي چې داعراب نه پس دقرينې ذکر مستدرک اوبې فائدې دي ځکه چې قرينه اعراب ته هم شامل ده لکه علامه فاضل هندي ويلي دي چې قرينه عام ده اعراب نه هم شامل ، نو په دې عبارت سره علامه جامي په فاضل هندي باندې هم رد وکړو .

وهي اما لفظية : دلته غرض دشارح دقرينې تقسيمول دي چې قرينه په دوه قسمه دي . (۱) قرينه لفظيه .(۲) قرينه معنويه . (۱) دقرينه لفظي مطلب دادې چې په لفظونو کې کومه قرينه موجود وي لکه ضربت موسى حبلى په دې کې ضربت کې تاء دفاعل په مؤنث کيدو باندې دلالت کوي ددې نه معلومه شوه چې فاعل حبلى دي ځکه چې مؤنث همدا دي . (۲) دقرينې معنوی مطلب دادې چې لفظاً اګرچې قرينه نه وي ليکن دجملې په معنى کې قرينه موجود وي لکه اکل الکمثرى يحيى ( يحيى ناشپاتي وخوړو ) په دې مثال کې کمثرى کې دفاعل دجوړيدو صلاحيت نشته ځکه معنى يې داده چې ناشپاتي يحيى وخوړو نو دامعنى خو غلطه ده .

الفاعل : په دې سره غرض دشارح بيان دمرجع دي چې دکان دضمير مرجع فاعل دي .

بالفعل : داد متصل دصلې بيان دي .

بارزاً : په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : او کان الفاعل مضمراً متصلاً کې دمتصل نه ضمير بارز مراد دي ځکه چې داتصال معنى ده يو ځيز دبل ځيز سره يوځاې کول اودا په معنى ملفوظ کې خو متصور کيدی شي ليکن په مستتر کې نشي متصور کيدی ؟

**جواب** : شارح دجامي جواب ورکړي چې دلته دمتصل نه غير مستقل مراد دي اوپه دې کې تعميم دي برابره خبره ده چې دابارز وي لکه ضربت زيداً يا مستتر لکه زيد ضرب کې هُوَ ضمير .

بشرط ان يكون : په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دا قاعده زيداً ضربتُ مثال سره منقوضه ده ځکه چې په دې کې فاعل دضمير متصل دي ددې باوجود دفاعل په مفعول باندې تقديم واجب نه دي بلکې مفعول دفاعل نه مقدم دي.

**جواب** : دادې چې دفاعل تقديم په مفعول باندې وجوب مشروط دې په دې شرط سره چې مفعول د فعل نه مؤخر وي اوپه ذکر شوي مثال کې مفعول دفعل نه مؤخر نه دي بلکې مقدم

دي لهذا ددې په ذريعه نقض وارد نه شو

اى مفعول الفاعل: په دې کې غرض دشارح دمفعوله ضمير مرجع متعينه کړه چې دضمير مرجع فاعل دي .

بشرط توسطها: په دې سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : دا قاعده منقوضه ده په ماضرب الا عمروا زيدٌ سره ځکه چې په دې کې مفعول د الا نه پس واقع دي سره دفاعل دتقديم نه په مفعول واجب نه دي بلکه فاعل مؤخر دي ؟

**جواب** : مفعول د اِلاّ نه پس دواقع کيدو په صورت کې تقديم دفاعل په مفعول باندې وجوب په دې شرط سره مشروط دي چې په تقديم اوتاخير دواړو صورتونو کې اِلاّ فاعل اومفعول دواړو په مينځ کې واقع وي اوپه ذکر شوي مثال کې الا دفاعل اومفعول په مينځ کې واقع نه دي بلکې ددواړو نه مقدم دي لهذا ددې په ذريعه نقض به وارد نه وي ، اوباتې شوه داضابطه چې داولې ده نو ددې وجه په خپله شارح مخکې بيانوي .

اي تقديم الفاعل: په دې سره غرض دشارح بيان دمرجع ده چې په تقديمه کې دضمير مرجع فاعل دي .

على المفعول: داد تقديم د صلې بيان دي .

في جميع هذه الصور: په دې عبارت کې دتقديم دمحل بيان کوي .

اما في صورة الخ: په دې سره غرض دشارح دذکر شوو څلورو صورتونو په کومو کې چې فاعل په مفعول باندې دمقدم کيدو وجوهات بيانوي چې دهغې تفصيل په لاندې ډول دي :

**اول صورت** : په دې صورت کې دتقديم وجه داده چې کله فاعل اوپه مفعول دواړو کې اعراب لفظي او قرينه منفي وي نودفاعل تقديم په مفعول باندې ددې وجې نه واجب دي چې په فاعل اومفعول دواړو کې التباس لازم رانه شي .

**دوهم صورت** : دا چې کله فاعل ضمير متصل بالفعل وي نودفاعل تقديم په مفعول باندې واجب دي ځکه چې که چيرته دفاعل تقديم واجب نه وي نوبيا دفاعل تاخير دمفعول نه جائز وي چې کله فاعل مؤخر وي نو ضمير متصل منفصل راوړل به لازم راشي کوم چې جائز نه دي ، ځکه چې داتصال او انفصال په مينځ کې منافات دي .

**دريم صورت** : دا چې کله مفعول د الا نه پس واقع وي په دې شرط چې په تقديم اوتاخير دواړو صورتونو کې به الا دفاعل اومفعول په مينځ کې واقع وي نو دفاعل تقديم به واجب وي ددې دپاره چې حصرِ مطلوب چې کوم دمتکلم مقصود وي هغه منقلب او اُلټه نه شي لکه **ما ضرب زيد الا عمرواً** نه مقصود دزيد ضاربيت په عمرو کې بندول دي دکلام معنی داده چې زيد د عمرونه غير بل چا نه دي وهلي البته دا کيدې شي ، چې زيد بل چا وهلي وي ، خلاصه داده چې که چيرته په دې کې يو په بل سره بدل کړې شي په داسې طريقې سره چې اول صورت کې فاعل مؤخر کړې شي اوپه دوهم صورت کې فاعل مقدم کړې شي نو حصرِ مطلوب به تبديل شي لهذا په اول مثال کې فاعل مقدم کول واجب دي اوپه دوهم مثال کې فاعل مؤخر کول واجب دي .

**وانما قلنا بشرط توسطها** : په دې سره غرض دشارح **بشرط توسطها الخ** دقيد فائدې بيانوي چې دا شرط يې ددې وجې نه ولږول چې که چيرته مفعول په فاعل باندې د اِلاّ سره مقدم کړې شي اودا وويل شي چې **ما ضرب الا عمروا زيد** نو ظاهره داده چې ددې معنی صحيح پاتې شوه يعنې ددې معنی به دا وي چې ضاربيت د زيد په عمرو کې بند دی ، ځکه چې حصر په دې کې کيږي چې کوم چې د اِلاّ سره متصل وي او دلته د اِلاّ سره متصل عمرو دي نو حصر به په عمرو کې وي ، لهذا حصرِ مطلوب به بدل نه وي ځکه چې کوم مفهوم د **ماضرب زيد الاعمرو** دي نو همدغه مفهوم د **ماضرب الاعمرواً زيد** هم دي لهذا دفاعل تقديم به په مفعول باندې واجب نه وي ، زيات نه زيات صفت دضرب ددې دمکمل کيدو نه مخکې په يو څيز کې بندول لازم راځي ځکه چې اصل صفت مقصوره **على عمرو** هغه مطلق ضرب نه دي بلکه هغه ضرب دي چې کوم زيد ( فاعل ) طرف ته مسند وي ، دې ته **قصر الصفة قبل تمامها** ويلې شي اودا اګر چې دبعضې نحويانو په نزد غير مستحسن دي ليکن نا جائز نه دي .

**وانما قلنا الظاهر** : چې کله لفظ **الظاهر** معرف باللام ذکر کړې شي نو ددې معنی به راجحه وي چې دا ترې معلوميږي چې په دې کې يو بل احتمال هم دي چې کوم مرجوح دي ، ليکن چې کله لفظ **ظاهر** نکره ذکر کړې شي نوداد دوهم احتمال فائده نه وي چونکې شارح **الظاهر** معرف باللام ذکر کړو نو ددې نه معلومه شوه چې په دې کې دوهم احتمال هم دي ، نو شارح **وانما قلنا**

سره ددي دوهم احتمال بيانوي چې ما الظاهر معناه ددې وجې نه وويل چې په دې کې دا احتمال هم کيدي شي چې ما ضرب الا عمروا زيد نو ددې معنی به دا وي چې ما ضرب احدا احدا الا عمروا زيد (نه دي وهلي هيڅا ديو چا نه مګر صرف عمرو زيد) په دې صورت کې فاعل او مفعول دهر يو صفت په بل کې دانحصار فايده ورکوي. يعني ضاربيت دزيد انحصار په عمرو کې وي او په عمرو کې دمضروبيت انحصار په زيد کې وي اودا هم دمتکلم دمقصود خلاف دي ځکه چې دمتکلم مقصد په يوجانب کې حصر کول دي په دواړو طرفونو کې نه وي او په دې صورت کې حصر دجانبينو نه دي

**څلورم صورت** : چې کلمه مفعول د إلاَّ دمعنی نه پس واقع وي نو دفاعل په مفعول باندې تقديم هم ددريم صورت په شان ددې وجې نه واجب دي چې حصرِ مطلوب منقلب اوبدل نه شي مثلاً انما ضرب زيد عمروا کې مقصود ضاربيت دزيد په عمرو کې منحصر دي ځکه چې حصر په آخري جز کې وي او آخري جز عمرو دي ، که چيرته فاعل مؤخر کړي اودا ووايي چې انما ضرب عمروا زيد نو په دې وخت کې دعمرو دمضروبيت انحصار به په زيد کې وي حالانکه مقصود ضاربيت د زيد انحصار دي په عمرو کې لهذا دفاعل تقديم په مفعول باندې واجب دي ددې دپاره چې حصر مطلوب منقلب اوبدل نه شي.

## دفاعل دتاخير وجوبي ځايونه :

| وَ إِذَ اِتَّصَلَ بِهِ اَیْ بِالْفَاعِلِ ضَمِیْرُ مَفْعُوْلٍ نَحْوُ ضَرَبَ زَیْداً غُلَامُهُ اَوْ وَقَعَ اَیِ الْفَاعِلُ |
|---|
| اوکله چې متصل شي ددې پورې يعني دفاعل پورې ضمير دمفعول لکه ضرب زيدا غلامه يا واقع شي يعني فاعل |
| بَعْدَ إِلَّا الْمُتَوَسِّطَةِ بَیْنَهُمَا فِیْ صُوْرَتَیِ التَّقْدِیْمِ وَالتَّاخِیْرِ نَحْوُ مَا ضَرَبَ عَمْراً إِلَّا زَیْدٌ وَفَائِدَةُ هٰذَا الْقَیْدِ مِثْلُ |
| پس د الا نه چې په مينځ کې وي په صورت دتقديم اودتاخير لکه ماضرب عمرا الازيد اوفائده ددې قيد په شان د |
| مَا عَرَفْتَ آنِفًا اَوْ وَقَعَ الْفَاعِلُ بَعْدَ مَعْنَاهَا اَیْ مَعْنَی إِلَّا نَحْوُ إِنَّمَا ضَرَبَ عَمْراً زَیْدٌ |
| هغه ده چې تاسو مخکې وپيژندله يا واقع وي دفاعل دمعنی نه پس يعني د الا دمعنی نه پس لکه انما ضرب عمرا زيد |
| اَوِ اتَّصَلَ مَفْعُوْلُهُ بِهِ بِاَنْ یَّکُوْنَ الْمَفْعُوْلُ ضَمِیْراً مُتَّصِلاً بِالْفِعْلِ وَ هُوَ اَیِ الْفَاعِلُ |
| يا متصل وي مفعول ددې فعل پورې په دې شان چې وي مفعول ضمير متصل دفعل پورې او هغه يعني فاعل د |
| غَیْرُ ضَمِیْرٍ مُتَّصِلٍ بِهِ نَحْوُ ضَرَبَکَ زَیْدٌ وَجَبَ تَاخِیْرُهُ اَیْ تَاخِیْرُ الْفَاعِلِ عَنِ الْمَفْعُوْلِ فِیْ جَمِیْعِ هٰذِهِ الصُّوَرِ |
| ضمير پورې متصل نه وي لکه ضربک زيد نو واجب دي تاخير ددې يعني تاخير دفاعل دمفعول نه په دې ټولو صورتو |

| |
|---|
| أَمَّا فِيْ صُوْرَةِ اِتِّصَالِ ضَمِيْرِ الْمَفْعُوْلِ بِهٖ لِئَلَّا يَلْزَمَ الْاِضْمَارُ قَبْلَ الذِّكْرِ لَفْظاً وَ رُتْبَةً وَ أَمَّا فِيْ |
| کې هرچې په صورت داتصال دضمير دمفعول به نو ددې وجې نه لازم نه شي اضمار قبل الذکر لفظاً اورتبةً اوهرچې په |
| صُوْرَةِ وُقُوْعِهٖ بَعْدَ اِلَّا اَوْ مَعْنَاهَا لِئَلَّا يَنْقَلِبَ الْحَصْرُ الْمَطْلُوْبُ وَ أَمَّا فِيْ صُوْرَةِ |
| صورت دوقوع کې دې پس د الا او يا د معنى د الا نه نو ددې وجې نه چې بدل نه شي حصر مطلوب او هرچې په صورت |
| كَوْنِ الْمَفْعُوْلِ ضَمِيْراً مُتَّصِلاً وَالْفَاعِلُ غَيْرَ مُتَّصِلٍ لِمُنَافَاةِ الْاِتِّصَالِ الْاِنْفِصَالَ بِتَوَسُّطِ الْفَاعِلِ الْغَيْرِ |
| دکيدو د مفعول کې ضمير متصل او فاعل غير متصل نو د وجې د منافاة د اتصال د انفصال سره په توسط د فاعل غير |
| الْمُتَّصِلِ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ الْفِعْلِ بِخِلَافِ مَا اِذَا كَانَ الْفَاعِلُ اَيْضاً ضَمِيْراً مُتَّصِلاً |
| متصل په مينځ د دې کې او په مينځ د فعل کې په خلاف د هغه صورت کې چې کله وي فاعل همدا رنګې ضمير متصل |
| فَاِنَّهٗ حِيْنَئِذٍ يَجِبُ تَقْدِيْمُ الْفَاعِلِ نَحْوُ ضَرَبْتُكَ. |
| ځکه چې په دې وخت کې واجب دي تقديم د فاعل لکه ضربتک. |

**خلاصه دمتن**: د واذا اتصل نه تر يجب تقديمه پورې غرض د صاحب د کافيې د هغو عوارضو بيانول دي چې د هغې په وجه د فاعل په مفعول باندې تاخير واجب دي او هغه عوارض څلور دي: (۱) د فاعل سره ضمير د مفعول متصل وي يعنې د فاعل سره داسې ضمير متصل وي کوم چې مفعول طرف ته راجع وي لکه ضرب زيدا غلامه. (۲) فاعل د الا نه پس واقع وي لکه ماضرب عمروا الازيد. (۳) فاعل د الا د معنى نه پس واقع وي لکه انما ضرب عمروا زيد. (۴) مفعول ضمير متصل بالفعل وي او فاعل ضمير متصل نه وي لکه ضربک زيد، په دې څلورو ځايونو کې د مفعول په فاعل باندې مقدم کول واجب دي.

**اغراض دجامي**: بالفاعل: ددې نه غرض دشارح بيان د مرجع ده چې د به ضمير مرجع فاعل دي.

المتوسطة: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دسوال صورت داسې دي چې ستاسو دا قاعده ماضرب الا زيد عمروا سره منقوضه او ماته ده ځکه چې په دې کې فاعل د الا نه پس واقع دي سره ددې چې د فاعل تاخير په مفعول باندې واجب نه دي.

**جواب**: د فاعل د الا نه پس د واقع کيدو په صورت کې تاخير الفاعل عن المفعول وجوب دي په دې شرط چې الا د فاعل او مفعول دواړو په مينځ کې واقع وي په تقديم او تاخير دواړو صورتونو

کې اويه ذکر شوي مثال کې الا دفاعل اومفعول په مينځ کې واقع نه دي بلکې ددې دواړونه مقدم دي لهذا ددې په ذريعه نقض او اعتراض نه واردېږي .

وقع الفاعل بعد: په دې کې دعطف دحاصل بيان دي چې ددې عطف په الا باندې دي .

معنى الا: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دمرجع دي چې دمعناها ضمير مرجع الا ده

بأن يكون: په دې سره غرض دشارح دمفعول سره دفعل دمتصل کيدو دصورت بيان دي چې مفعول ضمير متصل بالفعل وي .

الفاعل: په دې سره غرض دشارح بيان دمرجع دې چې دضمير مرجع فاعل دي .

ضمير: په دې سره غرض دشارح بيان دترکيب دي چې متصل دموصوف محذوف صفت دي کوم چې ضمير دي .

تاخير الفاعل: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دمرجع دې چې په تاخيره کې دضمير مرجع فاعل دي .

عن المفعول: په دې کې دتاخير دصلې بيان دي .

في جميع هذه: په دې عبارت سره غرض دشارح دتاخير دمحل بيان دي .

واما في صورة اتصال: په دې عبارت سره غرض دشارح په ذکرشوي څلورصورتونو کې دفاعل دمفعول نه دمؤخر کيدو دوجوب وجه بيانول دي :

**اول صورت**: چې کله مفعول ضمير متصل بالفعل وي نودفاعل تاخير ددې وجې نه واجب دي چې لفظاً اورتبةً اضمار قبل الذکر لازم رانه شي کوم چې ناجائزدي مثلاً ضرب زيدا غلامه په ځاې ضرب غلامه زيدا ووايي نو په غلامه کې دضمير مرجع زيد دي کوم چې لفظاً هم مؤخردي اورتبةً هم،لفظاً تاخيرخويې ظاهردي اورتبتاً ددې وجې نه مؤخر دي چې هغه مفعول دي اومفعول دفاعل نه رتبتاًمؤخر وي نواضمارقبل الذکر لازم راغې کوم چې جائز نه دي .

**دويم صورت**: چې کله فاعل دالا نه پس واقع وي نودفاعل دتاخير نه مفعول ددې وجې نه واجب دي چې حصرِ مطلوب منقلب اوبدل نه شي مثلاً ماضرب عمروا الازيد ددې مطلب دادې چې مضروبيت د عمرو په زيد کې بند دي که چيرته فاعل مقدم کړي اودا ووايي چې ماضرب زيد الاعمروا نوددې مفهوم ضاربيت دزيد په عمرو کې انحصار وي نودفاعل تاخير دمفعول نه

واجب دي د دې د پاره چې حصر مطلوب منقلب او بدل نه شي.

**دریم صورت**: چې کله فاعل د معنی د الا نه پس واقع وي نو د فاعل تاخیر د دې وجې نه واجب دي چې حصرِ مطلوب بدل نه شي لکه انما ضرب عمروا زید چې د دې مطلب دا دې چې مضروبیت د عمرو به زید کې منحصر دي او که چیرته فاعل مقدم کړی او داووایي چې انما ضرب زید عمروا نو په دې وخت کې به مفهوم داوي چې ضاربیت د زید په عمرو کې منحصر دي او داخلاف د مقصود دي نو د فاعل تاخیر د مفعول نه واجب دي د دې د پاره چې حصرِ مطلوب منقلب او بدل نه شي.

**څلورم صورت**: چې کله مفعول ضمیر متصل بالفعل وي او د فاعل ضمیر متصل نه وي نو د فاعل تاخیر د مفعول نه واجب دي ځکه چې که چیرته د فاعل تقدیم جائز وي نو د ضمیر متصل منفصل کیدل به لازم راشي کوم چې جائز نه دي.

**بخلاف ما**: په دې کې غرض د شارح وهو غیر متصل د قید فائده بیانول دي چې که چیرته فاعل هم ضمیر متصل بالفعل وي نو د فاعل مؤخر کول جائز نه دي بلکه د فاعل په مفعول باندې تقدیم واجب دي لکه ضربتک.

## د فاعل د حذف جوازي بحث:

وَ قَدْ يُحْذَفُ الْفِعْلُ الرَّافِعُ لِلْفَاعِلِ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ دَالَّةٍ عَلٰى تَعْيِيْنِ الْمَحْذُوْفِ

او کله حذف کولی شي هغه فعل چې رفع ورکوي فاعل ته د پاره د قیام د قرینې چې دلالت کوي په تعین د محذوف

جَوَازاً اَيْ حَذْفاً جَائِزاً فِيْ مِثْلِ زَيْدٌ اَيْ فِيْمَا كَانَ جَوَاباً لِسُؤَالٍ مُحَقَّقٍ لِمَنْ

باندې جوازاً یعنې جائز حذف په دې مثال کې چې زید یعني په هغه ځه کې چې وي جواب د پاره د سوال محقق د هغه چا د

قَالَ مَنْ قَامَ سَائِلاً عَمَّنْ يَقُوْمُ بِهِ الْقِيَامُ فَيَجُوْزُ اَنْ تَقُوْلَ

پاره چې ووایي چې څوک ولاړ دي یعنې سائل دي د هغه چا باره کې چې قائم دي د هغه پورې قیام نو جائز دي چې ووایي

زَيْدٌ بِحَذْفِ قَامَ اَيْ قَامَ زَيْدٌ وَ يَجُوْزُ اَنْ تَقُوْلَ قَامَ زَيْدٌ بِذِكْرِهٖ وَ اِنَّمَا قُدِّرَ

زید په حذف د قام سره یعني قام زید او جائز دي چې ووایي قام زید په ذکر کولو د قام سره او په تحقیق سره مقدر کړو

الْفِعْلُ دُوْنَ الْخَبَرِ لِاَنَّ تَقْدِيْرَ الْخَبَرِ يُوْجِبُ حَذْفَ الْجُمْلَةِ وَتَقْدِيْرَ الْفِعْلِ حَذْفَ اَحَدِ جُزْاَيْهَا وَ التَّقْلِيْلُ فِي

فعل، نه خبر ځکه چې تقدیر د خبر واجبوي حذف د جملې او تقدیر د فعل واجبوي حذف کول یو جز د جملې او تقلیل په

الْحَذْفِ اَوْلٰى وَ كَذَا يُحْذَفُ الْفِعْلُ جَوَازاً فِيْمَا كَانَ جَوَاباً لِسُؤَالٍ مُقَدَّرٍ نَحْوُ

حذف کې اولی دي او همدارنګې حذف کول د فعل جواز په هغه صورت کې چې وي جواب د سوال مقدر لکه دا

| قَوْلِ الشَّاعِرِ فِيْ مَرْثِيَةِ يَزِيْدَ بْنِ نَهْشَلٍ لِيُبْكَ عَلَى الْبِنَاءِ لِلْمَفْعُوْلِ يَزِيْدُ مَرْفُوْعٌ عَلَى اَنَّهُ مَفْعُوْلٌ مَا لَمْ يُسَمَّ |
|---|
| قول دشاعر په مرثيه د يزيد بن نهشل کې ليبک مبني بر مفعول او يزيد مرفوع دي په دې شان چې دا مفعول مالم يسم |
| فَاعِلُهُ ضَارِعٌ اَيْ عَاجِزٌ ذَلِيْلٌ وَ هُوَ فَاعِلُ الْفِعْلِ الْمَحْذُوْفِ اَيْ يَبْكِيْهِ ضَارِعٌ بِقَرِيْنَةِ السُّؤَالِ الْمُقَدَّرِ وَهُوَ |
| فاعله دي ضارع يعني عاجز او هغه فاعل دي دپاره دفعل محذوف يعني يبكيه ضارع په قرينې دسوال مقدر او هغه |
| مَنْ يَبْكِيْهِ وَ اَمَّا عَلَى رِوَايَةِ لِيَبْكِ يَزِيْدُ عَلَى الْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَ نَصْبِ يَزِيْدَ فَلَيْسَ مِمَّا |
| مَن يبكيه دي او هر چې په روايت د ليبک يزيد مبني للفاعل دي او د يزيد د نصب روايت نو دا نه دي د هغه روايت نه په |
| نَحْنُ فِيْهِ لِخُصُوْمَةٍ مُتَعَلِّقٌ بِضَارِعٍ اَيْ يَبْكِيْهِ مَنْ يَذِلُّ |
| کوم کې چې مونږ وو د وجې د خصومت نه چې متعلق دي د ضارع پورې يعني يزيد ته هغه کس وژاړي چې څوک ذليل |
| وَ يَعْجِزُ عَنْ مُقَاوَمَةِ الْخُصَمَاءِ لِاَنَّهُ كَانَ مَلْجَأً لِلْعَجَزَةِ وَ الْاَذِلَّاءِ وَ آخِرُ الْبَيْتِ وَ مُخْتَبِطٌ |
| وي او عاجز وي دانتقام د دشمنانو نه ځکه چې يزيد د عاجزاو د کمزورو خلکو مدد ګار وو او د شعر آخر دي چې ومختبط |
| مِمَّا تُطِيْحُ الطَّوَائِحُ الْمُخْتَبِطُ السَّائِلُ مِنْ غَيْرِ وَسِيْلَةٍ وَ الْاِطَاحَةُ الْاِهْلَاكُ وَ الطَّوَائِحُ جَمْعُ مُطِيْحَةٍ |
| مما تطيح الطوائح او مختبط بې وسيلې سوال کوونکي ته وايي او اطاحت هلاکولو ته وايي او طوائح د مطيحة جمع ده |
| عَلَى غَيْرِ الْقِيَاسِ كَلَوَاقِحَ جَمْعُ مُلْقِحَةٍ وَ مِمَّا يَتَعَلَّقُ بِمُخْتَبِطٍ وَ مَا مَصْدَرِيَّةٌ يَعْنِيْ وَ يَبْكِيْهِ اَيْضاً |
| خلاف قياس لکه لواقح د ملقحة جمع ده او مما د يختبط متعلق دي او ما مصدريه ده يعني يزيد ته هغه کس هم وژاړي |
| مَنْ يَسْاَلُ بِغَيْرِ وَسِيْلَةٍ مِنْ اَجَلِ اِهْلَاكِ الْمُهْلِكَاتِ مَالَهُ وَ مَا يَتَوَسَّلُ بِهِ اِلَى تَحْصِيْلِ |
| کوم چې سوال کوي بې وسيلې د وجې د هلاکيدو د مال د ده نه او د هغه څيزنه چې د کوم په ذريعه چې به ده حاصلولو |
| الْمَالِ لِاَنَّهُ كَانَ مُعْطِياً لِلسَّائِلِيْنَ بِغَيْرِ وَسِيْلَةٍ. |
| مال وجه ځکه چې داور کوونکي وو سائلينو ته په غير د وسيلې نه. |

**خلاصه دمتن:** د وقد يحذف الفعل نه دصاحب دکافيې غرض دفاعل دعامل احوال بيانول دي چې هغه فعل چې رافع للفاعل وي هغه په وخت دقيام قرينه جوازي کې حذف کولې شي لکه څوک ووايي چې من قام نو ددې په جواب کې وايي چې زيد نو زيد فاعل دي دفعل محذوف کوم چې قام دي په اصل کې داو قام زيد ،قام فعل يې حذف کړې او ددې په حذف باندې قرينه سوال محقق دي ،او دويم مثال دشاعر شعر دي : ليبک يزيد ضارع الخ : په دې شعر کې يبکيه فعل يې حذف کړې دي او ددې په حذف باندې قرينه سوال مقدر دي ځکه چې کله شاعر په خپل قول ليبک يزيد سره په يزيد باندې دژړيدو حکم ورکړونو ګوياچې سائل سوال کړې چې

مَن يبكيه ؛ څوک ژاړي، نوده جواب ورکړو چې ياضارع يعني يبكيه ضارع

**فائده دقرينې متعلق** : حذف كله جوازي وي اوكله وجوبي ، چې كوم ځاي كې حذف جوازي وي هلته دوه قرينې وي : (۱) لكه يواځې دقرينې حذف يعني داسې قرينه وي چې ديو لفظ په حذف باندې دلالت كوي . (۲) دتعين دحذف قرينه يعني داسې قرينه چې داظاهره كړي چې دلته فلانې لفظ محذوف دي ، اوچيرته چې حذف وجوبي وي هلته ددې دوو نه غير يوه دريمه قرينه هم كيدي شي .(۳) دريمه قرينه داده چې قائمقام دقرينې وي يعنې ددې محذوف لفظ كوم قائمقام هم موجود وي دلته زيد مرفوع ويل دايواځې دحذف قرينه ده چې كله مرفوع وي نوكوم رافع به هم وي اودسائل دسوال تعين حذف دقرينې ده چې كله دقيام سره متعلق وي نوفعل محذوف به قام وي .

**اغراض دجامي** : الرافع للفاعل : په دې عبارت سره غرض دشارح ددوه سوالونو مقدرو جواب وركول دي :

**سوال (۱)** : لكه څنګه چې دفعل حذف جائز دي همدارنګې دشبه فعل حذف هم جائزدي نومصنف دحذف تخصيص دفعل سره ولې وكړو ؟

**سوال (۲)** : دلتـه بحث داحوالودفاعـل نـه كيـږي اوحذف دفعـل خودفعـل داحوالونـه دي حالانكه مقصود د فاعل داحوالو نه بحث كول دي نوداخروج عن المبحث شو .

**جواب دسوال (۱)** : شارح الرافع للفاعل سره ددواړو سوالونو جواب وركوي داول سوال جواب دادې چې دفعل نه مراد رافع للفاعل دي اودافعل اوشبه فعل دواړو تـه شامل دي لهذا اول سوال دفع شو.

**جواب دسوال (۲)** : ددويم سوال جواب دادې چې كه چيرته حذف دفعل دفعـل داحوالو نه دي ليكن دلتـه دفعـل نـه مراد هغـه فعـل دي كـوم چې رافـع للفاعـل وي اوچې كـوم فعـل رافـع للفاعل وي هغه دفاعل د متعلقاتو نه دي لهذا په دې سره خروج عن المبحث نه شو.

دالة على تعيين : په دې عبارت سره غرض دشارح ديووهم لرې كول دي : وهم داوو چې دقرينې نه كيدې شي هغه قرينه مراد وي كوم چې دال وي په تعين دمعنى باندې لكه په مشترک كې چې وي كه چيرته دامراد وي نوددې نه مقصود فوت كيږي ،شارح داوهم لرې كړو چې دقرينه نه

مراد دمحذوف په تعین باندې دلالت کوونکي قرینه ده او قرینه دالة على تعين المعنى مراد نه ده .

ای حذفا: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : جوازا مفعول مطلق دي دیحذف حالانکه په دې کې دمفعول مطلق شرط نه موندل کیږي دمفعول مطلق شرط دادې چې فعل دسابق مصدر وي دلته جوازاً دیحذف مصدر نه دي .

**جواب** : جوازا په اعتبار دموصوف محذوف سره مفعول مطلق دي کوم چې حذفادي اوحذفا دیحذف مصدر دي .

جائزاً: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : جوازاً د حذفاً صفت جوړول صحیح نه دي ځکه چې دصفت حمل په موصوف باندې کیږي او دلته دجوازا حمل په حذفاباندې صحیح نه دي ځکه چې دمصدر حمل په یوځیز باندې صحیح نه دي ځکه چې حذف جائزیږي نه جواز .

ای فیماکان: په دې عبارت سره غرض دشارح ددوه سوالونو مقدرو جواب ورکول دي :

**سوال (۱)** :په في مثل زید کې دمثل دلفظ نه ثابتیږي چې حکم مذکور (حذف دفعل والا) زید په مثل کې ثابت دي نه په خپله په عین زید کې نوزیدبه خارج وي حالانکه داغلط دي ځکه چې حذف دعامل والاحکم په خپله په عین زید کې موندل کیږي نه ددې په مثل کې .

**سوال (۲)** : مثال دممثل له دوضاحت دپاره وي اودوضاحت دپاره یومثال هم کافي وي مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ دوه مثالونه ولې ذکر کړل یو زید اوبل ضارع ؟

**جواب دسوال (۱)** : په ای فیماکان سره جواب ورکوي چې دمثل لفظ نه یوه قاعدې کلیې طرف ته اشاره ده هغه قاعده کلیه داده چې دمثل نه مرادهرهغه فاعل دي چې دسوال محقق په جواب کې واقع وي یا دسوال مقدر په جواب کې نوزید په خپله هم په دې قاعده کې داخل دي لهذا دابه خارج نه وي .

**جواب دسوال (۲)** :ددویم سوال جواب په فیماکان جوابا لسوال محقق اومقدر سره په دې طریقې سره ورکړي چې دلته دمثال تعدد دممثل له دتعدد په وجه دي یوممثل له جواب د سوال محقق دي ددې مثال زید دي ، اودویم ممثل له جواب دسوال مقدر دي ددې مثال ضارع دي ددې وجې نه یې دوه مثالونه ذکر کړل .

سائلاً عمن يقوم : په دې عبارت سره غرض دشارح دفع دوهم ده وهم دا دې چې لمن قال من قام کې د من قام نه مراد دزيد علم غير مشهور دي اوزيد علم مشهور دي نود قام زيد مرادف دي لکه دماالغضنفر په جواب کې اسد وويل شي نود من قام مطلب به داوي چې قام کوم کس دي نودې په جواب کې وويل شو چې زيد به مقصود وي چې دقام زيد علم دي ددې نه مراد زيد دي لهذا دلته په سوال کې فعل موجود نه دي په جواب کې هم دزيد نه مخکې به فعل محذوف نه وي بلکه زيد به خبر وي دمبتدا محذوف چې هُوَ دي .

**جواب** : سائلا عمن يقوم به القيام نه دشارح دجامي ددې سوال جواب ورکوي چې حاصل دجواب دادې چې دقام نه مراد هغه قام نه دي کوم چې دزيد مرادف دي بلکې هغه قام مراد دي کوم چې فعل دي اود قيام نه مشتق دي لهذا په سوال کې فعل قام ذکر دي سائل ددې شخص متعلق سوال کوونکي دي چې دهغې سره دفعل قيام قائم دي نوپه جواب کې دزيد نه مخکې هم همدافعل قام به محذوف وي نوپه دې صورت کې فعل حذف کول اويواځې زيد ويل هم جائز دي اوفعل ذکر کول اوقام زيد ويل هم جائز دي .

فيجوز: په دې عبارت سره غرض دشارح داظاهرول دي چې په متن کې يجوز په معنی دجواز سره امکان خاص دي چې په دې کې دجانبينو نه ضرورت سلب کيږي نومطلب به داوي چې دفعل حذف هم ضروري نه دي اوعدم حذف (ذکر کول) يې هم ضروري نه دي .

وانما قدر: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** :سوال دادې چې تاسو ويلي دي چې دمن قام په جواب کې دزيد نه مخکې قام فعل محذوف دي مونږ وايو چې فعل محذوف نه دي بلکه زيد مبتدا ده ددې نه پس قام خبر محذوف دي اودخبر محذوف منل اولی اوانسب دي ځکه چې په دې صورت کې به جواب دسوال مطابق وي په سوال کې من قام جمله اسميه ده نوپه جواب کې به يې هم جمله اسميه وي په خلاف ددې صورت چې ددې حذف دفعل دقبيلې نه جوړ کړي شي اووويل شي چې زيد فاعل دي ددې نه مخکې قام فعل محذوف دي په دې صورت کې به داجمله فعليه وي اود سوال اودجواب په مينځ کې به مطابقت نه وي نودخبرحذف کولو والاصورت اولی کيدل په کاروو.

**جواب** : كه چيرته داحذف دفعل دباب نه جوړكړي شي نودجملې يوجز يعني دمسند حذف لازم راځي اوكه چيرته دخبردحذف دباب نه جوړكړي شي نودمكمل جملې حذف لازم راځي نودفعل دحذف په صورت كې **تقليل في الحذف** اودخبردحذف په صورت كې **تكثير في الحذف** دي اوتقليل في الحذف اولى وي دتكثير في الحذف نه ، پاتې شو داسوال چې په دې صورت كې جواب دسوال مطابق نه راځي نوددې جواب دادې چې **من قام** اګرچې صورةً جمله اسميه ده ليكن معناً جمله فعليه ده ځكه چې د**من قام** معنى ده **اقام زيد ام جواد ام عمر ام حميد الخ** چونكې دهرفرد متعلق سوال كول محال وو نوددې وجې نه داسې عام الفاظ راوړل شو كوم چې **تولو** افرادوته شامل دي چې هغه **من** دي بياچونكې **من** استفهاميه دي كوم چې تقاضا كوي دصدارت دكلام ددې وجې نه دايې مقدم كړو .

**وكذا** : په دې عبارت سره غرض دشارح دعطف دحاصل بيان دي چې حاصل يې دادې چې لكه څنګه د هغه فاعل دفعل حذف كول جائزدي كوم چې دسوال محقق په جواب كې واقع وي همدارنګې دهغه فاعل فعل حذف كول هم جائزدي چې دسوال مقدر په جواب كې واقع وي اوحذف دفعل په قرينې دسوال محقق مثال خو مخكې ذكرشوي دي اوحذف دفعل په قرينې دسوال مقدر مثال په دې شعر سره وركوي چې كوم ضرار بن نهشل دخپل وروريزيد بن نهشل په مرثيه كې ويلې دي ، شعر دادې چې :

**ليبك يزيد ضارع لخصومة و مختبط مما تطيح الطوائح**

**على البناء للمفعول** : په دې عبارت سره غرض دشارح دصيغې بيان دي چې داصيغه مجهول ده معلومه نه ده داقيديې ددې وجې نه ولږول چې داشعر محل داستشهاد جوړشي ، ځكه چې كله داپه صيغې دفعل مجهول وي نو **يزيد** به نائب فاعل وي او**ضارع** به مرفوع وي په دې بناء باندې چې دا فاعل دي دفعل محذوف **ديبكى** ، كه چيرته **ليبك** په صيغې دفعل معروف سره وي نو **يزيد** به منصوب وي دمفعول به كيدو په بناء باندې او**ضارع** به مرفوع وي دفاعل كيدو په بناء باندې نوپه دې صورت كې به **ضارع** دفعل محذوف فاعل نه وي لهذا دازموږ دبحث نه خارج دي .

**مرفوع** : په دې عبارت كې شارح د**يزيد** اعراب سره دوجې داعراب بيان كوي چې **يزيدُ** مرفوع دي په دې بناء باندې چې دامفعول مالم يسم فاعله دي .

**اي عاجز ذليل**: په دې عبارت سره غرض دشارح دضارع معنى متعين كول دي ځكه چې دضارع دوه معنى ګاني دي: (۱) په معنى دمشابه سره (۲) اودويم په معنى دعاجز اوذليل سره نوشارح دويمه معنى متعينه كړه چې هغه عجز اوذلالت دي.

**وهو فاعل**: په دې عبارت سره غرض دشارح مثال دممثل له سره منطبق كول دي چې ضارع فاعل دي دفعل محذوف چې كوم يبكيه دي په اصل كې وو يبكيه ضارع ددې په حذف كولو باندې قرينه سوال مقدر دي اوهغه من يبكيه دي.

**واما في رواية**: په دې عبارت سره غرض دشارح على البناء للمفعول دقيد فائدې بيانوي چې داقيد يې ددې وجې نه ولږول چې كه چيرته ليبک دفعل معروف صيغه وي نويزيدبه منصوب وي دمفعول به كيدو په بناء باندې اوضارع به مرفوع وي دفاعل كيدو په بناء باندې چونكې ضارع په دې صورت كې فعل محذوف دفاعل نه وي لهذا دازمونږ دبحث نه خارج دي.

**سوال**: كه چيرته دا ليبک مبني للفاعل وويل شي اويزيد مفعول جوړكړي شي نودحذف ارتكاب به هم لازم رانه شي اومقصد چې كوم ديزيد ژړل دي هغه به هم پوره شي.

**جواب**: كه چيرته ليبک مبني للفاعل يعنې په صيغې دمعروف سره وويل شي نو اشتغال بمالا يعني لازم راتلو ځكه چې علامه ابن حاجب دفعل دحذف مثال بيانول اودمعروف ويلو په صورت كې دلته حذف نه وي لهذا دلته دامثال دهغه روايت نه په كوم كې چې مونږ يو دهغې نه به خارج شي.

**متعلق بضارع**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي.

**سوال**: د لخصومة دمتعلق په باره كې دوه احتماله دي يابه دامتعلق وي ديبكي اويادضارع اودا دواړه احتماله صحيح نه دي، اول احتمال ددې وجې نه صحيح نه دي چې په لخصومة كې لام اجليه اوتعليليه دي اودلام اجليه مدخول دماقبل دپاره علت جوړيږي په لخصومة كې يزيد بن نهشل دمرثيې علت جوړيدو صلاحيت نشته، اودويم احتمال ددې وجې نه صحيح نه دي چې كه چيرته دادضارع متعلق كړو نوپه اسم فاعل باندې به په غيرداعتماد نه عمل كول لازم راشي كوم چې جائز نه دي.

**جواب**: مونږ دويم شق اختيارو چې لخصومة دضارع متعلق دي باقي پاتې شو داسوال چې په

اسم فاعل باندې به په غير د اعتماد نه عمل كول لازم راشي نو ددې جواب دا دې چې دا ضارع صفت دې د موصوف محذوف شخص په شخص باندې اعتماد كولو سره د ضارع عمل كوي نو عبارت به داسې شي چې ليبكيه شخص ضارع .

ليبكيه : په دې عبارت سره غرض د شارح د اول مصرعې معنى بيانول دي چې ژاړي يزيد ته عاجز او ذليل د خصومت په وخت كې ځكه چې يزيد د عاجزو او كمزورو خلكو مددګار وو .

والمختبط : په دې سره غرض د شارح د مختبط معنى بيانول دي چې د مختبط معنى ده بې وسيلې سوال كوونكي . د

الاطاحة: په دې عبارت سره غرض د شارح د اطاحة معنى بيانول دي چې د اطاحة معنى اهلاک (يعنې هلاكول ) دي

والطوائح : دا د مطيحة خلاف قياس جمع ده لكه لواقح دا خلاف قياس جمع ده د ملحقة ځكه چې د قياس تقاضا دا وه چې طوائح د طائحة جمع وي نه د مطيحة لكه نواصر د ناصرة جمع ده ، د مطيحة جمع د قياس موافق مطيحات راتلل په كار وو ځكه چې د مفعلة جمع مفعلات راځي لكه مكرمة چې ددې جمع مكرمات راځي ليكن دلته خلاف قياس د طوائح جمع مطيحة جوړه كړې ددې دپاره چې فساد د معنى لازم رانه شي .

مما : د مختبط متعلق دې او ما مصدريه ده ما موصوله نه دې چې د عائد في الصلة د عدم موجودګۍ اعتراض واردوي ، چې هغوي د فعل يعنې تطيح د مصدر په تاويل سره ګرځولې ده .

ايضاً : په دې عبارت سره غرض د شارح د شعر د دويمې مصرعې معنى بيانول دي چې ده ته هغه شخص هم وژاړي كوم چې سائل وي بې وسيلې په وجه د هلاک كولو د مهلكاتو د مال دده او په وجه د هلاكولو د ذرائعو د حاصلولو د مال ، ځكه چې يزيد بې وسيلې سوال كوونكو ته مال وركوي .

## د فاعل د حذف وجوبي بحث :

| وَ قَدْ يُحْذَفُ الْفِعْلُ الرَّافِعُ لِلْفَاعِلِ لِقَرِيْنَةٍ دَالَّةٍ عَلَى تَعَيُّنِهِ وُجُوْبًا دد |
|---|
| او كله كله حذف كيږي هغه فعل چې رفع وركوي فاعل ته د وجې د قرينې نه چې دلالت كوي په تعين د فعل وجوبا |
| اَىْ حَذْفًا وَاجِبًا فِيْ مِثْلِ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَاِنْ اَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ اَىْ فِيْ كُلِّ مَوْضِعٍ حُذِفَ |
| يعنې حذف واجب په مثل ددې قول د الله تعالى كې وَاِنْ اَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ يعنې په هر هغه ځاى كې چې حذف |

| |
|---|
| الْفِعْلُ ثُمَّ فُسِّرَ لِرَفْعِ الْاِبْهَامِ النَّاشِئِ مِنَ الْحَذْفِ فَاِنَّهُ لَوْ ذُكِرَ الْمُفَسَّرُ لَمْ |
| شي فعل بيا تفسير و کړي دوچې د رفعې د ابهام نه چې پيدا دي د حذف نه ځکه چې که چيرته ذکر شي مفسر نو نه به شي |
| يَبْقَ الْمُفَسِّرُ مُفَسِّراً بَلْ صَارَ حَشْواً بِخِلَافِ الْمُفَسَّرِ الَّذِيْ فِيْهِ اِبْهَامٌ بِدُوْنِ حَذْفِهٖ فَاِنَّهُ يَجُوْزُ |
| پاتې مفسر مفسر بلکې ګرځي بې فايدې په خلاف د هغه مفسر چې په کې ابهام وي په غير د حذف د دې نه ځکه چې جائز |
| الْجَمْعُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ مُفَسِّرِهٖ كَقَوْلِكَ جَاءَنِيْ رَجُلٌ اَيْ زَيْدٌ فَتَقْدِيْرُ الْاٰيَةِ وَاِنِ اسْتَجَارَكَ اَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ |
| د جمع په مينځ د مفسَّر او مفسِّر کې لکه دا قول چې جاءني رجل يعني زيد نو تقدير د آيت وَاِنِ اسْتَجَارَكَ اَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ |
| اسْتَجَارَكَ فَاَحَدٌ فِيْهَا فَاعِلُ فِعْلٍ مَحْذُوْفٍ وُجُوْبًا وَهُوَ اسْتَجَارَكَ الْاَوَّلُ الْمُفَسَّرُ بِاسْتَجَارَكَ |
| اسْتَجَارَكَ نو احد په دې کې فاعل د فعل محذوف دي وجوبا او هغه اسْتَجَارَكَ اول دي چې تفسير يې شوي په اسْتَجَارَكَ |
| الثَّانِيْ وَ اِنَّمَا وَجَبَ حَذْفُهٗ لِاَنَّ مُفَسِّرَهٗ قَائِمٌ مَقَامَهٗ مُغْنٍ عَنْهُ |
| دويم سره او په تحقيق سره واجب دي حذف د دې ځکه چې مفسر د دې قائم دي په ځاې د دې چې د دې نه مستغني دي |
| وَلَا يَجُوْزُ اَنْ يَكُوْنَ اَحَدٌ مَرْفُوْعاً بِالْاِبْتِدَاءِ لِاِمْتِنَاعِ دُخُوْلِ حَرْفِ الشَّرْطِ عَلَى الْاِسْمِ بَلْ لَا بُدَّ |
| او نه دي جائز چې شي احد مرفوع بناء برابتدائيت دوچې د امتناع د دخول حرف الشرط نه په اسم باندې بلکه لابدي |
| لَهٗ مِنَ الْفِعْلِ. |
| ده د دې د پاره فعل . |

**خلاصه دمتن:** هغه فعل چې رافع للفاعل وي نو په وخت د قرينې کومه چې د محذوف په تعيين باندې دلالت کوي په وجوبي طور سره هم حذف کولې شي لکه د الله تعالى دا قول چې : ﴿وَاِنِ اسْتَجَارَكَ اَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ په دې کې د احد نه مخکې استجارک فعل په وجوبي طور باندې حذف کړې دي ځکه چې په آخر کې د دې قائمقام لفظ د استجارک موجود دي د عبارت تقدير داسې دي چې وان استجارک احد من المشركين استجارک .

**اغراض دجامي:** وجوبا: د مصنف قول وجوبا په جوازا باندې عطف دي .

وقد يحذف: په دې عبارت سره غرض د شارح حاصل د عطف بيانوي چې د ماتن قول وجوبا عطف دي په جوازاً باندې ځکه چې شارح د جامي د دې ټولو قيودا تو دلته اعاده کړې چې : کوم ذکر يې د جوازا لاندې کړي وو حاصل دا دې چې هغه فعل کوم چې رافع للفاعل وي دا په وخت د قرينې کې چې د محذوف په تعيين باندې دلالت کوي وجوبي طور باندې حذف کولې شي لکه د الله تعالى دا قول : ﴿وَاِنِ اسْتَجَارَكَ اَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ په دې کې د احد نه مخکې فعل

استحقاق یې حذف کړي دي .

حذفاً: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : حذفاً مفعول مطلق دي حالانکه په دې کې دمفعول مطلق شرط نه موندل کیږي دمفعول مطلق شرط دادې چې فعل دسابق مصدر وي او دلته داسې نه ده .

**جواب** : حذفاً په اعتبار دموصوف محذوف سره مفعول مطلق دي .

وجوباً: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : وجوباً د حذفاً صفت جوړول صحیح نه دي ځکه چې دصفت حمل په موصوف باندې کیږي او دلته دوجوباً حمل په حذفاً باندې صحیح نه دي ځکه چې دمصدر حمل په بوخیز باندې صحیح نه دي ځکه چې حذف جائز کیږي نه جواز .

في مثل قوله: په دې عبارت سره شارح اشاره کړې ده چې مثل مضاف دي او ددې مضاف الیه قوله تعالی محذوف دي .

اي في كل موضع: په دې کې دضابطې بیان دي چې دمثل نه مراد هرهغه ترکیب دي چې په هغې کې اول دیوې جوازې قرینې په وجه باندې فعل حذف کړي وي او دحذف کولو نه پس ابهام پیداشوي وي ددې ابهام دلرې کولو دپاره دویم فعل په طریقې دتفسیر سره ذکر کړي دي په داسې ترکیب کې دفعل حذف ددې وجې نه واجب دي چې که چیرته فعل ذکر کړي شي نو مفسر مفسر نه پاتې کیږي بلکې بې فائدې اوزائد کیږي اودمفسر اومفسَر اجتماع ناجائز کیدو دوجې نه دمفسر ذکر صحیح نه وي بلکه حشوه اولغوه به شي .

بخلاف المفسر: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مونږ دانه منو چې دمفسِر اودمفسَّر اجتماع ممنوع ده بلکه جائزده لکه جاءني رجل اي زيد په دې کې رجل مفسَّر اوزید مفسِر دي اودواړه جمع دي .

**جواب** : دمفسَّراودمفسِراجتماع په هغه وخت کې ممنوع ده چې کله مفسِر دیو لفظ محذوف نه ابهام لرې کولواوددې دتفسیردپاره راشي یعنې دابهام علت حذف وي که چیرته مفسردبو لفظ مذکورنه د ابهام دلرې کولودپاره راغلې وي نوپه هغه وخت کې اجتماع جائزده اوپه مثال مذکورکې دمفسِرد ابهام علت حذف نه دي بلکه لفظ مذکوردرجل نکارت دي اودنکارت

دابهام دلرې کولو دپاره زید راوړل شو

**فتقدیر الآیة**: په دې عبارت کې غرض دشارح مثال په ممثل باندې تطبیق کول دي چې دآیت دعبارت تقدیر وان استجارک احد من المشرکین استجارک دي . احدٌ فاعل دي ددې فعل استجارک وجوبي طور باندې محذوف دي چې ددې تفسیر په دویم استجارک سره شوې دي

**وانما وجب حذفها**: په دې عبارت سره غرض دشارح په مثال مذکورکې دفعل دحذف وجوبي وجه بیانوي چې دفعل حذف ددې وجې نه واجب دي چې مفسِر دمفسَر قائمقام کیدوسره ددې ذکر نه مستغني کوي .

**ولایجوز**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال**: داسې خو هم کیدې شي چې احد فعل محذوف دفاعل کیدو په بناء باندې مرفوع نه وي بلکه دمبتداء کیدو په بناء باندې وي .

**جواب**: احد دفاعل کیدو په بناء باندې مرفوع دي ددې نه مبتدا جوړول جائز نه دي ځکه چې ان حرف شرط دي اوحرف شرط په فعل باندې داخلیږي په اسم باندې ددې دخول ممتنع دي او احد اسم دي ځکه چې دامبتدا نه شي کیدې بلکه دفعل محذوف فاعل دي .

## دفعل او فاعل دواړو حذف کول :

| |
|---|
| وَ قَدْ يُحْذَفَانِ اَيِ الْفِعْلُ وَ الْفَاعِلُ مَعاً دُوْنَ الْفَاعِلِ وَحْدَهُ فِيْ مِثْلِ نَعَمْ جَوَابًا لِمَنْ |
| اوکله کله دواړه حذف کیږي یعني فعل اوفاعل یوځاې نه یواځې فاعل په دې مثال کې چې نعم جواب دهغه چادپاره |
| قَالَ اَقَامَ زَيْدٌ اَیْ نَعَمْ قَامَ زَيْدٌ فَحُذِفَتِ الْجُمْلَةُ الْفِعْلِيَّةُ وَذُكِرَ نَعَمْ فِيْ مَقَامِهَا وَهٰذَا الْحَذْفُ جَائِزٌ |
| چې ووایي آقام زید یعني نعم قام زید نوحذف شوه جمله فعلیه اوذکرشو نعم په ځاې ددې کې اودا حذف جائزدي په |
| بِقَرِيْنَةِ السُّؤَالِ لَا وَاجِبٌ لِعَدَمِ قِيَامِ مَا يُؤَدِّيْ مُؤَادَّهُ فِيْ مَقَامِهِ كَالْمُفَسِّرِ |
| قریني دسوال سره اوواجب نه دي ځکه چې دقام زید په ځاې داسې څیزنه دي قائم په شان دمفسرچې ددې مفهوم |
| فَيَلْزَمُ فِي الْكَلَامِ اِسْتِدْرَاكٌ وَ اِنَّمَا قُدِّرَتِ الْجُمْلَةُ الْفِعْلِيَّةُ لَا الْاِسْمِيَّةُ بِاَنْ يُقَالَ |
| اداکړي نولازم به شي په کلام کې استدراک اوپه تحقیق سره مقدرومنل شوه جمله فعلیه نه جمله اسمیه چې وویل شي |
| اَیْ نَعَمْ زَيْدٌ قَامَ لِيَكُوْنَ الْجَوَابُ مُطَابِقًا لِلسُّؤَالِ فِيْ كَوْنِهٖ جُمْلَةً فِعْلِيَّةً . |
| یعني نعم زید قام ددې دپاره چې شي جواب مطابق دسوال سره په کیدو ددې کې جمله فعلیه . |

**خلاصه دمتن**: وقد یحذفان په دې عبارت سره غرض دصاحب دکافیې داظاهرول دي چې

کله کله فعل او فاعل دواړه هم حذف کيږي لکه نعم دهغه کس په جواب کې چې ووايي اقام زيد ددې تقدير دعبارت نعم قام زيد دي په دې کې قام زيد حذف کړو او ... په ځاى يې نعم ذکر کړو.

**اغراض دجامي: اى الفعل والفاعل**: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دمرجع دى چې په بحذفهان کې د هما ضمير مرجع فعل اوفاعل دواړه دي.

**دون الفاعل**: دايې وويل شارح ديو وهم ازاله وکړه هغه وهم دادې چې لکه څنګه يواځې دفعل حذف کول اودفعل اوفاعل دواړو حذف کول جائزدي نوهمدارنګې يواځې دفاعل حذف هم شائد چې جائز وي نوشارح دون الفاعل وحده وويل ددې وهم ازاله يې وکړه چې يواځې دفاعل حذف جائزنه دي.

**اى نعم**: په دې عبارت سره غرض دشارح مثال په ممثل له باندې تطبيق کول دي چې نعم په اصل کې نعم قام زيد وجمله فعليه يعني قام زيد يې حذف کړه اونعم يې ددې په ځاى ذکرکړو.

**وهذا الحذف**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دې حذف ته هم دمخکښې حذف په شان واجب کيدل په کاروو څکه چې قام زيد جمله يې حذف کړي اونعم يې ددې قائمقام جوړکړي وي اوچې چيرته دمحذوف قائمقام موجودوي هلته ددې حذف کول واجب وي.

**جواب**: نعم دحرف کيدو دوجې نه غير مستقل دي اوقام زيد دجمله کيدو دوجې نه مستقل دي او غير مستقل دمستقل قائمقام نه شي کيدې لهذا نعم، دقام زيد په ځاى واقع کيدوسره ددې مفهوم کماحقه نه شي اداکولې لکه دمفسِر دذکرکولونه پس دمفسَر دذکرکولوضرورت نه پاتې کيږي بلکه که چيرته مفسَر ذکر کړې شي نواستدراک لازم راځي.

په بل عبارت سره ددې جواب داهم ورکولې شي چې قائمقام په دوه قسمه دي: (۱) مؤدي الى اصل المعنى يعنې داصل معنى اداکولو والا. (۲) مشير الى اصل المعنى يعنې اصل معنى ته صرف اشاره وکړي اواصل معنى ادا نه کړي، په اول کې اجتماع دمفسر په مفسر سره جائز نه ده لکه مخکښې مثال استجارک کې تير شوي اوپه دويم کې اجتماع دمفسر په مفسر سره جائز ده لکه د نعم په صورت کې نوپه دې کې حذف جوازي به وي وجوبي به نه وي.

**وانما قدرت**: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دا حذف دجملې فعليې دباب نه جوړه کړو دجملې اسميې دباب نه يې ولې جوړنه کړو چې دايې ويلي وي چې ددې تقدير نعم زيد قام دي.

**جواب**: اولی خوداوه چې جواب دسوال مطابق وي اودلته سوال جمله فعليه ده که چيرته ددې حذف د جملې فعليې دباب نه ومنې نو جواب به دسوال مطابق وي اوکه چيرته ددې حذف د جملې اسميې د باب نه ومنې نوجواب به دسوال مطابق نه وي ددې وجې نه ددې حذف دجملې فعليې دباب نه ومنه.

## د تنازع الفعلين بحث:

| |
|---|
| وَ اِذَا تَنَازَعَ الْفِعْلَانِ بَلِ الْعَامِلَانِ اِذِ التَّنَازُعُ يَجْرِیْ فِیْ غَيْرِ الْفِعْلِ اَيْضًا |
| اوچې کله تنازع وکړي دوه فعله بلکې دوه عامله ځکه چې تنازع جاري کيږي په غير دفعل کې همدارنګې لکه |
| نَحْوُ زَيْدٌ مُعْطٍ وَ مُكْرِمٌ عَمْرَوًا وَ بَكْرٌ كَرِيْمٌ وَ شَرِيْفٌ اَبُوْهُ اِقْتَصَرَ عَلَى الْفِعْلِ لِاِصَالَتِهٖ فِي الْعَمَلِ وَ |
| زيد معط ومکرم عمروأ وبکر کريم وشريف ابوه نو اکتفاء يې وکړه په فعل باندې دوجې داصل کيدونه په عمل کې او |
| اِنَّمَا قَالَ الْفِعْلَانِ مَعَ اَنَّ التَّنَازُعَ قَدْ يَقَعُ فِيْ اَكْثَرَ مِنْ فِعْلَيْنِ اِقْتِصَارًا |
| په تحقيق سره يې وويل الفعلان سره ددې نه چې تنازع کله کله واقع کيږي زيات ددوه فعلينونه نواکتفاء يې و |
| عَلَى اَقَلِّ مَرَاتِبِ التَّنَازُعِ وَ هُوَ الْاِثْنَانِ ظَاهِرًا اَیْ اِسْمًا ظَاهِرًا وَاقِعًا بَعْدَهُمَا اَیْ بَعْدَ |
| کړه په کمه مرتبه دتنازع باندې اوهغه دوه دي ظاهر يعني په اسم ظاهر کې چې واقع وي پس ددې دواړونه يعني پس د |
| الْفِعْلَيْنِ اِذِ الْمُتَقَدِّمُ عَلَيْهِمَا اَوِ الْمُتَوَسِّطُ بَيْنَهُمَا مَعْمُوْلٌ لِلْفِعْلِ الْاَوَّلِ اِذْ هُوَ يَسْتَحِقُّهٗ |
| دوه فعلينونه ځکه چې مقدم په دې دواړو يا په مينځ ددې دواړو کې معمول دې دپاره داول فعل ځکه چې دامستحق |
| قَبْلَ الثَّانِیْ فَلَا يَكُوْنُ فِيْهِ مَجَالُ التَّنَازُعِ وَ مَعْنَى تَنَازُعِهِمَا فِيْهِ اَنَّهُمَا |
| دي دمخکې دويم فعل نو نشته په دې کې ګنجائش دتنازع او معنی دتنازع ددې دواړو فعلونو په دې کې چې دا به په |
| بِحَسْبِ الْمَعْنٰى يَتَوَجَّهَانِ اِلَيْهِ وَ يَصِحُّ اَنْ يَكُوْنَ هُوَ مَعَ وُقُوْعِهٖ فِيْ ذٰلِكَ الْمَوْضِعِ مَعْمُوْلًا لِكُلٍّ وَاحِدٍ |
| اعتبار دمعنی سره متوجه وي دې طرف ته او صحيح ده چې وي دا سره دقوع ددې نه په دې ځای کې معمول دهر يو ددې |
| مِنْهُمَا عَلَى الْبَدَلِ فَحِيْنَئِذٍ لَا يُتَصَوَّرُ تَنَازُعُهُمَا فِي الضَّمِيْرِ الْمُتَّصِلِ لِاَنَّ الْمُتَّصِلَ |
| دواړونه دبدليت په طور نو په دې وخت کې نه متصور کيږي تنازع دفعلينو په ضمير متصل کې ځکه چې هغه متصل |
| الْوَاقِعُ بَعْدَهُمَا يَكُوْنُ مُتَّصِلًا بِالْفِعْلِ الثَّانِیْ وَ هُوَ مَعَ كَوْنِهٖ مُتَّصِلًا بِالْفِعْلِ الثَّانِیْ |
| اوواقع وي وروسته ددې دواړونه نو وي به دامتصل ددويم فعل پورې اوهغه سره دکيدو ددې نه متصل دويم فعل |

لَا يَجُوْزُ اَنْ يَّكُوْنَ مَعْمُوْلًا لِلْفِعْلِ الْاَوَّلِ كَمَا لَا يَخْفٰى وَ اَمَّا الضَّمِيْرُ الْمُنْفَصِلُ الْوَاقِعُ
پورې نه ده جائز چې وي معمول دپاره داول فعل لکه څنګه چې داخفي نه ده اوهرچې هغه ضمير منفصل چې واقع وي
بَعْدَهُ نَحْوُ مَا ضَرَبَ وَ اَكْرَمَ اِلَّا اَنَا فَفِيْهِ تَنَازُعٌ لٰكِنْ لَا يُمْكِنُ قَطْعُهُ بَيْنَهُمَا
پس دد ي نه لکه ماضرب واکرم الاانانو په دي کې تنازع دفعلينو خوده ليکن نه ده ممکن ختمول دد ي په مينځ ددوي
هُوَ طَرِيْقُ الْقَطْعِ عِنْدَهُمْ وَهُوَ اِضْمَارُ الْفَاعِلِ فِي الْاَوَّلِ عِنْدَ الْبَصْرِيِّيْنَ وَفِي الثَّانِيْ عِنْدَ الْكُوْفِيِّيْنَ لِاَنَّهُ لَا يُمْكِنُ اِضْمَارُهُ
کې چې هغه اضمار دفاعل دي په اول کې په نزد دبصريانو او په دويم کې دکوفيانو خکه چې نه دي ممکن اضمار ددي
مَعَ اِلَّا لِاَنَّهُ حَرْفٌ لَا يَصِحُّ اِضْمَارُهُ وَلَا بِدُوْنِهِ لِفَسَادِ الْمَعْنٰى لِاَنَّهُ
سره دالانه خکه چې دا داسي حرف دي چې نه صحيح کيږي اضمار ددې او نه دالانه غير دوجې دفساد دمعنى خکه چې
يُفِيْدُ نَفْيَ الْفِعْلِ عَنِ الْفَاعِلِ وَ الْمَقْصُوْدُ اِثْبَاتُهُ وَ مُرَادُ الْمُصَنِّفِ بِالتَّنَازُعِ هٰهُنَا مَا يَكُوْنُ
دا فائده کوي نفي دفعل دفاعل نه او مقصود اثبات دفعل دي او مراد دمصنف په تنازع کې دلته هغه ده چې دهغې د
طَرِيْقُ قَطْعِهِ اِضْمَارَ الْفَاعِلِ فَلِهٰذَا خَصَّهُ بِالْاِسْمِ الظَّاهِرِ وَ اَمَّا
ختمولو طريقه فاعل ته ضمير ورکول دي نو دد ې وجې نه مصنف خاص کړه داتنازع داسم ظاهر پورې او هرچې هغه
التَّنَازُعُ الْوَاقِعُ فِي الضَّمِيْرِ الْمُنْفَصِلِ فَعَلٰى مَذْهَبِ الْكِسَائِيِّ يَقْطَعُ بِالْحَذْفِ وَ اَمَّا عَلٰى مَذْهَبِ
تنازع چې واقع وي په ضمير منفصل کې نو په مذهب دکسائي باندي ختمولي شي په حذف باندي او هرچې په مذهب
الْفَرَّاءِ فَيَعْمَلَانِ مَعًا وَ اَمَّا عَلٰى مَذْهَبِ غَيْرِهِمَا لَا يُمْكِنُ قَطْعُهُ
دفراء باندي نو دواړه عمل کوي يوخاې او هرچې په مذهب دغير ددي دواړو نه دي نو نه دي ممکن ختمول ددي تنازع
لِاَنَّهُ طَرِيْقُ الْقَطْعِ عِنْدَهُمُ الْاِضْمَارُ وَ هُوَ مُمْتَنِعٌ كَمَا عَرَفْتَ.
خکه چې دتنازع دختمولو طريقه ضمير ورکول دي او هغه ممنوع دي لکه تاچې وپيژندل

**خلاصه دمتن:** ددې ځاې نه صاحب دکافيې دنحوياتو په مينځ کې يوه معرکة الآراء مسئله شروع کوي چې کله دوه يا زيات فعل چيرته په يومعمول کې چې اسم ظاهر وی تنازع اوجګړه وکړي نو ددي معمول تعلق به دڅلورو صورتو جوړوي او ددويم فعل معمول به څوک جوړوي چنانچه په ذکرشوي پورتنې عبارت کې دتنازع اودجګړې څلورصورتونه دي : (۱) دواړه فعله په فاعل کې جګړه کوي لکه ضربني واکرمني زيد . (۲) دواړه فعله په مفعول کې جګړه کوي لکه ضربت واکرمتُ زيدا . (۳) اول فعل دفاعل تقاضا کوي اودويم فعل دمفعول تقاضا کوي لکه ضربني واکرمت زيدا . (۴) اول فعل دمفعول تقاضا کوي اودويم فعل دفاعل تقاضا کوي لکه ضربت واکرمني زيد .

**اغراض دجامي**: بل العاملان: په دې عبارت سره غرض د شارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: تنازع چې لکه څنګه په فعلينو کې کيږي همدارنګې په شبه فعل کې هم کيږي مثلا اسم فاعل ، اسم مفعول ، صفت مشبه ، اسم تفضيل وغيره لکه زيد معط ومکرم عمروا په دې کې معط او مکرم دواړه اسم فاعل دي چې دواړه په عمروا کې تنازع کوي لکه څنګه چې په بکر کريم وشريف ابوه کې کريم اوشريف دواړه صفت مشبه دي کوم چې په ابوه کې تنازع کوي نو دفعلان تخصيص صحيح نه دي .

**جواب**: د فعلان نه مراد عاملان دي اوعاملان فعل ، شبه فعل ټولوته شامل دي

واقتصر: په دې عبارت سره غرض د شارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: چې کله د فعلان نه مراد عاملان دي نومصنف ته واذا تنازع العاملان ويل په کاروو چې اشکال نه وي نو الفعلان يې ولې وويل .

**جواب**: په فعل باندې يې د دې وجې نه اکتفاء وکړه چې فعل په عمل کې اصل دي اواسم فرعه ده ځکه چې د فعل وضع د همدې عمل دپاره وي همدا وجه ده چې يو فعل هم غيرعامل نه دي .

واما قال: په دې عبارت سره غرض د شارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** :تنازع چې لکه څنګه په دوه فعلينو کې راځي همدارنګې د دوه فعلينو په زياتوکې هم راځي لکه کما صليت وسلمت وبارکت ورحمت وترحمت على ابراهيم په دې کې په پنځم فعل على ابراهيم کې تنازع کوي هر يو غواړي چې دازما تعلق جوړشي نو فعلان يې ولې وويل تنازع الافعال ويل په کاروو.

**جواب** : د فعلين ذکر دحصر دپاره نه دي بلکه مصنف دتنازع کم نه کمه مرتبه يې بيان کړي ده چې تنازع کم نه کم په دوه فعلينو کې کيږي دزياتو څه حد نه شته .

اى اسماً ظاهراً: په دې کې شارح داظاهره کړي ده چې ظاهردوه شيانوپه مقابله کې راځي: (۱) د خفي په مقابله کې ، (۲) دمضمر په مقابله کې ، نو اسما يې وويل شارح داظاهره کړه چې دلته

ظاهر د مضمر په مقابله کې دي همدارنګې ظاهراً صيغه دصفت ده کوم چې د موصوف تقاضا کوي په اسماً سره د موصوف حذف طرف ته يې اشاره کړې ده .

واقعاً: په دې عبارت سره شارح اشاره کړې چې بعدهما ظرف دي او د دې متعلق محذوف دې کوم چې واقعاً دي .

اى بعد الفعلين: په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د مرجع دي په بعدهما کې د هما ضمير مرجع يې بيان کړي چې د هما ضمير مرجع بعد الفعلين ده .

اذا المتقدم: په دې عبارت سره غرض د شارح د بعدهما د قيد فائده بيانول دي چې دا قيد بې د دې وجې نه ولګول چې که چيرته اسم ظاهر د فعلينو نه مقدم وي يا د فعلينو په مينځ کې واقع وي نو دا به د اول فعل معمول وي ځکه چې د دويم فعل دراتلو نه مخکې اول فعل د دې مستحق شوي دي لهذا په دې کې د تنازع ګنجائش نشته .

ومعنى تنازعهما: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دتنازع نسبت فعلينو طرف ته کول صحيح نه دي ځکه چې دتنازع معنى ده جګړه کول او جګړه او مخاصمه په ذي روح شيانو کې متصور کيږي او فعلين ذي روح نه دي .

**جواب** : دلته دتنازع معنى مخاصمت او جګړه کول نه دي بلکه تنازع په معنى دتوجه سره ده نو معنى به يې داوي چې دوه فعله په اعتبار د معنى سره يو اسم ظاهر طرف ته متوجه وي او اسم ظاهر د فعلينو نه پس واقع وي على سبيل البدلية د هريو معمول جوړشي .

**سوال** : چې لکه څنګه تنازع د ذي روحو سره متحقق کيږي همدارنګې توجه هم د ذي روحو سره متحقق کيږي نو اولني اشکال بيا اعاده شو .

**جواب** : توجه مجازا دتعارض په معنى کې دي مطلب دادې چې په اسم ظاهر کې د عمل کولو دپاره دوه فعله په خپلو کې متعارض وي .

على سبيل البدل: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : چې کله اسم ظاهر د هريو فعل معمول جوړيدې شي نو په دې صورت کې به توارد المؤثرين على اثر واحد لازم راشي کوم چې جائز نه دي .

**جواب** : په على سبيل البدل سره يې جواب ورکړو چې معمول لکل واحد نه مراد معمول على سبيل

البدلية دي نه په طريقې داجتماع سره .

فحينئذ : په فحينئذ باندې فاء تفريعيه ده داپه ماقبل باندې دتفريع بيان دي چې كله داخبره معلومه شوه چې دتنازع دمتحقق كيدو دپاره ددوه امرونو موندل ضروري دي نوپه ضمير متصل كې تنازع نه متصور كيږي ځكه چې ضمير متصل كه چيرته دفعلينو نه پس واقع وي نودابه ددويم فعل سره متصل وي اوكله چې ددويم فعل سره متصل شونوبيا داول معمول نه جوړيږي اونه دضمير متصل په منفصل باندې راتلل لازم راځي كوم چې جائز نه دي .

واما الضمير المنفصل الخ : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : تنازع دفعلينو لكه څنګه چې په اسم ظاهر كې متحقق كيږي همدارنګې په ضمير منفصل كې هم متحقق كيږي لكه ماضرب واكرم الا انا نوبيا داسم ظاهر سره يې تخصيص ولې وكړو ؟

**جواب** : په ضمير منفصل كې اګرچې تنازع متحقق كيږي ليكن ددې تنازع رفع كول په هغه طريقه ممكن نه دي كومه طريقه چې نحويانودرفع دتنازع دپاره تجويز كړي ده اوهغه طريقه دبصرينو په نزد په اول فعل كې دفاعل ضمير راوړل دي اودكوفينو په نزد باندې په دويم فعل كې ضمير راويستل دي دلته په دې طريقه باندې تنازع ختمول ممكن نه دي ځكه چې دفاعل ضميردراويستلو دوه صورتونه دي : (١) دالاسره . (٢) دالا نه په غير ، دالا سره اضمار ددې وجې نه جائزنه دي چې الا حرف دي اوحرف داضمار قابل نه وي اودالا نه په غير هم ممكن نه دي ځكه چې فساد دمعنى لازم راځي ځكه چې په ذكر شوي مثال كې مقصود دفاعل دپاره دفعل اثبات دي كه چيرته دالا نه په غير ضمير راوړي نودفاعل نه دفعل نفي كيږي چونكې په ضمير منفصل كې تنازع فعلين رفع كول داضمار په طريقه باندې نه دي اودمصنف مقصود دلته هغه تنازع بيانول دي چې دهغې رفع كول داضمار په طريقې باندې ممكن وي ددې وجې نه مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دلته داسم ظاهر تخصيص وكړو.

واما التنازع : داجمله مستانفه ده اوديو سوال مقدر جواب هم دي :

**سوال** : چې كله په ضمير منفصل كې په دې طريقه باندې دتنازع رفع كول ممكن نه دي چې كومه نحويانو تجويز كړي ده نوآيا په دې كې دتنازع درفع كولوكومه طريقه شته اويانه ؟

**جواب** : په دې كې اختلاف دي ، دامام كسائي وغيره مذهب دادې چې په ضمير منفصل كې

د تنازع درفع کولو طریقه حذف ده یعني دیوفعل فاعل به حذف کړي اودویم ته به عمل ورکړي ، لهذا امام کسائي ما ضرب واکرم الا انا کې دفاعل دحذف قایل دي په ده باندې اعتراض وشو چې دفاعل حذف کول خو جائز نه دي نو امام کسائي ددې دا جواب ورکوي چې په عاموحالاتو کې دفاعل حذف کول صحیح نه دي لیکن چې کله ددې نه غیر دتنازع درفع کولو کوم صورت باقي پاتې نه شي نودفاعل حذف کول جائز دي اودامام فراء مذهب تشریک رافعین دي یعني دواړه فعله به یوځاې شي اوفاعل ته به رفع ورکړي اوددې نه غیر باقي نحویان :بصرې اودکوفې په نزد ددې تنازع درفع کولو طریقه دسره ممکن نه ده ځکه چې دهغوي په نزد دتنازع درفع کولو طریقه اضمار دي اوهغه ممتنع دي .

په امام فراء باندې هم اعتراض کیږي چې کله تشریک الرافعین جائز نه وي ځکه چې قاعده ده چې توارد العلتین المستقلتین علی معمول واحد لایجوز ، په یو معمول کې ددوه علتونو وارديدل جائز نه دي ، امام فراء ددې داجواب ورکوي چې کله دتنازع درفع کولو بله طریقه ممکنه صورت پاتې نه شي نو په دې وخت کې ددوه علتونو راوړل په یومعمول باندې جائزدي دمجبورې په اساس .

## دتنازع الفعلین صورتونه :

فَقَدْ يَكُوْنُ اَىْ تَنَازُعُ الْفِعْلَيْنِ فِي الْفَاعِلِيَّةِ بِأَنْ يَقْتَضِيَ كُلٌّ مِنْهُمَا اَنْ يَكُوْنَ الْاِسْمُ الظَّاهِرُ فَاعِلًا لَهُ

اوکله کله وي یعني تنازع دفعلینو په فاعلیت کې چې تقاضا کوي هریو ددې چې وي دي اسم ظاهر فاعل د ده دپاره

فَيَكُوْنَانِ مُتَّفِقَيْنِ فِي اِقْتِضَاءِ الْفَاعِلِيَّةِ مِثْلُ ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ وَقَدْ يَكُوْنُ تَنَازُعُهُمَا فِي الْمَفْعُوْلِيَّةِ بِاَنْ تَقْتَضِيَ

نو وي دا دواړه متفق په اقتضاء دفاعلیت کې لکه ضربني واکرمني زید او کله کله وي تنازع په مفعولیت کې چې تقاضا

كُلٌّ مِنْهُمَا اَنْ يَكُوْنَ الْاِسْمُ الظَّاهِرُ مَفْعُوْلًا لَهُ فَيَكُوْنَانِ مُتَّفِقَيْنِ فِي اِقْتِضَاءِ الْمَفْعُوْلِيَّةِ مِثْلُ

کوي هریو ددې نه چې وي دي اسم ظاهر مفعول دده دپاره نو وي دا دواړه متفق په اقتضاء دمفعولیت کې لکه

ضَرَبْتُ وَاَكْرَمْتُ زَيْدًا وَقَدْ يَكُوْنُ تَنَازُعُهُمَا فِي الْفَاعِلِيَّةِ وَالْمَفْعُوْلِيَّةِ وَذٰلِكَ يَكُوْنُ عَلٰى وَجْهَيْنِ اَحَدُهُمَا اَنْ يَقْتَضِيَ

ضربت واکرمت زیداً او کله کله وي تنازع ددوي په فاعلیت اومفعولیت کې اوداوي په دوه وجهو یو دا چې تقاضا

كُلٌّ مِنْهُمَا فَاعِلِيَّةَ اِسْمٍ ظَاهِرٍ وَمَفْعُوْلِيَّةَ اِسْمٍ ظَاهِرٍ آخَرَ فَيَكُوْنَانِ مُتَّفِقَيْنِ فِيْ ذٰلِكَ الْاِقْتِضَاءِ مِثْلُ

کوي هریو ددې دواړو نه دفاعلیت د اسم اودویم دمفعولیت د اسم ظاهر نو وي دا دواړه متفق په دې تقاضا کې لکه

ضَرَبَ وَاَهَانَ زَيْدٌ عَمْرًا وَلَيْسَ هٰذَا قِسْمًا ثَالِثًا مِنَ التَّنَازُعِ بَلْ هُوَ اِجْتِمَاعُ الْقِسْمَيْنِ الْاَوَّلَيْنِ وَثَانِيْهِمَا اَنْ يَقْتَضِيَ

ضرب واهان زید عمروا اونه دي دا دریم قسم دتنازع بلکې دا اجتماع داولني دوه قسمونو دا اودویم دا چې تقاضا کوي

| |
|---|
| اَحَدُ الفِعْلَيْنِ فَاعِلِيَّةَ اِسْمٍ ظَاهِرٍ وَالاٰخَرُ مَفْعُوْلِيَّةَ ذٰلِکَ الاِسْمِ الظَّاهِرِ بِعَيْنِهٖ وَلَا شَکَّ فِيْ اِخْتِلَافِ اِقْتِضَاءِ |
| يو دې فعلينو نه يو د فاعلية د اسم ظاهر او بل د مفعوليت د دې اسم ظاهر بعينه او شک نشته په اختلاف د اقتضاء |
| الفِعْلَيْنِ فِي الصُّوْرَةِ وَ هٰذَا هُوَ القِسْمُ الثَّالِثُ المُقَابِلُ لِلْاَوَّلَيْنِ فَقَوْلُهٗ مُخْتَلِفَيْنِ |
| د فعلينو په صورت کې او دا هغه دريم قسم دې چې مقابل دې د اولو قسمونو نو د اقول د مصنف چې مختلفين نو دا د پاره |
| لِتَخْصِيْصِ هٰذِهِ الصُّوْرَةِ بِالْاِرَادَةِ يَعْنِيْ قَدْ يَكُوْنُ تَنَازُعُ الفِعْلَيْنِ وَاقِعًا فِي الفَاعِلِيَّةِ وَالْمَفْعُوْلِيَّةِ حَالَ |
| د تخصيص د دې صورت ترا را دې پورې يعني کله کله وي تنازع د فعلينو واقع په فاعليت او مفعوليت کې په حال |
| كَوْنِ الفِعْلَيْنِ مُخْتَلِفَيْنِ فِي الْاِقْتِضَاءِ وَ ذٰلِکَ لَا يُتَصَوَّرُ اِلَّا اِذَا كَانَ الاِسْمُ الظَّاهِرُ |
| کون د دې کې چې وي دا دواړه فعلين مختلفين په اقتضاء کې او دا نه متصور کيږي مگر چې کله په اسم ظاهر کې |
| المُتَنَازَعُ فِيْهِ وَاحِدًا وَاِنَّمَا لَمْ يُوْرِدْ مِثَالًا لِلْقِسْمِ الثَّالِثِ لِاَنَّهٗ اِذَا اُخِذَ فِعْلٌ مِنَ الْمِثَالِ الْاَوَّلِ وَفِعْلٌ |
| متنازع فيه يو وي او را يې نه وړو مثال د پاره د دريم قسم خکه چې کله وا خستل شي يو فعل د اول مثال نه او يو فعل |
| مِنَ الْمِثَالِ الثَّانِيْ حَصَلَ مِثَالٌ لِلْقِسْمِ الثَّالِثِ وَذٰلِکَ يُتَصَوَّرُ عَلٰی وُجُوْهٍ كَثِيْرَةٍ مِثْلُ ضَرَبَنِيْ وَضَرَبْتُ زَيْدًا وَ |
| د دويم مثال نه نو حاصل به شي مثال د دريم قسم د پاره او دا متصور کيږي په ډيرو وجهو سره لکه ضربني وضربت زيداً و |
| اَكْرَمَنِيْ وَاَكْرَمْتُ زَيْدًا اَوْ ضَرَبَنِيْ وَاَكْرَمْتُ زَيْدًا اَوْ اَكْرَمَنِيْ وَضَرَبْتُ زَيْدًا اَوْ غَيْرُ ذٰلِکَ مِمَّا يَكُوْنُ الاِسْمُ الظَّاهِرُ مَرْفُوْعًا |
| اکرمني و اکرمتُ زيداً و ضربني و اکرمت زيدا و اکرمني وضربت زيدا او غير د دې نه هغه چې اسم ظاهر مرفوع وي. |

**خلاصه د متن:** په ذکر شوي پورتني عبارت کې د تنازع الفعلين څلور صورتونه ذکر کړي شو چې د دې وضاحت په مخکنې متن کې شوي دي.

**اغراض د جامي:** فقد يكون: په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د اقسامو د تنازع دې چې تنازع په درې (۳) قسمه ده:

(۱) تنازع په فاعليت کې وي (يعني اول فعل د اتقاضا کوي چې اسم ظاهر دې زما د پاره فاعل شي او دويم فعل د اتقاضا کوي چې اسم ظاهر دې زما د پاره فاعل شي) لکه ضربني و اکرمني زيد.

(۲) تنازع په مفعوليت کې وي (يعني اول فعل د اتقاضا کوي چې اسم ظاهر دې زما د پاره مفعول شي او دويم فعل دا تقاضا کوي چې اسم ظاهر دې زما د پاره مفعول شي) لکه ضربت و اکرمت زيداً.

(۳) تنازع په فاعليت او مفعوليت دواړو کې وي په دې طريقه باندې چې دواړه فعله من حيث الاقتضاء مختلف وي لکه ضربني و اکرمت زيداً.

تنازع الفعلين : په دې عبارت کې شارح د يکون د ضمير مرجع بيان کړه چې مرجع يې تنازع الفعلين دي .

بأن يقتضي : په دې عبارت سره غرض د شارح د تنازع الفعلين في الفاعلية صورت بيانول دي چې د تنازع في الفاعلية صورت دا دې چې د فعلينو نه هر يو د دې خبرې تقاضا کوي چې اسم ظاهر زما فاعل جوړ شي .

فيكونان : دا په ماقبل باندې د تفريع بيان دي چې په دې صورت کې فعلين په اقتضاء د فاعليت کې متفق وي لکه ضربني واکرمني زيد په دې کې دواړه فعل د ضربني او اکرمني زيد د خپل فاعل جوړولو خواهشمند اوآرزومند دي اودواړه په زيد کې متفق دي .

بأن يقتضي : په دې عبارت سره غرض د شارح د تنازع في المفعوليت صورت بيانول دي چې د فعلينو نه هر يو د دې خبرې تقاضاکوي چې اسم ظاهر دې زما مفعول جوړ شي .

فيكونان : دا په ماقبل باندې د تفريع بيان دي چې تنازع في المفعوليت په صورت کې فعلين د مفعول د تقاضا کولو کې متفق وي لکه ضربت واکرمت زيدا په دې دواړه فعل ضربت او اکرمت د دې نه هر يو زيد خپل مفعول جوړولو خواهش او آرزو لري اودواړه په اقتضاء د مفعوليت کې متفق دي په دې دواړو ځايونو کې د فيكونان متفقين د اضافه کولو وجه داده چې د مصنف د قول مختلفين تقابل صحيح شي .

وذلك يكون : په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : چې کله تنازع په فاعليت اومفعوليت کې وي نو ظاهره داده چې دا دواړه فعله من حيث الاقتضاء مختلف وي لهذا د فاعليت اومفعوليت نه پس د مختلفين ذکر کول مستدرک اوبې فائدې شو.

**جواب** : د تنازع في الفاعلية والمفعولية دوه صورتونه دي : (۱) د فعلينو نه هر يو فعل اسم ظاهر خپل فاعل جوړول غواړي اودويم اسم ظاهر خپل مفعول جوړول غواړي اودا په دې طريقه باندې وي چې متنازع فيه اسم ظاهر دوه وي لکه ضرب واهان زيد عمروا ، په دې مثال کې هر يو فعل زيد خپل فاعل او عمروا خپل مفعول جوړولو تقاضا کونکي دي ليکن دا قسم د مذکوره دوه قسمونو اجتماع ده مقابل نه دي . (۲) د فعلينو نه هر يو فعل اسم ظاهر خپل فاعل جوړول

غواړي او دويم فعل همدا اسم ظاهر خپل مفعول جوړول غواړي په دې طريقې سره چې متنازع فيه اسم ظاهر يو وي لکه ضربني واکرمت زيد په دې مثال کې فعل اول ضربني زيد خپل فاعل جوړول غواړي اودويم فعل اکرمت ، زيد خپل مفعول جوړول غواړي په دې صورت کې دواړه فعل په اقتضاء کې مختلف دي ځکه چې دادويم قسم داول دوه قسمونو اجتماع نه ده بلکه مقابل دي نومصنف دې قسم دتخصيص دپاره خپل قول مختلفين اضافه وکړه .

<u>يعني قد يكون</u>: په دې عبارت کې شارح دري خبرو طرف ته اشاره وکړه : (۱) دې خبرې طرف ته يې اشاره کړي چې دعامل معنئ هغه فعل دي کوم چې مستفاد وي دضمير نه کوم چې مصدر طرف ته راجع وي لهذا تقدير دعبارت داسې دي چې قد يكون تنازع الفعلين واقعا في الفاعلية والمفعولية حال كون الفعلين مختلفين في الاقتضاء .

<u>وانما لم يورد</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ددې څه وجه ده چې مصنف داول قسم مثال يې هم ذکر کړي او ددوهم قسم مثال يې هم ذکر کړي ليکن ددريم قسم مثال يې نه دي ذکر کړي .

**جواب** : شارح ددې نه دوه جوابه ورکړي دي :

**جواب (۱)** : ددريم قسم مثال سهل الحصول وو ددې وجې نه مصنف ذکر نه کړو ، اوسهل الحصول ددې وجې نه وو که چيرته داول قسم مثال نه يوفعل واخستل شي اودويم قسم دمثال نه هم يوفعل واخستل شي نوددريم قسم مثال ترې جوړيږي لکه ضربني واکرمت زيداً .

**جواب (۲)** : وذلک يتصور : په دې عبارت سره غرض دشارح ددويم جواب بيان دي چې حاصل يې دادې چې ددريم قسم مثالونه ډير دي ددې اته مثالونه متصورکيدي شي : (۱) داول قسم دمثال نه اول فعل اودويم قسم دمثال نه هم اول واخستل شي لکه ضربني وضربت زيداً . (۲) د اول قسم مثال نه دويم فعل اودويم قسم دمثال نه هم دويم فعل واخستل شي لکه اکرمني و اکرمت زيداً . (۳) داول قسم دمثال نه اول فعل اودويم قسم دمثال نه دويم فعل واخستل شي لکه ضربني واکرمت زيداً . (۴) داول قسم د مثال نه دويم فعل اودويم قسم دمثال نه اول فعل واخستل شي لکه اک مني وضربت زيداً . داڅلور صورتونه دي که چيرته دا څلور منعکس کړي شي چې عامل ناصب په رافع باندې مقدم کړي شي نو مزيد څلور مثالونه به حاصل شي :

(۱) ضربت وضربني زيداً (۲) اكرمت واكرمني زيداً (۳) اكرمت وضربني زيداً (۴) ضربت واكرمني زيداً . چونکې ددې مثالونه ډير دي ددې وجې نه ددې خاص مثال يې ذکر نه کړو .

## اختلاف د نحويانو :

| |
|---|
| فَيَخْتَارُ النُّحَاةُ الْبَصْرِيُّوْنَ اِعْمَالَ الْفِعْلِ الثَّانِيْ لِقُرْبِهٖ مَعَ تَجْوِيْزِ اِعْمَالِ الْاَوَّلِ |
| نو غوره کوي نحويان دبصرې عمل ورکول دويم فعل ته دوجې دقربت نه سره دجائز کيدو نه عمل ورکول اول فعل ته |
| وَ يَخْتَارُ النُّحَاةُ الْكُوْفِيُّوْنَ الْاَوَّلَ اَیْ اِعْمَالَ الْفِعْلِ الْاَوَّلِ مَعَ تَجْوِيْزِ اِعْمَالِ الثَّانِيْ |
| او غوره کړي نحويانو دکوفې اول يعني عمل ورکول اول فعل ته سره دجائز کيدو نه عمل ورکول دويم فعل ته دوجې د |
| لِسَبْقِهٖ وَلِلْاِحْتِرَازِ عَنِ الْاِضْمَارِ قَبْلَ الذِّكْرِ. |
| سبقت نه او دخان ساتلو داضمار قبل الذکر نه . |

**دمتن خلاصه:** دفيختار نه صاحب دکافيې په تنازع دفعلينو کې اختلاف دنحويانو بيانوي چې حاصل يې دادې چې دبصرې نحويان دويم فعل ته عمل ورکول راجح ګڼي دوجې دقرب اودنژدې والي نه ، خو اول فعل ته عمل ورکول هم جائز ګڼي ، اونحويان دکوفې اول فعل ته عمل ورکول راجح ګڼي دوجې دسبقت نه خو دويم فعل ته عمل ورکول هم جائز ګڼي .

**اغراض دجامي:** النحاة: په دې عبارت سره غرض دشارح دحذف موصوف طرف ته اشاره کړې ځکه البصريون اسم منسوب دي اواسم منسوب دمشتق په حکم کې وي اواسم مشتق صيغه دصفت وي کوم چې دموصوف تقاضا کوي نو النحاة سره يې موصوف ذکر کړو همدارنګې دې خبرې طرف ته يې اشاره وکړه چې دالبصريون نه مراد ټول بصريان نه دي بلکې نحويان دبصرې مراد دي .

**الفعل:** په دې عبارت سره شارح اشاره وکړه چې الثاني صفت دي دمحذوف موصوف الفعل دپاره.

**لقربه:** په دې عبارت سره غرض دشارح دبصرې دنحويانو دليل بيانول دي .

**دليل دبصريينو:** دبصرې دنحويانو په نزد دويم فعل ته عمل ورکول اولى دي ځکه چې دويم فعل اسم ظاهر ته ډير نژدې دي او د الحق للجار قاعدې لاندې اقرب دمطلوب حاصلولو زيات مستحق دي ، لهذا دويم فعل ته عمل ورکول اولى دي (۲) همدارنګې اول ته عمل ورکولو سره د عامل او د معمول په مينځ فصل په اجنبي سره به لازم راشي کوم چې په باب د تنازع د فعلينو

کې ترجيح جائز دي ليکن غير مستحسن دي

**مع تجويز اعمال الاول**: په دې عبارت سره شارح داظاهروي چې دمصنف عبارت **فيختار** کې اختيار په معنی داولويت اودترجيح سره دي نه په معنی دقطع اودجزم اولزوم سره مطلب دادې چې دبصريانو په نزد دويم فعل ته عمل ورکول اولی اوراجح دي لازم او واجب نه دي ځکه چې اول فعل ته عمل ورکول هم جائز دي ګويا چې اختلاف په اولويت اوعدم اولويت کې دي نه په جواز اوعدم جواز کې.

**ويختار النحاة**: په دې عبارت سره غرض دشارح دعطف دتعين بيان دي چې دالکوفيون عطف په **البصريون** باندې دې.

**اعمال الفعل**: په دې عبارت سره شارح داوضاحت کوي چې **الاول** داصفت دي دموصوف محذوف **الفعل** دپاره بياموصوف اوصفت يوځاي شودمضاف محذوف دپاره مضاف اليه شو کوم چې اعمال دي.

**مع تجويز اعمال الثاني**: په دې عبارت سره شارح اشاره کړي ده دمصنف په عبارت کې داختيار نه مراد اختيار په طريقې دترجيح سره دي نه په طريقې دقطعې اودلزوم سره ، لکه مخکې ددې ذکر شوي دي.

**لسبقه**: په دې عبارت سره شارح دکوفې دنحويانو دليل بيانوي:

**دکوفيانو دليل**: دکوفيانو دليل دادې چې ددوي په نزد اول فعل ته عمل ورکول اولی دي ځکه چې اول فعل په طلب دمعمول کې مقدم دي لهذا دمخکې کيدو دوجې نه معمول دفعل د حاصلولو زيات مستحق دي لکه په عام عرف کې ويلي شي چې مخکې راشي ، اومخکې خپل مقصود حاصل کړئ ، يعنې اول راشي او مقصود دټولو نه اول حاصل کړي ، او يا د عربي مقوله ده چې **الحق للمتقدم** ،حق دمخکنې دپاره دي.

**وللاحتراز**: په دې عبارت سره شارح دکوفيانو دويم دليل بيانوي چې که چيرته دويم فعل ته عمل ورکړل شي دتنازع درفع کولو دپاره په اول فعل کې دفاعل ضمير راوړل شي نوپه دې صورت کې به اضمار قبل الذکر راشي کوم چې جائز نه دي ددې وجې نه اول فعل ته عمل ورکول اولی دي.

# د بصرينو په نزد د قطع د تنازع طريقه :

فَإِنْ أَعْمَلْتَ الْفِعْلَ الثَّانِيَ كَمَا هُوَ مَذْهَبُ الْبَصْرِيِّيْنَ بَدَأَ بِهِ لِأَنَّهُ الْمَذْهَبُ الْمُخْتَارُ

که چیرته عمل ورکړي دویم فعل ته لکه دا مذهب د بصرینو دي په دې یې شروع وکړه ځکه چې دا مختار مذهب دي

الْأَكْثَرُ اِسْتِعْمَالًا أَضْمَرْتَ الْفَاعِلَ فِي الْفِعْلِ الْأَوَّلِ إِذَا اقْتَضَى الْفَاعِلَ لِجَوَازِ الْإِضْمَارِ قَبْلَ

او زیات مستعمل دي نو مضمر به کړي فاعل په اول فعل کې چې کله تقاضا د فاعل کوي دوجې د جواز د اضمار قبل

الذِّكْرِ فِي الْعُمْدَةِ بِشَرْطِ التَّفْسِيْرِ وَلِلُزُوْمِ التَّكْرَارِ بِالذِّكْرِ وَامْتِنَاعِ الْحَذْفِ عَلَى وَفْقِ الْإِسْمِ الظَّاهِرِ الْوَاقِعِ بَعْدَ

الذکر په عمده کې په شرط د تفسیر او د لزوم د تکرار په ذکر سره او امتناع د حذف موافق د اسم ظاهر چې واقع وي پس

الْفِعْلَيْنِ أَيْ عَلَى مُوَافَقَتِهِ إِفْرَادًا وَتَثْنِيَةً وَجَمْعًا وَتَذْكِيْرًا وَتَأْنِيْثًا لِأَنَّهُ مَرْجِعُ الضَّمِيْرِ وَالضَّمِيْرُ يَجِبُ أَنْ يَكُوْنَ

د فعلینو یعني د دې موافق مفرد، تثنیه، جمع، مذکر، مؤنث ځکه چې دا مرجع د ضمیر ده او ضمیر واجبوي چې وي

مُوَافِقًا لِلْمَرْجِعِ فِي هٰذِهِ الْأُمُوْرِ دُوْنَ الْحَذْفِ لِأَنَّهُ لَا يَجُوْزُ حَذْفُ الْفَاعِلِ إِلَّا إِذَا سُدَّ

موافق د مرجع سره په دې امورو کې نه په حذف کې ځکه چې نه دي جائز حذف کول د فاعل مګر کله چې قائم شي یو

شَيْءٌ مَسَدَّهُ خِلَافًا لِلْكِسَائِيِّ فَإِنَّهُ لَا يُضْمِرُ الْفَاعِلَ بَلْ يَحْذِفُهُ تَحَرُّزًا

څیز قائمقام د دې خلاف ثابت دي د کسائي ځکه چې هغه نه مضمر کوي فاعل بلکې حذف کوي فاعل د وجې د ځان

عَنِ الْإِضْمَارِ قَبْلَ الذِّكْرِ وَ يَظْهَرُ أَثَرُ الْخِلَافِ فِي نَحْوِ ضَرَبَانِيْ وَأَكْرَمَنِيْ الزَّيْدَانِ عِنْدَ الْبَصْرِيِّيْنَ

ساتلو د اضمار قبل الذکر نه او ظاهر یږي اثر د اختلاف په دې مثال کې لکه ضربانی واکرمنی الزیدان په نزد د بصرینو

وَضَرَبَنِيْ وَأَكْرَمَنِيْ الزَّيْدَانِ عِنْدَ الْكِسَائِيِّ وَجَازَ أَيْ إِعْمَالُ الْفِعْلِ الثَّانِيْ مَعَ اقْتِضَاءِ الْفِعْلِ الْأَوَّلِ الْفَاعِلَ

وضربني واکرمني الزیدان په نزد د کسائي او جائز دي یعني عمل ورکول دویم فعل ته سره د اقتضاء د اول فعل نه د فاعل

خِلَافًا لِلْفَرَّاءِ فَإِنَّهُ لَا يَجُوْزُ إِعْمَالُ الْفِعْلِ الثَّانِيْ عِنْدَ اقْتِضَاءِ الْأَوَّلِ الْفَاعِلَ

خلاف ثابت دي د فراء د پاره ځکه چې هغه نه جائزوي عمل ورکول دویم فعل ته په وخت د اقتضاء د اول فعل کې فاعل

لِأَنَّهُ يَلْزَمُ عَلَى تَقْدِيْرِ إِعْمَالِهِ إِمَّا الْإِضْمَارُ قَبْلَ الذِّكْرِ كَمَا هُوَ مَذْهَبُ الْجُمْهُوْرِ أَوْ حَذْفُ

لره ځکه چې لازمیږي په تقدیر د عمل ورکولو ده کې یا اضمار قبل الذکر لکه دا مذهب د جمهورو دي او یا حذف د

الْفَاعِلِ كَمَا هُوَ مَذْهَبُ الْكِسَائِيِّ بَلْ يَجِبُ عِنْدَهُ إِعْمَالُ الْفِعْلِ الْأَوَّلِ فَإِنِ اقْتَضَى الثَّانِيْ

فاعل لکه دا مذهب د کسائي دي بلکې واجب دي د ده په نزد عمل ورکول اول فعل ته که چیرته تقاضا کوله دویم فعل

الْفَاعِلَ أَضْمَرْتَهُ وَ إِنِ اقْتَضَى الْمَفْعُوْلَ حَذَفْتَهُ أَوْ أَضْمَرْتَهُ تَقُوْلُ

د فاعل نو فاعل ته به ضمیر ورکړي او که چیرته تقاضا کوله د مفعول نو مفعول به حذف کړي او یا به یې مضمر کړي نو

ضَرَبَنِيْ وَ أَكْرَمَانِي الزَّيْدَانِ وَلَا يَلْزَمُ حِيْنَئِذٍ مَحْذُوْرٌ وَ قِيْلَ رُوِيَ عَنْهُ

وایی به ضربني واکرماني الزیدان او نه دي لازم په دې وخت کې کومه خرابي او چاویلي دي چې د دوي نه روایت شوي

| |
|---|
| تَشْرِيْكُ الرَّافِعَيْنِ اَوْ اِضْمَارُهُ بَعْدَ الظَّاهِرِ كَمَا فِيْ صُوْرَةِ تَاخِيْرِ النَّاصِبِ تَقُوْلُ ضَرَبَنِيْ وَ |
| دواړه عامل رافع شريکول يا مضمر کول پس د اسم ظاهر نه لکه په صورة د تاخير د عامل ناصبه کي نو وايي به ضربني و |
| اَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ هُوَ وَ ضَرَبَنِيْ وَ اَكْرَمْتُ زَيْداً هُوَ وَرِوَايَةُ الْمَتْنِ غَيْرُ مَشْهُوْرَةٍ عَنْهُ وَحَذَفْتَ الْمَفْعُوْلَ |
| اکرمني زيد هو و ضربني و اکرمت زيدا هو او روايت د متن دا غير مشهور دي د ده نه او حذف به کړي مفعول د وجي د |
| تَحَرُّزًا عَنِ التَّكْرَارِ لَوْ ذُكِرَ وَعَنِ الْاِضْمَارِ قَبْلَ الذِّكْرِ فِي الْفُضْلَةِ لَوْ اُضْمِرَ اِنِ اسْتُغْنِيَ عَنْهُ وَ |
| خان ساتلو د تکرار نه که چيرته ذکر کړي شي او د اضمار قبل الذکر نه په فضله کي که چيرته مضمر کړي شي او که |
| اِلَّا اَیْ وَ اِنْ لَمْ يُسْتَغْنَ عَنْهُ اَظْهَرْتَ اَيِ الْمَفْعُوْلَ نَحْوُ |
| چيرته مستغني وي د دې نه او که چيرته نه وي يعني که چيرته مستغني نه وي نو ظاهر به کړي يعني مفعول لکه |
| حَسِبَنِيْ مُنْطَلِقًا وَحَسِبْتُ زَيْدًا مُنْطَلِقًا لِاَنَّهُ لَايَجُوْزُ حَذْفُ اَحَدِ مَفْعُوْلَيْ بَابِ حَسِبْتُ وَلَا يَجُوْزُ اِضْمَارُهُ |
| حسبني منطلقا و حسبتُ زيداً منطلقا ځکه چې نه دي جائز حذف يو د مفعولينو د باب حسبت او نه دي جائز اضمار د دې |
| لِئَلَّا يَلْزَمُ الْاِضْمَارُ قَبْلَ الذِّكْرِ فِي الْفُضْلَةِ . |
| ځکه چې لازميږي اضمار قبل الذکر په فضله کي . |

**خلاصه د متن:** د دې ځاې نه صاحب د کافيې طريقه د قطع د تنازع په نزد د بصرينو د تفصيل بيان کوي چې که چيرته د بصرې د نحويانو د مذهب مطابق دويم فعل ته عمل ورکړي نو کتلې به شي چې اول د فاعل تقاضا کوي يا د مفعول که چيرته د فاعل تقاضا يې کوله نو اول کې به د فاعل ضمير راوړې شي کوم چې په مفرد ،تثنيه ،جمع ،مذکر مؤنث کې د اسم ظاهر موافق وي.

**خلافاً للكسائي:** ليکن د امام کسائي په دې کې اختلاف دي هغه داوايي چې په اول فعل کې به فاعل حذف کولې شي ضمير به نه شي راوړې ځکه چې که چيرته ضمير راوړې شي نو اضمار قبل الذکر به لازم راشي کوم چې صحيح نه دي .

**اغراض د جامي:** وجاز خلافا للفراء : د دې نه پس د امام فراء مسلک بيانوي چې که چيرته اول فعل د فاعل تقاضا کوي نود جمهورو په نزد دويم فعل ته عمل ورکول هم جائز دي البته په راجح والي کې اختلاف دي ليکن امام فراء د جمهورو مخالفت کوي او وايي چې دويم فعل ته عمل ورکول د سره جائز نه دي بلکه اول فعل ته عمل ورکول واجب دي او که چيرته اول فعل د مفعول تقاضا کوي نود بصرې د نحويانو د مذهب مطابق د تنازع د رفع صورت دا دې چې دا به کتلې شي د مفعول د ذکر نه استغناء ده او که نه يعني مفعول که چيرته ذکر نه کړي شي نو کومه خرابي لازم راځي او که نه ، که چيرته استغناء وه نو د اول فعل مفعول به حذف منلې شي او دا به

ذکر کولې هم نه شي او ددې دپاره به ضمير هم نه شي راوړلې او که چيرته د مفعول ذکر نه اسغنا نه راتله يعنې ددې ذکر کول ضروري وي نو داول فعل مفعول به ظاهرولې شي عدم اسغنا به په هغه وخت کې وي چې کله دامفعول دافعال قلوبو ددوه مفعولونه ديو مفعول ثاني وي او ددې مفعول اول ذکروي ځکه چې په افعال قلوبو کې ضابطه اوقاعده داده چې ددې دوه مفعولونو نه د يو مفعول ذکر کول او ددوهم حذف کول جائز نه دي .

الفعل: په دې کې شارح داظاهروي چې الثاني داصفت دي دموصوف محذوف دپاره کوم چې الفعل دي

کما هو مذهب البصرين: په دې عبارت کې شارح دابيانوي چې داتفصيل دبصرينو دمذهب مطابق دي

وبدأ: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مصنف په اجمال اوتفصيل کې دبصرينو مذهب ولې مقدم کړي ؟

**جواب** : چونکې دبصرينو مذهب مختار اوکثير الاستعمال وو نو ددې وجې نه يې دامقدم کړو .

الفعل: په دې عبارت سره غرض دشارح دابيانول دي چې الاول داصفت دي دموصوف محذوف دپاره کوم چې الفعل دي .

اذااقتضى الفاعل: دادمصنف دقول اضمرت الفاعل ظرف دي مطلب دادې چې کله اول فعل دفاعل تقاضا وکړي نو په اول فعل کې به دفاعل ضمير راوړلې شي .

لجواز الاضمار: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : که چيرته دويم فعل ته عمل ورکړې شي او په اول فعل کې دفاعل ضمير راوړې شي نوداضمير به وروسته اسم ظاهرطرف ته راجع وي نوددې نه اضمار قبل الذکر به لازم راشي کوم چې جائز نه دي .

**جواب** : اګرچې اضمار قبل الذکر لازم راځي ليکن فاعل په کلام کې عمده وي او په عمده کې اضمار قبل الذکر په شرط دتفسير سره جائز دي يعنې که چيرته دعمده في الکلام مخکې تفسير کيږي نو په دې کې اضمار قبل الذکر جائز دي .

وللزوم التكرار: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب وركول دي

**سوال**: دبصري نحويان داضمار قبل الذكر ارتكاب ولې كوي حالانكې درفع دتنازع دپاره دوه طريقې نورې هم دي: (۱) داول فعل فاعل ذكر كول. (۲) داول فعل فاعل حذف منل.

**جواب (۱)**: كه چيرته درفع دتنازع دپاره فاعل ذكر كړي شي نو تكرار به لازم راشي كوم چې دفصاحت خلاف دي.

**جواب (۲)**: اوكه چيرته فاعل حذف ومنلې شي نوداهم غلط دي ځكه چې عمده في الكلام حذف كول ممنوع دي، اوس درفع دتنازع يو صورت پاتې شو اوهغه ضمير راوړل ددې وجې نه بصرينو دا اختيار كړو.

الواقع بعد الفعلين: په دې عبارت كې شارح دابيانوي چې داسم ظاهر نه مراد هغه اسم ظاهر دي چې ددوه فعلينو نه پس واقع وي.

اى على موافقته: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال**: وفق مصدر باب مجرد دي حالانكه ددې باب مجرد غير مستعمل دي.

**جواب**: مصدر مجرد په معنى دمزيد سره ده وفق په معنى دموافقت.

ياپه بل عنوان چې دسوال صورت داسې دي چې دوفق معنى ده ددوه شيانوپه خپل مينځ كې مطابق اوموافق كيدل نودالفظ د نسب متكرره نه دي اوكوم لفظ چې دنسب متكرره نه وي هغه دمفاعله په وزن راځي لكه مضاربة يو بل وهل، نوجواب يې وركړوچې دلته وفق په معنى دموافقت دي دقبيلې دذكركولودمجردو اود اراده كولو دمزيد.

**سوال**: بياسوال واردېږي چې دضمير موافقت داسم ظاهر سره ناممكن دي ځكه چې ضمير هميشه معرفه وي اواسم ظاهر كله معرفه وي اوكله نكره.

**جواب**: نو په افرادوتثنيه سره يې جواب وركړو چې دموافقة نه موافقة في الافراد والتثنيه والجمع مراد دي نه في التعريف والتنكير.

لانه مرجع الضمير: په دې عبارت سره غرض دشارح په پينځو امورو مذكورو كې دضمير داسم ظاهرسره دموافقت دضروري كيدووجه بيان كړي ده چې دضميرمرجع اسم ظاهردي اوپه راجع او مرجع كې په دې پنځوامورومذكوروكې مطابقت واجبېږي ددې وجې نه ضميرپه دې پنځو

امورو کې داسم ظاهر سره موافق کېدل ضروري دي .

دون الحذف: غرض دصاحب دکافيې په دې عبارت سره دابيانول دي چې په اول فعل کې دفاعل دپاره به ضمير راوړلې شي اودافاعل به حذف کولې نه شي .

لانه لايجوز: په دې عبارت سره ددې دليل بيانوي چې دفاعل حذف ددې وجې نه جائز نه دي چې په دې صورت کې په اول فعل کې دفاعل ضميردي کوم چې عمده دي لهذا که چيرته فاعل حذف کړي شي نو دعمده حذف به لازم راشي کوم چې جائز نه دي مګر چې کله ددې قائمقام موجود وي اودلته ددې قائمقام موجود نه دي نوددې وجې نه حذف جائز نه دي .

خلافاللکسائي فانه لايضمر الفاعل: په دې عبارت سره غرض دشارح دکسائي داختلاف وضاحت کول دي کسائي وايي چې په اول کې به فاعل حذف منلې شي اوضمير به نه شي راوړلې ځکه چې دضمير په صورت کې به اضمار قبل الذکر لازم راشي اواضمارقبل الذکر دکسائي په نزد په عمده کې په شرط دتفسير هم جائز نه دي .

ويظهر اثر الخلاف: په دې عبارت سره غرض دشارح دعامو نحويانودبصري اودامام کسائي په مينځ کې داختلاف ثمره بيانول دي چې ددواړو په مينځ کې ثمره داختلاف په تثنيه اوجمع کې به ظاهر وي نه په مفرد کې ځکه چې دجمهورو نحويانو دبصري په نزد په مفرد کې به ضربني واکرمني زيد وي اودامام کسائي په نزد هم همدارنګې وي ليکن ثمره داختلاف په تثنيه اوجمع کې ظاهريږي .

چنانچه دعامو نحويانو دبصرې په نزد په تثنيه کې به داويلې شي ضرباني واکرمني الزيدان ځکه چې په ضرباني کې به دفاعل ضمير راويستلې شي اودابه راجع وي وروسته الزيدان طرف ته نودراجع اودمرجع په مينځ کې مطابقت ضروري دي نوضرباني به وايي اود امام کسائي په نزد باندې حذف دفاعل سره به داوايي چې ضربني واکرمني الزيدان ، نو دضربني نه پس دالزيدان فاعل به محذوف وي په اصل کې دا داسې وو چې ضربني الزيدان واکرمني الزيدان فاعل چونکې اسم ظاهر دي ددې وجې نه به فعل واحد پاتې وي برابره خبره ده که فاعل تثنيه وي اوکه جمع .

همدارنګې په جمع کې دعامو نحويانو دبصرې په نزد ضربوني واکرمني الزيدون په اضمار دفاعل سره به وي اودامام کسائي په نزد ضربني واکرمني الزيدون په حذف دفاعل سره به وي .

**تبصره** : حق د جمهورو علماء سره دي په فاعل کې اضمار اولی دي د حذف نه اګرچې اضمار قبل الذکر د فاعل او حذف د فاعل دواړه خلاف قیاس دي لیکن اضمار قبل الذکر په کلام د عربو کې موجود او مستعمل دي مثلاً ضمیر د شان ،ضمیر د قصه په خلاف د حذف د فاعل چې دا په کلام د عربو کې بالکل موجود نه دي لهذا د کسائي مذهب مرجوح دي ځکه چې دوي د شنیع (اضمار قبل الذکر ) نه ځان ساتلې لیکن د اشنع ( حذف د فاعل ) ارتکاب یې کړي ګویا چې فر من المطر وقام تحت المیزاب ، لکه په پښتو کې متل دي چې : دباران نه تختیدم او د ناوې لاندې مې شپه شوه .

**فائده** : په پنځو ځایونو کې اضمار قبل الذکر جائز دي : (۱) ربه رجلاً . (۲) په ضمیر شان کې لکه قل هو الله احد . (۳) نعم رجلاً زید ، په نعم کې ضمیر دي کوم چې زید طرف ته راجع دي . (۴) په تنازع الفعلین کې . (۵) چې کله اسم ظاهر په ضمیر سره بدل کړي شي لکه ضربه زیداً .

وجاز خلافاً للفراء : دا جمله معترضه ده ددې نه د امام فراء مذهب بیانول مقصود دي که چیرته اول فعل د فاعل تقاضا وکړي نو د جمهورو په نزد دویم فعل ته عمل ورکول جائز دي لیکن امام فراء د جمهورو مخالفت کوي او وایي چې دویم فعل ته عمل ورکول جائز نه دي بلکه اول فعل ته عمل ورکول واجب دي .

لانه یلزم : په دې عبارت کې شارح د امام فراء دلیل بیانوي چې که چیرته دویم فعل ته عمل ورکړي او اول فعل د فاعل تقاضا وکړي نو دوه حالتونو نه به خالي نه وي : (۱) یا به د فاعل د پاره ضمیر راوړې شي نو اضمار قبل الذکر به لازم راشي لفظاً اورتبةً . (۲) یا به فاعل حذف کوې نو د عمده حذف لازم راځي او دا دواړه امره ممنوع دي لهذا دویم فعل ته عمل ورکول جائز نه دي بلکې اول فعل ته عمل ورکول واجب دي بیا به کتلې شي چې دویم فعل د فاعل تقاضا کوي یا د مفعول که چیرته د فاعل تقاضا کوي نو په فعل ثاني کې به د فاعل ضمیر راوړې شي کوم چې راجع وي اسم ظاهر مابعد طرف ته نو په دې صورت کې به لفظاً اضمار قبل الذکر لازم راشي لیکن رتبتاً به رانه شي،او داسې اضمارقبل الذکر جائز دي او که چیرته دویم فعل د مفعول تقاضا وکړي نو په دې کې دوه صورتونه جائز دي :

(۱) مفعول حذف کول ځکه چې مفعول په کلام کې فضله واقع کیږي او د فضله حذف کول جائز دي .

(۲) د مفعول دپاره به ضمیر راوړلې شي چې مرجع به يې اسم ظاهر وي اګرچې لفظاً ددې نه مؤخروي لیکن رتبتاً به مقدم وي لهذا اضمار قبل الذکر لفظاً اورتبةً لازم رانه غلو بلکې فقط لفظاً لازم راغلوکوم چې جائزدي ځکه چې اسم ظاهر داول فعل معمول دي او اول فعل ددویم فعل نه مقدم دي

**قیل روي عنه**: دامام فراء دمتن دروایت نه غیر دوه روایتونه نور هم دي: (۱) تشریک رافعین یعني اسم ظاهر په طریقې داشتراک ددواړو فعلینو معمول جوړکړي شي په دې صورت کې توارد العلتین علی معلول واحد به لازم راشي کوم چې جائز نه دي. (۲) اسم ظاهر ددویم فعل معمول جوړکړي شي اوداول فعل دفاعل دپاره داسم ظاهر نه پس ضمیر منفصل راوړې شي لکه ضربني واکرمني زید هو لکه دناصب دتاخیر په صورت کې کولې شي یعني چې کله اول فعل دفاعل تقاضا وکړي اودویم دمفعول تقاضا وکړي نوفراء وايي چې دویم فعل ته به عمل ورکولې شي اواول فعل دفاعل دپاره داسم ظاهر نه پس ضمیر راوړې شي لکه ضربني واکرمت زیداً هو.

نودامام فراء ددې روایت مطابق تنازع په دې طریقې باندې رفع کولې شي چې زید ته به ددویم فعل یعني اکرم فاعل جوړکړي اواول فعل دفاعل دپاره د اسم ظاهر نه پس ضمیر راوړې شي اوداوویلي شي ضربني واکرمني زید هو او ضربني واکرمت زیداً کې رفع دتنازع په دې طریقې باندې وې چې زید به ددویم فعل اکرمت مفعول جوړکړي شي اواول فعل ضربني دفاعل دپاره داسم ظاهر نه پس ضمیر منفصل به راوړې شي ضربني واکرمت زیداً هو.

**وروایة**: په دې عبارت سره غرض دشارح په صاحب دکافیې باندې اعتراض کول دي:

**اعتراض**: صاحب دکافیې په متن کې دامام فراء چې کوم روایت نقل کړي دي هغه روایت مشهور نه دي مصنف ته په کاروو چې ده مشهور روایت ذکر کړي وي.

**جواب**: بعضې حضراتو د مصنف د طرف نه جواب ورکوي چې غیر مشهور روایت يې ددې وجې نه ذکر کړو چې دا غیر مشهور هم مشهور شي.

**وحذفت**: دمتن ددې عبارت عطف په اضمرت الفاعل باندې دي دعبارت حاصل دادې چې که چیرته دبصرې دنحویانو دمذهب مطابق دویم فعل ته عمل ورکړي شي اواول فعل دمفعول

تقاضا کوي نو دوه صورتونه دي

(۱) دمفعول دذکر نه استغناء وي (۲) يابه دمفعول دذکر نه استغناء نه وي ، که چيرته استغناء وي يعنې دمفعول ذکر کول ضروري نه وي نو داول فعل مفعول به حذف منلې شي ، اوذکر کولې به نه شي اودده دپاره به ضمير هم نه شي راوړلې .

**تحرزاً**: په دې کې دده خبرې دليل بيانوي چې که چيرته مفعول ذکر کړي نوتکرار به لازم راشي کوم چې **مخل في الفصاحة** دي اوکه چيرته دده دپاره ضمير راوړي نو **اضمار قبل الذکر في الفضلة** به لازم راشي کوم چې جائز نه دي لهذا دتکراراو**داضمار قبل الذکر في الفضلة** نه دبچ کيدو دپاره داول فعل مفعول به حذف منلې شي اوکه چيرته دمفعول دذکر نه استغناء نه وي يعنې دده ذکر کول ضروري وي نو په دې وخت کې به داول فعل مفعول به ظاهرولې شي نه به حذف کولې شي اونه به ضمير راوړې شي اوعدم استغناء به په هغه وخت کې وي چې کله دامفعول د افعال قلوبو ددوه مفعولو نه ديو مفعول ثاني وي او دده مفعول اول مذکور وي لکه **حسبني منطلقاً وحسبت زيداً منطلقا** داپه اصل کې **حسبني وحسبت زيدا منطلقا** وو .

**اولاً** : **حسبني** او**حسبت** په **زيداً** کې تنازع وکړه **حسبني** غواړي چې **زيد** زما فاعل جوړشي او**حسبت** غواړي چې زما مفعول جوړشي نو دبصرې د نحويانو دمذهب مطابق **زيداً** دفعل ثاني **حسبتُ** مفعول جوړ کړي شو او**حسبني** دفاعل دپاره يې ضمير راوړو .

**ثانيا** : **حسبني** او**حسبت** په **منطلقا** کې تنازع وکړه **حسبني** غواړي چې **منطلقاً** دې زما مفعول ثاني جوړ شي او**حسبت** غواړي چې زما مفعول ثاني دې جوړ شي نو دبصرې د نحويانو دمذهب مطابق **منطلقا** د فعل ثاني مفعول ثاني جوړشواوداول فعل مفعول ثاني ظاهر کړي شو نو **حسبني منطلقا وحسبت زيدا منطلقا** شو ،نه يې داحذف کړو اونه يې دده دپاره ضمير راوړو ځکه چې که چيرته حذف کول يې نو د افعال قلوبو ددوه مفعولو نه ديومفعول حذف لازم راتلو کوم چې جائزنه دي ځکه چې دافعال قلوبو دوه مفعوله د مبتدا اوخبر په حکم کې دي نو يو حذف کول دجملې ديو جزء دحذف کولو مترادف به وي کوم چې جائز نه دي اوکه چيرته ضمير راوړي نو **اضمار قبل الذکر في الفضلة** لازم راتلو اوهغه هم جائز نه دي ددې وجې نه داول مفعول دويم فعل مو ظاهر کړو .

## د مثالونو خلاصه د بصريينو د مذهب مطابق :

| صورت د تنازع | اسم ظاهر مفرد | اسم ظاهر تثنيه | اسم ظاهر جمع |
|---|---|---|---|
| دواړه فعله اسم ظاهر فاعل جوړول غواړي | ضربني واكرمت زيداً (په اول فعل كې هو ضمير مستتر دي) | ضرباني واكرمني الزيدان (اول فعل كې الف ضمير تثنيه دي) | ضربوني واكرمني الزيدون (اول فعل كې واو ضمير جمع دي) |
| اول فعل اسم ظاهر فاعل او دويم د دې مفعول جوړول غواړي | ضربني واكرمت زيداً (په اول فعل كې هو ضمير مستتر دي) | ضرباني واكرمت الزيدين (اول فعل كې الف ضمير تثنيه دي) | ضربوني واكرمت الزيدين (اول فعل كې واو ضمير جمع دي) |
| دواړه فعله اسم ظاهر خپل مفعول جوړول غواړي | ضربت واكرمت زيداً | ضربت واكرمت الزيدين | ضربت واكرمت الزيدين |
| اول فعل اسم ظاهر مفعول او دويم د دې فاعل جوړول غواړي | ضربت واكرمني زيد | ضربت واكرمني الزيدان | ضربت واكرمني الزيدون |

## د كوفيانو په نزد طريقه د قطع د تنازع :

وَ اِنْ اَعْمَلْتَ الْفِعْلَ الْاَوَّلَ كَمَا هُوَ مُخْتَارُ الْكُوْفِيِّيْنَ اَضْمَرْتَ الْفَاعِلَ فِي الْفِعْلِ الثَّانِيْ لَوِ اقْتَضَاهُ

كه چيرته عمل وركوي اول فعل ته لكه دا غوره كړي كوفيانو نو مضمر به كړي فاعل په دويم فعل كې كه تقاضايي

نَحْوُ ضَرَبَنِيْ وَ اَكْرَمَنِيْ زَيْدٌ اِذَا جَعَلْتَ زَيْدًا فَاعِلَ ضَرَبَنِيْ وَ اَضْمَرْتَ فِيْ اَكْرَمَنِيْ ضَمِيْرًا

كوله د فاعل لكه ضربني واكرمني زيد چې كله وګرځوې زيد فاعل د ضربني او ضمير وركړي اكرمني ته داسې ضمير

رَاجِعًا اِلٰى زَيْدٍ لِتَقَدُّمِهٖ رُتْبَةً فَلَا مَحْذُوْرَ فِيْهِ حِيْنَئِذٍ لَا حَذْفُ الْفَاعِلِ وَ لَا الْاِضْمَارُ

چې راجع وي زيد ته دوجې د مخكې والي نه رتبةً نو نشته څه مانع په دې كې په دې وخت كې نه حذف د فاعل او

قَبْلَ الذِّكْرِ لَفْظًا وَ رُتْبَةً بَلْ لَفْظًا فَقَطْ وَ هُوَ جَائِزٌ وَ اَضْمَرْتَ الْمَفْعُوْلَ فِي الْفِعْلِ الثَّانِيْ

نه اضمار قبل الذكر لفظاً او رتبةً بلكې لفظاً فقط او دا جائز دي او ضمير به وركړي مفعول ته په دويم فعل كې كه تقاضا

لَوِ اقْتَضَاهُ عَلَى الْمَذْهَبِ الْمُخْتَارِ وَ لَمْ تَحْذِفْهُ وَ اِنْ جَازَ حَذْفُهُ لِئَلَّا يُتَوَهَّمَ اَنَّ مَفْعُوْلَ

يې كوله په غوره مذهب باندې او د ابه نه حذف كوې اګر چې جائز دي حذف د دې څكه چې دا وهم پيدا كيږي چې مفعول

الْفِعْلِ الثَّانِيْ مُغَايِرٌ لِلْمَذْكُوْرِ وَ يَكُوْنُ الضَّمِيْرُ حِيْنَئِذٍ رَاجِعًا اِلٰى لَفْظٍ مُتَقَدِّمٍ رُتْبَةً كَمَا تَقُوْلُ ضَرَبَنِيْ

د دويم فعل داجدا دي د مذكور نه او وي به ضمير په دې وخت كې راجع مخكني لفظ ته رتبتاً لكه چې وايې ضربني

| |
|---|
| وَاَكْرَمْتُهٗ زَيْدٌ اِلَّا اَنْ يَّمْنَعَ مَانِعٌ مِنَ الْاِضْمَارِ كَمَا هُوَ الْقَوْلُ الْمُخْتَارُ وَمِنَ الْحَذْفِ كَمَا هُوَ الْقَوْلُ الْغَيْرُ الْمُخْتَارِ فَتُظْهِرُ |
| واكرمته زيد مگر كه چيرته مانع وود ضمير نه لكه دا غوره قول دي او د حذف نه لكه دا قول غير مختار دي نو ظاهروي |
| الْمَفْعُوْلَ فَاِنَّهٗ اِذَا امْتَنَعَ الْاِضْمَارُ وَالْحَذْفُ لَا سَبِيْلَ اِلَّا اِلَى الْاِظْهَارِ نَحْوُ حَسِبَنِيْ وَحَسِبْتُهُمَا مُنْطَلِقَيْنِ الزَّيْدَانِ |
| به مفعول خكه چي كله اضمار او حذف ممتنع وي نو بله لاره نشته مگر د اظهار لكه حسبني وحسبتهما منطلقين الزيدان |
| مُنْطَلِقًا حَيْثُ اُعْمِلَ حَسِبَنِيْ فَجُعِلَ الزَّيْدَانِ فَاعِلًا لَهٗ وَ مُنْطَلِقًا مَفْعُوْلًا لَهٗ |
| منطلقا په داسي شان چي عمل وركړي شو حسبني ته نو وگرځول شو الزيدان فاعل دد دپاره او منطلقا مفعول دد دي |
| وَ اُضْمِرَ الْمَفْعُوْلُ الْاَوَّلُ فِيْ حَسِبْتُهُمَا وَ اُظْهِرَ الْمَفْعُوْلُ الثَّانِيْ وَ هُوَ مُنْطَلِقَيْنِ لِمَانِعٍ وَ هُوَ |
| دپاره او مضمر شو اول مفعول په حسبتهما كي او ظاهر يي كړو دويم مفعول او هغه منطلقين دي د مانع دوجي نه او هغه |
| اَنَّهٗ لَوْ اُضْمِرَ مُفْرِدًا خَالَفَ الْمَفْعُوْلَ الْاَوَّلَ وَ لَوْ اُضْمِرَ مُثَنًّى |
| مانع دا دي چي كه چيرته د مفرد ضمير وركړي شي نو دا د مفعول اول خلاف دي او كه چيرته د تثنيي ضمير وركړي شي |
| خَالَفَ الْمَرْجِعَ وَ هُوَ قَوْلُهٗ مُنْطَلِقًا وَ لَا يَخْفٰى اَنَّهٗ لَا يُتَصَوَّرُ التَّنَازُعُ فِيْ هٰذِهِ الصُّوْرَةِ اِلَّا اِذَا |
| نو دا خلاف دي د مرجع يعني دد دي قول منطلقا او دا خبره خفي نه ده چي نه ده متصور تنازع په دي صورت كي مگر كله |
| لَاحَظْتَ الْمَفْعُوْلَ الثَّانِيْ اِسْمًا دَالًّا عَلَى اتِّصَافِ ذَاتٍ مَّا بِالْاِنْطِلَاقِ مِنْ غَيْرِ مُلَاحَظَةِ تَثْنِيَتِهٖ وَ اِفْرَادِهٖ |
| چي ته لحاظ وكړي د دويم مفعول اسم چي دال وي په يو ذات بالانطلاق په غير د لحاظ كولو تثنيي او د مفرد |
| وَ اِلَّا فَالظَّاهِرُ اَنَّهٗ لَا تَنَازُعَ بَيْنَ الْفِعْلَيْنِ فِي الْمَفْعُوْلِ الثَّانِيْ لِاَنَّ الْاَوَّلَ يَقْتَضِيْ |
| كيد او رنه ظاهر دا ده چي كومه تنازع نشته د دوه مفعولينو په مينځ كي په دويم مفعول كي خكه چي اول فعل تقاضا |
| مَفْعُوْلًا مُفْرِدًا وَ الثَّانِيْ مَفْعُوْلًا مُثَنًّى فَلَا يَتَوَجَّهَانِ اِلٰى اَمْرٍ وَاحِدٍ فَلَا تَنَازُعَ. |
| كوي د مفعول مفرد او دويم فعل د مفعول تثنيي نو نه متوجه كيږي يو امر طرف ته نو بيا څه تنازع نشته . |

**خلاصه د متن**: په دي عبارت كي غرض د مصنف د كوفي د نحويانو د مذهب مطابق د رفع د تنازع تفصيل بيانول دي ، د كوفي د نحويانو د مذهب مطابق كه چيرته اول فعل عمل ته وركړل شي نو دويم فعل به يا د فاعل تقاضا كوي او يا د مفعول ، كه چيرته د فاعل تقاضايي كوله نو په دي كي به ضمير راوړي شي لكه ضربني واكرمني زيد ، د كوفي د نحويانو د مذهب مطابق زيد دا اول فعل ضرب فاعل جوړ شو او كه چيرته دا كرمني د فاعل دپاره په دي كي ضمير مستتر ومنل شي كوم چي راجع وي اسم ظاهر زيد طرف ته كوم چي لفظاً مؤخر دي ليكن رتبتاً مقدم دي خكه چي دا اول فعل معمول دي لهذا لفظاً او رتبتاً اضمار قبل الذكر لازم راغلو كوم چي جائز دي .او كه چيرته دويم فعل د مفعول تقاضا وكړي نو په دي كي دوه مذهبه دي غوره مذهب دا دي چي دد دي

دپاره به ضمير راوړي شي اوغير مختار مذهب دادې چې مفعول به حذف ومنلې شي په دې شرط چې دضميرراوړو يادحذف نه كوم مانع نه وي اوكه چيرته مانع وو نو ددويم فعل مفعول به ظاهرولې شي اودا په هغه وخت كې چې كله دادافعال قلوبونه ديومفعول ثاني وي او اول مفعول ذكر وي چې ددې تفصيل مخكې ذكر شوي دي او په شرحه كې يې هم ذكر را روان دي .

**اغراض دجامي**: لئلا يتوهم : په دې عبارت سره غرض دشارح دمفعول داضمار دغوره كيدو وجه بيانوي چې كه چيرته ددويم فعل مفعول حذف ومنلې شي نوداوهم به پيداوي چې كيداى شي ددويم فعل مفعول داسم ظاهر نه جدا وي اوكه چيرته ضميرراوړلې شي نوداوهم به نه پيدا كيږي ځكه چې ضمير داسم ظاهرطرف ته راجع وي كوم چې په مابعد كې مذكور دې او هغه اسم ظاهر اګرچې لفظاً مؤخر دي ليكن رتبتاً مقدم دي ځكه چې دااول فعل معمول دي لهذا فقط اضمار قبل الذكر لازم راغې كوم چې جائزدي لكه ضربني واكرمته زيد .

الا ان يمنع مانع : چې كله ددويم فعل دمفعول دضميرراوړلو نه كوم څيز مانع وي لكه دا غوره مذهب دي اودحذف نه هم كوم مانع وي لكه دامذهب غيرمختار دي نو ددويم فعل مفعول به ظاهرولې شي چونكې اضمار قبل الذكر اوحذف دواړه ممتنع دي نو دمفعول دظاهرولو نه غيركومه بله لاره نشته ، اودا په هغه وخت كې وي چې كله دادافعال قلوبو نه ديو مفعول ثاني وي اواول مفعول مذكور وي اوهغه داسم ظاهر سره موافق نه وي لكه حسبني وحسبتهما منطلقين الزيدان منطلقا دا په اصل كې وو حسبني وحسبت الزيدان منطلقا .

**اول**: حسبني اوحسبت په الزيدان كې تنازع وكړه حسبني غوښتل چې الزيدان زما فاعل جوړ شي او حسبت غوښتل چې الزيدان زما مفعول جوړشي نودكوفي دنحويانو دمذهب مطابق الزيدان يې دحسبني فاعل جوړكړو اودحسبت دمفعول دپاره هما ضمير به راوړي نو حسبني وحسبتهما الزيدان منطلقا شو .

**دوهم**: حسبني اوحسبتهما په منطلقا كې تنازع وكړه حسبني غوښتل چې منطلقا دې زما مفعول ثاني جوړ شي اوحسبت غوښتل چې منطلقا دې زما مفعول ثاني جوړشي نودكوفي دنحويانود مذهب مطابق منطلقا د حسبني مفعول ثاني جوړكړو اوددويم فعل مفعول يې ظاهر كړو نو حسبني وحسبتهما منطلقين الزيدان منطلقا شو . مونږ ددويم فعل دويم مفعول يې ظاهر كړو نه يې حذف كړو اونه يې ضمير راوړو ځكه چې كه چيرته حذف كول يې نو دافعال قلوبونو ددوه

مفعولونه یو مفعول حذف کول اوپه یو مفعول باندې اکتفاء کول لازم راتلو اوداجائز نه وو ، او که چیرته ضمیر یې راوړو نو په دې کې دوه صورتونه وو یابه یې مفرد ضمیر راوړو اویابه د تثنیې، که چیرته دمفرد ضمیریې راوړو نو دابه یې ویل : حسبني وحسبتهما ایاه الزیدان منطلقا، نو دافعال قلوبو ددوه مفعولینو په مینځ کې مطابقت نه پاتې کیدو ځکه چې اول مفعول د تثنیې ضمیر دې اودویم مفعول دمفرد ضمیر دې حالانکه دافعال قلوبو ددوه مفعولینو په مینځ کې مطابقت ضروري وي اوکه چیرته ضمیر تثنیه راوړي اوداووایي چې حسبني وحسبتهما ایاهما الزیدان منطلقا، نودراجع اودمرجع په مینځ کې به مطابقت پاتې نه شي حالانکه دراجع اود مرجع په مینځ کې مطابقت ضروري وي ، نو چې کله ضمیرراوړل هم جائز نه وي او حذف کول هم جائز نه وي نو موږ ددویم فعل دویم مفعول مو ظاهر کړو

ولایخفی: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : په ذکر شوي مثال کې تنازع نه شي متصور کیدې ځکه چې دتنازع دمتحقق کیدو دپاره شرط دادې چې فعلین دعمل کولو دپاره دامرواحد طرف ته متوجه وي اوپه ذکر شوي مثال کې فعلین امرِ واحد طرف ته متوجه نه دي ځکه چې اول فعل دمفرد مفعول تقاضا کوي اودویم فعل دتثنیې مفعول تقاضا کوي.

**جواب** : په ذکر شوي مثال کې منطلقا نه مطلقاً لفظ دمنطلقاً مراد نه دي بلکې مراد هغه اسم دي چې دیو ذات دصفتِ انطلاق سره په متصف کیدو باندې دلالت وکړي داعام دي که مفرد وي یاتثنیه وي لهذا ددې معنی په اعتبار سره فعلین ددې طرف ته متوجه کیږي اودامثال دباب دتنازع نه دي اوکه چیرته ددې اعتبار ونه کړي شي نولفظ دمنطلقاً په جوړولو سره به تنازع نه متصور کیږي.

## دمثالونو خلاصه دکوفیانو دمذهب مطابق :

| صورت دتنازع | اسم ظاهر مفرد | اسم ظاهر تثنیه | اسم ظاهر جمع |
|---|---|---|---|
| دواړه فعل اسم ظاهر فاعل جوړول غواړي | ضربني واکرمني زید | ضربني واکرماني الزیدان | ضربني واکرموني الزیدون |
| اول فعل اسم ظاهرخپل مفعول اودویم فعل فاعل جوړول غواړي | ضربت واکرمني زید | ضربت واکرماني الزیدین | ضربت واکرموني الزیدین |

| | | | |
|---|---|---|---|
| دواړه فعل اسم ظاهر مفعول جوړول غواړي | ضربت واكرمت زيداً | ضربت واكرمت الزيدين | ضربت واكرمت الزيدين |
| دویم فعل اسم ظاهر مفعول اواول فعل خپل فاعل جوړول غواړي | ضربني واكرمت زيد . | ضربني واكرمت الزيدان | ضربني واكرمت الزيدون |

## په ضمیر کې د مثالونو خلاصه :

| صورت دتنازع | اسم ظاهر مفرد | اسم ظاهر تثنیه | اسم ظاهر جمع |
|---|---|---|---|
| دواړه فعله اسم ظاهر مفعول جوړول غواړي | ضربت واكرمته زيدا | ضربت واكرمتهما الزيدين | ضربت واكرمتهم الزيدين |
| اول اسم ظاهر فاعل او دویم اسم ظاهر مفعول جوړول غواړي | ضربني واكرمته زيد | ضربني واكرمتهما الزيدان | ضربني واكرمتهم الزيدون |

## د کوفیانو دیو دلیل جواب :

وَ لَمَّا اسْتَدَلَّ الْكُوْفِيُّوْنَ عَلٰى اَوْلَوِيَّةِ اِعْمَالِ الْفِعْلِ الْاَوَّلِ بِقَوْلِ امْرِئِ الْقَيْسِ ( شِعْرٌ ) وَ لَوْ اَنَّمَا

اوچې کله استدلال وکړو کوفیانو په غوره والي دعمل ورکولو اول فعل ته په قول د امرئ القيس شعر که چیرته ما

اَسْعٰى لِاَدْنٰى مَعِيْشَةٍ كَفَانِيْ وَ لَمْ اَطْلُبْ قَلِيْلٌ مِنَ الْمَالِ حَيْثُ قَالُوْا

کوشش کولې دادنی معیشت نو کافي به وو زما د پاره اوما به نه طلب کولو لږ مال په داسې شان چې دوي ویلي دي چې

قَدْ تَوَجَّهَ الْفِعْلَانِ اَعْنِيْ كَفَانِيْ وَلَمْ اَطْلُبْ اِلٰى اسْمٍ وَاحِدٍ وَهُوَ قَلِيْلٌ مِنَ الْمَالِ فَاقْتَضَى الْاَوَّلُ

دواړه فعله به متوجه وي یعني كفاني ته اولم اطلب یو اسم طرف ته اوهغه قليل من المال دي نو تقاضا کوي اول فعل

رَفْعَهٗ بِالْفَاعِلِيَّةِ وَ الثَّانِيْ نَصْبَهٗ بِالْمَفْعُوْلِيَّةِ وَ امْرُؤُ الْقَيْسِ الَّذِيْ هُوَ اَفْصَحُ شُعَرَاءِ الْعَرَبِ

درفع بنا بر فاعلیت اودویم فعل دنصب بنا بر مفعولیت اوامرء القیس کوم چې ډیر فصیح دي په شعراو دعربو کې

اَعْمَلَ الْاَوَّلَ فَلَوْ لَمْ يَكُنْ اِعْمَالُ الْاَوَّلِ اَوْلٰى لَمَا اخْتَارَهٗ اِذْ لَا

اوده اول فعل ته عمل ورکړي نو که چیرته اول فعل ته عمل ورکول اولی نه وي نو ده به نه اختیارولو خکه چې نشته

قَائِلَ بِتَسَاوِي الْاِعْمَالَيْنِ فَاَجَابَ الْمُصَنِّفُ عَنْ طَرَفِ الْبَصْرِيِّيْنَ وَ قَالَ وَ قَوْلُ امْرِءِ الْقَيْسِ

قائل په برابر والي ددواړو عملونو نو جواب ورکړو مصنف د طرف دبصرینو نه اووي ویل چې قول د امرئ القيس

كَفَانِيْ وَلَمْ اَطْلُبْ قَلِيْلٌ مِنَ الْمَالِ لَيْسَ مِنْهُ اَيْ مِنْ بَابِ التَّنَازُعِ لِفَسَادِ الْمَعْنٰى عَلٰى تَقْدِيْرِ تَوَجُّهِ كُلٍّ مِنْ

كفاني ولم اطلب قليل من المال د دې نه ، نه دي یعني دباب دتنازع نه دوجې دفساد د معنی په تقدیر د توجه دهر یو

| |
|---|
| كَفَانِيْ وَ لَمْ اَطْلُبْ اِلٰى قَلِيْلٌ مِنَ الْمَالِ لِاِسْتِلْزَامِهٖ عَدَمَ السَّعْيِ لِاَدْنٰى مَعِيْشَةٍ وَ انْتِفَاءَ كِفَايَةِ |
| كفاني ولم اطلب نه د قليل من المال طرف ته دوجي داستلزام نه كوشش نه كول دادنى معيشت دپاره اوانتفاء د كافي |
| قَلِيْلِ الْمَالِ وَ ثُبُوْتَ طَلَبِهِ الْمَنَافِيْ لِكُلٍّ مِنْهُمَا وَ ذٰلِكَ لِاَنَّ لَوْ تَجْعَلُ مَدْخُوْلَهَا |
| كيدو دلږمال اوثبوت د طلب د دې كوم چې منافي دي دهريو د دې نه اوداځكه چې كه چيرته وګرځولې شي مدخول |
| الْمُثْبَتَ شَرْطاً كَانَ اَوْجَزَاءً اَوْمَعْطُوْفاً عَلٰى اَحَدِهِمَامَنْفِيًا وَلَامَنْفِيَّ مِنْ ذٰلِكَ مُثْبَتًا فَعَلٰى هٰذَا يَنْبَغِيْ |
| د دې مثبت شرط يا جزاء اويامعطوف په يو د دې دواړو باندې منفي اومنفي د دې نه مثبت نو په دې اساس مناسب |
| اَنْ يَّكُوْنَ مَفْعُوْلُ لَمْ اَطْلُبْ مَحْذُوْفاً اَىْ لَمْ اَطْلُبِ الْعِزَّ وَ الْمَجْدَ كَمَا يَدُلُّ عَلَيْهِ الْبَيْتُ الْمُتَأَخِّرُ |
| دي چې وي مفعول لم اطلب محذوف يعني لم اطلب العزوالمجدلكه څنګه چې دلالت كوي په دې باندې وروستي شعر |
| اَعْنِيْ قَوْلَهٗ شِعْرٌ وَلٰكِنْ اَسْعٰى لِمَجْدٍ مُؤَثَّلٍ وَقَدْ يُدْرِكُ الْمَجْدَ الْمُؤَثَّلَ اَمْثَالِيْ وَحِيْنَئِذٍ يَسْتَقِيْمُ الْمَعْنٰى |
| قصد كوم د اقول شعر ولكن اسعى لمجد مؤثل وقديدرك المجد المؤثل امثالي اوپه دې وخت كې به صحيح وي معنى |
| يَعْنِيْ اَنَا لَا اَسْعٰى لِاَدْنٰى مَعِيْشَةٍ وَ لَا يَكْفِيْنِيْ قَلِيْلٌ مِنَ الْمَالِ وَ لٰكِنِّيْ اَطْلُبُ الْمَجْدَ الْاَثِيْلَ |
| يعني زه كوشش نه كوم دادنى معيشت دپاره اونه كافي كيږي لږمال او ليكن زه طلب كوم دائمي بزرګي چې |
| الثَّابِتَ وَ اَسْعٰى لَـهٗ . |
| ثابته وي اوددې دپاره كوشش كوم . |

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت كې صاحب د كافيې د كوفيانو په خپل مسلك باندې يو استدلال ذكر كوي اوشارح ددې دليل ضعف بيانوي .

دكوفينو اول فعل ته دعمل وركولو په اولويت باندې دامرؤالقيس شاعر داشعر :

كفاني ولم اطلب قليل من المال

نه استدلال كړي او ويلي دي چې په لفظ د قليل كې كفاني او لم اطلب دواړه تنازع كړي نو شاعر اول فعل ته دعمل وركولوپه وجه قليل ته رفع وركړي ده ، ليكن صاحب د كافيې وايي چې د كوفيانو دا استدلال صحيح نه دي بلكه داشعر دسره دباب دتنازع نه ، نه دي .

ددې تفصيل لاندې په شرحه كې وګورئ :

**اغراض دجامي:** <u>ولما استدل</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح راتلونكي عبارت كې د صاحب د كافيې غرض بيانول دي ددې حاصل دادې چې دكوفي نحويان اول فعل ته دعمل وركولوپه اولويت باندې دامرؤالقيس شاعر په دې شعر سره استدلال كوي چې :

ولو انما اسعى لادنى معيشة كفاني ○ ولم اطلب قليل من المال

**طريقه داستدلال**: په دې شعر کې دفعلينو يعنې دکفاني او دولم اطلب دواړه امرواحد يعنې قليل من المال طرف ته متوجه دي کفاني دفاعل کيدو په بناء باندې درفع تقاضا کوي اولم اطلب دمفعول کيدو په بناء باندې ددې دنصب تقاضاکوي نوامرؤالقيس کوم چې افصح دشعراو دعربونه دي اول فعل ته عمل ورکړي دي ځکه چې ده قليل مرفوع ويلي ددې نه معلومه شوه چې اول فعل ته عمل ورکول اولى دي که چيرته اول فعل ته عمل ورکول اولى نه وي نو د امرؤ القيس په شان فصيح اوبليغ شاعر به قليل مرفوع نه ويل.

اذلا قائل: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دامرؤالقيس اول فعل ته دعمل ورکولو نه دا نه لازميږي چې اول فعل ته عمل ورکول اولى دي کيدي شي چې فعلينو ته عمل ورکول دده په نزد باندې مساوي وو نواول فعل ته عمل ورکول جائز شو اولى نه شو.

**جواب**: فعلينوته عمل ورکولو کې دتساوي يعنې دتساوي داعمالينو څوک هم قائل نه دي يو فريق دويم فعل ته دعمل ورکولو داولويت قائل دي، اودويم فريق اول فعل دعمل داولويت قائل دي دريم څوک فريق نشته چې دتساوي قائل وي، لهذا دامرؤالقيس اول فعل ته عمل ورکول ددې په اولويت باندې دلالت کوي چونکې دمصنف په نزد دبصري دنحويانو مذهب راجح دي ځکه چې مصنف رَحِمَهُ اللهُ دبصري دنحويانو طرف نه دکوفي نحويانوته جواب ورکړوچې دامرؤ القيس مذکورشعردسره دباب د تنازع نه، نه دي ځکه چې که چيرته دادباب دتنازع نه ومنل شي نوفسادمعنى اوتناقض اوخلاف مقصود لازم راتلو.

ددې ديادولو نه مخکې يوه قاعده په ذهن کې کينوي چې که چيرته دلفظ لو مدخول مثبت وي نو دا منفي کوي اوکه چيرته منفي وي نو دا مثبت کوي برابره خبره ده که مدخول شرط وي او که جزا، او يا په دې کې په يو يعنې يا په شرط او يا په جزا باندې معطوف وي لکه ويلي شي چې: لواکرمتني اکرمتک (که چيرته تا زما اکرام وکړو نو زه به هم ستا اکرام وکړم) يعنې نه تا زما اکرام وکړو اونه ما ستا اکرام وکړو په دې کې دواړه اکرامه منفي دي اولکه ويلي شي لولم تکرمني لم اکرمک (که چيرته تا زما اکرام نه کولو نو مابه هم ستا اکرام نه کولو) يعنې نه تا زما اکرام وکړو نو ما ستا اکرام وکړو په دې کې دواړه اکرامه مثبت دي نو ددې قاعدې په اساس باندې دشاعر قول ولو انما اسعى لادنى معيشة داجمله اولى ادنى معيشت دسعي او کوشش نه

کولو ته مستلزم دي ځکه چې دامثبت دي او د لو دواقع کيدو نه پس منفي شو .
اودشاعر قول کفاني قليل من المال داقليل مال دنه کفايت کولو ته مستلزم دي ځکه چې دامثبت دي او د لو دجزا واقع کيدو دوجې نه منفي شو او لم اطلب منفي دي ليکن د لو جزا کفاني باندې دمعطوف کيدو دوجې نه مثبت شو يعنې لږ مال طلب کوم پس که چيرته دشاعر قول لم اطلب هم قليل من المال طرف ته متوجه وي لکه څنګه چې دکوفې نحويانو دعوى کړي ده چې دابه د لږ مال طلب کولو ته مستلزم وي ځکه چې دامنفي دي ليکن د لو په جزاء باندې دمعطوف کيدو دوجې نه مثبت شو
نودټول شعر مطلب به داوي چې ما ادنى معيشت لږ مال دپاره کوشش نه کولو ، اوماته لږ مال کافي هم نه دي ليکن زه لږ مال طلب کوم ، نودشعر اول اوآخر کې تناقض اوتخالف لازم راځي چې مخکې يې وويل چې ماته ادنى معيشت اولږ مال کافي نه دي اوبه آخر کې وايي چې زه دا طلب کوم نومعنى به فاسده شي نوثابته شوه چې دلته کومه تنازع نشته بلکه معلومه شوه چې لم اطلب دې اسم طرف ته متوجه نه دي چې کوم طرف ته متوجه دي بلکې اول فعل کفاني ، قليل من المال طرف ته متوجه دي اوددويم فعل لم اطلب مفعول محذوف دي اوهغه العز والمجد دي اوددې مفعول محذوف باندې قرينه دويم بيت دي اوهغه دويم بيت دادې چې :

ولکنما اسعى لمجد مؤثل ✿ وقد يدرک المجد المؤثل امثالي

ليکن زه ددائمي بزرګي کوشش کوم اوزما په شان خلک دائمي بزرګي حاصلوي .
اوس به معنى صحيح وي چې ما دادنى معيشت سعي نه ده کړي اولږ مال ما ته کفايت هم نه کوي ليکن زه دائمي بزرګي دپاره سعي اوکوشش کوم .

# مفعول مالم يسم فاعله :

| |
|---|
| اَیْ مَفْعُوْلُ فِعْلٍ اَوْ شِبْهِهٖ فِعْلٍ لَمْ يُذْکَرْ فَاعِلُهٗ وَ اِنَّمَا لَمْ يَفْصِلْهُ عَنِ الْفَاعِلِ وَ لَمْ يَقُلْ |
| يعني مفعول داسې فعل ياشبه فعل چې دهغې فاعل مذکور نه وي اودايې جدانه کړودفاعل نه اووې نه ويل |
| وَ مِنْهُ کَمَا فَصَلَ الْمُبْتَدَاُ حَيْثُ قَالَ وَ مِنْهَا الْمُبْتَدَاُ لِشِدَّةِ اِتِّصَالِهٖ بِالْفَاعِلِ حَتّٰى سَمَّاهُ |
| ومنه لکه مبتدا يې جدا کړې په داسې شان چې ويلي ومنها المبتدا دوجې دشدت اتصال نه دفاعل سره تردې چې مسمى |
| بَعْضُ النُّحَاةِ فَاعِلاً کُلُّ مَفْعُوْلٍ حُذِفَ فَاعِلُهٗ اَیْ فَاعِلُ ذٰلِکَ الْمَفْعُوْلِ وَ اِنَّمَا |
| کړي بعضې نحاتوفاعل هر داسې مفعول چې حذف شوي وي فاعل ددې يعني فاعل ددې مفعول اوبه تحقيق سره يې |

| أُضِيْفَ | إِلَى | الْمَفْعُوْلِ | لِمُلَابَسَةِ | كَوْنِهِ | فَاعِلاً | لِفِعْلٍ | مُتَعَلِّقٍ | بِهِ | وَ | أُقِيْمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اضافت وشومفعول ته دوجې دمناسب نه دكيدو ددې نه فاعل دفعل چې متعلق وي تردې پورې اوقائم كړې وي | | | | | | | | | | |
| هُوَ أَيِ الْمَفْعُوْلُ مَقَامَهُ أَيْ مَقَامَ الْفَاعِلِ فِيْ إِسْنَادِ الْفِعْلِ أَوْ شِبْهِهِ إِلَيْهِ. | | | | | | | | | | |
| دا يعنې مفعول په ځاې ددې يعنې مقام دفاعل په اسناددفعل اوشبه فعل كې دې طرف ته. | | | | | | | | | | |

**خلاصه دمتن:** صاحب دكافيې دمرفوعاتو د بل قسم **مفعول مالم يسم فاعله** بيان كوي يعنې هغه مفعول چې دهغې فاعل حذف كړې شوي وي اودايې دفاعل قائمقام كړې وي اومفعول د فاعل دقائمقام كيدو شرط دادې چې دفعل صيغه **فُعِلَ** يا **يُفْعَلُ** طرف ته تبديل كړې شي.

**اغراض دجامي:** **اى مفعول فعل اوشبه فعل:** په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال:** په مفعول مالم يسم فاعله كې دمانه مراد فقط فعل دې ځكه چې عمل په همدې فعل كې اصل دي نولهذا تعريف دې جامع نه شو په شبه فعل كې په **زيد مضروب غلامه** كې غلامه ته شامل نه شو.

**جواب:** شارح **اى مفعول فعل اوشبه فعل** وويل نوپه دې سره يې جواب وركړو چې ما عام دي فعل اوشبه فعل دواړو ته شامل دي.

**لم يذكر:** په دې عبارت سره غرض دشارح ددوه سوالونو مقدرو جواب وركول دي:

**سوال (۱):** **لم يسم فاعله** دلالت كوي په عدم وجود دفاعل باندې چې دمفعول فاعل بالكل موجودنه دي اوراتلونكي عبارت **كل مفعول حذف فاعله** دا دال دي په وجود دفاعل باندې فاعل خو موجود دي ليكن دعبارت نه محذوف دي په دواړو عبارتونو كې تضاد اومنافات دي.

**سوال (۲):** باب دسمى يسمى متعدي وي دوه مفعولينوته اودلته متعدي دي يومفعول ته.

**جواب:** په **لم يذكر** سره شارح ددواړو سوالونو جواب وركړې:

**داول سوال جواب:** د اول سوال جواب داسې دي چې **لم يسم** په معنى د **لم يذكر** سره دي چې ددې مطلب دادې چې فاعل خوموجود وي ليكن په عبارت كې نه وي ذكر شوي اوبعينه همدا مطلب دې دمابعد عبارت **دكل مفعول حذف فاعله** نولهذا په دواړو كې څه تضاد نشته.

**ددويم سوال جواب:** او ددويم سوال جواب داسې دي چې **لم يسم** په معنى د **لم يذكر** سره

دي اولم يذكر متعدي دي يو مفعول طرف ته لهذا دويم سوال او اشكال هم ختم شو .

وانما لم يفصله : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : لكه څنګه چې مصنف مبتدا جدا ذكر كړي او ومنها المبتدا يې ويلې نو همدارنګې مفعول مالم يسم فاعله هم مستقل اوجدا ذكر كول په كار وو اوداسې ويل په كاروو چې ومنه مفعول مالم يسم فاعله ځكه چې دادمرفوعاتو مستقل اوجدا قسم دي .

**جواب** : مفعول مالم يسم فاعله دفاعل سره شديد اتصال اوكمال مناسبت دي دځواحكامونه غير باقي ټول احكام مشتركه دي تردې چې بعضې نحويانو همدا فاعل شماركړي اودفاعل په تعريف كې على جهة قيامه به دقيدذكر يې نه دي كړي اودايې هم دفاعل په تعريف كې داخل كړي ددې شدت اتصال اود كمال مناسبت دوجې نه مصنف دفاعل نه يې جدا نه دي ذكر كړي بلكه دفاعل سره يې ذكر كړي دي .

اى فاعل ذلك المفعول : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دمرجع دي چې دفاعله ضمير مرجع مفعول دي .

وانما اضيف : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : دفاعل اضافت مفعول طرف ته صحيح نه دي ځكه چې فاعل دفعل وي نه دمفعول .

**جواب** : دفاعل اضافت مفعول طرف ته دادنى ملابست دوجې نه دي اوادنى ملابست دادې چې فاعل هم ددې فعل وي كوم چې دمفعول سره متعلق وي ددې اعتبار نه چې دفاعل اضافت مفعول طرف ته صحيح دي .

واقيم هو اى المفعول : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دمرجع دي چې د هُوَ ضمير مرجع مفعول دي.

اى مقام الفاعل : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دمرجع دي چې دضمير مرجع فاعل دي .

في اسناد الفعل : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : مفعول دفاعل قائمقام كول صحيح نه دي ځكه چې دفاعل نه دفعل صدور كيږي اوپه مفعول باندې فعل واقع كيږي اوپه دې دواړو كې تضاد دي .

**جواب** : مفعول د فاعل قائمقام كيدل صدور فعل يا د وقوع فعل د لحاظ نه ، نه دي بلكې

اسناد فعل او اسناد شبه فعل دلحاظ نه دي او ددې لحاظ نه په دواړو کې تضاد نشته .

## د مفعول مالم يسم فاعله شرطونه :

| |
|---|
| وَ شَرْطُهُ اَیْ شَرْطُ مَفْعُوْلِ مَا لَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهٗ فِيْ حَذْفِ فَاعِلِهٖ وَ اِقَامَتِهٖ مَقَامَ الْفَاعِلِ اِذَا كَانَ عَامِلُهٗ |
| اوشرط ددې يعنې شرط د مفعول مالم سم فاعله په حذف دفاعل کې اود قائمقام کيدو دفاعل کې چې کله عامل |
| فِعْلاً اَنْ تُغَيَّرَ صِيْغَةُ الْفِعْلِ اِلٰى فُعِلَ اَیْ اِلَى الْمَاضِيْ الْمَجْهُوْلِ اَوْ يُفْعَلُ اَیْ اِلَى الْمُضَارِعِ الْمَجْهُوْلِ |
| ددې فعل وي چې بدله کړې صيغه دفعل فُعِلَ طرف ته يعنې ماضي مجهول ته اويا يُفْعَلُ يعنې مضارع مجهول |
| فَيَتَنَاوَلُ مِثْلَ اُفْتُعِلَ وَاسْتُفْعِلَ وَيُفْتَعَلُ وَيُسْتَفْعَلُ وَغَيْرِهَا مِنَ الْاَفْعَالِ الْمَجْهُوْلَةِ الْمَزِيْدِ فِيْهَا. |
| طرف ته نو دا شاملېږي مثل اُفْتُعِلَ وَاسْتُفْعِلَ وَيُفْتَعَلُ وَيُسْتَفْعَلُ او غير ددې نه دافعال مجهوله مزيدفيه ته . |

**خلاصه دمتن:** حاصل دصاحب دکافيې ددې عبارت نه دادې چې مفعول مالم يسم فاعله د فاعل دقائمقام کولو شرط دادې چې دفعل صيغه فُعِلَ يعنې ماضي مجهول او يا يُفْعَلُ يعنې مضارع مجهول طرف ته تبديل کولې شي .

**اغراض دجامي:** اى شرط مفعول: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دمرجع دې چې په شرطه کې د ـهٖ ضمير مرجع مفعول مالم يسم فاعله دي .

فى حذف فاعله: په دې عبارت سره دمافيه الشرط بيان دي يعنې داظاهروي چې هغه شرط په کوم ځيز کې دي .

اذاكان عامله: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** په زيد مضروب غلامه کې غلامه مفعول مالم يسم فاعله دي حالانکه دلته دفعل صيغه فُعِلَ يا يُفْعَلُ طرف ته نه دي بدل شوي .

**جواب :** داشرط په هغه وخت کې دي چې کله ددې عامل فعل وي دلته عامل فعل نه دي بلکه شبه فعل دي .

اى الى الماضى المجهول : دفعل نه پس اى الماضى المجهول اود يفعل نه پس اى المضارع المجهول سره غرض د شارح ديوسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** اکتسب زيد ، استخرج زيد ، يستخرج زيد کې زيد مفعول مالم يسم فاعله دي حالانکه د فعل صيغه فُعِلَ يا يُفْعَلُ طرف ته نه دي بدل شوي

**جواب**: د دې نه شارح دوه (۲) جوابات ورکړي دي:

**جواب (۱)**: اول جواب دا چې د فُعِلَ نه مراد ماضي مجهوله ده او د يُفْعَلُ نه مراد مضارع مجهول ده لهذا دا افتعل، استفعل، يفتعل، يستفعل وغيره ټولو ته شامل دي ځکه چې دا ټول افعال مجهوله دي.

**جواب (۲)**: او دوهم جواب يې دا هم ورکړي دي چې اى فعل او يفعل نه پس عبارت محذوف دي، او نحوهما مما هو مبني للمفعول نو دا عبارت به ټولو ته شامل شي.

## د مفعول ما لم يسم فاعله احكامات:

| |
|---|
| وَلَا يَقَعُ مَوْقِعَ الْفَاعِلِ الْمَفْعُوْلُ الثَّانِيْ مِنْ مَفْعُوْلَيْ بَابِ عَلِمْتُ لِاَنَّهُ مُسْنَدٌ اِلَى الْمَفْعُوْلِ الْاَوَّلِ |
| او نه واقع کيږي په ځاى د فاعل دويم مفعول د دوه مفعولينو د باب د علمت نه ځکه چې دا مسند وي اول مفعول ته د |
| اِسْنَاداً تَامًّا فَلَوْ اُسْنِدَ الْفِعْلُ اِلَيْهِ وَلَا يَكُوْنُ اِسْنَادُهُ اِلَّا تَامًّا لَزِمَ كَوْنُهُ مُسْنِداً |
| پوره اسناد سره نو که اسناد وشي د فعل دې مفعول طرف ته او د دې اسناد تام نه وي نو لازم به شي کيدل د دې مسند |
| وَمُسْنَداً اِلَيْهِ مَعًا مَعَ كَوْنِ كُلٍّ مِنَ الْاَسْنَادَيْنِ تَامًّا بِخِلَافِ اَعْجَبَنِيْ ضَرْبُ زَيْدٍ عَمْراً لِاَنَّ اَحَدَ الْاَسْنَادَيْنِ وَهُوَ |
| او مسند اليه يو ځاى سره د کيدو د هر يو اسناد ينو نه تام په خلاف د اعجبني ضرب زيد عمرو ځکه چې يو د اسناد ينو نه هغه |
| اِسْنَادُ الْمَصْدَرِ غَيْرُ تَامٍّ وَلَا الْمَفْعُوْلُ الثَّالِثُ مِنْ مَفَاعِيْلِ بَابِ اَعْلَمْتُ اِذْ حُكْمُهُ حُكْمُ الْمَفْعُوْلِ الثَّانِيْ |
| اسناد د مصدر دى غير تام او نه دريم مفعول د مفاعيلو د باب د اعلمت نه ځکه چې حکم د دې په شان د حکم د دويم مفعول |
| مِنْ بَابِ عَلِمْتُ فِيْ كَوْنِهِ مُسْنَداً وَ الْمَفْعُوْلُ لَهُ بِلَا لَامٍ لِاَنَّ النَّصْبَ فِيْهِ مُشْعِرٌ بِالْعِلِّيَّةِ |
| دي د باب د علمت په کيدو د دې سره مسند او مفعول له بې د لام نه ځکه نصب په دې کې اشاره کوي علت جوړيدو طرف |
| فَلَوْ اُسْنِدَ اِلَيْهِ لَفَاتَ النَّصْبُ وَ الْاِشْعَارُ بِخِلَافِ مَا اِذَا كَانَ مَعَ اللَّامِ نَحْوُ ضُرِبَ لِلتَّادِيْبِ |
| ته نو که اسناد يې وشي دې طرف ته نو فوت به شي نصب او اشاره په خلاف د هغه چې وي سره د لام لکه ضرب للتاديب |
| مَعَهُ كَذٰلِكَ اَىْ كُلٌّ مِنَ الْمَفْعُوْلِ لَهُ وَ الْمَفْعُوْلُ مَعَهُ كَذٰلِكَ اَىْ كَالْمَفْعُوْلِ الثَّانِيْ وَ |
| او مفعول معه همدا رنګې دي يعني هر يو د مفعول له او د مفعول معه نه همدا رنګې دي يعني د مفعول ثاني او د |
| الثَّالِثُ مِنْ بَابِ عَلِمْتُ وَ اَعْلَمْتُ فِيْ اَنَّهُمَا لَا يَقَعَانِ مَوْقِعَ الْفَاعِلِ اَمَّا الْمَفْعُوْلُ لَهُ فَلِمَا عَرَفْتَ |
| مفعول ثالث د باب د علمت او اعلمت نه چې دا دواړه نه واقع کيږي په ځاى د فاعل هر چې مفعول له دى نو دا تا پيژندلي |
| وَ اَمَّا الْمَفْعُوْلُ مَعَهُ فَلِاَنَّهُ لَا يَجُوْزُ اِقَامَتُهُ مَقَامَ الْفَاعِلِ مَعَ الْوَاوِ الَّتِيْ اَصْلُهَا الْعَطْفُ |
| او هر چې مفعول معه دي نو ځکه چې نه دي جائز قائمول د دې په ځاى د فاعل سره د هغه واو چې اصل يې عطف وي |

| وَ هِيَ دَلِيْلُ الْاِنْفِصَالِ وَ الْفَاعِلُ كَالْجُزْءِ مِنَ الْفِعْلِ وَلَا بِدُوْنِ الْوَاوِ فَاِنَّهُ لَمْ يُعْرَفْ |
| --- |
| اوداد لیل دانفصال دي اوفاعل په شان دجزدي دفعل نه اونه په غیر دواونه خکه چې نه معلومیږي په دې وخت |
| حِيْنَئِذٍ كَوْنُهُ مَفْعُوْلاً مَعَهُ . |
| کې نه معلومیږي کیدل ددې مفعول معه . |

**خلاصه دمتن**: دصاحب دکافیې دعبارت حاصل دادې چې څلور مفاعیل داسې دي چې دفاعل قائمقام نه شي جوړیدي : (۱) دباب دعلمت دویم مفعول . (۲) دباب داعلمت دریم مفعول . (۳) مفعول له . (۴) مفعول معه .

**اغراض دجامي**: مواقع الفاعل: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مصنف ویلي دي چې دباب دعلمت نه ددوه مفعولینو نه دویم مفعول نه واقع کیږي اوعدم وقوع نه متبادر الی الذهن عدم وقوع في الکلام دي نو مطلب دادې چې په کلام دعربو کې دباب دعلمت مفعول ثاني واقع نه وي حالانکه دا غلط دي بلکه واقع کیږي لکه علمت زیداً فاضلاً

**جواب** : موقع الفاعل سره یې ددې اشکال جواب ورکړو چې دعدم وقوع نه مراد عدم وقوع في الکلام نه دي بلکه موقع الفاعل دي چې دباب دعلمت مفعول ثاني دفاعل په ځاي نه واقع کیږي .

مفعولي: په دې عبارت سره شارح داظاهروي چې باب دعلمت مضاف الیه دي ددې مضاف محذوف دي کوم چې مفعولي دي .

باب علمت: ددې نه مراد هغه فعل یاشبه فعل دي چې دوه مفعولینو طرف ته متعدي وي اودویم مفعول مخکې طرف ته مسند وي .

لانه: په دې عبارت سره غرض دشارح دباب دعلمت ددویم مفعول دفاعل دقائمقام نه کیدو وجه بیانوي چې باب دعلمت مفعول ثاني اول مفعول طرف ته په پوره اسناد سره مسند کیږي اوفعل هم د خپل مفعول مالم یسم فاعله طرف ته پوره اسناد سره مسند وي که چیرته باب دعلمت دمفعول ثاني د فاعل قائمقام یې کړو نودمفعول ثاني په یو وخت کې مسند اومسند الیه کیدل به لازم راشي کوم چې جائز نه دي .

**بخلاف**: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: مونږ دانه منو چې شئ واحد په یو وخت کې مسند اومسند الیه کیدل جائز نه دي بلکه جائز دي لکه اعجبني ضربُ زید عمروا کې ضرب زید طرف ته مسند دي اواعجبني دفاعل کیدو دوجې نه مسندالیه هم دي نو شئ واحد (ضرب) په یو وخت کې مسند هم دي اومسند الیه هم دي.

**جواب**: دعدم جواز نه مراددادې چې شئ واحد په یو وخت کې مسند اومسندالیه کیدل په هغه وخت کې جائز دي چې کله دواړه اسنادتام سره وي اوپه ذکر شوي مثال کې اګرچې اعجبني اسناد ضرب طرف ته اسنادِ تام دي لیکنْ دضرب اسناد زید طرف ته اسنادِ تام نه دي بلکې ناقص دي ځکه چې هغه مرکب اضافي دي لهذا اعتراض وارد نه دي.

**المفعول**: په دې عبارت سره شارح داظاهروي چې الثالث صفت دي دموصوف محذوف المفعول دپاره.

**مفاعیل**: په دې عبارت سره شارح دابیانوي چې باب اعلمت مضاف الیه دي دمضاف محذوف کوم چې مفاعیل دي.

**اذحکمه**: په دې عبارت سره غرض دشارح دباب اعلمت د مفعول ثالث د فاعل دقائمقام نه کیدو وجه بیانوي چې دباب اعلمت دمفعول ثالث مفعول ثاني طرف ته اسناد تام سره مسند وي اوفعل مفعول ما لم یسم فاعله طرف ته په اسنادِ تام سره مسند وي که چیرته باب داعلمت دمفعول ثالث دفاعل قائمقام کړي شي نو مفعولِ ثالث په یو وخت کې اسناد تام سره مسند اومسند الیه کیدل لازم به راشي کوم چې جائز نه دي.

**لان النصب فیه**: په دې عبارت سره غرض دشارح دمفعول له بلا لام دفاعل دقائمقام نه کیدو وجه بیانول دي چې مفعول له بې دلام نه نصب ددې دفعل دپاره دعلت کیدو باندې دلالت کوي که چیرته دا دفاعل قائمقام کړي دي نوددې نصب به فوت شي ځکه چې مفعول مالم یسم فاعله مرفوع وي منصوب نه وي چې کله ددې نصب فوت شي نوپه علت کیدو باندې دلالت به هم فوت شي ددې وجې نه مفعول له دفاعل قائمقام نه شي کیدي.

**بخلاف**: په دې عبارت سره غرض دشرح دبلالام دقید فائده بیانول دي چې داقید یې ددې وجې نه لګولې دي چې که چیرته داقید یې نه وي لګولې نواعتراض به واردیدو چې مفعول له

دفاعل قائمقام کيدي شي لکه ضرب للتاديب کې ، للتاديب مفعول له دي حالانکه دادفاعل قائمقام دي ليکن چې کله بې دلام قيد يې ولرول نو دا اعتراض رفع شو ځکه چې للتاديب دفاعل قائمقام کيدو بلالام نه دي بلکه مع اللام دي .

**اى کل من المفعول**: په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې کذلک دافقط د مفعول له خبرنه دي بلکه داد مفعول له اومفعول معه ددواړو خبر دي .

**اى کالمفعول**: په دې کې د ذلک مشار اليه بيان يې کړي چې مشار اليه دباب علمت مفعول ثاني اودباب اعلمت مفعول ثالث دي .

**في انهما لايقعان**: په دې عبارت سره وجه دشبه بيان دي چې تشبيه په دې خبره کې دي چې دادواړه د فاعل په ځاى نه واقع کيږي مطلب دادې چې لکه څنګه باب علمت مفعول ثاني اودباب اعلمت مفعول ثالث دفاعل قائمقام نه شي کيدي همدارنګې مفعول له اومفعول له هم دفاعل قائمقام نه شي کيدي( مفعول له دفاعل دقائمقام نه کيدو دليل مخکې ذکر شوي دي)

**واماالمفعول معه**: په دې عبارت سره غرض دشارح دمفعول معه دفاعل دقائمقام نه کيدو دليل بيانول دي چې مفعول معه دفاعل دقائمقام نه کيدودوه صورتونه دي : واو سره . په غير دواونه

( ١ ) : واو سره دفاعل دقائمقام کيدل ددې وجې نه جائز نه ځکه چې د واو اصل عطف دي اوعطف معطوف عليه په مينځ کې مغائرت غواړي اودواو عطف دپاره کيدل دادانفصال دليل دي اومفعول مالم يسم فاعله په منزله د جُزء دفعل وي ( دفاعل په شان ) اوجزء داتصال تقاضا کوي اوداتصال او انفصال په مينځ کې منافات دي .

( ٢ ) :او په غير دواونه په غير هم دفاعل قائمقام نه شي کيدي ځکه چې په دې وخت کې ددې مفعول معه کيدل معلوم نه وي ځکه چې مفعول معه د واو سره وي .

## مفعول به په نائب فاعل جوړيدو کې قوي کيدل :

| وَ اِذَا وُجِدَ الْمَفْعُوْلُ بِهٖ فِي الْكَلَامِ مَعَ غَيْرِهٖ مِنَ الْمَفَاعِيْلِ الَّتِيْ يَجُوْزُ وُقُوْعُهَا مَوْقِعَ الْفَاعِلِ |
|---|
| اوچې کله وموندل شي مفعول به په کلام کې سره دنورومفاعيلو هغه چې جائزوي واقع کيدل په ځاى دفاعل نو |
| تَعَيَّنَ اَيِ الْمَفْعُوْلُ بِهٖ اَيْ لِوُقُوْعِهٖ مَوْقِعَ الْفَاعِلِ لِشَدَّةِ شِبْهِهٖ بِالْفَاعِلِ فِيْ تَوَقُّفِ تَعَقُّلِ الْفِعْلِ |
| متعين به وي يعنې مفعول به يعنې دواقع کيدونه په ځاى دفاعل باندې دوجې دشدت شبه نه دفاعل سره په توقف |

عَلَيْهِمَا فَإِنَّ الضَّرْبَ مَثَلاً كَمَا أَنَّهُ لَا يُمْكِنُ تَعَقُّلُهُ بِلَا ضَارِبٍ كَذٰلِكَ لَا

دپوهيدو دفعل کې په دې دواړو باندې خکه ضرب مثلا ممکن نه دې پوهيدل ددې په غير د ضارب نه همدارنګې نه

يُمْكِنُ تَعَقُّلُهُ بِلَا مَضْرُوْبٍ بِخِلَافِ سَائِرِ الْمَفَاعِيْلِ فَإِنَّهَا لَيْسَتْ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ

دې ممکن پوهيدل ددې په غير د مضروب نه په خلاف دټولو مفاعيلو سره خکه چې ددې صفت سره موصوف نه

تَقُوْلُ ضُرِبَ زَيْدٌ بِإِقَامَةِ الْمَفْعُوْلِ بِهِ مَقَامَ الْفَاعِلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ ظَرْفُ زَمَانٍ أَمَامَ الْأَمِيْرِ ظَرْفُ

دې نوويلې به شې ضرب زيد سره قائم کيدو مفعول به دفاعل په ځاې يوم الجمعة ظرف زمان دې امام الامير ظرف

مَكَانٍ ضَرْباً شَدِيْداً مَفْعُوْلٌ مُطْلَقٌ لِلنَّوْعِ بِاعْتِبَارِ الصِّفَةِ وَ فَائِدَةُ وَصْفِ الضَّرْبِ بِالشِّدَّةِ التَّنْبِيْهُ

مکان دې ضرباًشديدامفعول مطلق نوعي دې په اعتبار دصفت سره اوفائده دوصف دضرب دشدت سره تنبيه ده

عَلٰى أَنَّ الْمَصْدَرَ لَا يَقُوْمُ مَقَامَ الْفَاعِلِ بِلَا قَيْدٍ مُخَصِّصٍ إِذْ لَا فَائِدَةَ

په دې خبره باندې چې مصدر نه دې قائمقام دفاعل نه په غير داسې قيد سره چې مخصص وي خکه چې نشته فائده

فِيْهِ لِدَلَالَةِ الْفِعْلِ عَلَيْهِ فِيْ دَارِهِ جَارٌ وَ مَجْرُوْرٌ شَبِيْهٌ بِالْمَفَاعِيْلِ أُقِيْمَ

په دې کې دوجې ددلالت دفعل نه په دې باندې في داره جار مجرور دې چې مشابه دې دمفاعيلو سره قائم وي په

مَقَامَ الْفَاعِلِ مِثْلُهَا فَتَعَيَّنَ زَيْدٌ وَ إِنْ لَمْ يَكُنْ أَيْ وَ إِنْ لَمْ يُوْجَدْ فِي الْكَلَامِ الْمَفْعُوْلُ بِهِ

ځاې دفاعل په شان نومتعين يې کړو زيداوکه چيرته نه وي يعنې که چيرته نه موندل کيږي په کلام کې مفعول به

فَالْجَمِيْعُ أَيْ جَمِيْعُ مَا سِوَى الْمَفْعُوْلِ بِهِ سَوَاءٌ فِيْ جَوَازِ وُقُوْعِهَا مَوْقِعَ الْفَاعِلِ وَ

نوټول يعنې مفعول به نه غير باقي ټول برابر دې په دې باره کې چې جائز دې ددې واقع کيدل دفاعل په ځاې او

الْمَفْعُوْلُ الْأَوَّلُ مِنْ بَابِ أَعْطَيْتُ أَيِ الْفِعْلُ الْمُتَعَدِّيْ إِلٰى مَفْعُوْلَيْنِ ثَانِيْهُمَا غَيْرُ الْأَوَّلِ

مفعول اول دباب اعطيت يعنې دهغه فعل چې متعدي وي دواړو مفعولينو طرف ته چې دهغې نه دويم داول نه غير وي

أَوْلٰى بِأَنْ يُقَامَ مَقَامَ الْفَاعِلِ مِنَ الْمَفْعُوْلِ الثَّانِيْ لِأَنَّ فِيْهِ

داديربهتر دې په دې طريقه باندې چې قائم کړې شي د فاعل په ځاې دمفعول ثاني په نسبت خکه چې په دې کې

مَعْنَى الْفَاعِلِيَّةِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الثَّانِيْ لِأَنَّهُ عَاطٍ أَيْ آخِذٌ نَحْوُ أُعْطِيَ زَيْدٌ دِرْهَماً مَعَ جَوَازِ

دفاعليت معنی وي په نسبت سره نوروته خکه چې داعاط يعنې اخستونکې لکه اعطي زيددرهماسره دجائز کيدو

أُعْطِيَ دِرْهَمٌ زَيْداً وَذٰلِكَ عِنْدَ الْأَمْنِ مِنَ اللَّبْسِ وَ أَمَّا عِنْدَ عَدَمِهِ فَيَجِبُ إِقَامَةُ الْمَفْعُوْلِ الْأَوَّلِ

اعطي درهم زيداپه وخت کې دامن کيدودلبس نه اوچې کله دالتباس نه امن نه وي نو واجب دمفعول اول قائمول

نَحْوُ أُعْطِيَ زَيْدٌ عَمْرواً .

لکه اعطي زيد عمرواً.

**خلاصه د متن**: د صاحب د کافيې د عبارت حاصل دا دې چې کله په کلام کې مفعول به وموندل شي او ددې سره نور مفاعيل هم وي کوم چې د فاعل د قائمقام کيدو صلاحيت لري نو د فاعل د قائمقام کيدو دپاره به مفعول به متعين وي ، بيا تقول ضرب زيد سره صاحب د کافيې يو داسې مثال پيش کړي چې په کوم کې مفعول به کې ټول داسې مفاعيل وموندل شي کوم چې د فاعل د قائمقام جوړيدو صلاحيت لري لکه ضرب زيد يوم الجمعة امام الامير ضربا شديدا في داره . په دې کې زيد مفعول به دې کوم چې د فاعل د قائمقام کيدو دپاره متعين دې او يوم الجمعة مفعول فيه ظرف زمان دې او امام الامير مفعول فيه ظرف مکان دې ضربا شديدا مفعول مطلق نوعي دپاره دې او في داره جار مجرور دې کوم چې د فضله في الکلام کيدو د مفاعيلو مشابه دي ددې نه پس وان لم يکن سره دابيانوي چې که چيرته په کلام کې مفعول به ونه موندل شي نو باقي مفاعيل د فاعل قائمقام کيدو کې برابر دي بل ته ترجيح نه شي ورکولې بيا والاول من سره يې داظاهره کړه چې د باب اعطيت مفعول ثاني د فاعل قائمقام کول جائز دي ليکن اول مفعول د فاعل قائمقام کول اولى دي .

**اغراض د جامي**: في الکلام : داد وجه د صلې بيان دي .

مع غيره : په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داخبره واضحه ده چې کله په کلام کې مفعول به وموندل شي نو د فاعل د قائمقام کيدو دپاره همدا متعين وي لهذا ددې ذکر کولو ضرورت نشته .

**جواب** : مراد دانه دي چې يواځې مفعول به وي بلکه مراد دادې چې په کلام کې مفعول به هم وي او باقي مفاعيل هم وي کوم چې د فاعل د قائمقام کيدو صلاحيت لري نو په دې وخت کې فاعل د قائمقام کيدو دپاره به مفعول به متعين وي .

اى المفعول : په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د مرجع دي د تعين د ضمير مرجع يې متعين کړه چې د ضمير مرجع موقع الفاعل دي .

لهذا : په دې عبارت سره غرض د شارح د فاعل د قائمقام کيدو دپاره د مفعول به د متعين کولو وجه بيانوي چې د مفعول به د فاعل سره شديد مشابهت دې ځکه چې لکه څنګه د فعل متعدي تعقل په فاعل باندې موقوف دي نو همدا رنګې په مفعول به باندې هم موقوف دي مثلاً ضرب

چې لکه څنګه د دې تعقل د ضارب نه په غير ممکن نه دې همدارنګې د مضروب نه په غير هم ممکن نه دي په خلاف د باقي مفاعيلو چې هغه په دې مرتبه کې نه دي نو د دې وجې نه به نائب فاعل به مفعول به وي

**تقول ضرب زيد** : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو مثال پيش کول دي چې په هغې کې مفعول به او ټول مفاعيل موندل کيږي کوم چې د فاعل د قائمقام جوړيدو صلاحيت لري لکه ضرب زيد يوم الجمعة امام الامير ضربا شديدا في داره په دې کې زيد مفعول به دي چې د فاعل د قائمقام کيدو د پاره متعين دي او يوم الجمعة مفعول فيه ظرف زمان دي او امام الامير مفعول فيه ظرف مکان دي ضربا شديدا مفعول مطلق د نوع د پاره دي او في داره جار مجرور د فضله في الکلام کيدو د وجې نه د مفاعيلو مشابه دي .

**باعتبار الصفة** : په دې عبارت سره غرض دشارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مفعول مطلق نوعي څنګه جوړ شو حالانکه مفعول مطلق نوعي د پاره شرط دي چې فاء کلمه مکسوره وي او په آخر کې يې تاء وي .

**جواب** : مفعول مطلق نوعي په دوه قسمه دي : (۱) مفعول مطلق نوعي په اعتبار د صفت سره . (۲) مفعول مطلق نوعي په اعتبار د صيغې سره ، دلته مفعول مطلق نوعي په اعتبار د صفت سره دي او د فاء کلمې مکسور کيدل او په آخر کې تاء کيدل دا شرط په مفعول مطلق نوعي په اعتبار د صيغې سره دي .

**وفائدة** : په دې عبارت سره غرض دشارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د مفعول مطلق مثال خو په ضربا باندې پوره شو بيا شديدا راوړو ته څه ضرورت وو ؟

**جواب** : ضربا يې د شديدا سره د متصف کولو فائده په دې خبره باندې تنبيه کول دي چې مصدر په غير د مخصص د فاعل قائمقام نه شي کيدې ځکه چې يواځې د مصدر يې د قيد د مخصص نه کومه معتد به فائده نه وي ځکه چې په مصدري معنی باندې په خپله فعل مذکور دلالت کوي حالانکه د فاعل د عمده کيدو د وجې نه معتد به د فائدې محل دي لهذا کوم څيز نه چې کوم معتد به فائده نه وي نو هغه د فاعل قائمقام نه شي کيدې مګر دا چې کله مصدر په يو صفت سره متصف کړې شي نو د دې نه به دا فائده حاصله وي لهذا دا د فاعل قائمقام جوړيدې شي .

اى وان لم يوجد: په دې عبارت سره غرض د شارح دا ظاهرول دي چې په لم يكن كې كان تامه دي ، دلم يوجد په معنى كې دي .

في الكلام: په دې عبارت سره غرض د شارح لم يكن په معنى دلم يوجد دصلې بيان كوي .

المفعول به: په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د مرجع دي چې دلم يكن د ضمير مرجع مفعول دي .

اى جميع ماسوى: په دې عبارت سره شارح دې خبرې طرف ته اشاره كوي چې په جميع باندې الف لام د مضاف اليه د عوض نه دي كوم چې مفعول به دي .

في جواز: په دې عبارت سره د سواء دصلې بيان كوي .

المفعول: په دې عبارت سره شارح بيان د تركيب كوي چې الاول صفت دي د دې موصوف محذوف المفعول دي .

اى الفعل المتعدي: په دې عبارت سره شارح دا بيانوي چې د باب اعطيت نه مراد هر هغه فعل دي چې دوه مفعولينو طرف ته متعدي وي او د مفعول ثاني مفعول اول نه جدا وي .

بان: په دې عبارت سره شارح دصلې بيان كوي .

المفعول: په دې عبارت سره دا ظاهروي چې الثاني صفت دي د موصوف محذوف چې هغه المفعول دي .

لان فيه معنى: په دې عبارت سره شارح د نيابت د فاعل د پاره د باب اعطيت د مفعول اول د اولى كيدو وجه بيانوي چې حاصل يې دا دې چې د باب اعطيت اول مفعول د فاعل قائمقام كول ځكه اولى دي ځكه په دې كې په نسبت د دويم مفعول د فاعليت والا معنى زياته موندل كيږي ځكه چې مفعول اول آخذ ( يعنې اخستونكي ) وي او دويم مفعول مأخوذ ( اخستل شوي ) وي لكه اعطيت زيدا درهما په دې كې زيد آخذ ( اخستونكي دي ) او درهما مأخوذ دي د دې وجې نه مفعول اول د فاعل قائمقام كول اولى دي چنانچه اعطي درهم زيدا هم ويل جائز دي ليكن اعطي زيد درهما ويل اولى دي .

وذلك عند الامن من اللبس: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال**: دا مخكنې قاعده په اعطي زيد عمروا سره منقوضه او ماته ده ځكه چې په دې كې

مفعول اول زید دفاعل قائمقام کول اولی نه دي بلکه واجب دي او دویم مفعول دفاعل قائمقام کول جائز نه دي

**جواب**: دمفعول اول اولویت او ددویم مفعول جواز په هغه وخت کې دي چې کله دالتباس نه په امن کې وي او په ذکر شوي مثال کې دالتباس نه امن نشته ځکه چې دا نه معلومیږي چې ورکونکي څوک دي او ورکړې شوي څیز څه دي ددې وجې نه مفعول اول دفاعل قائمقام کول واجب دي

﴿وَ مِنْهَا الْمُبْتَدَأُ وَالْخَبَرُ﴾:

## مبتداء او خبر:

| |
|---|
| وَ مِنْهَا الْمُبْتَدَأُ وَالْخَبَرُ فِيْ بَعْضِ النُّسَخِ وَمِنْهُ يَعْنِيْ مِنْ جُمْلَةِ الْمَرْفُوْعَاتِ اَوْمِنْ جُمْلَةِ الْمَرْفُوْعِ الْمُبْتَدَأُ وَ |
| او ددې نه مبتدا او خبر ده په بعضې نسخو کې ومنه دي یعنې دجملې دمرفوعاتو نه او یا دجملې دمرفوع نه مبتدا او |
| الْخَبَرُ جَمَعَهُمَا فِيْ فَصْلٍ وَاحِدٍ لِلتَّلَازُمِ الْوَاقِعِ بَيْنَهُمَا عَلٰى مَا هُوَ |
| خبر دي او دا دواړه یې جمع کړل په یو فصل کې دوجې دتلازم نه چې واقع دي په مینځ ددې دواړو کې بناء په هغه څه چې |
| الْاَصْلُ فِيْهِمَا وَ اشْتِرَاكُهُمَا فِي الْعَامِلِ الْمَعْنَوِيِّ فَالْمُبْتَدَاءُ هُوَ الْاِسْمُ لَفْظاً اَوْ تَقْدِيْراً |
| اصل دي په دې دواړو کې او ددواړو دشریکیدو دوجې نه په عامل معنوي کې نو مبتدا هغه اسم دي لفظاً یا تقدیراً دي |
| لِيَتَنَاوَلَ نَحْوَ اَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ الْمُجَرَّدُ عَنِ الْعَوَامِلِ اللَّفْظِيَّةِ اَيِ الَّذِيْ لَمْ يُوْجَدْ |
| دپاره چې شامل شي دې مثال ته چې ان تصوموا خیر لکم چې خالي دي دعوامل لفظیو نه یعنې هغه چې نه وي موجود |
| فِيْهِ عَامِلٌ لَفْظِيٌّ اَصْلاً وَ احْتَرَزَ بِهٖ عَنِ الْاِسْمِ الَّذِيْ فِيْهِ عَامِلٌ لَفْظِيٌّ كَاسْمَيْ |
| په دې کې عامل لفظي بالکل او احتراز یې وکړو په دې سره دهغه اسم نه چې په دې کې عامل لفظي وي لکه اسم |
| اِنَّ وَ كَانَ وَ كَاَنَّهٗ اَرَادَ بِالْعَامِلِ اللَّفْظِيِّ مَا يَكُوْنُ مُؤَثِّراً فِي الْمَعْنٰى لِئَلَّا |
| دان او دکان او ګویا چې اراده کړې په دې سره عامل لفظي هغه چې مؤثر وي په معنی کې ددې وجې نه چې ونه |
| يَخْرُجَ عَنْهُ مِثْلُ بِحَسْبِكَ دِرْهَمٌ مُسْنَداً اِلَيْهِ وَ احْتَرَزَ بِهٖ عَنِ الْخَبَرِ وَ ثَانِيْ قِسْمَيِ الْمُبْتَدَاِ |
| وخي ددې نه دا مثال بحسبک درهم مسند الیه وي او احتراز یې وکړو په دې سره دخبر نه او دقسم ثاني دمبتداء نه کوم |
| الْخَارِجِ عَنْ هٰذَا الْقِسْمِ فَاِنَّهُمَا لَا يَكُوْنَانِ اِلَّا مُسْنَدَيْنِ. |
| چې ددې قسم نه خارج دي ځکه چې دا دواړه نه وي مګر مسند. |

**خلاصه دمتن**: صاحب دکافیې دمبتدا داول قسم تعریف کوي مبتدا هغه اسم دي چې دعوامل لفظیو نه خالي وي او مسند الیه وي.

**اغراض دجامي**: <u>وفي بعض النسخ</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان داختلاف د نُسخو دي چې په بعضې نسخو کې **ومنها المبتدا والخبر** دي اوپه بعضې کې **ومنه المبتدا والخبر** دي ، که چيرته **منها** وي نوضمير د مرجع به مرفوعات ته راجع وي مطلب به يې داوي چې من جمله دمرفوعاتو نه مبتدا اوخبر دي ، او که چيرته **منه** وي نومرجع به يې مرفوع وي معنی به يې دا وي چې دجمله مرفوع نه مبتدا اوخبر دي په دواړو صورتونو کې **من** تبعيضيه دي اومنه والا نسخه راجح ده ځکه چې ماقبل **فمنه الفاعل** سره موافقت کيږي

<u>**جمعهما في فصل واحد**</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر حواب ورکول دي :

**سوال**: دمبتدااوخبرنه هر يو دمرفوعاتو جدا اومستقل قسم دي نو هر يو يې په جدا فصل کې بيانول په کاروو لکه نور مرفوعات يې په منها يا په منه سره جدا ذکر کړي دي ، مصنف داپه يوفصل کې ولې جمع کړو ؟

**جواب**: شارح مبتدا اوخبر په يو فصل کې دجمع کولو دوه وجې بيان کړي دي : (۱) اوله وجه دتلازم دوجې نه چې په مبتدا اوخبر کې داصل دلحاظ نه تلازم دي يودبل سره لازم اوملزوم دي هيڅ يوه مبتدا بې دخبر نه ، نه وي اوهيڅ يو خبر بې دمبتدا نه ، نه وي نوګويا چې دا دواړه جوړه وړونه دي(۲) دويمه وجه داده چې په مبتدا اوخبر کې عامل معنوي يعنې په ابتداء کې هم شريک دي ددې دواړو وجهو نه يې دا دواړه په يو فصل کې ذکر کړل .

<u>**على ماهو الاصل فيهما**</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: ستاسوداقول چې دمبتدا اودخبر په مينځ کې تلازم دي هيڅ يوه مبتدا بې دخبر نه ، نه وي او هيڅ يو خبر بې دمبتدا نه ، نه وي نودامنقوض دي په مبتدا قسم ثاني سره ځکه چې هغه داسې مبتدا ده چې بې دخبر نه وي ځکه چې ددې مابعد فاعل وي نه خبر لکه **اقائم زيد** کې **قائم** مبتدا قسم ثاني دي **زيد** ددې فاعل دي .

**جواب**: **على ماهو الاصل** سره علامه جامي ددې سوال جواب ورکوي چې تلازم په هغه صورت کې دي چې کله مبتدا اوخبر په خپل اصل باندې وي اوهغه اصل دادې چې مبتدا مسنداليه او خبر مسند وي چونکه مبتدا قسم ثاني کې مبتدا په خپل اصل ( مسند اليه ) باندې نه دي بلکه مسند دي ځکه چې هلته تلازم نشته .

لفظاً اوتقديراً: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : دمبتدا قسم اول تعريف جامع نه دي دا په ان تصوموا خير لکم کې په ان تصوموا باندې صادق نه راځي ځکه چې په تعريف کې هوالاسم قيد دي حالانکه ان تصوموا فعل دي نو تعريف په دې باندې صادق نه راځي لهذا تعريف جامع نه دي

**جواب** : هو الاسم کې تعميم دي برابره خبره ده که لفظاً وي يا تقديراً اوياحکايتاً اوياتاويلا په ذکر شوي مثال کې ان تصوموا اگرچې لفظاً اسم نه دي ليکن تقديراً او تاويلاً اسم دي ځکه چې دان مصدريه دوجې نه دصومکم په تاويل کې دي .

لم يوجد: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : المجرد دتجريد نه مشتق دي چې ددې معنی ده خالي کول اوپوځيز دبل ځيز نه خالي کول دا تقاضا کوي ددې خبرې چې اول هغه ځيز موجود وي بيا وروسته خالي کړي شوي وي لکه زيد مجرد عن الثياب داتقاضا کوي دجامو دوجود مخکې ددې نه معلومه شوه چې مبتدا باندې مخکې عامل لفظي موجود وو بيا مبتدا ددې نه خالي کړي شوه حالانکه په مبتدا باندې خو دسره عامل لفظي وي نه .

**جواب** : المجرد په معنی دالذي لم يوجد کې دي يعني عامل لفظي بالکل نه موندل کيږي .

اصلا: په دې عبارت سره شارح وضاحت کوي چې دعدم وجود نه مراد عدم وجود په طريق دسلب کلي سره دي نه په طريق درفع ايجاب کلي ، په ساده الفاظو کې داويلي شي چې مراد دادې چې عامل لفظي بالکل موندل کيږي نه دامراد نه دي چې اکثر نه موندل کيږي اوکله کله موندل کيږي .

واحترز به: په دې عبارت سره غرض دشارح مجرد عن العوامل اللفظية دقيد فائده بيانول دي چې دا قيد احترازي دي په دې سره احتراز دي دهغه اسم نه چې په هغې کې عامل لفظي موندل کيږي لکه د ان او د کان وغيره اسم .

کانه اراد: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمبتدا تعريف جامع نه دي په بحسبک درهم کې په بحسبک باندې نه صادقيږي ځکه چې داد عامل لفظي نه خالي نه دي حالانکه دامبتدا ده .

**جواب** : دعامل نه مراد هغه عامل دي چې په لفظ اومعنی دواړو کې مؤثر وي نومقصد به دا وي چې مبتدا به د داسې عامل لفظي نه خالي وي چې په لفظ او معنی دواړو کې مؤثر وي او په ذکر شوي مثال کې باء لفظ کې خو مؤثر ده لیکن په معنی کې مؤثر نه ده ځکه چې دا زائده ده.

واحترزبه: په دې عبارت سره غرض دشارح دمسند الیه دقید فائده بیانول دي چې داقید احترازي دي په دې سره دخبر اودمبتدا قسم ثاني نه احتراز دي ځکه چې دا مسند الیه نه وي بلکه مسند وي

## د مبتداء ثاني تعریف :

| |
|---|
| أَوِ الصِّفَةِ سَوَاءٌ كَانَتْ مُشْتَقَّةً كَضَارِبٍ وَ مَضْرُوبٍ وَ حَسَنٍ أَوْ جَارِيَةً مَجْرَاهَا كَقُرَشِيٍّ |
| یاصیغه دصفت وي برابره خبره ده که مشتق وي لکه ضارب مضروب حسن یادهغې قائمقام وي لکه قریشي |
| الْوَاقِعَةِ بَعْدَ حَرْفِ النَّفْيِ كَمَا وَلَا أَوْ أَلِفِ الْإِسْتِفْهَامِ وَ نَحْوِهِ كَهَلْ وَمَا وَ مَنْ وَ عَنْ سِيْبَوَيْهِ |
| یاواقع وي پس دحرف نفي نه لکه ماولایاالف استفهام اوددې مثال نه وروستولکه هل اوماومن اودسیبویه نه |
| جَوَازُ الْإِبْتِدَاءِ بِهَا مِنْ غَيْرِ إِسْتِفْهَامٍ وَنَفْيٍ مَعَ قُبْحٍ وَ الأخفش يَرَى ذٰلِكَ حَسَناً وَ عَلَيْهِ |
| نقل دي چې ابتداء دهغې سره بغیر استفهام اونفي وي مګرقباحت سره اواخفش دې دا ښه ګڼړي اوپه دې باندې |
| قَوْلُ الشَّاعِرِ ع فَخَيْرٌ نَحْنُ عِنْدَ النَّاسِ مِنْكُمْ فَخَيْرٌ مُبْتَدأٌ وَ نَحْنُ فَاعِلُهُ وَ لَوْ جُعِلَ خَيْرٌ |
| دشاعرقول پیش کوي فَخَيْرٌ نَحْنُ عِنْدَ النَّاسِ مِنْكُمْ پس خبرمبتدادي اونحن ددې فاعل دي اګرکه جوړکړې شي |
| خَبَراً عَنْ نَحْنُ لَفُصِلَ بَيْنَ إِسْمِ التَّفْضِيلِ وَمَعْمُوْلِهِ الَّذِيْ هُوَ مِنْ بِأَجْنَبِيٍّ وَهُوَ غَيْرُ جَائِزٍ لِضُعْفِ |
| خبردنحن خبرنواسم تفضیل اودهغې معمول په مینځ کې چې من دي اجنبي فاصله لازمیږي اودا جائزنه دي دضعیف |
| عَمَلِهِ بِخِلَافِ مَا لَوْ كَانَ فَاعِلًا لِكَوْنِهِ كَالْجُزْءِ رَافِعَةً |
| عمل دوجې نه په خلاف ددې صورت کې که چیرته نحنُ فاعل وي ځکه چې دهغه جُزپه شان وي کوم چې رفع ورکوي |
| لِظَاهِرٍ وَ مَا يَجْرِيْ مَجْرَاهُ وَ هُوَ الضَّمِيْرُ الْمُنْفَصِلُ لِئَلَّا يَخْرُجَ نَحْوُ قَوْلِهِ تَعَالٰى |
| اسم ظاهرته اوکوم چې دهغې قائمقام وي اوهغه ضمیر منفصل دي ځکه چې ونه وځي دې سره داقول دالله تعالی |
| أَرَاغِبٌ أَنْتَ عَنْ آلِهَتِيْ يَا إِبْرَاهِيْمُ وَاحْتَرَزَ بِهِ عَنْ نَحْوِ أَقَائِمَانِ الزَّيْدَانِ لِأَنَّ أَقَائِمَانِ رَافِعٌ |
| أَرَاغِبٌ أَنْتَ عَنْ آلِهَتِيْ يَا إِبْرَاهِيْمُ اوپه دې سره احتراز کړي دې مثال داقائمان الزیدان نه ځکه چې اقائمان رفع ورکوونکي |
| لِضَمِيْرٍ عَائِدٍ إِلَى الزَّيْدَانِ وَ لَوْ كَانَ رَافِعَانِ لِهٰذَا الظَّاهِرِ لَمْ يَجُزْ تَثْنِيَةٌ |
| دې هغه ضمیرته کوم چې الزیدان طرف ته راجع دي اوکه چیرته دې اسم ظاهرته رفع ورکولې نونه ده جائزتثنیه ددې |

| مِثْلَ زَيْدٌ قَائِمٌ مِثَالٌ لِلْقِسْمِ الْاَوَّلِ مِنَ الْمُبْتَدَاِ وَمَا قَائِمٌ الزَّيْدَانِ مِثَالٌ لِلصِفَةِ الْوَاقِعَةِ بَعْدَ حَرْفِ |
|---|
| لکه زيد قائم دامثال دمبتدا قسم اول دي اوماقائم الزيدان دامثال دي دهغه صفت کوم چې واقع وي پس دحرف |
| النَّفْيِ وَ اَقَائِمٌ الزَّيْدَانِ مِثَالٌ لِلصِفَةِ الْوَاقِعَةِ بَعْدَ حَرْفِ الْاِسْتِفْهَامِ. |
| نفي نه واقائم الزيدان مثال دي دهغه صيغې صفت کوم چې واقع وي حرف استفهام نه وروستو. |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت کې دمبتداء د قسم ثاني تعريف بيانيږي چې مبتداء قسم ثاني هغه دصفت صيغه ده چې حرف نفي يا الف استفهام نه وروستو واقع وي او اسم ظاهر ته رفع ورکړي.

**اغراض دجامي**: سواء كانت: په دې سره غرض دشارح ديوسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: د مبتداء د قسم ثاني تعريف جامع نه دي په **قريشي** انت کې په قريشي باندې نه صادقيږي ددې وجې نه چې هغه دصفت صيغه نه ده حالانکه هغه مبتداء ثاني ده اوخپل مابعد انت ته رفع ورکوي.

**جواب**: صفت کې عموم دي برابره خبره ده که حقيقتاً وي لکه مشتقات ضارب، مضروب، حسن و غيره، ياحکماً وي يعنې دمشتق قائمقام وي اودهغې په حکم کې وي اوس دمبتداء قسم ثاني تعريف په قريشي باندې صادقيږي ځکه چې دا اسم منسوب دي، او اسم منسوب دمشتقاتو حکم لري.

كماولا: په دې عبارت کې غرض دشارح تعين دمصداق دحرف نفي کړي دي چې دحرف نفي مصداق ماولا دي.

ونحوه: په دې سره غرض دشارح جواب دسوال مقدر دي:

**سوال**: دمبتداء قسم ثاني تعريف جامع نه دي داپه **هل قائم زيد** کې په قائم باندې نه صادقيږي ددې وجې نه چې داحرف نفي يااستفهام نه وروستو واقع نه دي حالانکه دامبتداء قسم ثاني ده.

**جواب**: الف استفهام معطوف عليه دي اومعطوف سره دحرف عطف محذوف دي تقدير د عبارت داسې دي چې: **الف الاستفهام ونحوه**، نو ددې نه معلومه شوه چې صرف الف استفهام مراد نه دي بلکه الف استفهام اوددې په شان نور حروف استفهاميه لکه من ما او هل وغيره

مراد دي . او س تعریف په هل زید قائم کې په قائم باندې صادقیږي .

وعن سیبویه : په دې کې غرض دشارح په صاحب دکافیه باندې اعتراض کول دي په مع القبح سره ددې جواب طرف ته اشاره کوي

**اعتراض** : سیبویه حرف نفي اواستفهام نه په غیرهم دصفت صیغه مبتداء جوړول جائز ګنړي او تاسو حرف نفي یا الف استفهام لره شرط مقرر کړي نوتاسو دامام النحوین مخالفت ولې کوي ؟

**جواب** : شارح مع القبح سره ددې جواب طرف ته اشاره کړي ده اګرکه سیبویه حرف نفي او الف استفهام بغیر دصفت صیغې لره مبتداء جوړول جائز کړي دي لیکن مع القبح سره دا اعتراف هم کړي دي چې دا قبیح اوناخوښه دي لهذا دمصنف قول راجح او غوره دي ځکه چې مصنف دحق تابع دي د سړو یعنې دخلکو تابع نه دي .

والاخفش : په دې سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستاسو خبره مو ومنله چې سیبویه دې لره قبیح ګنړي لیکن امام اخفش حرف نفي اواستفهام نه بغیردصفت صیغې لره مبتدا مستحسن اوښه ګنړي اوامام اخفش په دلیل کې دشاعر داشعر پیش کوي چې فَخَيْرٌ نَحْنُ عِنْدَ النَّاسِ مِنْكُمْ .

**طریقه داستدلال** : طریقه داستدلال داده چې په دې کې خیر صیغه دصفت ده اوداد مبتداء قسم ثاني ده اونحن فاعل قائمقام دخبر دي اوخیر نه دحرف نفي نه وروستو واقع دي اونه د الف استفهام نه وروستو واقع دي ددې نه معلومه شوه چې حرف نفي اوالف استفهام نه بغیر هم صیغه دصفت د مبتداء قسم ثاني جوړول مستحسن اوښه دي .

**جواب** : دامام اخفش ددې استدلال نه دوه (۲) جوابونه دي :

**جواب (۱)** : داشعر دکلام دفصحاو نه ،نه دي بلکه دغیر فصحاء کلام دي اودې لره استشهاد اودلیل نه شي جوړولې .

**جواب (۲)** : اګرکه داد فصحاو دکلام نه ومنل شي نوبیابه هم مونږ داسې وایو چې داد ضرورتِ شعري دوجې نه دي .

ولوجعل : په دې سره غرض دشارح دامام اخفش په استدلال باندې دیو سوال جواب ورکول دي .

**سوال** : مونږ دانه منو چې په ذکر شوي شعر کې خیر صیغه دصفت ده چې مبتداءقسم ثاني او نحن فاعل قائمقام دخبر دي بلکه خیر خبر مقدم اونحن مبتدا مؤخر ده اوداد مبتدا اول د قبیلې نه دي . لهذا دامام اخفش استدلال صحیح نه دي ؟

**جواب** :اګر که خیر لره خبر مقدم او نحن مبتداء مؤخر جوړکړي شي نواسم تفضیل یعنې خیر او ددې معمول یعنې من په مینځ کې په اجنبي څیز سره فاصله راځي اوهغه اجنبي څیز نحن مبتدا ده حالانکه اسم تفضیل کمزورې عامل دي داسم تفضیل اودهغې دمعمول په مینځ کې په اجنبي څیز سره فاصله جائز نه ده .

په خلاف ددې صورت کې چې خیر صیغه دصفت دمبتداء قسم ثاني وي اونحن فاعل قائمقام خبر کې وي نوپه دې صورت کې په اجنبي څیز سره فاصله نه راځي بلکه د نحن فاعل فاصله به وي اوفاعل په منزله دجز کې وي .

**ومايجري**: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمبتداء قسم ثاني تعریف جامع نه دي داپه أَرَاغِبٌ أَنْتَ عَنْ آلِهَتِي يَا إِبْرَاهِيمُ ، کې په أَرَاغِبٌ باندې نه صادقیږي ځکه چې دا اسم ظاهر ته رفع نه ورکوي بلکه ضمیر انت ته رفع ورکوي حالانکه دا مبتداء قسم ثاني ده .

**جواب** : په اسم کې تعمیم دي برابره خبره ده که اسم ظاهر وي یاداسم ظاهر قائمقام وي او قائمقام نه مراد ضمیر منفصل دي ددې وجې نه چې لکه څنګه اسم ظاهر په تلفظ کې غیر ته محتاج نه وینو همدارنګې ضمیر منفصل هم په خپل تلفظ کې غیر ته محتاج نه دي ، اوس دلته دمبتداء ثاني تعریف په أَرَاغِبٌ أَنْتَ عَنْ آلِهَتِي يَا إِبْرَاهِيمُ باندې صادق شو .

**واحترزبه**: په دې عبارت سره غرض دشارح رافعة للظاهر دقید فائده ذکر کوي چې داقید احترازي دي ددې نه اقائمان الزيدان خارج شو ، ځکه چې صیغه دقائمان صفت دي اواسم ظاهر لره رفع نه ورکوي بلکه اسم ضمیر ته رفع ورکوي قرینه ورباندې داده چې که صیغه دصفت اسم ظاهر دپاره رافع وي نو فعل وشبه فعل تثنیه به نه وي ځکه چې کله فاعل اسم ظاهر وي نوفعل وشبه فعل به همیشه دپاره واحد راځي برابره خبره ده که فاعل تثنیه وي اوکه جمع .

**مثال للقسم الاول**: په دې عبارت سره غرض دشارح بیان دتعین دممثل له دي چې زيد قائم دا

مبتدا د قسم اول مثال دي

<u>مثال للصفة</u>: په دې عبارت سره هم غرض دشارح بيان دتعين د ممثل لـه دي **اقائم الزيدان**، دا هغه صيغې دصفت بيان دي چې دالف استفهام نه پس واقع وي.

## د صيغې د صفت تركيبي احتمالات:

| فَاِنْ طَابَقَتِ الصِّفَةُ الْوَاقِعَةُ بَعْدَ حَرْفِ النَّفْيِ وَ الْاِسْتِفْهَامِ اِسْمًا مُفْرَدًا مَذْكُوْرًا |
| --- |
| كه چيرته مطابق وي صيغه دصفت چې واقع وي وروستو دحرف نفي او استفهام نه او هغه اسم مفرد چې مذكور وي |
| بَعْدَهَا نَحْوُ مَا قَائِمٌ زَيْدٌ وَ اَقَائِمٌ زَيْدٌ وَ احْتَرَزَ بِهٖ عَمَّا اِذَا طَابَقَتْ |
| دهغې نه وروستو لكه ماقائم زيد او اقائم زيد او احترازيې كړې دي ددې په ذريعې سره دهغې نه چې كله مطابق وي |
| مُثَنًّى نَحْوُ اَقَائِمَانَ الزَّيْدَانِ اَوْ مَجْمُوْعًا نَحْوُ اَقَائِمُوْنَ الزَّيْدُوْنَ فَاِنَّهَا حِيْنَئِذٍ خَبَرٌ لَيْسَ اِلَّا |
| دتثنيې سره لكه اقائمان الزيدان يا دجمع برابروي لكه اقائمون الزيدون پس په دې وخت كې خبر به نه وي جائز مگر |
| جَازَ الْاَمْرَانِ كَوْنُ الصِّفَةِ مُبْتَدَأً وَمَا بَعْدَهَا فَاعِلُهَا يَسُدُّ مَسَدَّ الْخَبَرِ وَكَوْنُ مَا بَعْدَهَا مُبْتَدَأً وَالصِّفَةِ خَبَرًا |
| دوه امرونه صيغه صفت مبتدا جوړول او مابعد فاعل قائم دخبر وي او مابعد به مبتدا وي او صيغه دصفت به خبر |
| مُقَدَّمًا عَلَيْهِ فَهٰهُنَا ثَلٰثُ صُوَرٍ اَحَدُهَا اَقَائِمَانِ الزَّيْدَانِ وَيَتَعَيَّنُ حِيْنَئِذٍ اَنْ يَكُوْنَ الزَّيْدَانِ مُبْتَدَأً |
| مقدم وي نو دلته درې صورتونه دي ددې نه يو اقائمان الزيدان او متعين به وي په دې وخت كې دا الزيدان مبتداء |
| وَاَقَائِمَانِ خَبَرًا مُقَدَّمًا عَلَيْهِ وَثَانِيَتُهَا اَقَائِمٌ الزَّيْدَانِ وَ يَتَعَيَّنُ حِيْنَئِذٍ اَنْ يَكُوْنَ الزَّيْدَانِ |
| او اقائمان خبر مقدم به وي او بل په دې كې اقائم الزيدان دي او متعين به وي په هغه وخت كې چې الزيدان صيغه د |
| فَاعِلًا لِلصِّفَةِ قَائِمًا مَقَامَ الْخَبَرِ وَ ثَالِثُهَا اَقَائِمٌ زَيْدٌ وَ يَجُوْزُ فِيْهِ الْاَمْرَانِ كَمَا عَرَفْتَ. |
| صفت دپاره فاعل قائمقام خبر وي په دې كې دريم اقائم زيد په دې كې دوه امره جائز دي لكه تاچې پيژندلي دي |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت كې صاحب دكافيې يو قانون او قاعده بيانوي فرمايي چې كه چيرته صيغه دصفت اسم ظاهر دمفرد مطابق وي نو په دې كې دوه طريقې جائز دي: (۱) صيغه دصفت دمبتداء قسم ثاني وي او دهغې مابعد فاعل قائمقام دخبر كې وي. (۲) صيغه دصفت خبر مقدم او دهغې مابعد مبتداء مؤخر جوړول جائز دي.

**اغراض دجامي**: <u>الصفة الواقعة</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال** : د طابقت په مرجع د هِيَ ضمير کې دوه (۲) احتمالات دي (۱) یابه دهغې مرجع مطلق صفت وي (۲) یا به مرجع هغه صفت وي کوم چې دحرف نفي یاحرف استفهام نه وروستو واقع وي پس دواړه احتمالات صحیح نه دي ، اول احتمال ځکه صحیح نه دی که چیرته د**طابقت هِيَ** ضمیر مرجع مطلقِ صفت جوړ شي نو په **قائم زيد** کې به هم دوه امره جائز شي حالانکه دلته دوه امره جائز نه دي ، بلکه دصيغه صفت خبر مقدم اودهغې مابعد مبتدا مؤخر کیدل متعین دي اودویم احتمال ځکه صحیح نه دي که چیرته هِيَ ضمیر مرجع هغه صیغه د صفت وي کوم چې حرف نفي یاحرف استفهام نه وروستو واقع وي اورفع ورکوونکي وي اسم ظاهر ته نوکله چې هغه اسم ظاهردپاره رافع وي نو اسم ظاهر به دهغې معمول وي نوبه دې کې دوه طریقې څنګه جائز دي .

**جواب** : د**طابقت** د هِيَ ضمیر مرجع هغه صیغه دصفت ده کوم چې حرف نفي یا الف استفهام نه وروستو واقع وي لیکن **رافعةً لظاهر** دقید سره یې لحاظ ساتلي دي یعنې چې په مرجع کې قید اول خو ملحوظ دي خو قید ثاني متروک وي .

اسماً: په دې عبارت سره شارح دا ذکر کړي دي چې **مفرداً** صفت دي دموصوف محذوفه چې اسماً دي .

مذكوراً بعدها : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستا مذکوره قاعده منقوضه اوماته ده په **زيد قائم** سره ځکه چې په دې مثال کې **قائم** صیغه دصفت ده اواسم ظاهر په **زيد** سره دمفرد کیدو کې مطابق دي ، نو په دې کې دوه امره جائز کیدل په کار دي حالانکه دلته دوه طريقې جائز نه دي.

**جواب** : **مذكوراً بعدها** سره غرض دشارح دجامي ددې اشکال جواب ورکول دي کوم چې د **مفرداً** نه وروستو صفت محذوف دي چې **مذكوراً بعدها** دي یعنې دصفت صیغې اسم ظاهر دمفرد سره مطابق وي اواسم ظاهر مفرد دهغې نه وروستو ذکر وي هلته په دې کې دوه امره یعنې دوه طریقې جائز وي او په **زيد قائم** کې اسم ظاهر دصیغې دصفت نه وروستو واقع نه دي بلکې مخکې یعنې په اول کې واقع دي ددې وجې نه دوه طریقې جائز نه دي .

ماقائم زيد : دا دهغه صيغې دصفت مثال دي کوم چې حرف استفهام نه وروستو واقع وي اود

اسم مفرد موافق وي

**واحترز به**: په دې سره غرض دشارح دمفرداً دقيد فائده بيانول دي په دې سره احتراز دي د هغې صيغې دصفت نه کوم چې اسم ظاهر لره تثنيه اوجمع کې موافق وي ، دتثنيې مثال **ما قائمان الزيدان** اودجمع مثال **ما قائمون الزيدون** ، په دې صورتونو کې دوه طريقې جائز نه دي بلکه دصيغې دصفت خبر مقدم اواسم ظاهر مبتدا کيدل متعين دي .

**کون الصفة**: په دې سره غرض دشارح دامران مصداق بيانول دي چې ددې مصداق دوه شيان دي :

(۱) دصيغې دصفت مبتدا قسم ثاني اومابعد فاعل قائمقام دخبر وي .

(۲) دصيغې د صفت خبر مقدم اومابعد به مبتدا مؤخر وي .

**فههنا ثلاث**: دلته ټول څلور صورتونه دي چې په هغې کې درې مستعمل اوجائز دي اوڅلورم غير مستعمل اوناجائز دي هغه درې (۳) استعماله دادي :

(۱) دا صيغه صفت اسم ظاهرسره په تثنيه اوجمع کې موافق وي دتثنيې مثال **اقائمان الزيدان**، دجمع مثال **اقائمون الزيدون** په دې کې دوه طريقې جائز نه دي بلکې صيغه دصفت خبر مقدم کيدل اومابعد مبتدا مؤخر کيدل متعين او واضح دي .

(۲) صيغه دصفت مفرد وي اواسم ظاهر تثنيه وي مثال **اقائم الزيدان** يا جمع وي مثال **اقائم الزيدون** په دې کې هم دوه طريقې جائز نه دي بلکه صيغه دصفت مبتدا ثاني کيدل اووروستي فاعل قائمقام دخبر جوړول واضح اومتعين دي .

(۳) صيغه دصفت دا اسم مفرد موافق وي په دې کې دوه طريقې جائز دي اول داچې صيغه دصفت مبتدا قسم ثاني وي اووروستو فاعل قائمقام دخبر وي . دوهمه داچې صيغه دصفت خبر مقدم وي اومابعد مبتدا مؤخر وي .

(۴) صيغه دصفت تثنيه يا جمع وي اسم ظاهر مفرد وي مثال **اقائمان زيد** ، او **اقائمون زيد** ، داصورت صرف عقلي غير مستعمل اوناجائز دي .

## دخبر تعريف :

| وَالْخَبَرُ هُوَ الْمُجَرَّدُ أَيْ هُوَ الْإِسْمُ الْمُجَرَّدُ عَنِ الْعَوَامِلِ اللَّفْظِيَّةِ لِأَنَّ الْكَلَامَ فِيْ إِسْمِ الْمَرْفُوْعَاتِ فَلَا يَصْدُقُ عَلَى |
|---|
| خبرهغه اسم دي چې خالي وي دعوامل لفظيونه ځکه چې کلام دمرفوعاتو په اسم کې دي پس نه صادقيږي په |

| |
|---|
| يَضْرِبُ فِيْ يَضْرِبُ زَيْدٌ اَنَّهُ الْمَجَرَّدُ الْمُسْنَدُ بِهٖ الْمُغَايِرُ لِلصِّفَةِ |
| يَضرِبُ باندې په يَضرِبُ زيد کې چې هغه خالي دي دعواملو نه مسندبه مغاير وي دهغه صفت د صيغې کوم چې |
| الْمَذْكُوْرَةِ لِاَنَّهٗ لَيْسَ بِاِسْمِ الْمُسْنَدُ بِهٖ اَيْ مَا يُوْقَعُ بِهِ الْاِسْنَادُ وَ احْتَرَزَ |
| مذکوردي خکه چې دااسم نه دي بلکه مسندبه دي يعني هغه څيز کوم سره چې اسنادواقع کيږي اواحترازيې کړي |
| بِهٖ عَنِ الْقِسْمِ الْاَوَّلِ مِنَ الْمُبْتَدَاِ لِاَنَّهٗ مُسْنَدٌ اِلَيْهِ لَا مُسْنَدٌ بِهٖ الْمُغَايِرُ |
| په دې ذريعې سره د مبتدا قسم اول نه خکه چې هغه مسند اليه دي مسند به نه دي کوم چې مغائروي دصيغې د |
| لِلصِّفَةِ الْمَذْكُوْرَةِ فِيْ تَعْرِيْفِ الْمُبْتَدَاِ وَاحْتَرَزَ بِهٖ عَنِ الْقِسْمِ الثَّانِيْ مِنَ الْمُبْتَدَاِ وَلَكَ |
| صفت نه چې ذکرشوي په تعريف دمبتدا کې اواحترازيې کړي په دې سره د مبتدا قسم ثاني نه اوستاد پاره جائز |
| اَنْ تَقُوْلَ الْمُرَادُ الْمُسْنَدُ بِهٖ اِلَى الْمُبْتَدَاِ اَوْ تَجْعَلَ الْبَاءَ فِيْ بِهٖ بِمَعْنٰى اِلٰى |
| دي چې ته ووايې چې مراد هغه دي کوم چې مبتدا طرف ته مسندوي يابه ته گرځوې بالره په بِهٖ کې په منى دالى |
| وَالضَّمِيْرُ الْمَجْرُوْرِ رَاجِعًا اِلَى الْمُبْتَدَاِ وَعَلَى التَّقْدِيْرَيْنِ يَخْرُجُ بِهِ الْقِسْمُ الثَّانِيْ مِنَ الْمُبْتَدَا وَيَكُوْنَ |
| سره اوضمير مجرورلره راجع کړې مبتدا طرف ته اوپه دې صورتونوسره به ووځي دمبتدا قسم ثاني اووي به د |
| قَوْلُهُ الْمُغَايِرُ لِلصِّفَةِ الْمَذْكُوْرَةِ تَاكِيْداً. |
| هغه دا قول الْمُغَايِرُ لِلصِّفَةِ الْمَذْكُوْرَةِ تَاكِيْداً. |

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت کې صاحب دکافيې دخبر تعريف بيانوي چې خبر هغه اسم دي چې عوامل لفظيه نه خالي وي اومسند به وي اودصفتِ مذکوره مغائر وي.

**اغراض دجامي** : اي هو الاسم المجرد: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : دخبر تعريف مانع نه دي په يضرب زيد کې په يضرب باندې صادقيږي خکه چې دا عوامل لفظيه نه خالي دي اومسند به وي اودصفتِ مذکوره مغائر دي حالانکه داخبر نه دي ؟.

**جواب** : المجرد دا صفت دي د موصوف محذوفه چې الاسم دي خکه چې دلته دااسم مرفوعاتو نه بحث کيږي اوخبر دااسم داد مرفوع قسم وي اود قسم په تعريف کې دمقسم ذکر ضروري وي خکه چې دلته الاسم محذوف ملحوظ دي ، نو لهذا په يضرب زيد باندې تعريف نه صادقيږي خکه چې هغه فعل دي.

**سوال** : کله چې دخبر په تعريف کې الاسم قيد ملحوظ دي نو دهغې ذکر يې ولې ونه کړو ؟.

**جواب** : ځکه چې دمبتدا په تعریف کې الاسم لفظ مذکور وو او د مبتدا خبر رکنان متلازمان دي نو په دې باندې یې اکتفاء وکړه .

ای مایوقع به الاسناد: په دې عبارت کې شارح ددوه مقدرو سوالونو جواب ورکوي :

**سوال (۱)** : مسند ماخوذ دي داسناد نه اواسناد دباب افعال مصدر متعدي بنفسه بلاواسطه حرف جر وي نو مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ دې لره په حرف د باء سره ولې متعدي کړو ؟ .

**سوال (۲)** : مسند داسناد نه دي اوداسناد صله الی راځي باء نه راځي نو په کار دا وه چې داسې یې ویلي وې چې المسند الیه .

**جواب** : شارح دجامي ددې نه دري (۳) جوابونه ورکوي :

**جواب (۱)** : جار مجرور دالمسند متعلق دي په اعتبار دتضمین سره او المسند متضمن دي معنی دوقوع لره ، ددې وجې نه مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ المسند به د مایوقع به الاسناد په معنی کې کړې دي او وقوع لازمي څیز دي او وقوع لره متعدي جوړولو دپاره حرف جر ضرورت دي ، ددې وجې نه یې باء ذکر کړو په دې سره اول سوال ختم شو ، اودوقوع صله باء راځي الی نه راځي نو په دې سره دویم سوال هم رفع اوختم شو .

**فائده** : تضمین دفصاحت اوبلاغت یو صفت دي ددې مطلب دادې چې دیو مشبه فعل نه بل مشبه فعل معنی مراد واخیستي شي مجبوري په کې دا وي چې مابعد والاجار مجرور دفعل مذکور متعلق نه شي کیدې شي چې دلته به جار مجرور د المسند متعلق نه شي کیدې نو دا یې د مایوقع به معنی کې ذکر کړه .

واحترز به: په دې عبارت سره غرض دشارح د المسند به د قید فائدې بیانوي چې دا قید احترازي دي په دې سره دمبتداء قسم اول نه احتراز دي ځکه چې هغه مسند الیه وي مسند به نه وي .

في تعریف المبتدا: په دې عبارت سره غرض دشارح د المذکور صله بیان کړې ده .

واحترز به: په دې عبارت سره غرض دشارح دالمغائر للصفة المذکورة دقید بیان دي چې داقید احترازي دي په دې سره احتراز دي دمبتدا د قسم ثاني نه .

**جواب (۲)** : ولک ان تقول ، په دې سره غرض دشارح دجامي المسند به په باره کې دویم

جواب ذکر کوي چې المسند به نه مراد اسناد الی المبتدا دي یعني داسناد صله محذوف ده چې الی المبتداء دي د مسند به معنی ده مسند الی المبتداء.

**جواب (۳)**: اوتجعل له: په دې سره غرض دشارح دالمسند به په باره کې دریم جواب بیانوي چې حرف باء د الی په معنی کې ده اود به ضمیر مرجع مبتدا وي تقدیر دعبارت به داسې شي چې المسند الی المبتدا.

**سوال**: چې کله باء د الی په معنی کې ده نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ داول نه الی ولې ذکر نه کړه چې اشکال د سره پیدا شوي نه وي او المسند الیه به یې ذکر کړي وي ؟

**جواب**: دالی نه باء طرف ته په تللو کې نکته داده چې دالی په ذکر کولو سره دخبر دمبتداء سره التباس لازم راتلو ولې چې مبتدا کې هم المسند الیه مذکور دي که چیرته په خبر کې هم المسند الیه ذکر وي نو په مبتدا اوخبر کې په اعتبار دلفظ سره التباس راتلو نو ددې وجې نه مصنف د إلیه په ځای به ذکر کړو.

وعلی التقدیرین: په دې عبارت سره شارح دابیانوي چې ددوهم تقریر اود دریم تقریر مطابق په المسند به قید سره دمبتدا اول قسم اودوهم قسم دواړه خارج شول ، مبتدا اول قسم ځکه خارج شوه چې هغه مسند الیه وي مسند به نه وي او مبتدا دوهم قسم ځکه خارج شوه چې هغه مسند الی الفاعل وي مسند الی المبتدا نه وي.

ویکون له: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: کله چې دالمسند به دقید سره مبتدا قسم اول اوقسم ثاني دواړه خارج شول نو المغائر للصفة المذکورة ذکر مستدرک اوبې فائدې دي ځکه چې په دې سره دمبتدا قسم ثاني خارجول مقصود وو هغه په المسند به سره خارج شول نو بیا مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ المغایر للصفة المذکورة دذکر کولو څه فائده ده ؟

**جواب**: ددوهم تقریر اودریم تقریر مطابق للصفة المذکورة قید احترازي نه دي بلکه محض تاکید دپاره دي.

**فائده**: د اول تقریر اود دوهم تقریر په مینځ کې دري (۳) فرقه دي: (۱) داول تقریر مطابق د

المسند به صله محذوف نه راخي اود دويم تقرير مطابق دالمسند به صله محذوف ده چې ال المبتدا ده (۲) داول تقرير مطابق دالمسند به دقيد سره فقط دمبتدا اول قسم خارج شو اود دويم تقرير مطابق د المسندبه قيد سره مبتدا اول اودويم قسم دواړه خارج شول.(۳) داول تقرير مطابق المغاير للصفة المذكورة قيد احترازي دي اود دويم تقرير مطابق المغاير للصفة المذكورة قيد احترازي نه دي بلکه صرف دتاکيد دپاره دي .

## د دوهم تقرير او د دريم تقرير په مينځ کې فرقونه :

ددوهم تقرير او ددريم تقرير په مينځ کې دري (۳) فرقونه دي :

(۱): د دويم تقرير مطابق د المسند به صله محذوف ده اود دريم تقرير مطابق د المسندبه صله محذوف نه ده .

(۲): د دويم تقرير مطابق د بِهِ با په خپله معنى کې ده اود دريم تقرير مطابق د بِهِ با د إلىٰ په معنى کې ده .

(۳): د دويم تقرير مطابق د بِهِ ضمير مرجع الف لام په معنى د الذي دي اود دريم تقرير مطابق د بِهِ ضمير مرجع مبتدا ده .

## داول تقرير او دريم تقرير په مينځ کې فرقونه :

د اول تقرير او دريم تقرير په مينځ کې څلور (۴) فرقونه دي :

(۱): د اول تقرير مطابق د بِهِ با په خپله معنى کې ده اود دريم تقرير مطابق په بِهِ کې با د إلىٰ په معنى کې ده .

(۲): داول تقرير مطابق د بِهِ ضمير مرجع الف لام په معنى دالذي دي ، اود دريم تقرير مطابق د بِهِ ضمير مرجع مبتدا دي .

(۳): داول تقرير مطابق په المسند به قيد سره يواځې مبتدا اول قسم خارجيږي اود دريم تقرير مطابق په المسند به قيد سره يواځې مبتدا اول قسم خارجيږي اود دريم تقرير مطابق په المسند به قيد سره مبتدا اول قسم او دويم قسم دواړه خارج شول .

(۴): د اول تقرير مطابق المغاير للصفة المذكورة قيد احترازي دي او د دريم تقرير مطابق المغاير للصفة المذكورة قيد احترازي نه دي بلکه صرف دتاکيد دپاره دي .

## په مبتدا کې عامل :

| |
|---|
| وَاعْلَمْ اَنَّ الْعَامِلَ فِي الْمُبْتَدَاِ وَ الْخَبَرِ هُوَ الْاِبْتِدَاءُ اَیْ تَجْرِيْدُ الْاِسْمِ عَنِ الْعَوَامِلِ اللَّفْظِيَّةِ لِيُسْنَدَ |
| پوه شه چې عامل په مبتدا اوخبر کې هغه ابتداده يعنې خالي کول داسم دي دعوامل لفظيونه چې اسناديې وشي |
| اِلٰى شَيْءٍ اَوْ يُسْنَدَ اِلَيْهِ شَيْءٌ فَمَعْنَى الْاِبْتِدَاءِ عَامِلٌ فِي الْمُبْتَدَاِ وَ الْخَبَرِ رَافِعٌ |
| يوڅيزته يااسنادوشي ده ته ديوڅيزپس دابتدامعنی مبتداخبرکې هغه عامل دي چې دې دواړوته رفع ورکوي |
| لَهُمَا عِنْدَ الْبَصْرِيِّيْنَ وَاَمَّا عِنْدَ غَيْرِهِمْ فَقَالَ بَعْضُهُمُ الْاِبْتِدَاءُ عَامِلٌ فِي الْمُبْتَدَاِ وَالْمُبْتَدَاءُ فِي الْخَبَرِ وَقَالَ الْاٰخَرُوْنَ |
| دبصيرينواوغيربصرينوپه نزدپس بعضوويلي دي چې ابتداعامل ده په مبتداکې اومبتداپه خبرکې اونوروويلي |
| اِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُبْتَدَاِ وَالْخَبَرِ عَامِلٌ فِي الْاٰخَرِ وَعَلٰى هٰذَا لَا يَكُوْنَانِ مُجَرَّدَيْنِ عَنِ الْعَوَامِلِ اللَّفْظِيَّةِ . |
| دي چې هر يو د مبتدا او خبر نه عامل دي په بل کې او بناء په دې باندې نه به وي خالي د عوامل لفظيه نه . |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب دکافيه پهمبتدا کې دعامل بيان کوي .

**اغراض دجامي** : واعلم ان العامل: دمذکوره عبارت يوه جمله مستانفه ده چې ديوسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : کله چې مبتداخبر دواړه عوامل لفظيه نه خالي وي نو په دې کې عامل څوک وي ؟

**جواب** : واعلم سره شارح دجامي جواب ورکوي چې پدې عامل کې اختلاف دي تفصيل يې دادې چې په دې مقام کې دري مذاهب دي :

**اول مذهب** : دبصرې دنحويانو دي چې په مبتدا خبر کې عامل ابتدا ده يعنې داسم عوامل لفظيه نه خالي کيدل دي چې دهغه يو څيز طرف ته اسناد وشي ياهغې طرف ته ديو څيز اسناد وشي نومعنی دابتداء په مبتدا خبر کې عامل وي اوهغه ددواړو دپاره رافع وي .

**دويم مذهب** : دکوفې په نحويانو کې دعلامه زمحشري مذهب دي چې په مبتداء کې عامل ابتدا ده او په خبر کې عامل مبتدا ده دده دليل دادې چې ابتداء يو عدمي څيز دي ځکه چې ابتدا عبارت ده د خلو عن العوامل اللفظية نه ، يعنې خالي والي دعوامل لفظيه نه ،اوعدمي څيز عامل نه شي جوړيدي مګر دضرورت دوجې نه جوړيدي شي ځکه چې په مبتداکې ضرورت مجبوري وه ، ځکه چې د مبتدا نه مخکې څه عامل موجود نه وو ددې وجې نه ابتداء (عدم شئ) لره عامل جوړ کړل اودخبر نه مخکې مبتدا موجود وه هغې لره موعامل جوړ کړو اوابتداء لره موعامل جوړ نه کړو .

**دریم مذهب**: د کوفي په نحویانو کې د علامه سیبویه ، فراء او د علامه رضي دي چې مبتدا په خبر کې عامل دي او خبر په مبتدا کې عامل دي د مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد د بصري نحویانو مذهب راجح دي د دې وجې نه مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ وویل چې مبتدا خبر د عوامل لفظیه نه خالي وي.

**قوله : ای تجرید الاسم عن العوامل اللفظیة** : په دې عبارت سره غرض د شارح د جامي د دوه سوالونو مقدرو جواب ورکول دي :

**سوال (۱)**: تا وویل چې په مبتدا خبر دواړو کې عامل ابتداء وي حالانکه ابتداء خو په مبتداء کې عامل وي څکه چې دا په ابتداء کې دي په خبر کې څنګه عامل دي ؟

**سوال (۲)**: کله چې تا وویل چې مبتدا خبر کې ابتدا عامل دي نو ابتداء خو یو لفظ دي بیا په دواړو کې یعنې مبتدا خبر کې عامل لفظي شو نه معنوي ؟

**جواب** : ای تجرید ،سره جواب ورکوي چې د ابتداء نه لفظ ابتداء مراد نه دي بلکه تجرید عن العوامل اللفظیة مراد دي چې دواړه عوامل لفظیو نه خالي وي لهذا دواړه اشکال رفع او ختم شول.

**قوله لیسند الی شيء** : په دې عبارت سره غرض د شارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : که د ابتداء مطلب تجرید عن العوامل اللفظیة دي نو د مبتدا تعریف اسماء معدوده مثلاً زید ، عمرو ، بکر باندې صادق راځي څکه چې دا هم د عوامل لفظیو نه خالي دي ؟

**جواب** : لیسند الی شيء سره د دې اشکال رفع یې وکړه چې مبتداء خبر لره صرف عوامل لفظیه نه خالي کیدل کافي نه دي بلکه دا هم ضروري دي چې هغې سره یو څیز طرف ته اسناد وشي یا هغې طرف ته دیو څیز اسناد وکړې شي او په اسماء معدوده کې اسناد نشته د دې وجې نه د مبتدا خبر تعریف په دې باندې نه صادقیږي .

## احکامات د مبتداء :

وَ اَصْلُ الْمُبْتَدَاِ اَیْ مَا یَنْبَغِیْ اَنْ یَّکُوْنَ الْمُبْتَدَاُ عَلَیْهِ اِذَا لَمْ یَمْنَعْ مَانِعٌ التَّقْدِیْمُ عَلَی الْخَبَرِ

د مبتدا اصل یعنې هغه حالت چې په هغې باندې مبتدا کیدل مناسب وي کله چې څه مانع نه وي د تقدیم په خبر

لَفْظًا لِاَنَّ الْمُبْتَدَاَ ذَاتٌ وَ الْخَبَرُ حَالٌ مِنْ اَحْوَالِهَا وَ الذَّاتُ مُقَدَّمَةٌ عَلٰی اَحْوَالِهَا وَ مِنْ

باندې لفظاً څکه چې مبتدا ذات وي او خبر حال وي د هغې په احوالو کې او ذات مقدم وي په احوالو باندې او د دې

ثَمَّ اَیْ وَمِنْ اَجْلِ اَنَّ الْاَصْلَ فِي الْمُبْتَدَاِ التَّقْدِیْمِ لَفْظًا جَازَ قَوْلُهُمْ فِیْ دَارِهٖ زَیْدٌ مَعَ کَوْنِ الضَّمِیْرِ عَائِدًا اِلٰی

وجې نه چې اصل په مبتدا کې تقدیم دي لفظاً جائز دي د ده دا قول چې في داره زید باوجود د دې چې ضمیر راجع دي

| |
|---|
| زَيْدُ الْمُتَأَخِّرِ لَفْظًا لِتَقَدُّمِهِ رُتْبَةً لِأَصَالَةِ التَّقْدِيْمِ وَ امْتَنَعَ قَوْلُهُمْ صَاحِبُهَا فِي |
| زيدطرف ته چې مؤخر دي لفظاًاومقدم دي رتبةً ځکه چې مقدم کيدل اصل دي اومنع دي دده داقول چې صاحبهافي |
| الدَّارِ لِعَوْدِ الضَّمِيْرِ إِلَى الدَّارِ وَ هُوَ فِيْ حِيْزِ الْخَبَرِ الَّذِيْ اَصْلُهُ التَّاخِيْرُ فَيَلْزَمُ |
| الدارځکه چې ضمير دار طرف ته راجع دي اوهغه دخبر په ځاي کې دي چې دهغې مؤخرکيدل دي پس لازم به شي |
| عَوْدُ الضَّمِيْرِ إِلَى الْمُتَأَخِّرِ لَفْظاً وَ رُتْبَةً وَ هُوَ غَيْرُ جَائِزٍ . |
| واپس کيدل دضمير مؤخر لفظاً اورتبةً اوداجائزنه دي . |

**خلاصه د متن:** دمبتدا اوخبر دتعريف دبيانولو نه پس دده احکامات بيانوي اولنې حکم دادې چې په مبتدا کې اصل او اولی دادې چې مبتدا دخبر نه مقدم راشي بيا په دې باندې يوه تفريع ذکر کړي ده ددې وجې نه في الدار زيد ترکيب جائز دي اوصاحبها في الدار ترکيب ممتنع دي ځکه چې صاحبها في الدار دضمير مرجع الدار چې لفظاً هم مؤخر دي رتبة هم مؤخر دي نو اضمار قبل الذکر لازميږي .

**اغراض د جامي:** اى ماينبغي: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** علامه ابن حاجب رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې اصل په مبتدا کې تقديم دي اود اصل مشهوره او متبادر الى الذهن معنى قاعده کليه ده اوقاعده کليه هغې ته ويلې شي چې دهغې په خلاف باندې عمل ونه شي نو مقصد دادې چې مبتدا هميشه مقدم وي دمبتدا تاخير جائز نه دي حالانکه اين زيد کې اين خبر مقدم او زيد مبتدا مؤخر دي نوقاعده کليه دلته قاعده کليه پاتې نه شوه .

**جواب :** شارح دجامي جواب ورکوي چې دلته اصل په معنى د ماينبغي ( يعني مناسب ) او اولی سره ده او په معنی دقاعدې کليې سره نه ده .

اذالم يمنع مانع: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** دمبتدا دتقديم او اولويت منقوض اوختم دي په في الدار رجل کې ځکه چې رجل مبتدا دي ليکن دې لره دخبر نه مقدم کيدل نامناسب اوناجائز دي همدارنګې په من ابوک کې من خبر مقدم اوابوک مبتدا مؤخر دي ددې تقديم نه دي جائز . بل په في الدار صاحبها کې في الدار خبر

مقدم او صاحبها مبتدا مؤخر دي ددې تقديم جائز نه دي .

**جواب** : دمبتدا مقدم کيدل په هغه وخت کې اولی دي کله يې چې په مخکې کيدو کې څه مانع موجود نه وي اودلته مانع موجود دي هغه مانع دادې چې که چيرته مبتدا مقدم کړې شي نو مبتدا به محض نکره لازميږي چې داجائز نه دي ، همدارنګې من ابوک کې مانع ددې چې که چيرته ابوک مقدم کړې شي نود من استفهاميه صورت به په خطره کې پريوځي . همدارنګې په في الدار صاحبها کې مانع دادې چې که چيرته صاحبها مقدم کړې شي نو اضمار قبل الذکر به لفظاً اورتبةً لازم راځي چې داناجائز ده .

حق الخبر: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : علامه ابن حاجب رَحِمَهُ اللّٰهُ چې په واصل المبتدا التقديم کې کوم حکم بيان کړې دي هغه غير ضروري دي ځکه چې تقديم دمبتدا په خبر باندې يو بديهي خبره ده هر يو کس ته دا معلومه ده چې مبتدا ذات وي اوخبر دهغې حالت ته وايي اوذات په خپل حال باندې مقدم وي.

**جواب** : لفظاً سره شارح دجامي جواب ورکوي چې دلته کې دمبتدا په خبرباندې تقديم د اولويت نه مراد تقديم باعتبار اللفظ دي نه رتبتاً ځکه چې رتبتاً هر حال کې مبتدا مقدم وي اګرکه مانع من اللفظ هم موجود وي .

لان المبتدا: په دې سره غرض دشارح ديوسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمبتدا تقديم په خبر باندې اولی اوانسب ولې دي ؟

**جواب** : شارح دجامي په لان سره جواب ورکوي چې مبتدا ذات وي اوخبر دهغې داحوالو نه يو حال وي او ذات په حال باندې مقدم وي ددې وجې نه مبتدا په خبر باندې مقدم کول اولی وي .

ومن ثم: په دې سره غرض دصاحب دکافيې په ماقبل باندې تفريع کول دي چې مبتدا کې اصل دادې چې هغه به په خبر باندې مقدم وي نو ددې وجې نه في الدار زيد ترکيب جائز دې او صاحبها في الدار ترکيب ممتنع اوناجائز دي .

اى ومن اجل: په دې عبارت سره شارح د ثم مشار اليه متعين کوي چې دهغې مشار اليه اصل مذکور دي .

قوله‌م : په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : جاز فعل ، او في داره زيد ددې فاعل دي حالانکه ددې فاعل جوړول صحيح نه دي ځکه چې فاعل مفرد وي اوفي داره زيد جمله ده ؟

**جواب** : شارح جواب ورکوي چې تسليم مې کړه چې فاعل مفرد وي ليکن په مفرد کې تعميم دي برابره خبره ده که مفرد صريحي وي يامفرد تاويلي اوفي داره زيد په قول تاويل کې جوړ شو اومفرد تاويلي دي لهذا دې لره فاعل جوړول درست اوصحيح دي .

لتقدمه : په دې عبارت سره غرض دشارح دفي داره زيد دترکيب دجواز وجه بيانوي چې في داره زيد کې داره ضمير مرجع زيد دي اګرکه لفظاً مؤخر دي ليکن رتبتاً مقدم دي ځکه چې دا مبتدا دي اوپه مبتدا کې اصل دادې چې هغه په خبر باندې مقدم وي لهذا لفظاً اورتبتاً اضمار قبل الذکر لازم نه شو بلکه لفظاً اضمار قبل الذکر راغلي خو داجائز دي .

لعود الضمير : په دې عبارت سره غرض د شارح د صاحبها في الدار ترکيب ذ ممانعت وجه بيانوي چې د صاحبها ضمير مرجع الدار دي چې لفظاً هم مؤخر دي او رتبتاً هم مؤخر دي ، لفظاً مؤخر کيدل خو يې واضح دي او رتبتاً ځکه مؤخر دي چې دا څيز په خبر کې واقع دي اوپه خبر کې اصل دادې چې د مبتدا نه مؤخر وي لهذا لفظاً اورتبتاً اضمار قبل الذکر راغلوچې دانا جائز دي .

## د مبتدا نکره کيدل :

| |
|---|
| وَ قَدْ يَكُوْنَ الْمُبْتَدَأُ نَكِرَةً وَ اِنْ كَانَ الْاَصْلُ فِيْهِ اَنْ يَّكُوْنَ مَعْرِفَةً لِاَنَّ لِلْمَعْرِفَةِ مُعَيَّنًا |
| اوکله مبتدا هم نکره وي اګرچې اصل په دې کې دادې چې دامعرفه وي ځکه چې دمعرفې معنی ده متعين کيدل |
| وَالْمَقْصُوْدُ الْمُهِمُّ الْكَثِيْرُ الْوُقُوْعِ فِي الْكَلَامِ اِنَّمَا هُوَ الْحُكْمُ عَلَى الْاُمُوْرِ الْمُعَيَّنَةِ وَلٰكِنَّهُ لَا يَقَعُ نَكِرَةً عَلَى الطَّلَاقِ |
| اواکثراهم کثير الوقوع مقصد دادې چې امور معينه باندې حکم ولړولې شي ليکن نکره نه واقع کيږي على الاطلاق |
| بَلْ اِذَا تَخَصَّصَتْ تِلْكَ النَّكِرَةُ بِوَجْهٍ مَا مِنْ وُجُوْهِ التَّخْصِيْصِ اِذْ |
| بلکه هغه نکره چې کله په وجوه دتخصيص کې دڅه وجې سره خاص وي په هغه وخت کې مبتدا واقع کيږي ځکه |
| بِالتَّخْصِيْصِ يَقِلُّ اِشْتِرَاكُهَا فَتَقْرُبُ مِنَ الْمَعْرِفَةِ مِثْلُ قَوْلِهِ تَعَالٰى وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ |
| چې تخصيص سره ددې اشتراک کم واقع کيږي نوهغه دمعرفه نه نزدې کيږي لکه داقول دالله تعالى وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ |
| خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكٍ فَاِنَّ الْعَبْدَ مُتَنَاوِلٌ لِلْمُؤْمِنِ وَالْكَافِرِ وَحَيْثُ وُصِفَ بِالْمُؤْمِنِ تَخَصَّصَ |
| مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكٍ پس بې شک عبدشامل دي مؤمن اوکافرلره کله چې موصوف شوپه مؤمن سره نوخاص شو |

| بِالصِّفَةِ فَجُعِلَ مُبْتَدَأً وَ خَبَرُ خَبَرَهُ. |
|---|
| د صفت پورې پس جوړ کړې شو عبد لره مبتدا او خیرٌ ددې خبر دې |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت کې مصنف د مبتدا یو بل حکم بیانوي فرمایي چې مبتدا کله نکره هم کیدې شي لیکن شرط په دې صورت کې دادې چې په دې کې د وجوه تخصیص نه په یوڅیز سره تخصیص شوي وي ورنه نکره صرف مبتدا نه واقع کیږي ، بیا مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د شپږ (۲) وجهو دتخصیص مثالونه ذکر کړه په دې مثالونو کې هر مثال کې وجه تخصیص طرف ته اشاره ده هغه نکره چې په هغې کې دصفت دوجې نه تخصیص پیدا شوي وي مثال لکه : وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ

**اغراض د جامي** : وان كان الاصل: په دې سره غرض دشارح دمبتدا اصل حکم بیانوي چې هغې طرف ته قد تقلیله اشاره کوي چې مبتدا کله نکره هم راتلې شي لیکن مبتدا کې اصل دادې چې دا به معرفه وي

لان المعرفة: په دې کې داصل حکم وجه بیانوي چې مبتدا کې اصل معرفه ولې ده ؟ دهغې حاصل دادې چې معرفه کې تعین وي په کلام کې اهم اومقصود اوکثیر الوقوع امور معینه باندې حکم لړول دي ځکه چې مجهول څیز باندې حکم لړول غیرمفید دي مثلاً رجلٌ قائمٌ ویل لغو دي هر یوکس ته دا معلوم دي چې دنیا کې به څوک سړي خامخا ولاړ وي ددې وجې نه په مبتدا کې اصل معرفه ده .

لکنه: په دې سره غرض دشارح دیوشبه ازاله کول دي هغه شبه داده چې کیدې شي دااذا تخصصت قید اتفاقي نه وي بلکه احترازي وي چې نکره على الاطلاق مبتدا نه شي کیدې نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ لکنه سره دې شبه لره ختم کړه چې اذا تخصصت قید اتفاقي نه دې بلکه قید احترازي دې چې نکره على الاطلاق مبتدانه شي جوړیدلې بلکه هغه وخت کې مبتدا جوړیدلې شي چې کله په دې کې وجوه تخصیص کې په څه وجې سره تخصیص پیدا شوي وي .

**فائده** : بوجهٍ ما کې دوه احتمالات دي : (۱) مازائده دي . (۲) دوجه صفت دي . بوجهٍ ما ای بوجهٍ ای وجهٍ ، یعني څه نه څه وجې سره کومه وجه وي .

اذا بالتخصيص: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : په تخصيص سره خو نکره معرفه نه شي جوړيدلې نو دې لره مبتدا جوړول څنګه صحيح دي ؟

**جواب** : د تخصيص معنى ده قلة الاشتراک نو د تخصيص دوجې نه نکره کې شريک افراد کميږي نکره دغه وخت کې اګر که معرفه نه شي جوړيدلې ليکن معرفې ته نزدې کيږي نو قرب الشيء دپاره د هغه څيز حکم وي نو دې وجې نه دې لره مبتدا جوړول صحيح دي وجوه تخصيص شپږ دي : (۱) هغه نکره چې په صفت سره د هغې تخصيص شوي وي مثال لکه د اقول د الله تعالى : وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ .

قوله تعالى: په دې عبارت سره غرض د شارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د مِثلُ اضافت وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ ، طرف ته صحيح نه دي ځکه چې مضاف اليه اسم مفرد دي او وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ جمله ده نو اضافت صحيح نه دي .

**جواب** : په اسم مفرد کې تعميم دي برابره خبره ده که صريحي وي يا تاويلي وي ذکر شوي مثال کې مضاف اليه اګر که صريحاً اسم مفرد نه دي ليکن تاويلاً اسم مفرد دي ځکه چې دا په تاويل د قول دي او قول مفرد هم دي او اسم هم دي .

فان العبد: په دې عبارت سره غرض د شارح مثال لره ممثل له باندې منطبق يعنې تطبيق کول دي چې وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ ، کې محل استشهاد عَبدٌ کوم چې نکره مخصصه مبتدا جوړيږي ځکه چې في عبد اول کې عام وو مؤمن کافر دواړو ته شامل وو کله چې عبد سره مؤمن صفت راوړلې شو نو عبد کافر ترې خارج شو نو په دې کې تخصيص پيدا شو او شريک افراد کم شول نو دا معرفه ته نزدې شو لهذا دې لره مبتدا جوړول صحيح شو نو عبد مبتدا جوړ کړې شو او خير د دې خبر شو .

## د تخصيص دويمه وجه :

| وَمِثْلُ قَوْلِكَ أَرَجُلٌ فِي الدَّارِ أَمِ امْرَأَةٌ فَإِنَّ الْمُتَكَلِّمَ بِهٰذَا الْكَلَامِ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَهُمَا فِي الدَّارِ |
|---|
| لکه د اقول چې أَرَجُلٌ فِي الدَّارِ أَمِ امْرَأَةٌ پس بې شک دې کلام ويلو والا پوهيږي چې په دې دواړو کې يو په کور کې دي |
| فَيَسْأَلُ الْمُخَاطَبَ عَنْ تَعْيِيْنِهِ فَكَأَنَّهُ قَالَ أَيُّ مِنَ الْأَمْرَيْنِ الْمَعْلُوْمِ كَوْنُ |
| پس سوال کيږي د مخاطب نه د هغې تعين په باره کې پس ګويا چې هغه وويل يعنې د دوه امرينو معلومو نه کيدل |

| أَحَدِهِمَا فِي الدَّارِ كَائِنٌ فِيهِمَا فَكُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا تَخَصَّصَ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ فَجُعِلَ رَجُلٌ مُبْتَدَأً |
|---|
| د يو دې په کور کې ځنګه کيدل دي پس په دغه کې يو خاص شوي دي صفت سره پس جوړ کړي شو رجل مبتدا |
| وَ فِي الدَّارِ خَبَرَهُ. |
| او في الدار د دې خبر شو. |

**خلاصه د متن:** د تخصيص د وجوه دويمه وجه بيانيږي چې هغه نکره چې هغې کې د متکلم د علم په وجې سره تخصيص راشي مثال لکه أَرَجُلٌ فِي الدَّارِ أَمْ إِمْرَأَةٌ .

**اغراض د جامي :** مثل قولک أَرَجُلٌ فِي الدَّارِ أَمْ إِمْرَأَةٌ: شارح د دې عبارت اضافه وکړه نو اشاره يې وکړه چې دا أَرَجُلٌ فِي الدَّارِ أَمِ إِمْرَأَةٌ. عطف دي په وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ باندې .

فان المتکلم: په دې عبارت سره غرض د شارح مثال لره ممثل له باندې منطبق کول دي چې په ذکر شوي مثال کې محل استشهاد رجل دي کوم چې نکره مخصصه ده او مبتدا جوړيږي ځکه چې متکلم پوهيږي چې په کور کې دسړي او د ښځې نه يو ضرور شته او موجود دي البته متکلم د مخاطب نه د هغې تعين سوال کوي ګويا چې هغه داسې ووايي چې دوه امرونه چې په هغې کې يو په کور کې موجود کيدل دي هغه څوک دي پس رجل او امرأة په دې دواړو کې په هر يو کې د متکلم د علم د وجې نه تخصيص پيدا شو ځکه چې رجل لره مبتدا جوړ کړي شو او في الدار لره د هغې يعنې د مبتدا د پاره خبر جوړ کړي شو.

## د تخصيص دريمه وجه:

| وَمِثْلُ قَوْلِکَ مَا أَحَدٌ خَيْرٌ مِنْکَ فَإِنَّ النَّکِرَةَ فِيهَا وَقَعَتْ فِي حَيِّزِ النَّفْيِ فَأَفَادَتْ عُمُوْمَ الْأَفْرَادِ |
|---|
| او لکه دا مثال ستا مَا أَحَدٌ خَيْرٌ مِنْکَ پس نکره په دې کې واقع شوي ده په ځای د نفي کې پس فائده يې ورکړه عموم |
| وَشُمُوْلِهَا فَتَعَيَّنَتْ وَتَخَصَّصَتْ فَإِنَّهُ لَا تَعَدُّدَ فِي جَمِيْعِ الْأَفْرَادِ بَلْ هُوَ أَمْرٌ وَاحِدٌ وَ کُلَّمَا |
| او شمول د افرادو پس متعين او خاص شوه پس نشته دې تعدد په ټولو افرادو کې بلکه هغه يو امر دي او د غه شان |
| کُلُّ نَکِرَةٍ فِي الْإِثْبَاتِ قُصِدَ بِهَا الْعُمُوْمُ نَحْوُ تَمْرَةٌ خَيْرٌ مِنْ جَرَادَةٍ. |
| هره نکره په اثبات کې چې د هغې نه اراده کړي شوي وي د عموم مثال لکه تمرة خير من جرادة . |

**خلاصه د متن:** وجوه تخصيصه کې دريمه وجه بيانوي چې هغه نکره چې په هغې کې صفت د عموم د وجې نه تخصيص پيدا شوي وي مثال مَا أَحَدٌ خَيْرٌ مِنْکَ دا مبتدا جوړيدې شي .

**اغراض د جامي** : مثل قولک : په دې کې دا ښودلې ده چې مَاأَحَدٌ خَيْرٌ مِنْكَ عطف په ارجل في الدار ام امرأة باندې دې .

فان النكرة : په دې عبارت سره غرض دشارح مثال لره ممثل له باندې منطبق کول دي په مثال مذکور کې محل داستشهاد احد دي کوم چې نکره مخصصه مبتدا جوړه شوې ده په دې کې صفت دعموم دوجې نه تخصيص پيدا شوي دې څکه چې قاعده ده چې کوم نکره تحت النفي واقع وي نوهغه دعموم اوشمول فائده ورکوي په مثال مذکور کې هم نکره تحت النفي واقع ده او خپل ټولوافرادوته شامل ده پس په دې کې تخصيص پيدا شو څکه چې په ټولوافرادو کې تعدد نشته دې بلکه ټول افراد په منزله دامر واحد کې دي پس احد کې صفت دعموم دوجې نه پيدا شو لهذا احد مبتدا جوړ شو اوخير دهغې خبر جوړ شو .

**سوال** : عموم وخصوص کې خو تضاد اوتناقض دې نکره تحت النفي چې کله دعموم فائده ورکوي نو په دې کې تخصيص څنګه راغلې ؟

**جواب** : دلته دتخصيص نه مراد تعريف اوتفرد نه دې کوم چې دعموم اودشمول ضد دي بلکه مراد تعين اوتقليل ، دفع دابهام اوقطع داحتمالاتو ده اودفع دابهام هغه وخت کې کيږي چې واحدحقيقي مراد واخستې شي ياواحد حکمي مراد واخستې شي واحد حکمي نه مراد دادې چې ټول افراد يعنې مجموع من حيث المجموع مراد واخستې شي دلته کې واحدحکمي مراد دې ، فتعينت وتخصصت فانه لاتعدد في جميع الافراد بل هو امر واحد ، سره علامه جامي رَحِمَهُ اللهُ دغې طرف ته اشاره کړې ده .

**فائده** : په ذکر شوې مثال کې دمبتدا نکره مخصصه مثال دې دبنوتميم دمذهب مطابق څکه چې هغه ماولا مشبه بليس لره عامل نه مني دجمهور مذهب مطابق خيراً منصوب دې او مامشبه بليس خبر دې اودې بحث نه خارج دې پس ته سوچ اوفکر وکړه .

وكذا كل نكرة : په دې کې ديوې فائدې بيان دې څنګه چې هغه نکره چې تحت النفي واقع وي مبتدا جوړيدې شي دغه شان هغه نکره کومه چې موضع اثبات کې واقع وي اودهغې نه مقصود عموم وي نو هغه هم مبتدا جوړيدې شي مثال يې داقول دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې فرمايي : تمرة خير من جرادة ، فرق صرف دومره دې چې نکرة تحت النفي مطلقاً مبتدا جوړيدې شي برابره خبره ده که هغې نه عموم مقصود وي اويانه وي اونکره تحت الاثبات هغه وخت

مبتدا جوړېدلې شي چې کله دهغې نه عموم مقصود وي .

## د تخصیص څلورمه وجه :

| |
|---|
| وَ مِثْلُ قَوْلِهِمْ شَرٌّ اَهَرَّ ذَانَابٍ لِتَخَصُّصِهِ بِمَا يَتَخَصَّصُ بِهِ الْفَاعِلُ |
| او مثال دهغوي دا قول چې شَرٌّ اَهَرَّ ذَانَابٍ دوجې دخاص کېدو دهغه څیز سره چې دهغه سره فاعل خاص کېږي دوجې |
| لِشِبْهِهِ بِهِ اِذْ يُسْتَعْمَلُ فِيْ مَوْضِعِ مَا اَهَرَّ اِلَّا شَرٌّ وَ مَا يَتَخَصَّصُ بِهِ |
| د مشابهت نه دهغه فاعل سره څکه چې هغه استعمالیږي په ځاي د مااهر ذاناب الاشر او هغه چې خاص وي ددې پورې |
| الْفَاعِلُ قَبْلَ ذِكْرِهِ هُوَ صِحَّةُ كَوْنِهِ مَحْكُوْمًا عَلَيْهِ بِمَا اُسْنِدَ |
| فاعل مخکې دذکر ددې نه هغه صحیح کېدل دي دهغې محکوم علیه کېدل دهغه څیز سره چې هغې طرف ته دا |
| اِلَيْهِ فَاِنَّكَ اِذَا قُلْتَ قَامَ عُلِمَ مِنْهُ اَنَّ مَا يُذْكَرُ بَعْدَهُ اَمْرٌ |
| مسند شوي وي پس کله چې ته وايې قام نو دې نه معلومیږي چې ددې نه وروستو چې کوم مذکور دې هغه داسې |
| يَصِحُّ اَنْ يُحْكَمَ عَلَيْهِ بِالْقِيَامِ فَاِذَا قُلْتَ رَجُلٌ فَهُوَ فِيْ قُوَّةِ |
| امر دې چې صحیح دې پس په دې باندې حکم لګول دقیام دې پس کله چې ته وایې رجل نو هغه دهغه په قوت کې |
| رَجُلٍ مَوْصُوْفٍ بِصِحَّةِ الْحُكْمِ عَلَيْهِ بِالْقِيَامِ وَاعْلَمْ اَنَّ الْهِرَّ لِلْكَلْبِ بِالنُّبَاحِ الْمُعْتَادِ وَقَدْ يَكُوْنُ خَيْرًا |
| دې رجل موصوف بصحة الحكم علیه بالقیام پوه شه ته چې بې شک دسپي عادت خپل کله ښه هم وي چې کله |
| كَمَا اِذَا كَانَ مَجِيْءُ حَبِيْبٍ مَثَلًا وَقَدْ يَكُوْنُ شَرًّا كَمَا اِذَا كَانَ مَجِيْءُ عَدُوٍّ وَالْهِرُّ لَهُ بِنُبَاحٍ غَيْرِ مُعْتَادٍ يُتَشَاءَمُ بِهِ |
| دوست راشي او کله شر هم وي چې کله دښمن راشي او غیر عادت خپل په دې سره بد فالي اخستې شي دا |
| فَيَكُوْنُ شَرًّا لَا خَيْرًا فَعَلَى الْاَوَّلِ يَصِحُّ الْقَصْرُ بِالنِّسْبَةِ اِلَى الْخَيْرِ فَمَعْنَاهُ شَرٌّ لَا خَيْرٌ اَهَرَّ |
| شر دې خیر نه دې پس داولې مطابق قصر صحیح دې په نسبت دخیر پس معنی دا شوه چې نه شر او نه خیر سپي لره |
| ذَانَابٍ وَ عَلَى الثَّانِيْ لَا يَصِحُّ فَيُقَدَّرُ وَصْفٌ حَتّٰى يَصِحَّ الْقَصْرُ فَيَكُوْنُ الْمَعْنٰى |
| غپولې دې او ددویم مطابق نه صحیح کېږي پس وصف لره مقدر کولې شي چې قصر صحیح شي نو شي به معنی |
| شَرٌّ عَظِيْمٌ لَا حَقِيْرٌ اَهَرَّ ذَا نَابٍ وَ هٰذَا مَثَلٌ يُضْرَبُ لِرَجُلٍ قَوِيٍّ اَدْرَكَهُ |
| غټ شر نه ورکوټي شر سپي لره غپولې دې او دا مثال دهغه چې بیانیږي هغه طاقتور سړي دپاره چې بیاموندلې |
| الْعِجْزُ فِيْ حَادِثَةٍ . |
| وي عجز په څه واقعه کې |

**خلاصه دمتن:** دتخصیص څلورمه وجه بیانیږي هغه نکره چې په هغې کې تخصیص پیدا شوي وي څنګه چې په فاعل کې تخصیص راځي یعني هغه څیز سره تخصیص پیدا کیږي کوم

سره چې فاعل تخصیص حاصلوي مثال لکه شَرٌّ اَهَرَّ ذَا نَابٍ په دې کې په طریقه دفاعل تخصیص پیدا شوي دي .

**اغراض دجامي** : مثل ولهم : په دې عبارت سره شارح دا بیانوي چې شَرٌّ اَهَرَّ ذَا نَابٍ ، عطف په ما احد خیر منک باندې دي .

لشبهه : په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : شر اهر ذا ناب کې هر فاعل خونه دي بیا په دې کې په طریقه دتخصیص دفاعل څنګه پیدا شو ؟

**جواب** : شر اګر که فاعل نه دي لیکن دفاعل مشابه دي ددې وجې نه په دې کې تخصیص دفاعل پیدا شو .

اذ یستعمل : په دې عبارت سره غرض دشارح وجه دمشابهت بیانوي چې شر اهر ذا ناب الا هر په ځاې باندې واقع دي یعنې داجمله اسمیه دجمله فعلیه په ځاې استعمالیږي په دې کې هر ضمیر دفاعل نه بدل دي اوبدل عن الفاعل حکماً فاعل وي کله چې دادفاعل په معنی کې دي نوپه دې کې هم دفاعل په شان تخصیص پیدا شو .

**سوال** : د شر اهر ذا ناب معنی ما اهر ذا ناب الا هر څنګه کیدې شي ؟ حالانکه ما اهر ذا ناب الا هر کې ما او الا سره حصر حاصل دي او شر اهر ذا ناب کې حصر نشته دي ؟

**جواب** : شر اهر ذا ناب کې هم حصر دي ځکه چې ددې اصل اهر شر ذا ناب دي په اهر کې ضمیر مستتر فاعل دي دهر ضمیر دفاعل په بدل دي اوبدل عن الفاعل حکماً فاعل وي اوفاعل دفعل نه مؤخر وي اودلته کې چې کله فاعل لره مقدم کړي شو نودحصر فائده یې ورکړه ځکه چې قاعده داده چې تقدیم ما حقه التاخیر یفید الحصر .

وما یتخصص به : ددې ځاې نه دفاعل دتخصیص طریقه بیانیږي چې هغه څیز چې هغې سره فاعل خپل مذکور کیدونه مخکې تخصیص حاصلوي هغه دهغه محکوم علیه جوړولو صحت دي یعنې صحیح دي هغه فعل یادحکم سره کوم چې هغې نه مخکې ذکر وي یعنې فاعل نه مخکې ذکر وه .

لهذا فعل یا د حکم نه وروستو کوم څیز چې ذکر شي هغه عام نه وي بلکه هغه د فعل یا حکم

سره خاص کیږي مثال کله چې وویلې شي قام نو دې نه معلومه شوه چې ددې نه وروستو کوم څیز ذکر کیږي هغه به عام نه وي بلکه قیام دوصف سره به خاص وي کله چې دې نه بعد زید ذکر کړي شو نوددې نه هغه زید مراد دي کوم چې دقیام په وصف سره متصف دي دغه شان چې کله اهر ذکر شو نو ددې نه معلومه شوه چې ددې نه وروستو به هغه څیز وي کوم دصفت اهرار سره متصف وي کله چې ددې نه وروستو شر ذکر شو نو شر نه مطلق شر مراد نه دي بلکه هغه شر مراد دي کوم چې دصفت اهرار سره متصف وي لهذا په هر کې تخصیص پیدا شو پس دې سره مبتدا جوړول صحیح دي .

**واعلم** : په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دسپي غپل په دوه قسمه دي : (۱) معتاد (دعادت مطابق) مثلاً کله چې نا آشنا سړي راشي . (۲) غیر معتاد (بغیر دعادت نه خپل) بیا دنباح معتاد دوه صورتونه دي : (۱) کله د خیر دوجې نه کیږي مثال دکور دخاوند دوست په راتلو سره دسپي غپل . (۲) اوکله دشر دوجې نه لکه مثال دکور دخاوند په دښمن په راتلو سره دسپي غپل اودویم قسم نباح غیر معتاد نه همیشه بدفالي مراد اخستلې شي هغه همیشه شر وي خیر نه وي کله چې دسپي غپل معتاد وو نوپه شر کې دخیر لحاظ سره حصراوتخصیص صحیح وو او معنی داوه شر لا خیر اهر ذاناب اوکله چې نباح کلب یعنې دسپي غپل غیر معتاد وو نوهغه وخت کې حصر وتخصیص صحیح نه وو ځکه چې په هغې کې دشر نه علاوه دوهم احتمال نه وو دهغې په اعتبار سره په شر کې حصر خوصحیح شو نوتخصیص په کې ځنګه راغلې ؟

**جواب** : شارح دجامي په واعلم سره جواب ورکوي چې کله نباح غیرمعتاد مراد وي هغه وخت کې د شر صفت مقدر منلې شي یعنې عظیم معنی به داسې شي شر عظیم لا حقیر اهر ذاناب ، اوس حصر دتخصیص صحیح شو .

**هذا مثل** : په دې عبارت سره غرض دشارح دمثال محل استعمال بیانوي دا مثال په هغه وخت کې ویلې شي چې کله یو مضبوط اوطاقتور سړي لره څه حادثې عاجزه اومغلوبه کړي وي .

## د تخصیص پنځمه وجه :

| وَ مِثْلُ قَوْلِكَ فِي الدَّارِ رَجُلٌ لِتَخَصُّصِهِ بِتَقْدِيمِ الْخَبَرِ لِأَنَّهُ إِذَا قِيلَ فِي الدَّارِ |
|---|
| او مثال د ستا قول فِي الدَّارِ رَجُلٌ په وجه د خاص والي دهغې خبر دتقدیم سره ځکه چې کله وویلې شو فِي الدار نو |

| عُلِمَ | أَنَّ | مَا | يُذْكَرُ | بَعْدَهُ | مَوْصُوْفٌ | بِصِحَّةِ | اِسْتِقْرَارِهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| معلومه شوه چې هغه څیز کوم چې ذکر دي د هغې نه وروستو موصوف دي د هغې سره صحیح کیږي د هغې استقرار | | | | | | | |
| فِي الدَّارِ فَهُوَ فِي قُوَّةِ التَّخْصِيْصِ بِالصِّفَةِ. | | | | | | | |
| په کور کې پس هغه د صفت سره د خاص کیدو په قوت کې دي | | | | | | | |

**خلاصه د متن**: د تخصیص په وجوهو کې پنځمه وجه د تخصیص بیانیږي چې هغه نکره چې په هغې کې خبر د ظرف په مقدم کولو سره تخصیص پیدا کیږي مثال لکه في الدار رجل.

**اغراض د جامي**: لتخصصه: په دې عبارت سره غرض د شارح مثال لره ممثل له باندې منطبق کول دي په دې مثال کې محل د استشهاد رجل دي کوم چې نکره مخصصه مبتدا جوړیږي ځکه چې په دې کې تخصیص د هغې خبر د ظرف په مقدم کولو د وجې نه پیدا شو کله چې في الدار وویلې شو نو د دې نه معلومه شوه چې د دې نه وروستو چې کوم څیز ذکر کیږي هغه به استقرار في الدار سره موصوف وي لهذا تقدیم د خبر په منزله د تخصیص په صفت سره دي.

## د تخصیص شپږمه وجه:

| وَ مِثْلُ قَوْلِكَ سَلَامٌ عَلَيْكَ لِتَخَصُّصِهِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الْمُتَكَلِّمِ اِذْ اَصْلُهُ سَلَّمْتُ سَلَامًا |
|---|
| مثال ستا د اقول سَلَامٌ عَلَيْكَ د وجې د خاص کیدو د متکلم د نسبت د وجې نه ځکه چې اصل د هغې سلمت سلاماً دي |
| فَحُذِفَ الْفِعْلُ وَ عُدِلَ إِلَى الرَّفْعِ لِقَصْدِ الدَّوَامِ وَ الْاِسْتِمْرَارِ فَكَأَنَّهُ قَالَ سَلَامِيْ |
| پس فعل حذف کړې شو رفع طرف ته عدول وکړې شو د دوام او استمرار د ارادې د وجې نه ګویا چې هغه ویلې دي |
| اَيْ سَلَامٌ مِنْ قِبَلِيْ عَلَيْكَ هٰذَا هُوَ الْمَشْهُوْرُ فِيْمَا بَيْنَ النُّحَاةِ وَ قَالَ بَعْضُ الْمُحَقِّقِيْنَ مِنْهُمْ |
| سلامي یعني سلام من قبلي علیک دا د نحویانو په مینځ کې مشهور ده او بعضې محققینو د نحاتو ویلې دي چې د نکرې |
| مَدَارُ صِحَّةِ الْاِخْبَارِ عَنِ النَّكِرَةِ عَلَى الْفَائِدَةِ لَا عَلَى مَا ذَكَرُوْهُ مِنَ التَّخْصِيْصَاتِ |
| د خبر جوړولو صحیح کیدو دارومدار په فائده باندې دي نه په هغه څیز باندې کوم چې نحاتو ذکر کړې دي تخصصاتو |
| الَّتِيْ يُحْتَاجُ فِيْ تَوْجِيْهَاتِهَا اِلٰى هٰذِهِ التَّكَلُّفَاتِ الرَّكِيْكَةِ الْوَاهِيَةِ فَعَلٰى هٰذَا يَجُوْزُ اَنْ يُقَالَ |
| نه چې د هغې په توجیه کې ضرورت دي د هغه تکلفات ضعیفه واهیه پس د هغوي مطابق جائز دي کله چې وویلې شي |
| كَوْكَبٌ اِنْقَضَّ السَّاعَةَ لِحُصُوْلِ الْفَائِدَةِ وَلَا يَجُوْزُ اَنْ يُقَالَ رَجُلٌ قَائِمٌ لِعَدَمِهِ |
| کوکب انقض الساعة فائده حاصلولو د وجې نه او صحیح نه دي چې وویلې شي چې رجل قائم د فائدې نه ور کولو د |
| وَ هٰذَا الْقَوْلُ اَقْرَبُ اِلَى الصَّوَابِ. |
| وجې نه او دا قول ډیر نزدې دي صحت ته. |

**خلاصه دمتن**: دتخصیص دوجوهو نه شپږمه وجه دتخصیص بیانیږي ي هغه نکره چې په هغې کې نسبة الی المتکلم دوجې نه تخصیص پیدا شوي وي لکه سلام علیک .

**اغراض دجامي** : لتخصصه: په دې عبارت سره غرض دشارح مثال لره ممثل له باندې تطبیق کول دي په دې مثال کې محل داستشهاد سلام دي کوم چې نکره مخصصه مبتدا جوړیږي ځکه چې په دې کې متکلم ته دنسبت دوجې نه تخصیص پیدا شوي وي ځکه چې د دې اصل سلمت سلاماً علیک وو سلمتُ فعل حذف شو لکه څنګه چې دمفعول مطلق فعل حذف کیږي نوسلاماً علیک جوړشو او فعل دلالت کوي په حدوث باندې کله چې سلاماً لره مو په سلامٌ سره بدل کړو نو سلام علیک شو پس سلام کې نسبت الی المتکلم دوجې نه تخصیص پیدا شوګویا چې متکلم داسې وايي سلامي علیک یعنې سلام من قبلي علیک .

من قبلي علیک: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : کله چې سلام علیک په اصل کې سلامي علیک وو یعنې متکلم طرف ته داضافت دوجې نه دا معرفه شو نکره نه شو نومثال دممثل سره مطابق نه شو ځکه چې دلته دنکرې مخصصې مثالونه بیانیږي ؟

**جواب** : نوپه سلام من قبلي سره جواب ورکوي چې په سلام کې یاء دمتکلم طرف ته مضاف ده لیکن په مینځ کې دقِبَلْ فاصله موجود ده داسې اضافت دتعریف یعنې دمعرفې فائده نه ورکوي بلکه د تخصیص فائده ورکوي یعنې په معنی دقلت اشتراک سره .

هذا هو المشهور: په دې عبارت سره غرض دشارح بیان داختلاف دي چې نکره دمبتدا جوړولو دصحیح کیدو دپاره تخصیص ضروري کیدل مشهور دي په مینځ د نحویانو کې لیکن بعضې محققین لکه علامه سید سند شریف جرجاني اوعلامه ابن الدهني وغیره وايي چې دنکرې د مبتدا جوړولو دصحت دارومدار په تخصیصاتو باندې نه دي بلکه په فائده باندې دي که چیرته دنکرې نه مخاطب ته فائده وي نو دې نکرې لره مبتدا جوړول صحیح دي اوکه فائده حاصله نه وي نو مبتدا جوړول صحیح نه دي لهذا کوکب انقض الساعة ویل صحیح دي ځکه چې ددې نه مخاطب ته دستوري دماتیدو علم حاصل شو چې مخکې ده ته نه وو حاصل او رجل قائم ویل صحیح نه دي ځکه مخاطب ته مخکې علم وو.

**هذا القول** : په دې عبارت سره غرض دجامي ددوو قولونو په مينځ کې محاکمه کول دي چې دويم قول اقرب الى الصواب دي ځکه دا دهغه تاويلاتو ضعيفه اوتکلفات بعيده نه خالي دي کوم چې مخکې دنکرې مخصصې په ضمن کې بيان شو لکه مثال ولعبد مؤمن په دې کې داتکليف وو چې د نکرې دمبتدا جوړولو دپاره تخصيص فردي ضروري دي دلته کې مؤمن دصفت دوجې نه عبد کې تخصيص نوعي حاصل شوي تخصيص فردي حاصل نه شو . ارجل في الدار کې دا تکليف دي چې هغه معتبر تخصيص دي کوم چې د مخاطب په اعتبار سره وي دلته هغه تخصيص حاصليږي کوم چې د متکلم د اعتبار د وجې نه وي . ما احد خير کې دا تکليف دي چې کومه وجه چې دتخصيص بيانيږي ددې نه معلوميږي چې داتخصيص نه دي ځکه چې د تخصيص معنى ده قلة الاشتراک ، بلکه دلته تعريف او تعين حاصليږي کوم چې دمطلوب خلاف دي . هر اهر ذا ناب کې داتکليف دي چې کوم تخصيص معتبرفي الفاعل دي هغه دادې چې کوم فاعل لره حکم اودمسندِمقدم کيدو دوجې نه حاصل وي شر کې داسې تخصيص يعني مذکوره تخصيص نه حاصليږي . في الدار رجل کې داتکليف دي چې دلته تخصيص خلاف اصل ( خبر) دتقديم دوجې نه حاصليږي . سلام عليک کې تکليف واضح دي چې جمله فعليه جمله اسميه طرف ته منتقل شوي دي بيا دسلام نسبت متکلم طرف ته نسبت شوي ده داټول تکلفات رکيکه او واهيه دي .همدارنګې مشهور اقوال د قرآني نصوص اودنورو تصريحاتو خلاف دي په قرآن مجيد کې الله تعالى فرمايلي دي : ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ ، وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ بَاسِرَةٌ﴾ ، نو دلته وجوه نکره ده اوبې د څه تخصيص نه مبتدا ده همدارنګې يوم علينا ، شجرة سجدت ، رجل على الباب وغيره نو ځکه علامه جامي رَحِمَهُ اللّٰهُ دويم قول ته اقرب الى الصواب ويلي دي .

## خبر جمله کيدل :

وَلَمَّا كَانَ الْخَبَرُ الْمُعَرَّفُ فِيمَا سَبَقَ مُخْتَصًّا بِالْمُفْرَدِ لِكَوْنِهِ قِسْمًا مِنَ الْإِسْمِ فَلَمْ يَكُنِ الْجُمْلَةُ

اوهر کله چې خبرچې مخکې يې تعريف وشوخاص وي دمفرد پورې ځکه چې هغه قسم دي داسم نه نونه شوه جمله

دَاخِلَةً فِيهِ أَرَادَ أَنْ يُشِيرَ إِلَى أَنَّ خَبَرَ الْمُبْتَدَأِ قَدْ يَقَعُ جُمْلَةً أَيْضًا فَقَالَ

داخله په دې کې نواراده يې وکړه چې اشاره وکړي دې طرف ته چې دمبتدا خبر کله جمله هم واقع کيږي نو وويل

الْخَبَرُ قَدْ يَكُونُ جُمْلَةً اِسْمِيَّةً مِثْلُ زَيْدٌ أَبُوهُ قَائِمٌ وَفِعْلِيَّةً مِثْلُ زَيْدٌ قَامَ أَبُوهُ وَلَمْ يَذْكُرِ الظَّرْفِيَّةَ

چې خبر کله جمله هم واقع کيږي جمله اسميه لکه زيد ابوه قائم او فعليه لکه زيد قام ابوه او جمله ظرفيه يې

| |
|---|
| لِأَنَّهَا رَاجِعَةٌ إِلَى الْفِعْلِيَّةِ وَ إِذَا كَانَ الْخَبَرُ جُمْلَةً وَ الْجُمْلَةُ مُسْتَقِلَّةٌ بِنَفْسِهَا لَا تَقْتَضِي |
| ذکر نه کړه ځکه چې هغه راجع ده فعلي طرف ته او کله چې خبر جمله وي او جمله مستقل بالذات وي تقاضانه |
| الْارْتِبَاطَ بِغَيْرِهَا فَلَا بُدَّ فِي الْجُمْلَةِ الْوَاقِعَةِ خَبَراً عَنِ الْمُبْتَدَإِ مِنْ عَائِدٍ |
| کوي د ربط خپل غير طرف ته نو ضروري ده په دغه جمله کې کومه چې خبر واقع کيږي د مبتدا دپاره يو عائد چې |
| يَرْبِطُهَا بِهِ وَ ذَالِكَ الْعَائِدُ إِمَّا ضَمِيرٌ كَمَا فِي الْمِثَالَيْنِ الْمَذْكُورَيْنِ أَوْ غَيْرُهُ كَاللَّامِ |
| هغه جملې لره د مبتدا سره ربط کړي او دا عائد به ضمير وي لکه په ذکرشو مثالونو کې يا د ضمير نه غير لکه لام |
| فِي نِعْمَ الرَّجُلُ زَيْدٌ أَوْ وَضْعَ الْمُظْهَرِ مَوْضِعَ الْمُضْمَرِ فِي نَحْوِ الْحَاقَّةُ مَا الْحَاقَّةُ أَوْ كَوْنُ الْخَبَرِ تَفْسِيراً |
| په نعم الرجل زيد کې يا اسم ظاهر لره ضمير په ځاې اېښودل لکه په الحاقة ما الحاقة کې يا خبر تفسير کيدل |
| لِلْمُبْتَدَإِ نَحْوُ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ وَ قَدْ يُحْذَفُ الْعَائِدُ إِذَا كَانَ ضَمِيراً لِقِيَامِ قَرِينَةٍ نَحْوُ |
| مبتدا دپاره لکه په قل هو الله احد کې او کله عائد حذف کيږي چې هغه وي د قرينې د موجودګي دوجې نه لکه |
| اَلْبُرُّ الْكُرُّ بِسِتِّيْنَ دِرْهَماً وَالسَّمَنُ مَنَوَانِ بِدِرْهَمٍ أَيِ الْكُرُّ مِنْهُ وَمَنَوَانِ مِنْهُ بِقَرِيْنَةِ أَنَّ بَائِعَ الْبُرِّ وَالسَّمَنِ |
| لکه البر الکر بستين درهما والسمن منوان بدرهم يعني الکر منه او منوان منه د دې قرينې نه چې غنم او غوړي |
| لَا يُسَعِّرُ غَيْرَهُمَا. |
| خرخولو والا ته علاوه قيمت به نه ښائي. |

**خلاصه د متن:** صاحب د کافيه فرمايي چې خبر کله جمله هم راځي لکه زيد ابوه قائم ، زيد قائم ابوه ليکن جمله په خپله مستقله وي لهذا جملې لره خبر جوړولو دپاره شرط دا دې چې په دې کې عائد وي چې مبتدا طرف ته راجع وي چې د مبتدا د خبر سره ربط راشي ليکن کله چې عائد ضمير وي نو کله کله د قرينې دوجې نه حذف کولې شي .

**اغراض د جامي :** ولما كان الخبر: دا عبارت د علامه ابن الحاجب د قول والخبر دپاره تمهيد دې همدارنګې د يو سوال مقدره جواب هم دې ، تمهيد خو ظاهر دې خو د سوال جواب تفصيل دادې :

**سوال :** د خبر ذکر خو ماقبل کې وشو لهذا والخبر قد يکون د ذکر کولو څه فائده ده ؟

**جواب :** په ماقبل کې خبر مفرد ذکر وو ځکه چې هغه د اسم يو قسم وو او اسم د جملې قسم دې او کله لفظ مفرد دې والخبر قد يکون کې خبر د جملې بيان دې يعنې دلته کې خبر د جملې بيان دې .

اسمية اوفعلية : په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمثال نه مقصود د ممثل له وضاحت وي دهغې دپاره یو مثال کافي وو نومصنف دوه مثالونه ولې ذکر کړه ؟

**جواب** : دمثال تعدد دممثل له دتعدد دوجې نه دي ممثل له دوه دي : (۱) جمله اسمیه . (۲) جمله فعلیه ځکه یې دوه مثالونه ذکر کړل .

ولم یذکر: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : خبر چې څنګه جمله اسمیه اوجمله فعلیه وي دغه شان جمله ظرفیه هم وي مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ جمله ظرفیه لره ولې ذکر نه کړو ؟

**جواب** : مصنف ځکه جمله ظرفیه ذکر نه کړه چې جمله ظرفیه مستقله جمله نه وي بلکې د جملې فعلي نائب وي اودغې طرف ته راجع وي ،ددې وجې نه د اکثرو نحاتو په نزد طرف متعلق دي فعل سره او فعل خپل فاعل سره جمله فعلیه دي .

واذا کان الخبر : د ادمصنف قول دفلا بد دلیل دي چې کله خبر جمله وي نو جمله مستقل بالذات وي نو خپل غیر سره دارتباط تقاضا نه لري کله چې خبردمبتدا سره مربوط وي نو په خبر کې یو عائد ضروري وي چې خبر لره مبتدا سره ربط ورکړي .

اذا کان الخبر جملة : په دې عبارت سره شارح اشاره کړي ده چې فلا بد کې فاء جزائیه ده ددې شرط اذا کان الخبر محذوف دي .

ولذلک العائد : په دې کې د عائد اقسام بیانوي چې عائد په څلور قسمه دي :

وجه دحصر : وجه دحصر ددې څلوروقسمونو داده چې عائد به یاضمیر وي اویاغیرضمیر نودا به ددرې (۳) حالتونو به خالي نه وي (۱) یابه الف لام وي . (۲) اسم ظاهر لره به په اسم ضمیر په ځاې ایښودې شوې وي .(۳) خبر به دمبتدا تغیر وي دهر یو مثال (۱) زید ابوه قائم او زید قام ابوه ، په دې کې ابوه ضمیر عائد دي . (۲) عائد الف لام مثال نعم الرجل زید په دې صورت کې نعم الرجل خبر مقدم دي او زید مبتداء مؤخر دي اورابط اوعائد دالرجل الف لام دي . (۳) اسم ظاهر په ځاې دضمیر کې لکه الحاقة ما الحاقة ، چې په اصل کې داسې وو الحاقة ما هي په هي کې چې کوم ضمیر چې خبر دي د الحاقة اسم ظاهر په ځاې ایښودلې شوې دي چې عائد اورابط

جوړیږي (۴) دتفسیر مثال لکه قل هوالله احد په دې کې هو مبتدا دي الله احد جمله ده اوماقبل خبر دي کوم چې دمبتدا تفسیر دي ځکه چې د هو نه مراد هماغه دي کوم چې دالله نه مراد دي.

العائد: په دې کې شارح دمخذوف هو ضمیر مرجع متعین کړي ده چې مرجع عائد دي.

اذا کان ضمیراً: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: وقد یحذف العائد کې العائد مطلق دي ددې نه معلومیږي چې دعائد ټول اقسام ضمیر وغیر ضمیر ټولو لره حذف کول په وخت دقرینه کې جائز دي حالانکه عائد غیرضمیر لره حذف کول جائز نه دي ؟

**جواب**: شارح جواب ورکوي چې دعائد نه مراد فقط ضمیر دي ځکه چې دضمیر نه علاوه نور عائد مثلاً الف لام وغیره قلیل الاستعمال دي که چیرته داحذف شي نوذهن هغې طرف ته نه متوجه کیږي.

لقیام قرینة: په دې کې دحذف شرط بیانوي لکه البر الکر بستین درهماً او السمن منوان بدرهم، ددې اصل البر الکر منه بستین درهماً او السمن منوان منه درهماً وو، منه ضمیر عائد دي دې لره مو حذف کړو ددې په حذف باندې قرینه داده چې غنم او غوړي خرڅولو والا به دغنم اودغوړو قیمت لړوي دګازرو او دمولي قیمت به نه لړوي.

## ظرف په تاویل دجملې کې کیدل:

| وَمَا وَقَعَ ظَرْفًا اَيِ الْخَبَرُ الَّذِيْ وَقَعَ ظَرْفَ زَمَانٍ اَوْ مَكَانٍ اَوْ جَارًّا وَ مَجْرُوْرًا فَالْاَكْثَرُ مِنَ النُّحَاةِ |
|---|
| اوهغه خبرچې واقع وي ظرف یعنې هغه خبرچې واقع وي ظرف زمان یاظرف مکان یاجار مجرورپس اکثرنحاة |
| وَ هُمُ الْبَصْرِيُّوْنَ عَلٰى اَنَّهُ اَيِ الْخَبَرُ الْوَاقِعُ ظَرْفًا مُقَدَّرٌ اَیْ مُؤَوَّلٌ بِجُمْلَةٍ |
| چې هغه بصرین دي په دې خبره باندې دي چې هغه خبرکوم چې ظرف واقع وي مقدر به وي یعنې دجملې په تاویل |
| بِتَقْدِيْرِ الْفِعْلِ فِيْهِ لِاَنَّهُ اِذَا قُدِّرَ فِيْهِ الْفِعْلُ يَصِيْرُ جُمْلَةً بِخِلَافِ مَا |
| کې به وي په تقدیر دفعل سره په دې کې ځکه چې کله مقدر کړي شي په دې کې فعل نوجمله ګرځي په خلاف دهغه |
| اِذَا قُدِّرَ فِيْهِ اِسْمُ الْفَاعِلِ كَمَا هُوَ مَذْهَبُ الْاَقَلِّ وَهُمُ الْكُوْفِيُّوْنَ فَاِنَّهُ يَصِيْرُ حِيْنَئِذٍ |
| صورت کې چې مقدر کړي شي په دې کې اسم فاعل لکه دامذهب دي دکموخلکوچې هغه کوفیان دي پس په دې |
| مُفْرَدًا وَوَجْهُ الْاَكْثَرِ اَنَّ الظَّرْفَ لَا بُدَّ لَهُ مِنْ مُتَعَلَّقٍ عَامِلٍ فِيْهِ وَالْاَصْلُ فِي الْعَمَلِ |
| وخت کې ګرځي مفرد اود اکثرودلیل دادې چې دظرف دپاره متعلق ضروري دي چې په هغې کې عمل وکړي او |

| وَ هُوَ الْفِعْلُ فَلِذَا وَجَبَ التَّقْدِيْرُ فَالْأَصْلُ أَوْلَى وَ وَجْهُ الْأَقَلِّ أَنَّهُ خَبَرٌ |
|---|
| اصل په عمل کې فعل دي ددې وجې مقدر کول واجب دي اصل ډير زيات ښه دي او د اقل دليل دا دي چې دا خبر |
| وَ الْأَصْلُ فِي الْخَبَرِ الْإِفْرَادِ. |
| دي او اصل په خبر کې افراد دي |

**خلاصه دمتن**: دصاحب دکافيې د عبارت حاصل دي چې کله خبر ظرف وي داکثرو نحويانو په نزد هغه دجملې په تاويل کې دي اودبعضې نحويانو په نزد هغه دمفرد په تاويل کې دي .

**اغراض دجامي** : اي الخبر : په دې سره شارح دجامي اشاره کړي ده چې ما موصوله ده چې ددې نه مراد خبر دي ما موصوله ځکه ده چې دخبر په ځاې واقع دي او په مبتدا کې اصل تعريف يعني معرفه ده .

ظرف زمان: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: په ظرف کې دري (۳) احتمالات دي : (۱) فقط ظرف حقيقي مرادوي (۲) فقط ظرف مجازي مرادوي (۳) يامجازي اوحقيقي دواړه مرادوي اودا دري واړه احتمالات صحيح نه دي :

(۱) اول احتمال ځکه صحيح نه دي ځکه که چيرته ظرف نه مراد حقيقي وي نودامنقوض ده په زيد في الدار سره ځکه په دې کې في الدار مؤول دي په جملې دي حالانکه داظرف حقيقي نه دي بلکه ظرف مجازي دي .

(۲) که چيرته ظرف نه مراد ظرف مجازي وي دامنقوض دي په زيد خلفک سره ، ځکه چې خلفک مؤول دي په جملې سره حالانکه داظرف مجازي نه دي بلکه ظرف حقيقي دي .

(۳) که چيرته ظرف نه مراد ظرف حقيقي او ظرف مجازي دواړه وي نوجمع په مينځ دحقيقت او مجاز کې لازم راځي اودا باطل ده .

**جواب** : ظرف زمان اوظرف مکان اوجارمجرور نه شارح جامي جواب ورکوي چې دظرف نه مراد ظرف حقيقي اومجازي دواړه دي ليکن په طريقه جمع په مينځ دحقيقت اومجاز نه ده بلکه په طريقې دعموم مجاز دي اوعموم مجاز دادې چې دظرف نه مراد محتاج الى المتعلق دي داظرف حقيقي او مجازي دواړو ته شامل دي .

النحاة: په دې عبارت سره شارح اشاره کړي ده چې داکثر الف لام عهدي دي ددې نه مراد اکثر نحاة دي .

البصريين: په دې عبارت سره شارح داکثرو نحويانو مصداق متعين کړي دي چې داکثرو نحويانو مصداق بصريين دي .

على: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: دمصنف داقول فالاکثر مبتدا دي او انه مقدر بجملة ددې خبر دي ليکن دې لره خبر جوړول صحيح نه دي ځکه چې کله خبرجملة وي نوپه هغې کې يوضميرعائدکيدل ضروري دي کوم چې خبر دمبتدا سره يوځاې کوي په دې کې خو يوعائد هم نشته .

**جواب**: انه مقدر بجملة منصوب لنزع الخافض ، دی اوهغه خافض على دي اصل کې على انه مقدر بجملة وه بيا د جار مجرو متعلق محذوف شو او په دې کې ضمير مستتر دي کوم چې مبتدا يعني الاکثر طرف ته راجع دي لهذا عائد موجود دي .

اى الخبر الواقع: په دې عبارت سره شارح د انه د ضمير مرجع متعين کړي ده چې د ضمير مرجع الخبر الواقع ظرفاً دي .

مؤول: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوالينو مقدرينو جواب ورکول دي :

**سوال (۱)**: خبر ظرف دي اوظرف مذکور وي مقدر نه وي نو دمصنف رَحِمَهُ اللهُ قول مقدراً ويل ځنګه صحيح دي ؟

**سوال (۲)**: بجملة دادمقدر متعلق دي حالانکه دا دمقدر پورې متعلق کول صحيح نه دي ځکه چې دمقدر صله في راځي باء نه راځي .

**جواب**: مؤول ويلو سره شارح ددواړو سوالونو جواب ورکوي چې دهغې حاصل دادې چې مقدر مؤول په معنى کې دې اودمؤول صله باء راځي لهذا دواړه سوالونه رفع شول .

بتقدير الفعل: په دې عبارت سره غرض دشارح دخبر مؤول بجملة صورت بيانول دي ددې صورت دادې چې دظرف متعلق فعل لره مقدر ومنلي شي نودغه وخت کې خبر جمله جوړيږي ځکه چې فعل دخپل فاعل سره جمله جوړيږي .

بخلاف: په دې عبارت سره غرض دشارح داکثر مقابل بيانوي چې اقل نحاة يعني داهل کوفو په نزد باندې اسم فاعل به مقدر وي په دې صورت کې به خبر مفرد وي ځکه چې اسم فاعل دخپل فاعل سره جمله نه جوړيږي بلکه مفرد وي .

**ووجه الاكثر** : په دې عبارت سره غرض دشارح د نحويانو دبصري دليل بيانوي چې کله ظرف خبر وي نو دهغې دپاره متعلق کيدل واجب دي اودغه متعلق په دغه ظرف کې عامل هم وي او په عمل کې اصل فعل دي نو داصل تقدير اولى وي نولهذا فعل به مقدر منلي شي .

**ووجه الاقل** : په دې عبارت سره غرض دشارح د نحويانو دکوفې دليل بيانوي چې ظرف خبر دې او اصل په خبر کې افراد دې دڅووجوهونه : (۱) خبر دمرفوعاتو قسم دي اومرفوع داسم قسم دې او اسم دمفرد قسم دي . (۲) مبتدا مفرد وي نوخبر کې هم اصل دا دي چې په رکنان کې موافقت راشي . (۳) خبر که جمله وي نوهغه عائد ته محتاج وي اوخبر مفرد څه څيز ته محتاج نه دې غير محتاج اصل وي په نسبت سره محتاج ته . (۴) که چيرته خبر مفرد وي نوهغه دمبتدا سره سخت مضبوط ربط وي په خلاف دجملې چې هغه مستقل بالذات وي په دې صورت کې د هغه دمبتدا سره ربط کمزوري کيږي لهذا اسم فاعل لره مقدر منلي شي ځکه چې اسم فاعل دخپل فاعل سره مفرد وي جمله نه وي .

**ثم ان الاصل** : دادمابعد دپاره تمهيد دي چې مبتدا کې اصل تقديم دي اوتاخير يې هم جائز دي ليکن کله کله دڅه عارض دوجې نه خبر باندې دمبتدا تقديم واجبيږي چې هغې طرف ته مصنف په دې خپل قول : **اذا كان المبتدا** ، سره اشاره کړې ده ياغرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .چې تقديم دمبتدا په خبر باندې بديهي حکم دي اوددې دبيانولو ضرورت نشته ، نو جواب يې ورکړو چې حکم بديهي هغه اصالةً تقديم دمبتدا دي وجوب دتقديم نه دي دلته وجوب دتقديم دمبتدا بيانول مقصود دي يادسوال تقرير داسې کولې شي چې دمصنف په عبارت کې تعارض اوتدافع دي مخکې يې وويل چې : **والاصل في المبتدا التقديم** ، اواصل په معنى اولى او **ماينبغي** سره دي اودلته فرمايي چې په دې څلورو صورتونو کې تقديم دمبتدا واجب دي نودغه دواړو کلام کې تعارض دي نو په دې عبارت سره شارح جواب ورکړو چې دمبتدا تقديم دوجوب دڅه عارض دوجې نه وي اوعوارض مستثنى **من القواعد والضوابط** دي لهذا په کلامينو کې څه تعارض نشته .

## دمبتدا د تقديم دوجوب اولنې صورت :

| ثُمَّ اِنَّ الْاَصْلَ فِي الْمُبْتَدَاِ التَّقْدِيْمُ وَ جَازَ تَاخِيْرُهُ لٰكِنَّهُ قَدْ يَجِبُ لِعَارِضٍ كَمَا اَشَارَ |
| --- |
| بيا اصل په مبتدا کې تقديم دي اوجائز دي تاخير دده ليکن کله واجبيږي دڅه عارض دوجې نه لکه اشاره يې هغه |

| |
|---|
| اِلَيْهِ بِقَوْلِهِ وَ اِذَا كَانَ الْمُبْتَدَأُ مُشْتَمِلًا عَلٰى مَا لَهٗ صَدْرُ الْكَلَامِ |
| طرف ته کړي په دې قول کې اوکله چې مبتدا مشتمل وي په هغه څيز باندې چې دهغې دپاره صدارت دکلام وي |
| اَیْ عَلٰى مَعْنًى وَجَبَ لَهٗ صَدْرُ الْكَلَامِ كَالْاِسْتِفْهَامِ فَاِنَّهٗ يَجِبُ حِيْنَئِذٍ |
| يعنې داسې معنى باندې چې دهغې دپاره صدارت دکلام واجب وي لکه استفهام نوپه دې وخت کې واجب دي |
| تَقْدِيْمُهٗ حِفْظًا لِصِدَارَتِهٖ مِثْلُ مَنْ اَبُوْكَ فَاِنَّ مَنْ مُبْتَدَأٌ مُشْتَمِلٌ عَلٰى مَا |
| تقديم دمبتدا دهغې صدارت محفوظ ساتلو دپاره لکه من ابوک پس من مبتدا دي شامل دې هغه څيزته چې د |
| لَهٗ صَدْرُ الْكَلَامِ وَ هُوَ الْاِسْتِفْهَامُ فَاِنَّ مَعْنَاهُ اَهٰذَا اَبُوْكَ اَمْ ذَاكَ وَ اَبُوْكَ خَبَرُهٗ |
| هغې دپاره صدارت دکلام وي اوهغه استفهام دي پس ددې معنى ده داستاپلاردي ياهغه اوابوک دهغې خبر |
| وَ هٰذَا مَذْهَبُ سِيْبَوَيْهِ وَ ذَهَبَ بَعْضُ النُّحَاةِ اِلٰى اَنَّ اَبُوْكَ مُبْتَدَأٌ لِكَوْنِهٖ مَعْرِفَةً |
| دې اوداسيوبه مذهب دي اوبعضې نحات تللي دي دې طرف ته چې ابوک مبتدا دي خکه چې دا معرفه ده |
| وَ مَنْ خَبَرُهُ الْوَاجِبُ تَقْدِيْمُهٗ عَلَى الْمُبْتَدَأِ لِتَضَمُّنِهٖ مَعْنَى الْاِسْتِفْهَامِ. |
| اومن خبردي اوواجب وي دې لره مقدم کول په مبتدا باندې دوجې دمتضمن کيدو معنى د استفهام ته . |

**خلاصه دمتن:** دصاحب دکافيې دعبارت حاصل دادې چې څلور صورتونه داسې دي چې په هغې کې دمبتدا تقديم په خبر واجب دي په هغې کې اولنى صورت لاندې ذکر دي (۱) چې کله مبتدا په داسې معنى باندې مشتمل وي چې دهغې دپاره صدارت دکلام واجب وي مثلاً استفهام ، تمنى ، و غيره مثال من ابوک .

**اغراض دجامي : علی معنی:** په دې عبارت کې شارح دې خبرې ته اشاره کړې ده چې ما موصوفه ده چې دهغې نه معنى مراد ده .

**وجب:** په دې عبارت کې شارح اشاره کړې ده چې لهٗ ظرف مستقر دي ددې متعلق محذوف دي کوم چې وَجَبَ دي وصدرالکلام دوجب فعل دي بيادا جمله صفت ده دماموصوفه دعبارت مطلب دادې چې کله مبتدا په داسې معنى باندې مشتمل وي چې دهغې دپاره صدارت دکلام واجب وي مثال لکه استفهام، تمنى ، قسم ، لام ابتدائيه و تعجب و شرط وغيره نو په دې وخت کې تقديم دمبتدا په خبر باندې واجب دي ، شارح استفهام خاص خکه ذکر کړو چې مصنف مثال ددې استفهام ورکړي دي .

**حفظاً لصدارته:** په دې عبارت سره غرض دشارح صورت مذکوره کې دتقديم دمبتدا وجه بيانوي چې صورت مذکوره کې په خبرباندې دمبتدا تقديم دوجوب صدارت دحفاظت په

خاطر دي ځکه چې که دمبتدا تقدیم واجب نشي نوصورت به په خطره کې پریوځي .

**فان من:** په دې عبارت سره غرض دشارح مثال دممثل له سره تطبیق کول دي چې من ابوک کې من مبتدا دي کوم چې په داسې معنی باندې مشتمل دي چې دهغې دپاره صدارت دکلام واجب دي هغه معنی استفهام ده او ابوک دهغې خبر دي ځکه چې مبتدا لره په خبر باندې مقدم کول واجب دي .

**فان معناه أهذا أبوک أم ذاک:** په دې عبارت سره غرض دشارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : من نکره دي اوابوک کاف ضمیر طرف ته دمضاف کیدو په وجه معرفه دي که چیرته من مبتدا او ابوک خبر جوړ کړې شي نومبتدا لره نکره اوخبرله معرفه کیدل لازمیږي چې داناجائز دي .

**جواب** : مَن اګر چې صورةً نکره دي لیکن دمعنی په اعتبارسره معرفه دي ځکه چې ددې معنی ده أهذا ابوک ام ذاک په دې کې هذا او ذاک معرفه دي لهذا څه نقصان وارد نه شو .

**وهذا مذهب سیبویه:** په دې عبارت سره غرض دشارح اختلاف بیانول دي چې په من ابوک کې من مبتدا جوړول او ابوک خبر جوړول دسیبویه مذهب دی ، دسیبویه په نزد معرفه دداسې نکرې خبر نه شي جوړیدي چې کوم داستفهام په معنی باندې مشتمل وي اودبعضې نحویانو مذهب دادي چې مَن دنکرې کیدو په وجه مبتدا نه شي جوړیدې ددې وجې نه ابوک دمعرفې په وجې سره مبتدا مؤخردي او من خبر مقدم دي .

**سوال** : من که خبر دي نو بیا دې خبر ولې په مبتدا باندې مقدم کړو ؟

**جواب** : مَن په معنی داستفهام باندې مشتمل دي اوقاعده داده چې کله خبر په معنی د استفهام باندې مشتمل وي نودخبر تقدیم په مبتدا باندې واجب دي ددې وجې نه یې خبر په مبتدا باندې مقدم کړو .

## دمبتدا د تقدیم دوجوب دویم او دریم صورت :

| أَوْ كَانَا أَيِ الْمُبْتَدَأُ وَ الْخَبَرُ مَعْرِفَتَيْنِ مُتَسَاوِيَيْنِ فِي التَّعْرِيْفِ أَوْ غَيْرَ مُتَسَاوِيَيْنِ وَلَا قَرِيْنَةَ عَلٰى |
|---|
| یاوي دواړه یعني مبتدا اوخبرمعرفه برابره خبره ده که په معرفه کې برابروي اویانه وي برابراونه څه قرینه وي په کیدو |

| |
|---|
| كَوْنِ اَحَدِهِمَا مُبْتَدَاً وَالْاٰخَرِ خَبَراً نَحْوُ زَيْدُ الْمُنْطَلِقُ اَوْ كَانَا مُتَسَاوِيَيْنِ فِيْ اَصْلِ التَّخْصِيْصِ لَا فِيْ قَدْرِهٖ حَتّٰى |
| دي چې يو مبتدا وي اوبل خبرلكه زيدالمنطلق ياوي دواړه برابرپه اصل تخصيص كې نه په مقداركې حتى كه |
| لَوْ قِيْلَ غُلَامُ رَجُلٍ صَالِحٍ خَيْرٌ مِنْكَ لَوَجَبَ تَقْدِيْمُهٗ اَيْضًا مِثْلُ اَفْضَلُ مِنِّيْ اَفْضَلُ مِنْكَ |
| چيرته وويلي شي غلام رجل صالح خير منك نودې لره مقدم كول هم واجب دي لكه افضل مني افضل منك، دپاره د |
| رَفْعًا لِلْاِشْتِبَاهِ. |
| لرې كولو داشتباه. |

**خلاصه دمتن:** (۱) په دې عبارت كې دتقديم دمبتدا په خبر باندې دوجوب دويم اودريم صورت ذكر كوي: (۲) مبتدا اوخبر دواړه معرفه وي برابره خبره ده كه په تعريف كې مساوي وي اويانه، اوپه دې كې ديو په مبتدا كيدو اودبل په خبر كيدو باندې څه قرينه نه وي لكه زيد منطلق. (۳) مبتدا اوخبر په اصل تخصيص كې مساوي وي برابره خبره ده كه مقدارِ تخصيص كې مساوي وي اويانه مثال لكه: افضل منك، افضل مني.

**اغراض دجامي:** اى المبتدا والخبر: په دې عبارت سره غرض دشارح دكانا ضمير مرجع متعين كول دي چې د كانا ضمير مرجع مبتدا اوخبر دي.

متساوين: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال:** د متساوين دذكر كولو نه وروستو معرفتين ذكر كول بې فائدې دي ځكه چې د متساوين لفظ مساوات في التخصيص اومساوات في التعريف دواړو ته شامل دي لهذا د معرفتين ذكر بلا فائدې دي

**جواب:** كه چيرته مصنف په متساوين باندې اكتفا كړې وې نو ددې نه داوهم پيدا كيدو چې د مبتدا خبر په تعريف كې مساوي كيدل شرط دي حالانكه داسې نه دي بلكه كله هم مبتدا اوخبر مساوي في التعريف نه وي بلكه خبر اعرف من المبتدا وي ددې وجې نه مصنف خپل قول متساوين باندې اكتفاء ونه كړه بلكه معرفتين سره يې اشاره وكړه چې مبتدا خبر معرفه كيدل ضروري دي په معرفه كيدو كې مساوات ضروري نه دي.

ولا قرينة: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال:** دا ضابطه منقوضه او ماته ده په ابوحنيفه ابويوسف سره ځكه چې په دې جمله كې

ابوحنيفه او ابويوسف دکنيت کيدو دوجې نه معرفه دي حالانکه په دې کې دمبتدا تقديم په خبر واجب نه دي بلکه خبر مقدم دي.

**جواب**: دمبتدا خبر په معرفه کيدو په صورت کې دمبتدا تقديم هله واجب دي کله چې په هغې کې ديو په مبتدا اوددويم په خبر کيدو باندې څه قرينه موجود نه وي اوپه ذکر شوي مثال کې ابويوسف د مبتدا کيدو اودابوحنيفه په خبر کيدو باندې قرينه معنويه موجود ده اوهغه قرينه تشبيه ده ځکه چې مقصود ابويوسف دابوحنيفه سره تشبيه ورکول دي نه ابوحنيفه د ابويوسف سره ځکه چې ابوحنيفه اعلم من ابي يوسف دي او ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ د ابويوسف استاذ دي.

<u>كانا</u>: ددې اضافه يې وکړه چې دمتساوين عطف په معرفتين باندې دي.

<u>في اصل التخصيص</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: په غلام رجل صالح خيرمنک کې دمبتدا تقديم په خبرباندې واجب دي حالانکه مبتدا اوخبر په تخصيص کې مساوي نه دي ځکه چې خبرتخصيص حاصل کړي دي په يووجې سره اومبتدا تخصيص حاصل کړي دي په دوو(۲) وجهوسره: (۱) داضافت دوجې نه. (۲) دصفت دوجې نه نو په مبتدا کې په نسبت دخبر تخصيص زيات دي نوپه تخصيص کې مساوات نشته دي دا ولې؟

**جواب**: في اصل التخصيص سره جواب ورکوي چې دمبتدا اوخبر په اصل تخصيص کې مساوي کيدل شرط دي په مقدار تخصيص کې مساوي کيدل شرط نه دي اوپه ذکر شوي مثال کې مبتدا اوخبر په اصل تخصيص کې مساوي دي.

<u>رفعاً للاشتباه</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح په دويم اودريم صورت کې تقديم دمبتدا دوجوب وجه بيانوي په دغه دواړو صورتونو کې مبتدا لره ځکه مقدم کول واجب دي چې په مبتدا خبر کې اشتباه او التباس لازم نه شي.

## دمبتداد تقديم دوجوب څلورم صورت:

| أَوْ كَانَ الْخَبَرُ فِعْلًا لَهُ أَيْ لِلْمُبْتَدَإِ اِحْتِرَازاً عَمَّا لَا يَكُوْنُ فِعْلًا لَهُ كَمَا فِيْ زَيْدٌ قَامَ اَبُوْهُ |
|---|
| ياوي فعل خبردهغې دپاره يعني دمبتدادپاره احترازدې دهغې نه چې نه وي فعل دهغه دپاره لکه زَيْدٌ قَامَ اَبُوْهُ |
| فَاِنَّهُ لَا يَجِبُ فِيْهِ تَقْدِيْمُ الْمُبْتَدَإِ لِجَوَازِ قَامَ اَبُوْهُ زَيْدٌ لِعَدَمِ الْاِلْتِبَاسِ مِثْلُ زَيْدٌ قَامَ |
| پس نه دي واجب په دې کې تقديم دمبتدا ځکه چې جايزدي قام ابوه زيدد نه کيدود التباس دوجې نه لکه زيد قام |

| |
|---|
| وَجَبَ تَقْدِيْمُهٗ اَیْ تَقْدِيْمُ الْمُبْتَدَاِ عَلَى الْخَبَرِ فِيْ هٰذِهِ الصُّوَرِ اَمَّا فِي الصُّوَرِ الْاَوَّلِ |
| نو دي تقديم واجب دي يعني مبتدا په خبر باندې مقدم کول په دې صورتونو کې هرچې په اول صورت کې نو دهغې |
| فَلِمَا ذَكَرْنَا وَ اَمَّا فِي الصُّوْرَةِ الْاَخِيْرَةِ فَلِئَلَّا يَلْتَبِسَ الْمُبْتَدَاُ بِالْفَاعِلِ |
| وجې نه کوم چې مونږ ذکر کړه هرچې په آخري صورت کې نو ددې وجې نه چې ملتبس نه شي مبتدا د فاعل سره چې |
| اِذَا كَانَ الْفِعْلُ مُفْرَدًا مِثْلُ زَيْدٌ قَامَ فَاِنَّهٗ اِذَا قِيْلَ قَامَ زَيْدٌ اِلْتَبَسَ الْمُبْتَدَاُ بِالْفَاعِلِ اَوْ بِالْبَدَلِ عَنِ |
| کله فعل مفرد وي لکه زَيْدٌ قَامَ پس چې کله وويل شي قام زيد نو ملتبس به شي فاعل د مبتدا سره يا د بدل د |
| الْفَاعِلِ اِذَا كَانَ مُثَنًّى اَوْ مَجْمُوْعًا فَاِنَّهٗ اِذَا قِيْلَ فِيْ مِثْلِ اَلزَّيْدَانِ قَامَا وَالزَّيْدُوْنَ قَامُوْا |
| فاعل نه چې کله تثنيه يا جمع وي ځکه چې کله وويل شي په دې مثال کې چې اَلزَّيْدَانِ قَامَا وَ الزَّيْدُوْنَ قَامُوْا |
| قَامَا الزَّيْدَانِ وَ قَامُوْا الزَّيْدُوْنَ يَحْتَمِلُ اَنْ يَّكُوْنَ الزَّيْدَانِ وَ الزَّيْدُوْنَ بَدَلًا عَنِ الْفَاعِلِ |
| قاما الزيدان وقاموا الزيدون نو په دې کې احتمال ددې خبرې دي چې الزيدان او الزيدون بدل دي د فاعل نه |
| فَالْتَبَسَ الْمُبْتَدَاُ بِهٖ اَوْ بِالْفَاعِلِ عَلٰى هٰذَا التَّقْدِيْرِ اَيْضًا عَلٰى مَنْ يُجَوِّزُ كَوْنَ |
| نو پس ملتبس به شي مبتدا ددې فاعل سره په دې تقدير باندې هم د هغه سړي قول کوم چې جائز وي کيدل د |
| الْاَلِفِ وَالْوَاوِ حَرْفًا دَالًّا عَلٰى تَثْنِيَةِ الْفَاعِلِ وَ جَمْعِهٖ كَالتَّاءِ فِيْ ضَرَبَتْ هِنْدٌ. |
| الف او واو داسې حرف چې دلالت کوي د فاعل په تثنيه او جمع والي باندې لکه ضربت هند کې تاء. |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت کې تقديم د مبتدا په خبر واجب کيدو څلورمه وجه بيانوي خبر فعل للمبتدا يعني خبر داسې فعل وي چې د مبتدا ضمير طرف ته مسند وي مثال لکه: زيد قام.

**اغراض دجامي**: اي للمبتدا: په دې عبارت سره غرض دشارح د لهٗ ضمير دمرجع تعين کوي چې د لهٗ ضمير مرجع مبتدا ده.

**احترز**: په دې عبارت سره د لهٗ دقيد فائده بيانوي چې داقيد احترازي دي ددې نه احتراز دي دهغه خبر نه کوم چې فعل للمبتدا نه وي بلکه لغير المبتدا وي مثال لکه زيد قام ابوه کې زيد مبتدا او قام ابوه خبر دي په دې کې دقيام فعل زيد دپاره ثابت نه دي بلکه زيد دغير يعني دهغه پلار دپاره ثابت دي.

**فانه لايجب**: په دې عبارت سره غرض دشارح وجه داحتراز بيانوي چې ددې صورت نه احتراز په دې وجې سره کړي دي چې په دې کې تقديم دمبتدا په خبر باندې واجب نه دي همدارنګې

زيد قام ابوه په ځاې قام ابوه زيد هم ويلي شي ځکه چې په دې صورت کې التباس نه لازميږي

ومن تقديم المبتدا : په دې عبارت سره غرض دشارح د تقديمه د ضمير دمرجع تعين کوي چې د ضمير مرجع مبتدا ده

في هذه الصورة : په دې عبارت سره بيان دمحل دتقديم دي .

اما في الصور الاول : په دې عبارت سره غرض دشارح په صور اربعه مذکوره کې خبر باندې د تقديم دمبتدا بيان دي کمامرت چې دهغې خلاصه داده چې په اولني صورت کې تقديم ځکه واجب دي چې صدارت د کلام فوت نه شي اوپه دويم اودريم صورت کې تقديم ځکه واجب دي چې په مبتدا او خبر کې التباس رانه شي .

واما في الصورة الاخيرة : په دې سره څلورم صورت کې په خبر باندې تقديم دمبتدا دوجوب وجه بيانوي هغه وجه داده چې مبتدا دغير مبتدا سره التباس لازم نه شي هغه غيرڅه څيز دي په دې کې څه تفصيل دي هغه تفصيل دادې چې خبر په فعل مفرد ياتثنيه ياجمع به وي که چيرته خبر فعل مفرد وي نوتقديم دمبتدا ځکه واجب دي چې د مبتدا دفاعل سره التباس لازم نه شي مثال زيد قام په ځاې قام زيد ويلي شي نومعلومه به نه شي چې زيد مبتداء مؤخر دي اوکه د قام فاعل دي .

اوکه خبر فعل تثنيه ياجمع وي نودجمهورو په نزد اګرچې فاعل سره التباس خو نه راځي ځکه چې دتثنيه الف اودجمع واودفاعل په ضمير باندې دلالت کوي اومابعدوالاسم ظاهر فاعل نه شي کيدي ليکن په دې صورت کې دمبتدا بدل عن الفاعل سره التباس لازم راځي لکه الزيدان قاما په ځاې قاما الزيدان او الزيدون قاموا په ځاې قاموا الزيدون وويلي شي نو به معلوم نه شي چې الزيدان يا الزيدون مبتدا مؤخر دي يا قاما اودقاموا ضمير دفاعل نه بدل دي ليکن دا تقرير دجمهورو نحويانو په نزد دي اوبعضې نحويان چې دهغې په نزد الف تثنيه او واو د جمع فاعل ضميرنه دي بلکه حرف دي کوم چې دفاعل تثنيه کيدو اوجمع کيدو باندې دلالت کوي مثال دفعلت تاء دفاعل په مؤنث کيدو باندې دلالت کوي نودهغوي په نزد دلته هم مبتدا د فاعل سره التباس لازم راځي مثال الزيدان قاما په ځاې قاما الزيدان وويلي شي نومعلوم به نه شي چې الزيدان فاعل دي يامبتدا مؤخر دي .

اوهمدارنګې الزيدون قاموا په ځاې قاموا الزيدون وويلي شي نو معلوم به نه شي چې الزيدون

فاعل دي اويامبتدا مؤخره ده.

## دمبتدا دتاخير دوجوب څلور (۴) صورتونه:

وَإِذَا تَضَمَّنَ الْخَبَرُ الْمُفْرَدُ أَيِ الَّذِيْ لَيْسَ بِجُمْلَةٍ صُوْرَةً سَوَاءٌ كَانَ بِحَسْبِ الْحَقِيْقَةِ جُمْلَةً أَوْ غَيْرَ جُمْلَةٍ

اوكله چې متضمن وي خبرمفرديعنې هغه چې صورت دجملې نه وي برابره خبره ده كه حقيقةً جمله وي يانه وي

مَا لَهُ صَدْرُ الْكَلَامِ أَيْ مَعْنًى وَجَبَ لَهُ صَدْرُ الْكَلَامِ

هغه څيزلره چې دهغه دپاره صدارت دكلام وي يعنې داسې معنى لره چې دهغې دپاره صدارت دكلام واجب وي

كَالْاِسْتِفْهَامِ مِثْلُ أَيْنَ زَيْدٌ فَزَيْدٌ مُبْتَدَأٌ وَ أَيْنَ اِسْمٌ مُتَضَمِّنٌ لِلْاِسْتِفْهَامِ خَبَرُهُ

لكه استفهام مثلاً اين زيدپس زيدمبتدادى اواين اسم دي چې متضمن دي استفهام لره دادمبتدادپاره خبردي

وَهُوَ ظَرْفٌ فَإِنْ قُدِّرَ بِفِعْلٍ كَانَ الْخَبَرُ جُمْلَةً حَقِيْقَةً مُفْرَدًا صُوْرَةً وَإِنْ قُدِّرَ بِاسْمِ الْفَاعِلِ

اوهغه ظرف دي پس كه مقدركړې شي فعل سره نوشي به خبرجمله حقيقة مفردصورتاًاوكه مقدركړې شي اسم فاعل

كَانَ الْخَبَرُ مُفْرَدًا صُوْرَةً وَحَقِيْقَةً وَعَلَى التَّقْدِيْرَيْنِ لَيْسَ بِجُمْلَةٍ صُوْرَةً وَاحْتَرَزَ عَنْ نَحْوِ زَيْدٌ أَيْنَ

سره نوشي به خبرمفردصورة وحقيقةً په دغه دووصورتونوكې صورة جمله نه ده اواحترازيې كړې دي لكه زيداين

أَبُوْهُ إِذْ لَا تَبْطُلُ بِتَأْخِيْرِهِ صَدَارَةُ الْكَلَامِ لِتَصَدُّرِهِ فِيْ جُمْلَةٍ أَوْ كَانَ الْخَبَرُ

ابوه سره خكه چې نه باطليږي په تاخيردې سره صدارت دكلام خكه چې هغه په جمله كې مخكې ده ياخبرخپل

بِتَقْدِيْمِهِ مُصَحِّحًا لَهُ أَيْ لِلْمُبْتَدَإِ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ مُبْتَدَأٌ فَبِتَقْدِيْمِهِ

مقدم كيدوسره هغې لره صحيح كيدونكې وي يعنې مبتدالره دې حيثيت سره چې هغه مبتدادي نوددې تقديم

يَصِحُّ وُقُوْعُهُ مُبْتَدَأً مِثْلُ فِي الدَّارِ رَجُلٌ فَإِنَّ فِي الدَّارِ خَبَرٌ تَخَصَّصَ

به صحيح وي ددې مبتدااواقع كيدل مثال في الدار رجل خكه چې في الدار كې خبر دي تخصيص حاصل كړې دي

الْمُبْتَدَأُ بِتَقْدِيْمِهِ كَمَا عَرَفْتَ فَلَوْ أُخِّرَ بَقِيَ الْمُبْتَدَأُ

مبتدادهغې مقدم كيدلوسره څه رنګه چې تاپيژندلې دي پس اګركه هغه لره مؤخركړې شي نوپاتې به شي مبتدا

نَكِرَةً غَيْرَ مَخْصُوْصَةٍ أَوْ كَانَ لِمُتَعَلَّقِهِ بِكَسْرِ اللَّامِ أَيْ كَانَ لِمُتَعَلِّقِ الْخَبَرِ التَّابِعِ لَهُ بِتَبْعِيَّةٍ يَمْتَنِعُ مَعَهَا تَقْدِيْمُهُ

نكره غيرمخصوصه ياوي دهغې متعلق بكسرلام دپاره كوم چې دخبرتابع دي داسې تبعيت سره چې دهغې تقديم

عَلَى الْخَبَرِ فَلَا يَرِدُ نَحْوُ عَلَى اللهِ عَبْدُهُ مُتَوَكِّلٌ ضَمِيْرٌ كَائِنٌ فِيْ جَانِبِ الْمُبْتَدَإِ

په خبرباندې ممتنع دي پس اعتراض نه واردېږي په على الله عبده باندې ضميرچې كائن وي په طرف دمبتدا كې

رَاجِعٌ إِلَى ذَلِكَ الْمُتَعَلِّقِ إِذْ لَوْ أُخِّرَ لَازِمَ الْإِضْمَارُ قَبْلَ الذِّكْرِ لَفْظًا وَمَعْنًى مِثْلُ عَلَى التَّمْرَةِ

اوراجع وي دې متعلق طرف ته خكه كه مؤخركړې شي نولازم به شي اضمارقبل الذكرلفظاًاومعناًلكه على التمرة

| |
|---|
| مِثْلُهَا زَيْدًا فَقَوْلُهُ مِثْلُهَا اَيْ مِثْلُ التَّمْرَةِ مُبْتَدَأٌ وَ فِيْهِ ضَمِيْرٌ لِمُتَعَلِّقِ الْخَبَرِ وَ هُوَ التَّمْرَةِ |
| مثلهازبدا پس د د ه قول مثلهايعني مثل التمرة مبتدا ده او په دې کې ضمير دی خبر د متعلق دپاره او هغه تمره ده |
| لِاَنَّ الْخَبَرَ هُوَ قَوْلُهُ عَلَى التَّمْرَةِ وَ التَّمْرَةُ مُتَعَلِّقٌ بِهٖ مِثْلَ تَعَلُّقِ الْجُزْءِ بِالْكُلِّ اَوْ كَانَ |
| ځکه چې خبر د ده هغه قول دی على التمرة د التمرة متعلق دی چې د هغې سره په مثل د تعلق نيولو جزد کل سره ياوي |
| الْخَبَرُ خَبَرًا عَنْ اَنَّ الْمَفْتُوْحَةِ الْوَاقِعَةِ مَعَ اِسْمِهَا وَ خَبَرِهَا الْمُؤَوَّلِ بِالْمُفْرَدِ مُبْتَدَاً اِذْ فِيْ تَاخِيْرِهٖ |
| خبر خبر د ان مفتوحه چې واقع وي د اسم او خبر سره چې مؤول وي د مفرد سره مبتدا د هغې ځکه چې په تاخير د دې |
| خَوْفُ لُبْسِ اَنَّ الْمَفْتُوْحَةِ بِالْمَكْسُوْرَةِ فِي التَّلَفُّظِ لِاِمْكَانِ الذُّهُوْلِ عَنِ الْفَتْحَةِ |
| کې د ان مفتوحه سره د التباس ويره وي او په ان مکسوره سره د تلفظ په وجه ممکن کيدو د ذهول د فتحې سره |
| لِخَفَائِهَا اَوْ فِي الْكِتَابَةِ مِثْلُ عِنْدِيْ اَنَّكَ قَائِمٌ وَجَبَ تَقْدِيْمُهُ اَيْ تَقْدِيْمُ الْخَبَرِ عَلَى الْمُبْتَدَاِ |
| بوجه مخفي کيدو د هغې سره يا کتابة لکه عندي انک قائم واجب دی د ده مقدم کول يعنې مبتدا الره په خبر |
| فِيْ جَمِيْعِ هٰذِهٖ لِمَا ذَكَرْنَا. |
| باندې په دې ټولو وجوهو کې چې مونږ مخکې ذکر کړې . |

**خلاصه د متن:** د صاحب د کافيې د دې عبارت حاصل دا دی چې څلور صورتونه داسې دي چې په هغې کې د تقديم د خبر په مبتدا باندې واجب دی : (۱) کله چې مفرد په داسې معنى باندې مشتمل وي چې د هغې دپاره صدارت د کلام واجب وي لکه اين زيد . (۲) تقديم د خبر مصحح للمبتدا وي لکه في الدار رجل . (۳) د مبتدا په جانب کې داسې ضمير وي چې د خبر متعلق طرف ته راجع وي لکه على التمرة مثلها زبدا . (۴) ان مفتوحه سره خبر واقع وي يعنې ان خپل اسم او خبر سره يوځای شي د مفرد په تاويل کې شي مبتدا او د هغې نه څو لفظ خبر واقع وي لکه عندي انک قائم .

**اغراض د جامي** : اى الذي ليس: په دې عبارت سره شارح فرمايي چې د لته کې مفرد د جملې په مقابله کې دې معنى داده چې خبر جمله نه وي .

**صورة**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مثال د دې د ممثل سره مطابق نه دی ځکه چې ممثل لـه خبر مفرد دی او کوم مثال چې ذکر شوي دي اين زيد په دې کې خبر مفرد نه دی بلکه جمله ده ځکه چې خبر اين دی او هغه ظرف دی او د اکثرو نحويانو په نزد خبر ظرف مؤول بالجملة وي .

**جواب** : خبر دمفرد کيدو مطلب دادې چې هغه صورة جمله نه وي برابره خبره ده که حقيقةً جمله وي او يا نه وي او اين زيد کې اين صورة جمله نه ده لهذا مثال دممثل سره مطابق شو

<u>اى معنى</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح دادې چې ما موصوفه ده چې دمعنى نه عبارت ده

<u>وجب</u> : په دې عبارت سره شارح وايي چې لَهٗ ظرف مستقر دوجب محذوفه متعلق دي اوصدر الکلام ددې فاعل دي دعبارت حاصل دادې چې کله خبر داسې معنى لره متضمن وي چې د هغې دپاره صدارت دکلام واجب وي لکه استفهام تمنى وغيره نو په دې صورت کې مبتدا باندې تقديم دخبر واجب دي باقي استفهام لره شارح خاص طور باندې ځکه ذکر کړو ځکه چې مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ په مثال کې دغه ذکر کړي دي .

<u>فزيد مبتدا</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح مثال دممثل له سره منطبق کول دي چې اين زيد کې زيد مبتدا دي او اين دهغې خبر دي اوداداسې معنى لره متضمن دي چې دهغې دصدارت کلام واجب دي اوهغه معنى داستفهام ده ځکه چې خبر په داسې معنى باندې مشتمل دي چې هغې دپاره صدارت د کلام واجب دي ددې وجې نه دلته کې خبر لره په مبتدا تقديم واجب دي او اين ظرف دي که چيرته ددې متعلق فعل مقدر ومنلي شي لکه دادبصرينومذهب دي نو خبر صورةً به مفرد وي ليکن حقيقتاً به جمله وي اودکوفيونودمذهب مطابق ددې متعلق اسم فاعل مقدر منلي شي نوخبربه صورتاً هم مفرد وي او حقيقتاً به هم مفرد وي بهر حال کوم صورت چې وي خبر صورة جمله نه وي لهذا مثال د ممثل له سره مطابق شو .

<u>واحترز به</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح دمفرد دقيد فائده بيانول دي چې داقيد احترازي دي ددې نه احتراز دي دهغه خبرنه چې جمله وي او داسې معنى ته متضمن وي چې هغې دپاره صدارت دکلام واجب وي لکه اين زيد په دې کې زيد مبتدا دي او اين ابوه جمله ددې خبر دي اوداداسې معنى لره متضمن دي چې هغې دپاره صدارت دکلام واجب دي اوهغه معنى داستفهام ده .

<u>اذ لا تبطل</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح داحتراز وجه بيانول دي چې کله خبر جمله وي نو چې د هغې تقديم دخبر په مبتدا واجب نه دي ځکه چې دخبر په تاخير په صورت کې مقتضى صدارت نه باطليږي ځکه چې اين په کومه جمله کې واقع دي په هغې شروع کې موجود دي

<u>اى للمبتداء</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح تعين دمرجع دضمير دي چې د هغې مرجع مبتدا

ده .

من حيث انه : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ددې عبارت په ظاهره دامفهوم معلوميږي چې تقديم دخبر په مبتدا دذات دپاره مصحح وي حالانکه داسې نه ده ځکه چې في الدار رجل کې رجل مبتدا ده چې ديو مفيد معنی دپاره موضوع ده هغه معنی مفيده داده چې ذکر من بني آدم جاوز حد الصغر الی حد الکبر نو تقديم دخبر په مبتدا د ذات دپاره څنګه مصحح شو ؟

**جواب** : مراددانه دي چې تقديم دخبرمبتدا ذات دپاره مصحح وي بلکه مراد دادې چې تقديم دخبر مبتدا دصفت ابتدائيت دپاره مصحح وي او في الدار رجل کې تقديم دخبر مبتدا دوصف ابتدائيت دپاره مصحح دي ځکه چې که خبر مؤخر شي نومبتدا نکره محضه غير مخصصه لازم راځي اونکره محضه لره مبتدا جوړول صحيح نه دي ځکه چې تقديم دخبر دوجې نه مبتدا لره سبتدا جوړول صحيح ده .

فان في الدار : په دې عبارت سره غرض دشارح مثال دممثل له سره منطبق کول دي چې في الدار رجل کې رجل مبتدا ده او في الدار دهغې خبر دي چې دهغې تقديم رجل دمبتدا دپاره مصحح دي ځکه چې که چيرته دا مؤخر کړې شي نو نکره محضه مبتدا جوړول لازم راځي اوداجائز نه دي .

اى کان : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : او لمتعلقه : په يو عطف کې دوه احتمالات دي (۱) ددې عطف دکان په اسم باندې دي . (۲) يا د کان په خبر باندې دي پس دواړه احتمالات صحيح نه دي (۱) اول احتمال ځکه صحيح نه دي چې کان په اسم باندې چې کوم عطف وي هغه هم دکان اسم وي حالانکه جار مجرور دکان اسم نه شي جوړيدې . (۲)او دکان په خبر باندې عطف ځکه صحيح نه دي ځکه چې دجملې عطف په مفرد باندې راځي اودا غير مناسب دي .

**جواب** : شارح بکسر اللام سره جواب ورکوي چې دلته متعلق بفتح اللام مراد نه دي بلکه بکسر اللام مراد دي چې دهغې نه مراد دخبر تابع کيدل دي .

اى کان المتعلق : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داضابطه په على الله عبده متوكل سره منقوضه اوماته ده ځکه چې په دې کې عبده مبتدا ده اود هغې سره داسې ضمير متصل دې كوم چې متعلق خبر طرف ته راجع دي اوهغه متعلق خبر لفظ الله دي ځکه چې خبر متوكل دي او على الله دهغې متعلق دي حالانكه په دې کې تقديم دخبر په مبتدا باندې واجب نه دي .

**جواب** : خبر دمتعلق نه مراد تابع دخبر دي داسې تابع چې دهغې تقديم په خبر باندې ممتنع دي او على الله عبده متوكل کې على الله دخبر داسې تابع نشته دي چې تابع كيدو سره دهغې تقديم په خبر باندې ممتنع وي بلكه دادخبر نه مقدم دي لهذا په دې سره نقض نه واردیږي .

كائن : په دې عبارت سره شارح اشاره کړي ده چې في المبتداء جار مجرور ظرف مستقر دكائن متعلق صفت دي دضمير .

جانب : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : مثال دممثل له سره مطابق نه دي ځکه چې ممثل له دادې چې ضمير په مبتدا کې وي په مبتدا کې دكيدو مطلب دادې چې ضمير دمبتدا جز وي اوپه مثلها کې ضمير دمبتدا جز نه دي ځکه چې هغه مضاف اليه دي اومضاف اليه قيد وي اوقيد دمقيد نه خارج وي .

**جواب** : د ضمير في المبتدا مطلب دانه دي چې ضمير دمبتدا جُز وي بلكه مراد دادې چې په جانب مبتدا کې ضمير وي چې متعلق دضمير طرف ته راجع وي اوپه مثال کې داسې نه دي لهذا مثال دممثل له سره مطابق شو .

راجع الى ذلك : په دې سره غرض دشارح دمبتدا په جانب کې متعلق دخبر ضمير كيدو مطلب بيانوي چې جانب دمبتدا کې متعلق دخبر دضمير مطلب دادې چې ضمير دمتعلق خبر طرف ته راجع دي .

اذلـو اخـر : پـه دې عبـارت سـره غـرض دجـامي پـه صـورت مـذكوره کـې د مبتـدا پـه تقـديم دخبردوجوب وجه بيانوي چې دهغې حاصل دادې چې صورت مذكوره کې په مبتدا باندې تقديم دخبر ځکه واجب دي چې که خبر لره مؤخر کړي شي نو لفظاً اورتبتاً اضمار قبل الذكر لازم راځي چې داجائز نه دي .

فقوله مثلها : په دې عبارت سره غرض دشارح مثال دممثل له سره تطبيق کول دي چې على التمرة مثلها زبدا کې مثل مبتدا دي اودهغې سره داسې ضمير متصل دي كوم چې متعلق دضمير

طرف ته راجع دي اومتعلق خبر التمرة دي ځکه چې خبر د عن التمرة مجموعه ده او التمرة د هغې متعلق دي لکه څنګه چې جز د کل سره متعلق دي .

اوكان الخبر: په الخبر سره د ضمير مرجع بيانوي المفتوحة سره شارح د جامي والاضبط اعراب بيانوي چې ان همزه مفتوحه سره ده .

الواقعة: په دې عبارت سره غرض د شارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال**: خبر دان نه مراد يا خو دان دلفظ نه به خبر وي يا د هغې داسم خبر وي دواړه احتمالات ځکه صحيح نه دي چې ان حرف کيدو دوجې نه د مبتدا جوړيدو صلاحيت نه لري او دويم احتمال ځکه صحيح نه دي چې خروج عن المبحث لازم راځي ځکه چې بحث په مبتدا او خبر کې کيږي د ان خبر داسم نه ،نه کيږي .

**جواب**: دواړه احتمالات مراد نه دي بلکه مراد دادې چې ان مفتوحه خپل اسم د خبر سره يوځاې شو بيا د مفرد په تاويل کې شوه او مبتدا جوړه شوه او ددې نه څه لفظ د خبر واقع وي .

اذ في تاخيره: په دې عبارت سره غرض د شارح تقديم د مبتدا په خبر باندې د وجوب وجه بيانوي چې په دې صورت کې تقديم د خبر په مبتدا باندې ځکه واجب دي که چيرته خبر مؤخر شي نو ان مفتوحه دان مکسوره سره التباس راځي تلفظ او کتابت دواړو کې د غه شان د فتحې سره د غفلت امکان دي ځکه چې فتح خفيف او سريع ده ددې وجې نه مخاطب ته نه معلوميږي چې إن تلفظ وشو يا د أن تلفظ وشو او کتابت کې هم ځکه چې شروع د کلام کې إنّ راځي أنّ نه راځي .

اى تقديمه: په دې عبارت سره په تقديمه کې د ة ضمير مرجع متعين کوي چې د ةضمير مرجع خبر دي .

على المبتدا: داد صلې بيان دي .

في جميع هذه الصور: په دې کې د محل تقديم بيان دي .

## د خبر د متعدد کيدو بحث :

| وَقَدْ يَتَعَدَّدُ الْخَبَرُ مِنْ غَيْرِ تَعَدُّدِ الْمُخْبَرِ عَنْهُ فَيَكُوْنُ اِثْنَيْنِ فَصَاعِدًا وَذٰلِكَ التَّعَدُّدُ اِمَّا بِحَسْبِ اللَّفْظِ وَالْمَعْنٰى |
| --- |
| او کله متعدد کيږي خبر بغير د مخبر عنه نه پس وي به دوه يا زيات او دا تعدد يا په اعتبار د لفظ او معنى وي يو |

| جَمِيْعًا وَ يُسْتَعْمَلُ ذٰلِكَ عَلٰى وَجْهَيْنِ بِالْعَطْفِ مِثْلُ زَيْدٌ عَالِمٌ وَعَاقِلٌ وَبِغَيْرِ الْعَطْفِ مِثْلُ زَيْدٌ عَالِمٌ عَاقِلٌ وَ اِمَّا |
| --- |
| خاې او استعماليږي دا په دوه وجهو سره په عطف لکه زيد عالم وعاقل او بغير د عطف نه لکه زيد عالم عاقل او يا په |
| بِحَسْبِ اللَّفْظِ فَقَطْ نَحْوُ هٰذَا حُلْوٌ حَامِضٌ فَاِنَّهُمَا فِي الْحَقِيْقَةِ خَبَرٌ وَاحِدٌ اَيْ مُزٌّ وَفِيْ هٰذِهِ الصُّوْرَةِ تَرْكُ |
| اعتبار د لفظ سره صرف لکه هذا حلو حامض پس دا په حقيقت کې يو خبر دې يعنې مُز په دې صورت کې پرېښودل |
| الْعَطْفِ اَوْلٰى وَ نَظَرَ بَعْضُ النُّحَاةِ اِلٰى صُوْرَةِ التَّعَدُّدِ وَ جَوَّزَ الْعَطْفَ وَلَا يَبْعُدُ |
| د عطف ډېر بنه دې او بعضې نحاتو تعدد د صورت ته کتلي دي او عطف يې جائز گرځولې وي او بعيده نه دې چې |
| اَنْ يُقَالَ مَرَادُ الْمُصَنِّفِ بِتَعَدُّدِ الْخَبَرِ مَايَكُوْنُ بِغَيْرِ عَاطِفٍ لِاَنَّ التَّعَدُّدَ بِالْعَاطِفِ |
| وويلې شي چې د مصنف مراد خبر د تعدد نه هغه دې چې بغير د عطف نه يې خکه چې حرف عطف سره په تعدد کې |
| لَاخِفَاءَ بِهٖ لَا فِي الْخَبَرِ وَلَا فِي الْمُبْتَدَاءِ وَلَا فِيْ غَيْرِهِمَا وَ اَيْضًا الْمُتَعَدِّدُ بِالْعَطْفِ |
| څه خفا راخي نه په خبر او نه په مبتدا کې او نه د دې دواړو نه په علاوه کې او همدارنګې د عطف په ذريعې سره تعدد |
| لَيْسَ بِخَبَرٍ بَلْ هُوَ مِنْ تَوَابِعِهٖ وَ لِهٰذَا اَوْرَدَ فِي الْمِثَالِ الْخَبَرَ الْمُتَعَدِّدَ بِغَيْرِ عَاطِفٍ وَ |
| د خبر نشته بلکه هغه په د خبر د توابعو نه وي د دې وجې نه يې راوړي په مثال کې خبر متعدد او بغير حرف عطف لره او |
| لَوْ جُعِلَ التَّعَدُّدُ اَعَمَّ فَالْاِقْتِصَارُ عَلَيْهِ لِذٰلِكَ. |
| که جوړ کړې شي تعدد لره عام نو اکتفاء کول په دې باندې د همدې وجې نه دي . |

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت سره صاحب د کافيې وايې چې ضمير کله متعدد هم وي دوه يا د دوه نه زيات مثال لکه زيد عالم عاقل او تعدد د خبر خکه جائز دي خکه چې خبر د مبتدا حال بيانوي او ديوشي متعدد احوال کيدې شي .

**اغراض دجامي : من غير تعدد المبتدا :** په دې عبارت سره غرض د شارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** قَدْ په مضارع باندې د تقليل فائده ورکوي حالانکه تعدد د خبر خو کثير دي ؟

**جواب :** شارح په مِن غير تعدد سره جواب ورکوي چې دلته کې د تعدد نه هغه تعدد د خبر مراد دي چې د مبتدا د تعدد نه غير وي يعنې مبتدا يو وي او خبر متعدد وي او دا قليل وي خکه مصنف د قد ذکر راوړو .

**ولذلک التعدد :** په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** د دې سوال نه مخکې يو تمهيد بيانوي :

**تمهيد**: دتمهيد خلاصه داده چې تعدد دخبر ياخو دلفظ اومعنى دواړو لحاظ سره به وي يافقط دلفظ سره به وي كه دواړو لحاظ سره وي نوددې استعمال په دوو طريقو باندې دي.
(۱)عطف سره لكه زيدعالم وعاقل. (۲) په غير دعطف نه لكه زيد عالم عاقل.
كه تعدد فقط د لفظ لحاظ سره وي دهغې مثال هذاحلوحامض داپه حقيقت كې يوخبردې ځكه چې مقصود دحلاوت اوحموضت په مينځ كې منځنې كيفيت بيانول دي اوپه حقيقت كې په دې صورت كې تعدد نشته دي ځكه چې په دې كې ترک عطف اولى دې اوبعضې نحويانو ظاهري تعددته كتلي دي اوعطف يې جائزكړي دي.
ددې تمهيدنه وروستواصل اعتراض ولايبعد سره بيان كړي دي.
<u>ولايبعد</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي
**سوال**: كله چې تعدد د خبر دوه قسمونه وو: (۱) عطف سره .(۲) په غير د عطف نه ، نو مصنف خو د تعدد بلا عطف مثال وركړي دې خو د تعدد بالعطف مثال يې ولې نه دې وركړي؟
**جواب**: شارح ددې دري (۳) جوابونه وركړي دي:
**جواب (۱)**: اول جواب دادې چې دمصنف مقصود هغه تعددخبر بيانول دي كوم چې د عطف نه بغيروي ځكه چې په دې كې خفا ده اوتعددبالعطف كې څه خفانشته دي نه په مبتدا كې اونه په خبر كې اونه ددې نه په غير كې ددې وجې نه مصنف تعددبالعطف مثال ذكر نه كړو داجواب تسليمي دي يعنې مونږ داتسليموو چې تعدد عاطف دتعدد دخبر دقبيلې نه دي.
**جواب (۲)**: داجواب عدم تسليمي دي چې مونږداخبره نه تسليموچې تعددبالعاطف خبر دي بلكه خبر دتوابع نه دي خبر صرف معطوف عليه دي معطوف دهغې تابع نه چې خبردې وجې نه مصنف تعدد بالعاطف مثال ذكر نه كړو.
**جواب (۳)**: داجواب هم تسليمي دي كه مونږداتسليم كړو چې تعددخبر نه مراد عام دي برابره خبره ده كه بالعطف وي اوكه بلاعطف نومونږ به داسې وايو چې مصنف په تعدد بلاعاطف په مثال باندې اكتفاء وكړه ځكه چې په دې كې خفا ده په خلاف دتعدد بالعاطف چې په دې كې هيڅ خفا نشته دي.

## مبتدا معنی د شرط لره متضمن کیدل :

| |
|---|
| وَ قَدْ يَتَضَمَّنُ الْمُبْتَدَأُ مَعْنَى الشَّرْطِ وَ هُوَ سَبَبِيَّةُ الْأَوَّلِ لِلثَّانِيْ أَوْ لِلْحُكْمِ بِهٖ فَلَا يَرِدُ |
| او کله متضمن کیږي مبتدا معنی د شرط لره او هغه سبب کیدل دي اول د ثاني دپاره یا د هغه حکم دپاره پس نه |
| عَلَيْهِ نَحْوُ وَ مَا بِكُمْ مِنْ نِعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ فَيُشْبِهُ الْمُبْتَدَأُ الشَّرْطَ فِيْ سَبَبِيَّتِهٖ |
| وارديږي په دې باندې اعتراض لکه وَمَا بِكُمْ مِنْ نِعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ پس مشابه به وي مبتدا د شرط سره په سببیت کې |
| لِلْخَبَرِ كَسَبَبِيَّةِ الشَّرْطِ لِلْجَزَاءِ فَيَصِحُّ دُخُوْلُ الْفَاءِ فِي الْخَبَرِ وَ يَصِحُّ عَدَمُ دُخُوْلِهٖ |
| دپاره د خبر لکه سببیت د شرط دپاره د جزا نو صحیح کیږي دخول د فاء په خبر باندې او صحیح کیږي نه داخلیدل |
| فِيْهِ نَظَرًا إِلٰى مُجَرَّدِ تَضَمُّنِ الْمُبْتَدَاءِ وَ أَمَّا إِذَا قُصِدَ الدَّلَالَةُ عَلٰى ذٰلِكَ الْمَعْنٰى فِي اللَّفْظِ |
| په دې کې دپاره د نظر صرف تضمن د مبتدا طرف ته او هر کله چې اراده وشي د دلالت په دې معنی په لفظ کې |
| فَيَجِبُ دُخُوْلُ الْفَاءِ فِيْهِ وَ أَمَّا إِذَا لَمْ تُقْصَدْ فَلَمْ يَجِبْ دُخُوْلُهٗ فِيْهِ |
| پس واجب دي داخلیدل د فاء په دې باندې او هر کله چې اراده نه کړي شي نو نه ده واجب داخلیدل د فاء په دې باندې |
| بَلْ يَجِبُ عَدَمُهٗ . |
| بلکې نه داخلیدل یې واجب دي . |

**خلاصه د متن:** د صاحب د کافیې د عبارت حاصل دا دي چې کله کله مبتدا شرط لره متضمن وي په دې صورت کې د هغې په خبر باندې فاء داخلیدل صحیح دي .

**اغراض د جامي** : <u>وهوسببية الاول</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د مبتدا د شرط په معنی د متضمن کیدلو مطلب بیانوي چې مبتدا اول د مبتدا ثاني دپاره سبب وي لکه شرط چې د جزا دپاره سبب جوړیږي مثال لکه الذي يأتيني فله درهم ( کوم سړي چې زما خواته راغلو نو د هغې دپاره به یو درهم وي ) په دې کې راتلل د درهم د حصول دپاره سبب دي .

<u>اوللحكم</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستا ضابطه او قاعده منقوضه او ماته ده د قران کریم په دې آیت سره چې وَمَا بِكُمْ مِنْ نِعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ( کوم نعمتونه چې ستاسو لره دي هغه د الله د طرف نه دي ) په دې کې ما مبتدا ده چې د دې نه مراد نعمت دي په بكم کې باء د الصاق دپاره ده من نعمة د ما بیان دي فمن الله خبر دي حاصل د عبارت دا دي چې اى النعمة الملصقة بكم فحاصلة من الله ، الصاق النعمة بالعباد مبتدا ده او فمن الله یعني حصول النعمة من الله خبر دي او شئ اول یعني الصاق النعمة بالعباد وجود د شئ

ثاني يعني حصول من العبد صدور من الله د وجود دپاره سبب نه دي ځکه چې د نعمت صدور هر حال کې من جانب الله وي برابره خبره ده که دا الصاق بالعباد وي يا نه وي بلکه معامله برعکس ده چې د نعمت حصول او صدور من الله دا سبب دي اتصال او الصاق بالعباد دپاره لهذا شرط د معنی مذکور د اعتبار نه مبتدا د شرط معنی لره متضمن نه دي نو په دي خبر باندي د فاء داخليدل صحيح نه دي حالانکه د دې په خبر باندې فاء داخل ده او دا د الله تعالی کلام دي او د ټولو نه زيات فصيح او بليغ کلام دي ؟

**جواب** : اول د دويم دپاره سبب کيدل په دې کې تعميم دي برابره خبره ده که اول د دويم د وجود د پاره سبب وي يا اول په دويم باندې د حکم د لږولو د وجې نه وي په دې مثال کې اګرکه اول د دويم د وجود دپاره سبب نه دي ليکن د حکم بالثاني سبب دي ځکه چې حصول د نعمت للمخاطبين دا سبب دي چې په دې خبره حکم ولږولې شي چې د دې نعمتونو صدور د الله تعالی د طرف نه دي .

فيشبه المبتدا : په دې عبارت سره غرض د جامي د مصنف د قول فيصح دخول الفاء دپاره دليل بيانوي چې کله مبتدا د شرط معنی لره متضمن وي نو دا د هغه شرط سره مشابه کيږي لکه څنګه چې شرط د جزا سبب ګرځي .همدارنګې مبتدا د خبر سبب جوړيږي د دې وجې نه د مبتدا په خبر باندې د فاء داخليدل صحيح دي لکه څنګه چې د شرط په جزا باندې د فاء داخليږي .

ويصح عدم دخوله : په دې عبارت سره غرض د شارح د دې خبرې طرف ته اشاره کول دي چې د مصنف قول فيصح سره چې کوم صحت په ذهن کې راځي هغه د امکان خاص په معنی کې ده د دې تفصيل دا دي چې د امکان دوه قسمونه دي : (۱) امکان عام د دې مطلب دا دي چې صرف د جانب مخالف ضرورت سلب وي لکه زيد کاتب ، د بالامکان العام معنی دا وي چې زيد کاتب دي او عدم کتابت د ده دپاره ضروري نه دي . (۲) امکان خاص : د دې مطلب دا دي چې د جانب موافق او جانب مخالف د دواړو ضرورت سلب وي لکه زيد کاتب بالامکان الخاص نو د دې مطلب به دا وي چې د زيد دپاره کتابت او عدم کتابت دواړه ضروري نه دي .

د دې تمهيد نه پس پوهه شئ چې دلته فيصح نه مراد امکان خاص دي يعني دا فاء داخليدل او نه داخليدل دواړه صحيح او جائز دي په دې کې څه واجب او ضروري نه دي . د دې مذکوره عنوان نه مونږ ديو سوال مقدره جواب ورکول هم ويلې شو يعني مذکوره عنوان ديو سوال

مقدره جواب ورکول دي

**سوال** : د مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ داقول چې مبتدا کله معنی د شرط لره متضمن وي د هغې دوه صورتونه دي : (۱) د شرط په معنی باندې قصد کړي شي یا نه که قصد کړي شي نو خبرباندې د فاء داخلیدل واجب دي او که قصد نه کړي شي نو د فاء داخلیدل ممتنع دي نو د مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ داقول يصح دخول الفاء په یو طریقه هم نه صحیح کیږي ځکه چې صحت د عبارت دي د جواز اولاجواز نه اودلته خو یا وجوب دي او یا امتناع ؟

**جواب** : دلته ټول دري صورتونه دي : (۱) مبتدا معنی شرط لره متضمن وي اود شرط اراده او قصد هم شوي وي دې لره بشرط شئ سره تعبیرکولې شي (۲) مبتدا معنی شرط لره متضمن وي لیکن د شرط اراده دقصد نه وي شوي بلکه دعدم شرط قصد وي دې لره بشرط لاشئ سره تعبیر کولې شي . (۳) مبتدا معنی دشرط لره متضمن وي لیکن اراده هیڅ هم نه وي نه د شرط او نه دعدم شرط دې لره لابشرط شئ سره تعبیرکولې شي . (۱) که معنی د شرط باندې دلالت قصد اواراده وي نو په خبرباندې د فاء داخلیدل واجب دي . (۲) اوکه عدم شرط اراده اوقصد وي نو په خبرباندې دفاء داخلیدل ممتنع دي (۳) اوپه دریم صورت کې د فاء داخلیدل اونه داخلیدل دواړه جائز دي . دلته ددریم صورت نه مراد دي کوم چې دلابشرط شئ په درجه کې دي ددې وجې نه مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ فیصح لفظ یې استعمال کړو.

ددې نوروضاحت اوتفصیل دادې چې دلته د معنی د شرط د متضمن کیدو دري (۳) صورتونه دي : (۱) بشرط شئ . (۲) بشرط لا شئ . (۳) لا بشرط شئ . که معنی دشرط لره په متضمن کیدو کې دبشرط شئ اعتبار وشي نو په خبر باندې فاء داخلیدل واجب دي اوکه دبشرط لا شئ اعتبار وشي نو په خبر باندې دفاء داخلیدل ممتنع دي اوکه دلا بشرط شئ اعتبار وشي نوپه خبر باندې دفاء داخلیدل اونه داخلیدل دواړه صحیح دي اودلته دریم صورت مراد دي .

## مبتدا معنی د شرط لره د متضمن کیدو ځایونه :

| وَ ذٰلِكَ الْمُبْتَدَاُ الْمُتَضَمِّنُ مَعْنَى الشَّرْطِ اِمَّا الْاِسْمُ الْمَوْصُوْلُ بِفِعْلٍ اَوْ ظَرْفٍ اَيِ الَّذِيْ جُعِلَتْ صِلَتُهٗ جُمْلَةً فِعْلِيَّةً |
|---|
| اودامبتدامتضمن معنی دشرط یااسم موصول په فعل یاپه ظرف یعنې هغه چې ګرځولې صله ددې جمله فعلیه |
| اَوْ ظَرْفِيَّةً مُؤَوَّلَةً بِجُمْلَةٍ فِعْلِيَّةٍ هٰهُنَا بِالْاِتِّفَاقِ وَ اِنَّمَا اشْتُرِطَ اَنْ تَكُوْنَ صِلَتُهٗ |
| یاظرفیه چې په تاویل دجملې فعلې کې وي په دې مقام باندې بالاتفاق اوبیشکه شرط یې ګرځولې چې صله ددې |

| |
|---|
| فِعْلاً اَوْ ظَرْفاً مُؤَوَّلاً بِالْفِعْلِ لِيَتَأَكَّدَ مُشَابَهَتُهُ الشَّرْطَ لِاَنَّ الشَّرْطَ لَايَكُوْنُ اِلَّا فِعْلاً وَفِيْ حُكْمِ الْاِسْمِ |
| فعل یاظرف مؤول بالفعل وي چې مضبوط شي مشابهت دشرط سره ځکه چې شرط نه وي مګر فعل او اسم موصول |
| الْمَوْصُوْلِ الْمَذْكُوْرِ الْاِسْمِ الْمَوْصُوْفِ بِهٖ اَوِ النَّكِرَةُ الْمَوْصُوْفَةُ بِهِمَا |
| دمذکوریه حکم کې وي کوم چې داسم سره موصوف وي یادنکرې موصوفې سره اویاددواړوسره موصوف وي |
| اَیْ بِاَحَدِهِمَا وَفِيْ حُكْمِهِمَا الْاِسْمُ الْمُضَافُ اِلَيْهِمَا مِثْلُ الَّذِيْ يَاْتِيْنِيْ هٰذَا مِثَالٌ لِلْاِسْمِ الْمَوْصُوْلُ |
| اویایوسره اوپه حکم ددې کې هغه اسم دې چې مضاف وي دې طرف ته لکه الذي یأتیني دامثال دې داسم موصول |
| بِفِعْلٍ اَوِالَّذِيْ فِي الدَّارِ هٰذَا مِثَالٌ لِلْاِسْمُ الْمَوْصُوْلِ بِظَرْفٍ فَلَهُ دِرْهَمٌ وَاَمَّا مِثَالُ الْاِسْمِ الْمَوْصُوْفِ بِالْاِسْمِ الْمَذْكُوْرِ |
| بفعل یاالذي في الدار او دامثال داسم موصول بظرف فله درهم بهرحال مثال دهغه اسم چې موصوف وي په اسم مذکور |
| فَقَوْلُهٗ تَعَالٰى قُلْ اِنَّ الْمَوْتَ الَّذِيْ تَفِرُّوْنَ مِنْهُ فَاِنَّهٗ مُلَاقِيْكُمْ وَمِثْلُ كُلُّ رَجُلٍ يَاْتِيْنِيْ هٰذَا مِثَالٌ |
| سره لکه داقول دالله تعالی چې قُلْ اِنَّ الْمَوْتَ الَّذِيْ تَفِرُّوْنَ مِنْهُ فَاِنَّهٗ مُلَاقِيْكُمْ بل مثال لکه کل رجل یأتیني دامثال دې |
| لِلْاِسْمِ الْمَوْصُوْفِ بِفِعْلٍ اَوْ كُلُّ رَجُلٍ فِي الدَّارِ هٰذَا مِثَالٌ لِلْاِسْمِ الْمَوْصُوْفِ بِظَرْفٍ |
| دهغه اسم موصول چې اسم موصوف بفعل وي یالکه کل رجل في الدار دامثال دې دهغه اسم چې موصوف بظرف وي |
| فَلَهٗ دِرْهَمٌ وَاَمَّا مِثَالُ الْاِسْمِ الْمُضَافِ اِلَى النَّكِرَةِ الْمَوْصُوْفَةِ بِاَحَدِهِمَا فَقَوْلُكَ كُلُّ غُلَامِ رَجُلٍ |
| فله درهم اوهرچې مثال دهغه اسم چې مضاف وي نکره موصوفه باحدهما طرف ته پس ستاقول کل غلام رجل |
| يَاْتِيْنِيْ اَوْفِي الدَّارِ فَلَهٗ دِرْهَمٌ . |
| یأتیني او في الدار فله درهم . |

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت کې صاحب دکافيې ددې تفصيل کوي چې مبتدا ته اوپه کوم ځاې کې معنی دشرط لره متضمن وي دهغې خلاصه داده چې مبتدا په دوه صورتونو کې معنی دشرط لره متضمن وي: (۱) چې مبتدا اسم موصول وي چې دهغې صله جمله فعليه يا داسې جمله ظرفيه وي چې دجمله فعليه په تاويل کې وي . (۲) مبتدا نکره موصوفه وي چې دهغې صفت جمله فعليه يا داسې جمله ظرفيه وي چې جمله فعليه په تاويل کې وي په دې دواړو صورتونو کې مبتدا په معنی د شرط لره متضمن وي .

**اغراض دجامي :** المبتدأ المتضمن معنی الشرط : په دې عبارت سره غرض دشارح دجامي د ذلک مشار اليه تعين کړي دي چې ددې مشار اليه هغه مبتدا ده کومه چې معنی شرط لره متضمن وي .

**اما:** د اما اضافه سره غرض دشارح دجامي ديوسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : کله چې دیو شئ په بل شئ باندې د اما په ذریعې سره عطف وشي نو دمعطوف علیه په شروع کې اما راوړل واجب دي اوکه د او په ذریعې سره یې عطف کړي نو دمعطوف علیه په شروع کې اما راوړل اولی دي دلته یې په او سره عطف شوي دي په کار خو داوه چې اما ذکر شوي وي .

**جواب** : د اما اضافه سره شارح جواب ورکوي چې تسلیم مې کړه چې داما ذکر کول دمعطوف علیه په شروع کې اولی دی لیکن اما ملفوظ کیدل ضروري نه دي کله اماملفوظ اوکله محذوف وي دلته محذوف دي .

الذي جعلت : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داسم موصول صله همیشه جمله وي اوفعل په غیر دفاعل نه اوظرف په غیر دمتعلق نه جمله نه شي جوړیدي نو د مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دا قول وذلک الاسم الموصول بفعل اوظرف څنګه صحیح دي ؟

**جواب** : دلته کې مراد فقط فعل اوفقط ظرف نه دي بلکه مراد فعل مع الفاعل اوظرف مع المتعلق دي اوظرف مع المتعلق او فعل مع الفاعل جمله وي .

هٰهنا : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دبصري د نحویانو دمذهب مطابق ظرف دخپل متعلق سره جمله فعلیه په تاویل کې وي لیکن دکوفي د نحویانو د مذهب مطابق اسم فاعل لره مقدر منلې شي اواسم فاعل دخپل فاعل سره جمله نه جوړیږي چې کله جمله جوړه نه شوه نو جمله به څنګه صله شي ؟

**جواب** : دلته بالاتفاق دټولو نحویانو په نزد ظرف جمله فعلیه په تاویل کې وي .

وانما اشترک : دشرط مذکور دلږولو وجه بیانوي داشرط یې ځکه لږولې دي چې مبتدا دشرط سره مشابهت مضبوط شي چې شرط همیشه فعل وي .

وفي حکم : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستاقاعده منقوضه ده په الله تعالی ددې قول سره چې ﴿قُلْ إِنَّ الْمَوْتَ الَّذِيْ تَفِرُّوْنَ مِنْهُ فَإِنَّهُ مُلَاقِيْكُمْ﴾ ځکه چې په دې کې مبتدا اسم موصول نه دي بلکه داسې اسم دي چې په اسم موصول بفعل سره موصوف دي لهذا ددې په خبر باندې دفاء داخلیدل څنګه صحیح دي ؟

**جواب** : زمونږ مراد داسم موصول نه عام دي برابره خبره ده که مبتدا پخپله اسم موصول وي يا داسې اسم چې اسم موصول بفعل يابظرف سره موصوف وي لهذا مثال مذكور زمونږ په ضابطه کې داخل دي خارج ترې نه دي .

**اى بأحدهما:** په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : نکره دې دواړه سره په يو وخت کې موصوف نه وي بلکه دغه دواړو کې په يو سره موصوف وي نود مصنف قول **او النكرة الموصوفة بهما** څنګه صحيح دي ؟

**جواب** : دلته هما ضمير مضاف اليه دي ددې مضاف محذوف دي چې احد دي اصل کې داسې دي **او النكرة الموصوفة بأحدهما** .

**وفي حكمها:** په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** :ستا دا قاعده په **كل غلام رجل يأتيني فله درهم** سره ماته ده ځکه چې په دې کې نکره موصوفه بالفعل يا نکره موصوف بالظرف نه ده حالانکه ددې په خبر باندې **فاء**داخله ده دا ولې؟

**جواب** : هغه اسم چې مضاف وي نکره موصوفه بالفعل يانکره موصوفه بالظرف طرف ته هغه هم د اسم نکره **موصوفه بالفعل** يا **بالظرف** په حکم کې وي اوپه ذکر شوي مثال کې مبتدا داسې اسم دي کوم چې نکره موصوف **بالفعل** طرف ته مضاف وي لهذا په دې باندې د**فاء** داخليدل صحيح شو .

**هذا مثال:** په دې عبارت سره غرض دشارح دذکر شوو صورتونو دهر يومثال اوممثل له متعين کول کوم چې په دې لاندې نقشه کې ذکر دي :

| | | |
|---|---|---|
| ۱ | هغه اسم چې موصول بالفعل وي | **الذي يأتيني فله درهم** |
| ۲ | هغه اسم چې موصول بالظرف وي | **الذي في الدار فله درهم** |
| ۳ | هغه اسم چې اسم موصول بالفعل سره موصوف وي | **قُلْ إِنَّ الْمَوْتَ الَّذِي تَفِرُّونَ مِنْهُ فَإِنَّهُ مُلَاقِيكُمْ** |
| ۴ | هغه اسم چې اسم موصول بالظرف سره موصوف وي | **الرجل الذي في الدار فله درهم** |
| ۵ | هغه اسم نکره چې موصوف باالفعل وي | **كل رجل يأتيني فله درهم** |

| ۶ | هغه اسم نکره چې موصوف بالظرف وي | كل رجل في الدار فله درهم |
|---|---|---|
| ۷ | هغه اسم چې مضاف وي داسې نکرې ته چې موصوف بالفعل وي | كل غلام رجل يأتيني فله درهم |
| ۸ | هغه اسم چې مضاف وي داسې نکرې ته چې موصوف بالظرف وي | كل غلام رجل في الدار فله درهم |

## لیت او لعل په هغه مبتدا داخلیدل چې متضمن وي معنی دشرط لره:

| |
|---|
| وَ لَيْتَ وَ لَعَلَّ مِنَ الْحُرُوْفِ الْمُشَبَّهَةِ بِالْفِعْلِ اِذَا دَخَلَا عَلَى الْمُبْتَدَاءِ الَّذِيْ يَصِحُّ دُخُوْلُ الْفَاءِ |
| اولیت ولعل کوم چې دحروف مشبه بالفعل نه وي کله چې داپه هغه مبتدا داخل وي چې صحیح وي دخول دفاء |
| عَلٰى خَبَرِهٖ مَانِعَانِ عَنْ دُخُوْلِهٖ عَلَيْهِ لِاَنَّ صِحَّةَ دُخُوْلِهٖ عَلَيْهِ اِنَّمَا كَانَتْ لِمُشَابَهَةِ |
| په خبر ددې باندې نو دامانع وي ددخول دفانه په دې باندې خکه چې صحیح وي دهغه فاء دخول چې وي مشابه |
| الْمُبْتَدَاِ وَ الْخَبَرِ لِلشَّرْطِ وَ الْجَزَاءِ وَ لَيْتَ وَ لَعَلَّ تُزِيْلَانِ تِلْكَ الْمُشَابَهَةَ لِاَنَّهُمَا تُخْرِجَانِ |
| دمبتدا او خبر دشرط او جزا سره دمشابهت دوجې نه اولیت اولعل دې مشابهت لره زائله کوي خکه چې دااوباسي |
| الْكَلَامَ مِنَ الْخَبَرِيَّةِ اِلَى الْاِنْشَائِيَّةِ وَالشَّرْطُ وَالْجَزَاءُ مِنْ قَبِيْلِ الْاَخْبَارِ وَذٰلِكَ الْمَنْعُ اِنَّمَا هُوَ بِالْاِتِّفَاقِ مِنَ النُّحَاةِ فَلَا |
| کلام د خبریت نه انشائیت ته او شرط او جزاء د قبیلې د اخبار نه دي او دا منع بالاتفاق د نحاتو ده پس نه شي |
| يُقَالُ لَيْتَ اَوْ لَعَلَّ الَّذِيْ يَأْتِيْنِيْ اَوْ فِي الدَّارِ فَلَهٗ دِرْهَمٌ فَاِنْ قِيْلَ بَابُ كَانَ وَ بَابُ عَلِمْتُ اَيْضاً مَانِعَانِ بِالْاِتِّفَاقِ |
| ویلی لیت اولعل الذي يأتيني او في الدار فله درهم پس که چیرته وویل شي باب كان وباب علمت هم مانع دي بالاتفاق |
| فَمَا وَجْهُ تَخْصِيْصِ لَيْتَ وَ لَعَلَّ قِيْلَ تَخْصِيْصُهُمَا بِبَيَانِ الْاِتِّفَاقِ اِنَّمَا هُوَ مِنْ بَيْنِ الْحُرُوْفِ الْمُشَبَّهَةِ |
| پس دلیت اولعل سره دخاص کولو څه وجه ده ویلي شوي دي چې په بیان داتفاق کې دادحروف مشبه بالفعل د |
| لَا مُطْلَقًا وَ وَجْهُ ذٰلِكَ التَّخْصِيْصِ الْاِهْتِمَامُ بِبَيَانِ الْاِخْتِلَافِ الْوَاقِعِ فِيْهَا. |
| مینځ نه دي نه مطلقاً اوددې تخصیص دوجې نه اهتمام دي بیان د اختلاف کوم چې په دې کې واقع دي. |

**خلاصه دمتن:** هغه مبتدا چې معنی دشرط لره متضمن وي کله چې په دې باندې لیت او لعل داخل شي نودا دواړه ددې په خبرباندې دخول دفاء منع کوي بالاتفاق.

**اغراض دجامي:** <u>من الحروف المشبهة:</u> په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال:** دمصنف عبارت لیت اولعل مبتدا دي اومانعان خبر دي حالانکه هغه لره مبتدا جوړول

صحیح نه دي ځکه چې مبتدا اسم دي او لیت او لعل حرف دي

**جواب** : لیت اولعل دا اسم وعلم دي هغه لیت ولعل دپاره کوم چې په ترکیب کې واقع کیږي او حروف مشبه بالفعل څخه وي نودا په تاویل داسم یا په تاویل د هذا اللفظ مبتدا وي ددې وجې نه دي لره مبتدا جوړول صحیح دي .

اذا دخلا : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : زمونږ بحث په مبتدا اوخبر کې روان دي اولیت اولعل حروف دي لهذا ددې نه بحث کول خروج عن المبحث دي

**جواب** : لیت اولعل نه بحث په دې اعتبار سره دي چې دامبتدا په خبر باندې داخلیږي په دې حیثیت چې داد مبتدا دمباحثو سره متعلق دي لهذا خروج عن المبحث لاژم نه راځي .

عن دخوله : داد مانعان دصلې بیان دي .

لان صحة : په دې عبارت سره غرض دشارح لیت ولعل دمبتدا متضمن معنی شرط لره په خبر باندې دخول دفاء نه منع والي وجه بیانوي چې وجه داده چې دخول دفاء مبتدا اودخبراوشرط د جزاء سره د مشابهت دوجې نه وو اولیت اولعل دې مشابهت لره زائل کوي ددې وجې نه لیت او لعل کلام لره دخبریت نه انشائیت طرف ته منتقل کوي اوشرط اوجزا من قبیل الاخبار نه دي نه من قبیل الانشاء کله چې مبتدا خبر شرط وجزاء مشابهت زائل شو نوپه خبر باندې دفاء دخول صحیح نه دي .

وذلک المنع : په دې عبارت سره شارح دې طرف ته اشاره کوي چې بالاتفاق داد مانعان متعلق دي .

من النحاة : په دې کې شارح دې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چې دالاتفاق الف لام دعهد دي ، ددې نه مراد د نحویانو اتفاق دي فلایقال په دې کې په دې ماقبل باندې دتفریع بیان دي ځکه چې لیت اولعل متضمن وي معنی دشرط په خبر باندې فاء داخلیدل ممتنع دي ددې وجې نه لیت الذي یأتني فله درهم او لعل الذي في الدار فله درهم نه شي ویلې .

قیل : په قیل سره دیواعتراض نقل کولو نه وروستو په قیل سره ددې جواب ورکوي

**اعتراض** : لکه څنګه چې ليت او لعل مبتدا متضمن معنی دشرط په خبر باندې دخول دفاء مانع وي نو همدا شان دباب دکان اودباب دعلمتُ هم مبتدا متضمن معنی دشرط په خبر باندې دخول د فاء ممنوع دي بالاتفاق بيا ليت او لعل يې ولې خاص کړو ؟

**جواب** : ليت اود لعل تخصيص په اعتبار دجميع ماعداه نه دي بلکه په اعتبار دحروف مشبه بالفعل دي اودحروف مشبه بالفعل نه صرف ليت اولعل مبتدامتضمن معنی د شرط په خبر باندې دفاء دخول بالاتفاق ممنوع دي اوددې تخصيص دوجې نه په حروف مشبه بالفعل کې د اختلاف بيانولو اهتمام دي .

## دخول د اِن وغيره په هغه مبتدا چې متضمن وي معنی د شرط لره :

| |
|---|
| وَ الْحَقُّ بَعْضُهُمْ قِيْلَ هُوَ سِيْبَوَيْهِ اِنَّ الْمَكْسُوْرَةَ بِهِمَا اَیْ بِلَيْتَ وَ |
| اولاحق کړي دي بعضودوي نه ويلي شوي وي چې هغه سيبويه دي ان مکسوره لره هغه دواړوسره يعني ليت و |
| لَعَلَّ فِي الْمَنْعِ عَنْ دُخُوْلِ الْفَاءِ عَلَى الْخَبَرِ وَ الْاَصَحُّ اِنَّهَا لَا تَمْنَعُ عَنْهُ لِاَنَّهَا |
| لعل سره منع کيدوکې دخول دفاء نه په خبرباندې اوصحيح خبره داده چې داهغې نه مانع نه دي څکه چې هغه |
| لَا تَخْرُجُ عَنِ الْخَبَرِيَّةِ اِلَى الْاِنْشَائِيَّةِ يُؤَيِّدُهُ قَوْلُهُ تَعَالٰى اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ مَاتُوْا وَ هُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يُّقْبَلَ |
| نه اوباسي خبريت نه انشائيت طرف ته ددې تائيد کوي دالله تعالى داقول اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يُّقْبَلَ |
| تَوْبَتُهُمْ فَاِنْ قِيْلَ قَدْ اَلْحَقَ بَعْضُهُمْ اَنَّ الْمَفْتُوْحَ وَ لٰكِنَّ بِلَيْتَ وَ لَعَلَّ فَمَا وَجْهُ تَخْصِيْصِ |
| تَوْبَتُهُمْ پس که وويل شي چې لاحق کړي دي بعضوان مفتوحه لره اولکن لره دليت ولعل سره نوڅه وجه ده دتخصيص |
| اِنَّ الْمَكْسُوْرَةِ بِالْاِلْحَاقِ قِيْلَ بَعْضُهُمُ الَّذِيْ اَلْحَقَ اِنَّ بِهِمَا هُوَ سِيْبَوَيْهِ |
| دان مکسوره دلاحق کولوسره اوويلي دي بعضودوي نه چاچې لاحق کړي دي ان لره ددې دواړوسره هغه سيبويه |
| فَاعْتَدَّ بِقَوْلِهِ وَ ذَكَرَهُ وَ لَمْ يَعْتَدَّ بِقَوْلِ مَنْ سِوَاهُ |
| دي پس مصنف اعتبار کړي دي دهغه قول اودغه لره يې ذکرکړي دي اواعتباريې نه دي کړي ددې نه غيرقول |
| بِذِكْرِهِ مَعَ اَنَّ كِلَا الْقَوْلَيْنِ لَا يُسَاعِدُهُمَا الْقُرْاٰنُ وَ كَلَامُ الْفُصَحَاءِ فَمَا يَدُلُّ |
| باوجوددې خبرې چې دواړه قولونه دقرآن مجيد اوفصحاء دکلام موافقت نشي کولې پس هغه شی چې دلالت کوي |
| عَلٰى عَدَمِ مَنْعِ اِنَّ الْمَكْسُوْرَةِ عَنْ دُخُوْلِ اَلْفَاءِ عَلَى الْخَبَرِ مَا سَبَقَ وَ مَا يَدُلُّ |
| دان مکسوره دمانع نه کيدوباندې دخول دفاء په خبرباندې هغه چې مخکې تيرشوي دي اوکوم شی چې دلالت کوي |
| عَلٰى عَدَمِ مَنْعِ اِنَّ الْمَفْتُوْحَةِ وَلٰكِنَّ عَنْ دُخُوْلِ الْفَاءِ قَوْلُهُ تَعَالٰى وَاعْلَمُوْا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ |

| | |
|---|---|
| په نه مانع کیدو د ن مفتوحه او لکن سره دخول دفاء نه دالله تعالی فرمان دي وَاعْلَمُوٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ | |
| وَقَوْلُ الشَّاعِرِ شِعْرٌ: | |
| اودشاعر دا قول چې | |
| فَوَ اللّٰهِ مَا فَارَقْتُكُمْ قَالِيًا لَكُمْ | وَ لٰكِنَّ مَا يُقْضٰى فَسَوْفَ يَكُوْنُ |
| په الله قسم زه ستاسو دښمنۍ په وجه جدا شوي نه یم | لیکن دڅه چې الله تعالی فیصله وکړي هغه خامخا کیږي |

**خلاصه دمتن**: هغه مبتدا کومه چې شرط معنی لره متضمن وي کله په دې باندې ان داخل شي نو په دې کې دنحویانو اختلاف دي صاحب دکافیې دبعضو نحویانو هم دغه اختلاف لره دلته کې ذکر کړو چې بعضې نحویانو ان مکسوه لره لیت اولعل سره پیوست کړي دي یعنې لکه څنګه چې لیت اولعل مبتدا متضمن معنی دشرط په خبر دخول دفاء نه مانع دي همدغه شان ان مکسوره لره هم مبتدا متضمن معنی دشرط په خبرباندې دخول دفاء مانع دي.

**اغراض دجامي** : **وقیل هو** : په دې عبارت سره غرض دشارح د**بعضهم** مصداق متعین کړي دي چې د **بعضهم** نه مراد علامه سیبویه دي

**المکسورة** : دادضبط اعراب بیان دي چې مراد ان مکسوره دي ان مفتوحه نه دي

**بهما ای لیت ولعل** : په دې کې دضمیر مرجع متعین کړي ده چې هغه **لیت** او**لعل** دي.

**في المنع** : په دې کې مافیه الالحاق بیان دي چې دان مکسوره الحاق **لیت** او**لعل** سره په خبر باندې دخول دفاء دمانع کیدو دوجې نه دي.

**والاصح** : ددې خاې نه دمذهب سابق ضعف طرف ته اشاره کوي صحیح مذهب دادې چې ان مکسوره مبتدا متضمن معنی دشرط په خبر باندې دخول دفاءنه مانع نه دي په دې باندې دوه دلیلونه بیانوي : (۱)**لیت** او**لعل** مانع کیدل ددې وجې نه دي چې داکلام دخبریت نه انشائیت طرف ته منتقل کوي په خلاف دان مکسوره چې داکلام لره انشائیت طرف ته نه منتقل کوي بلکه دا خو کلام په خبریت باندې مضبوطوي (۲) دقرآن مجید نه هم ددې قول تائید کیږي چې ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يُّقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ﴾ په دې کې اَلَّذِيْنَ مبتدا متضمن معنی دشرط دي په دې باندې ان مکسوره داخل ده ددې باوجود خبر فَلَنْ يُّقْبَلَ باندې فاء داخل ده

**فان قیل** : په دې عبارت سره دیو اعتراض دنقل کولو نه وروستو په وروستي **قیل** سره ددې

جواب ورکوي

**اعتراض**: لکه څنګه چې بعضې نحويانو ان مکسوره دليت اولعل سره لاحق کړي دي همدغه شان بعضې نحويانو ان مفتوحه اولکن لره هم دليت اولعل سره لاحق کړي دي مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دې لره ولې ذکر نه کړو ؟ اود ان مکسوره دالحاق سره دتخصيص څه وجه ده ؟

**جواب**: هغه بعضې نحويان کوم چې ان مکسوره لره دليت اولعل سره لاحق کړي دي هغه علامه سيبويه دي ځکه چې علامه سيبويه دنحوې امام وو ددې وجې نه مصنف دهغه قول لره قابل اعتبار ومنلو اوذکر يې کړو اوهغه بعضې نحويان کوم چې ان مفتوحه او لکن لره د ليت او لعل سره لاحق کړي دي مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دهغوي قول لره غير معتبر وګڼړلو اوذکر يې نه کړو باوجود ددې چې دواړه قولونه داسې دي چې قرآن کريم اودفصحاء دکلام دهغې موافقت نه شي کولې د ان مکسوره په باره کې خودالله تعالى قول مخکې تير شوي دي اود ان مفتوحه مثال دالله تعالى دافرمان دي چې ﴿وَاعْلَمُوٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ﴾، په دې کې ما مبتدا متضمن معنى دشرط دي اوپه دې باندې ان مفتوحه داخل ده ددې باوجود په خبرباندې فاء داخل ده ، اود لکن مثال دشاعر په دې شعر کې مذکور دي :

| فَوَ اللّٰهِ مَا فَارَقْتُكُمْ قَالِيًا لَكُمْ | وَ لٰكِنَّ مَا يُقْضٰى فَسَوْفَ يَكُوْنُ |
|---|---|

په دې کې په دويمه مصرعه کې ما مبتدا متضمن معنى دشرط لره ده په دې باندې لکن داخل دي ددې باوجود ددې په خبر فسوف يکون باندې فاء داخل ده .

## د مبتدا حذف کول:

| وَ قَدْ يُحْذَفُ الْمُبْتَدَاِ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ لَفْظِيَّةٍ اَوْعَقْلِيَّةٍ جَوَازًا اَىْ حَذْفًا جَائِزًا لَا وَاجِبًا وَ |
|---|
| اوکله کله حذف کيږي مبتدا دپاره دقيام دقريني لفظيې اوياعقليې جوازا يعني حذف کول جائز دي نه واجب او |
| قَدْ يَجِبُ حَذْفُهٗ اِذَا قُطِعَ النَّعْتُ بِالرَّفْعِ نَحْوُ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اَهْلُ الْحَمْدِ اَىْ هُوَ اَهْلُ الْحَمْدِ |
| کله کله واجبيږي حذف کول يې چې کله يې منع وشي دنعت درفع سره لکه الحمدلله اهل الحمد يعني هو اهل الحمد |
| وَ اِنَّمَا وَجَبَ حَذْفُهٗ لِيُعْلَمَ اَنَّهٗ كَانَ فِي الْاَصْلِ صِفَةً فَقُطِعَ |
| اوددې نه غيرواجب نه دي ددې حذف کول ددې دپاره چې معلوم شي چې په اصل کې صفت وو پس ختم کړي شو |
| لِقَصْدِ الْمَدْحِ اَوِ الذَّمِّ اَوْ غَيْرِ ذٰلِكَ فَلَوْ ظَهَرَ الْمُبْتَدَاُ لَمْ يَتَبَيَّنْ ذٰلِكَ وَ يَجِبُ |
| تعريف يامذمت يادې نه علاوه دارادې دوجې نه پس که ظاهروي مبتدا الره نوداخبره نه واضح کيږي اوواجب دي |

حَذْفُهُ اَيْضًا عِنْدَ مَنْ قَالَ فِيْ نِعْمَ الرَّجُلُ زَيْدٌ اِنَّ تَقْدِيْرَهُ هُوَ زَيْدٌ

حذف كول د دې همدا رنګې د هغه چا په نزد چې څوک وايي چې نعم الرجل زيد كې د دې تقدير دا دې چې هو زيد په

كَقَوْلِ الْمُسْتَهِلِّ اَيِ الْمُبْتَدَأُ الْمَحْذُوْفُ جَوَازاً مِثْلُ الْمُبْتَدَا الْمَحْذُوْفِ فِيْ مَقُوْلِ الْمُسْتَهِلِّ

په شان د قول د مستهل يعني مبتدا محذوف جوازا په مثل د مبتدا كې چې محذوف وي په مقوله د مستهل كې

لِلْهِلَالِ الرَّافِعِ صَوْتَهُ عِنْدَ اِبْصَارِهِ الْهِلَالُ وَاللهِ اَيْ هٰذَا الْهِلَالُ وَاللهِ بِالْقَرِيْنَةِ الْحَالِيَّةِ وَ لَيْسَ مِنْ بَابِ

كومه چې سپوږمۍ د ليدو په وخت كې اوچتوي الهلالُ والله يعني هذا الهلال والله قرينه حاليه ده او نه ده د باب د

حَذْفِ الْخَبَرِ بِتَقْدِيْرِ الْهِلَالُ هٰذَا لِاَنَّ مَقْصُوْدَ الْمُسْتَهِلِّ تَعْيِيْنُ شَيْءٍ بِالْاِشَارَةِ وَ الْحُكْمُ

حذف د خبر نه په دې تقدير سره چې الهلال هذا ځكه چې مقصود د مستهل تعين د يو شيز دي په اشاره سره او حكم

عَلَيْهِ بِالْهِلَالِيَّةِ لِيَتَوَجَّهَ اِلَيْهِ النَّاظِرُوْنَ وَ يَرَوْهُ كَمَا

په دې باندې دي د هلاليت ځكه چې متوجه شي دې طرف ته د سپوږمۍ ليدونكي او دې ته وګوري لكه چې هغه

يَرَاهُ وَ اِنَّمَا اَتٰى بِالْقَسَمِ جَرْيًا عَلٰى عَادَةِ الْمُسْتَهِلِّيْنَ غَالِباً وَ لِئَلَّا

يې ګوري او په تحقيق سره راتګ كړي قسم لره چې جاري وي په عادت د سپوږمۍ ليدلو باندې غالبا ځكه چې

يُتَوَهَّمَ نَصْبُ الْهِلَالِ عِنْدَ الْوَقْفِ.

وهم رانه شي د نصب د الهلال سره په وخت د اودريدو كې.

**خلاصه د متن:** وقد يحذف المبتدا، صاحب د كافيې والا وايي چې كله كله مبتدا لره په وقت د قيام د قرينې جوازي طور باندې حذف كولې شي لكه څنګه چې د سپوږمۍ ليدلو والا قول الهلال والله په دې كې الهلال خبر دي د مبتدا محذوف يعني د هذا اصل كې داسې وو هذا الهلال والله.

**اغراض د جامي:** لفظية وعقلية: په دې كې شارح يو وهم لره زائلوي وهم دا وو چې شايد د قرينې نه مراد قرينه لفظيه وي ځكه چې متبادر قرينه لفظيه وي نو لفظيه او عقليه سره يې وهم لرې اوختم كړو چې په قرينه كې تعميم دي برابره خبره ده كه لفظيه وي او كه عقليه وي.

اى حذفا: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال:** جوازا مفعول مطلق دي د يحذف حالانكه په دې كې د مفعول مطلق شرط نه موندل كيږي د مفعول مطلق شرط دا دې چې فعل د سابق مصدر وي دلته جوازاً د يحذف مصدر نه دي.

**جواب:** جوازا په اعتبار د موصوف محذوف سره مفعول مطلق دي كوم چې حذفا دي او حذفا

د يحذف مصدر دي

جائزاً: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: جوازاً د حذفاً صفت جوړول صحيح نه دي ځکه چې دصفت حمل په موصوف باندې کيږي او دلته د جوازا حمل په حذفاباندې صحيح نه دي ځکه چې دمصدر حمل په يوڅيز باندې صحيح نه دي ځکه چې حذف جائزيږي نه جواز.

لاَ وَاجِبًا: په دې عبارت سره شارح وايي چې د مصنف قول جوازاً د امکان خاص په معنى کې دي يعني حذف کول او نه حذف کول دواړه په داسې ځاې کې صحيح کيږي.

وقد يجب: ددې عبارت دوه غرضه کيداى شي: (۱) په صاحب دکافيې باندې اعتراض کول (۲) يا په ابن حاجب باندې دشوي اعتراض جواب ورکول.

**اول غرض**: که اعتراض کول مقصود وي نو تقرير به داسې شي چې څنګه مبتدا حذف کول جائز دي همدارنګې په بعضې ځايونو باندې ددې حذف کول واجب هم دي بيا څه وجه ده چې صاحب دکافيې حذف جوازي لره يې ذکرکړو ليکن حذف وجوبي يې ذکر نه کړو دې لره ذکرکول په کاروو ددې نه وروستو شارح د حذف وجوبي دوه صورتونه بيان کړي دي: (ا) نعت د موصوف نه جدا شي اود منعوت د اعراب خلاف ولوستلې شي مثال لکه الحمد لله اهل الحمد په دې کې اهل الحمد کې صفت دي دلفظ الله بيا دې لره منعوت نه دجدا کولو سره مرفوع لوستلې شي اوخبر جوړ کړي شو دمبتداې محذوف د هُوَ تقدير به يې داسې شي الحمد لله هو اهل الحمد.

وانما وجب: په دې سره غرض دشارح دمبتدا دحذف وجوبي دوجې بيان دي چې حذف ځکه واجب دي چې معلوم شي چې په اصل کې هغه صفت وو بيا زيادتي مدح يا ذم دپاره دموصوف نه جدا کړي شو او دمنعوت داعراب خلاف ولوستلې شو ځکه چې کله نعت لره دمنعوت خلاف مرفوع ولوستلې شي نوسامع يو دم متوجه شي چې دمنعوت داعراب خلاف نعت لره مرفوع په لوستلو کې خامخا څه راز ضرور شته لهذا هغه متکلم طرف ته په پوره طريقه باندې متوجه وي اومقصود کوم چې زيادتي مدح او زيادتي ذم دي حاصل به شي اوکه مبتدا لره ظاهر کړي شي نودا فائده به حاصل نه وي ځکه چې په دې وخت کې به داجمله مستأنفه وي نو معلوم به نه شي چې په اصل کې نعت وو لهذا مقصود کوم چې زيادتي مدح اوزيادتي ذم دي

حاصل به نه شي

**فائده** : دمبتدا حذف وجوبي مثال صرف دمدح سره خاص نه دي بلکه نورهم په دې کې ډير مثالونه دي الحمدلله اهل الحمد دادزيادتي مدح مثال دي اوزيادتي ذم مثال اعوذبالله من ابليس عدوالله په دې کې عدوالله په اصل کې دابليس صفت دي دې لره دمنعوت نه جدا کړودمنعوت اعراب خلاف مرفوع ولوستلي شو اوداخبر دي دمبتدا محذوف چې هُوَ دي اصل کې اعوذبالله من ابليس هو عدوالله دي

ويجب حذفه ايضا: په دې عبارت سره غرض دشارح دمبتدادحذف وجوبي دويم صورت بيانول دي چې دبعضې نحويانوپه نزد مخصوص بالمدح اومخصوص بالذم دمبتدامحذوف خبردي دهغوي په نزدهم مبتدا لره حذف کول واجب دي مخصوص بالمدح مثال نعم الرجل زيد په دې کې زيد خبر دي د مبتدا محذوف اصل کې نعم الرجل هو زيد دي اومخصوص بالذم مثال لکه بئس الرجل عمرودا په اصل کې بئس الرجل هوعمرو دي دادبعضونحويانومذهب دي او دبعضې نحويانوپه نزد هُوَ مخصوص بالمدح اومخصوص بالذم په خپله مبتدامؤخرده اوجمله فعليه خبردي دهغوي مسلک مطابق دلته څه مبتدامحذوف نشته اوداز موتږ دبحث نه خارج دي .

**دويم غرض** : که چيرته ددې عبارت نه غرض په ابن حاجب باندې دواريدونکي اعتراض جواب ور کول وي نو داعتراض تقرير به هغه وي لکه چې مخکې تير شو چې څنګه دمبتدا حذف جائز کيږي نو همدارنګې واجب هم وي بياڅه وجه ده چې مصنف حذف جوازي بيان کړو اوحذف وجوبي يې بيان نه کړو نو شارح ددې جواب ورکوي

**جواب** : علامه جامي رَحِمَهُ اللهُ قد تقليله سره دهغې طرف ته اشاره وکړه چې دمبتدا حذف نهايت قليل دي اوالقليل کالمعدوم لهذا دې لره مستقلاً ځان ته يواځې دذکر کولو ضرورت نشته دي هسې خو ابن حاجب رَحِمَهُ اللهُ داختصار درپئ کيدو په اساس دقليل مخکې راتلونکي صورتونه پريږدي .

**سوال** : قَدْ تقليله په حذف جوازي هم داخل کړي شوي دي ددې حذف هم قليل دي دې لره هم ذکر په کار نه وو ؟

**جواب** : کله چې د قلت نه وروستو قلت ذکر کړي شي نو دويم قلت په نسبت سره اول نه نهايت

قلیل بلکې په اقله او کمه درجه کې وي ځکه دې نه اول باندې نه شي قیاس کولې

ای المبتدا المحذوف: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دابن حاجب مثال دممثل له سره مطابق نه دي ځکه چې الهلال والله کې الهلال خبر دي د هذا مبتدا حالانکه مثال مبتدا محذوف جوازي پیش کوو نومثال دممثل له سره مطابق نه دي ؟

**جواب**: شارح جواب ورکوي چې کقول المستهل کې کاف په معنی د مثل مضاف دي اوددې مضاف الیه محذوف ده کومه چې المبتدا محذوفه ده اوقول په معنی دمقول سره دي اوددې نه مخکې حرف جرفي مقدر دي مکمل عبارت داسې دي چې مثل المبتداالمحذوف في مقول المستهل، بیا داعبارت خبر دي دمبتدا محذوف چې المبتدا المحذوف دي نومکمل عبارت به داسې شي چې والمبتدا المحذوف جوازاً مثل المبتدا المحذوف في قول المستهل نومعنی داده چې مبتدا محذوف جوازامثل دهغه مبتدا ده کوم چې محذوف دي دمستهل په مقوله کې لهذا مثال دممثل له سره مطابق شو.

المبصر للهلال: دادمستهل دمعنی بیان دي استهلالا په دوه معنو سره راځي: (۱) په وخت دولادت کې دماشوم آواز کول .(۲) د سپوږمۍ لیدونکي دسپوږمي لیدلو په وخت کې آواز کول نو المبصر للهلال سره شارح معنی ثاني لره متعین کړه چې د سپوږمۍ لیدونکي دسپوږمي لیدلو په وخت کې آواز کول دي.

ای هذا الهلال: ددې ځاې نه مثال دممثل له باندې منطبق کول دي چې حاصل یې دادې چې الهلال والله خبر دي دمبتدا محذوف چې هذا دي تقدیر دعبارت داسې دي چې هذا الهلال والله مبتدا لره حذف کړو اوددې په حذف باندې قرینه حالیه ده اوقرینه حالیه خلکو لره سپوږمۍ د لیدلو دپاره جمع کوي.

ولیس من باب الخبر: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مونږ دانه منو چې الهلال والله کې مبتدا محذوف دي بلکه خبر محذوف دي اصل کې وو الهلال هذا والله لهذا دمثال اوممثل له مطابق نه دي ؟

**جواب**: خبر لره حذف منل صحیح نه دي ځکه چې دسپوږمۍ لیدلو والامقصود اشاره یو شی

لره متعین کول او په هغه باندې د هلالیت حکم لږول دي ځکه چې لیدلو والا هغه طرف ته متوجه شي او هغه ته وګوري ګویا چې هغه دا سپوږمۍ لیدلي وي او دا مقصود هله حاصلیږي چې هغه لره د حذف مبتدا د باب نه ومنلي شي که چیرته دې لره د حذف خبر د باب نه ومنلي شي نو دا مقصود به حاصل نشي او د مستهل مقصود به فوت شي .

**وانما اتی:** په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال:** مثال خو په الهلال باندې تام شو د والله اضافه یې ولې وکړه ؟

**جواب:** د والله اضافه یې د دوو (۲) وجهو نه وکړه .

**اوله وجه:** اوله وجه داده چې عام طور باندې د سپوږمۍ لیدلو والا دا عادت وي چې هغه نورو ته د یقین ورکولو د پاره قسم خوري .مصنف د هغه عادت خیال وساتلو او د قسم اضافه یې وکړه .

**دوهمه وجه:** دوهمه وجه داده چې د قسم اضافه یې د دري (۳) وجهو نه وکړه چې په حالت د وقف کې د الهلال د نصب وهم پیدا نه شي ځکه چې په کلمه واحده کې اصل وقف دي نو دا وهم به پیدا کیدلو چې الهلال په اصل کې مفعول به دي د فعل محذوف رأیتُ چې په اصل کې رأیت الهلال وو د وخت د تنګۍ په اساس یې فعل لره حذف کړو حالانکه دا د فعل محذوف مفعول به نه دي بلکې خبر دي د مبتدا محذوف، نو د دې وجې نه یې د قسم اضافه وکړه چې دا وهم پیدا نه شي .

## د خبر حذف جوازي :

| وَ قَدْ يُحْذَفُ الْخَبَرُ جَوَازًا اَیْ حَذْفاً جَائِزاً لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ مِنْ غَيْرِ اِقَامَةِ شَيْءٍ مَقَامَهُ مِثْلُ |
|---|
| او کله کله حذف کیږي خبر جوازا یعني حذفا جوازا د پاره د قیام د قرینې په غیر د قائمولو د یو څیز په ځای د دې په شان |
| الْخَبَرِ الْمَحْذُوْفِ جَوَازاً فِيْ قَوْلِكَ خَرَجْتُ فَاِذَا السَّبُعُ فَاِنَّ تَقْدِيْرَهُ عَلَى الْمَذْهَبِ الصَّحِيْحِ كَمَا |
| د هغه خبر چې محذوف وي جوازلکه دا قول ستا چې خرجت فاذا السبع نو د دې تقدیر په صحیح مذهب باندې لکه |
| نَصَّ عَلَيْهِ صَاحِبُ اللُّبَابِ خَرَجْتُ فَاِذَا السَّبُعُ وَاقِفٌ عَلَى اَنْ يَكُوْنَ اِذَا ظَرْفَ زَمَانٍ لِلْخَبَرِ الْمَحْذُوْفِ |
| نص کړي په دې باندې صاحب د لباب چې خرجت فاذا السبع واقف په اساس چې اذا ظرف زمان دي د خبر د حذف |
| مِنْ غَيْرِ سَادٍّ مَسَدَّهُ اَیْ فَفِيْ وَقْتِ خُرُوْجِيْ اَلسَّبُعُ وَاقِفٌ . |
| کولو د پاره په غیر د قائمقام نه یعني ففي وقت خروجي السبع واقف . |

**خلاصه دمتن**: کله خبر په وخت دقیام دقرینې کې حذف کولې شي نو بیا حذف په دوه (۲) قسمه دي (۱) جائز (۲) واجب حذف خبر جوازي په هغه وخت کې وي چې کله دخبر په حذف کولو باندې قرینه موجود وي اودخبرقائمقام نه وي اودخبر حذف په هغه وخت کې واجبیږي چې کله په حذف دخبر باندې قرینه هم موجود وي اودخبر قائمقام هم موجود وي دحذف جوازي مثال لکه خرجت فاذا السبع ، ددې تقدیر دعبارت دادې چې خرجت فاذا السبع واقف دي اذا ظرف زمان دي کوم چې دخبرمحذوف متعلق دي چونکې ددې محذوف خبر کوم قائمقام موجود نه دي نوددې وجې نه به داحذف جوازي وي وجوبي نه وي .

**اغراض دجامي**: قد يحذف: دایې مقدر کړو دې خبرې طرف ته یې اشاره وکړه چې دمصنف قول الخبر داعطف دي په المبتداء باندې .

اى حذفا جائز: دا په اصل کې ددوو سوالونو مقدرو جواب دي چې د هغې تفصیل گزاتِ مَرّاتٍ یعنې څو کرته مخکې تیر شوي دي .

لقيام: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: دخبر دحذف په بیان کې مصنف قرینه ذکر نه کړه اودمبتدا دحذف په بیان کې یې قرینه ذکر کړه نوددې نه وهم پیدا شو چې کیدای شي خبر په هر حال کې حذف کول جائز وي برابره خبره ده که قرینه وي یا نه وي حالانکه دخبر دحذف دپاره هم دمبتدا په شان قرینه په کار ده ؟.

**جواب**: په لقيام قرينة سره یې جواب ورکړو چې دخبر حذف کول په هغه وخت کې جائز وي چې کله یې په حذف باندې قرینه موجود وي .

**سوال**: چې کله په دواړو کې قرینه شرط ده نودلته مصنف ولې ذکر نه کړه ؟

**جواب**: نو شارح جواب ورکړو چې دلته مو ځکه ذکر نه کړه چې په ماقبل باندې مو اکتفاء وکړه من غير اقامة سره شارح ثابته کړه چې که چیرته دخبر قائمقام موجود وي نودخبرحذف کول جائز نه دي بلکه واجب دي .

الخبر المحذوف: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: خرجت فاذا السبع کې السبع مبتدا ده نه خبر حالانکه مثال دخبر محذوف جوازا پیش

کول وو نو مثال د ممثل له سره مطابق نه شو؟

**جواب** : مثل مضاف دي د دې مضاف اليه محذوف دي کوم چې الخبر المحذوف جواز في قولک دي

**فان تقديره** : په دې عبارت سره غرض د شارح مثال د ممثل له سره منطبق کول دي چې د هغې حاصل دا دې چې دا د صحيح مذهب مطابق د دې تقدير عبارت خرجت فاذا السبع واقف دي اذا ظرف زمان دي کوم چې د خبر محذوف متعلق دي چې معنى يې ده خرجت ففي وقت خروجي السبع واقف په دې صورت کې به خبر محذوف وي مذکور به نه وي او د دې قائمقام ثم موجود نه دي لهذا مثال د ممثل له سره مطابق شو.

**فائده** : اصح مذهب يې د دې وجې نه وويل چې د بعضې نحويانو په نزد باندې اذا ظرف زمان نه دي بلکې ظرف مکان دي نو په دې وخت کې به خبر محذوف نه وي بلکه همدا اذا به خبر وي او معنى به يې دا وي چې ففي مکان خروجي السبع ، نو د دې قول مطابق به دا مثال زمونږ د بحث نه خارج وي.

## د خبر د حذف جوازي اول مقام :

| |
|---|
| وَ قَدْ يُحْذَفُ الْخَبَرُ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ وُجُوْبًا اَىْ حَذْفًا وَاجِباً فِيْمَا الْتُزِمَ اَىْ فِيْ تَرْكِيْبٍ |
| او کله کله حذف کيږي خبر لره جوازاً د قيام د قريني د وجې نه وجوباً يعني په حذف وجوبي سره په هغه ترکيب کې |
| اُلْتُزِمَ فِيْ مَوْضِعِهٖ اَىْ مَوْضِعِ الْخَبَرِ غَيْرُهٗ اَيْ غَيْرُ الْخَبَرِ وَذٰلِکَ فِيْ اَرْبَعَةِ اَبْوَابٍ عَلٰى مَا ذَكَرَهٗ |
| چې التزام کړې شوې وي په هغه ځاې کې يعني په غير د خبر کې او دا په څلور بابونو کې دي لکه څنګه چې ذکر کړې |
| الْمُصَنِّفُ اَوَّلُهَا الْمُبْتَدَأُ الَّذِيْ بَعْدَ لَوْلَا مِثْلُ لَوْلَا زَيْدٌ لَكَانَ كَذَا |
| مصنف چې د هغې نه اول هغه مبتدا ده چې لولا نه وروستو وي مثال لکه لولا زيد لکان کذا يعني لولا زيد موجود څکه |
| اَىْ لَوْلَا زَيْدٌ مَوْجُوْدٌ لِاَنَّ لَوْلَا لِامْتِنَاعِ الشَّيْءِ لِوُجُوْدِ غَيْرِهٖ فَيَدُلُّ عَلَى الْوُجُوْدِ |
| چې لولا امتناع د شي د پاره راځي د هغه د غير موجودګي په وجې سره پس دلالت به کوي په وجود باندې او په تحقيق |
| وَ قَدِ الْتُزِمَ فِيْ مَوْضِعِ الْخَبَرِ جَوَابُ لَوْلَا فَيَجِبُ حَذْفُهٗ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ وَ الْتِزَامِ قَائِمٍ مَقَامَهٗ |
| سره التزام کړې شوې په ځاې د خبر کې جواب د لولا نو واجب دي حذف کول د پاره د قيام د قريني او د وجې د التزا. |
| هٰذَا اِذَا كَانَ الْخَبَرُ عَامًّا وَ اَمَّا اِذَا كَانَ خَاصًّا فَلَا يَجِبُ حَذْفُهٗ |
| د قائمقام نه دا په هغه وخت کې دي چې کله خبر عام وي ليکن چې کله خبر خاص وي نو نه دي واجب حذف ک |

| كَمَا فِيْ قَوْلِهِ شِعْرٌ : |
|---|
| دخبر لكه په دې شعر كې ذكر دي |

| لَكُنْتُ الْيَوْمَ اَشْعَرَ مِنْ لَبِيْدٍ | وَ لَوْلَا الشِّعْرُ بِالْعُلَمَاءِ يُزْرِيْ |
|---|---|
| نو نن به زه دلبيدنه غټ شاعروم | كه چيرته شعرعلماو لره عيب داركولې نه |

| هَذَا عَلَى مَذْهَبِ الْبَصْرِيِّيْنَ وَ قَالَ الْكِسَائِيُّ الْاِسْمُ الْوَاقِعُ بَعْدَهَا فَاعِلٌ لِفِعْلٍ مُقَدَّرٍ |
|---|
| دا په مذهب دبصرينو باندې او كسائي ويلي دي چې هغه اسم چې واقع وي وروسته ددې نه فاعل دپاره دفعل مقدر |
| اَىْ لَوْلَا وُجِدَ زَيْدٌ وَ قَالَ الْفَرَّاءُ لَوْلَا هِيَ الرَّافِعَةُ لِلْاِسْمِ الَّذِيْ بَعْدَهَا. |
| يعني لولا وُجِدَزَيْدٌاو فراء ويلي دي چې لولا رفع وركونكې دي هغه اسم لره كوم چې دهغه نه وروستو دي . |

**خلاصه دمتن**: صاحب د كافيې وايي چې كله كله خبر لره وجوباً حذف كيږي او بيا په دغه وجوباً باندې ماتن څلور مثالونه وركړي دي چې په هغې كې د اصل څلورو ابوابو طرف ته اشاره كړې ده چې دهغې تفصيل روستو راځي .

**اغراض دجامي** : __يحذف الخبر__: په دې عبارت سره شارح اشاره كړي ده چې د وجوباً عطف په جوازاً باندې دي .

__في تركيب__: په دې كې دما مصداق لره متعين كوي چې د ما مصداق تركيب دي .

__موضع الخبر__: په دې عبارت سره شارح د خبر مرجع متعين كړي ده .

__غيرالخبر__: په دې كې هم شارح د خبر مرجع متعين كړي ده

__وذلک في اربعة ابواب__: په دې عبارت سره غرض دشارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : د مثال نه مقصود د ممثل له وضاحت كول دي او دوضاحت دپاره يو مثال كافي وو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ څلور مثالونه ولې ذكر كړه؟

**جواب** : د حذف خبر څلور بابونه دي ددې وجې نه مصنف د هر باب دپاره يو يو مثال بيان كړي نو تعدد دمثالونو دممثل له دتعدد د وجې نه ، نه دي .

__اولها__: ددې ځاې نه اولنی مقام ذكر كوي چې هغه مبتدا چې د لولا نه وروستو واقع وي ددې خبر لره حذف كول واجب دي مثال لولا زيد لكان كذا .

__اى لولا زيد موجود__: په دې عبارت سره غرض د شارح د جامي مثال لره په ممثل له باندې منطبق

کول دي چې لولا زید لکان کذا کې زید مبتدا ده کومه چې د لولا نه وروستو واقع دي ددې خبر محذوف د ي چې کوم موجود دي دا په اصل کې وو لولا زید موجود لکان کذا .

**لان لولا** : ددی ځاې نه په حذف باندې قرینه ذکر کوي چې ددې په حذف باندې قرینه لولا دي ځکه چې لولا دا امتناع ثاني دپاره راځي په سبب د وجود اول سره یعني لولا دا ښائي چې اولنی شي موجود دي لهذا لولا په وجود باندې دلالت کوي .

**وقد التزم** : ددی ځاې نه دخبر دقائمقام بیان کوي چې د خبر قائمقام جواب د لولا دي .

**فیجب** : په دې عبارت سره د ماقبل دنتیجې بیان دي ځکه چې دلته کې حذف خبر باندې هم قرینه موجود ده او دخبر قائمقام هم موجود دي ددې وجې نه خبر لره په وجوبي طور باندې حذف کړي شو

**هذا اذا کان** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستا ذکر شوې ضابطه اوقاعده منقوضه او ماته ده د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په دې شعر سره چې فرمایي :

ولولا الشعر بالعلماء یزري ❁ لکنت الیوم اشعر من لبید

په دې شعر کې د لولا نه وروستو مبتدا ده ددی خبر یزری وروستو ذکر دی محذوف نه دي ، نوددې نه دا معلومه شوه چې د لولا نه وروستو حذف د خبر واجب نه دي .

**جواب** : هغه مبتدا چې د لولا نه وروستو واقع وي ددې خبر لره حذف کول په هغه صورت کې واجب دي چې کله خبر دافعال عامه څخه وي اوپه مثال مذکور کې خبر د افعال عامه څخه نه دي بلکه د افعال خاصه څخه دي لهذا ددې وجې نه نقض وارد نه شو .

**هذا علی مذهب** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مونږه داخبره نه منو چې هغه اسم چې دلولا نه وروستو واقع وي اوهغه مرفوع وي د مبتدا کیدو په وجه بلکه هغه مرفوع دي دفعل مقدردفاعل په وجې سره لولا زید لکان کذا تقدیری عبارت لولا وجد زید لکان کذا دي یا هغه مرفوع وي په خپله د لولا د وجې نه ځکه چې لولا د اسماء افعال نه دي چې خپل ما بعد لره د فاعلیت په بناء رفع ورکوي لهذا مثال د ممثل سره مطابق نه شو .

**جواب** : هغه اسم چې لولا نه وروستو واقع وي د هغې په مرفوع کيدو کې اختلاف دي د نحاة بصري د مذهب مطابق هغه اسم چې لولا نه وروستو واقع وي هغه مرفوع وي د مبتدا په وجې سره که ددې خبر د افعال عامه څخه وي نو خبر لره حذف کول واجب دي او مصنف دغه مذهب لره اختيار کړو او مثال يې ذکر کړو ليکن دلته دوه (۲) مسلکونه نور هم دي کوم چې مرجوح دي کوم لره چې مصنف ذکر نه کړو ځکه چې د مصنف دخپل مذهب مطابق مثال د ممثل سره مطابق دي

**مسلک (۲)**: امام کسائي کوفي مذهب دادي چې هغه اسم چې لولا نه وروستو واقع وي هغه مرفوع وي د فعل مقدر د فاعل کيدو په بناء باندې لولازيد اصل کې داسې وو چې لولا وجد زيد

**مسلک (۳)** : د امام فراء په نزد هغه اسم چې د لولا نه وروستو واقع وي هغه مرفوع وي د لولا د وجې نه ځکه چې لولا د اسماء افعالو څخه دي کوم چې خپل مابعد لره د فاعليت په بناء باندې رفع ورکوي .

## د خبر د حذف وجوبي دويم مقام :

| وَ ثَانِيهَا كُلُّ مُبْتَدَإٍ كَانَ مَصْدَرًا صُوْرَةً أَوْ بِتَأْوِيْلِهِ مَنْسُوْبًا إِلَى الْفَاعِلِ أَوِ الْمَفْعُوْلِ أَوْ |
|---|
| اودويم ددې نه هرهغه مبتدا چې مصدر وي صورة يا د مصدريه تاويل کې وي منسوب وي فاعل يا مفعول يا |
| كِلَيْهِمَا وَ بَعْدَهُ حَالٌ أَوْ كَانَ اِسْمَ تَفْضِيْلٍ مُضَافًا إِلَى ذٰلِكَ الْمَصْدَرِ وَ ذٰلِكَ مِثْلُ ذَهَابِيْ رَاجِلًا وَ ضَرْبَ زَيْدٌ |
| دواړو ته او د هغې نه وروستو حال وي يا اسم تفضيل وي مضاف وي دې مصدر طرف ته مثال ذهابي راجلا و ضرب زيد |
| قَائِمًا إِذَا كَانَ زَيْدٌ مَفْعُوْلًا بِهٖ وَمِثْلُ ضَرْبِيْ زَيْدًا قَائِمًا أَوْ قَائِمَيْنِ وَأَنْ ضَرَبْتَ زَيْدًا قَائِمًا وَأَكْثَرُ شُرْبِي السَّوِيْقَ مَلْتُوْتًا وَ |
| قائما کله چې زيد مفعول به وي مثال ضربي زيدا قائما او قائمين اوان ضربت زيدا قائما او واکثر شربي السويق ملتوتا او |
| أَخْطَبُ مَا يَكُوْنُ الْأَمِيْرُ قَائِمًا فَذَهَبَ الْبَصْرِيُّوْنَ إِلَى أَنَّ تَقْدِيْرَهُ ضَرْبِيْ زَيْدًا حَاصِلٌ إِذَا كَانَ قَائِمًا |
| اخطب مايكون الأمير قائما پس ذهاب کړي بصرينو دې خبرې ته چې تقدير د عبارت ضربي زيدا حاصل اذا كان قائما دي |
| فَحُذِفَ حَاصِلٌ كَمَا يُحْذَفُ مُتَعَلَّقَاتُ الظُّرُوْفِ نَحْوُ زَيْدٌ عِنْدَكَ فَبَقِيَ إِذَا كَانَ |
| پس حذف کړي شو حاصل لره لکه څنګه چې حذف کيږي د ظروفو متعلقات مثال زيد عندک پس پاتې شو اذا کان |
| ثُمَّ حُذِفَ إِذَا مَعَ شَرْطِهٖ الْعَامِلِ فِي الْحَالِ وَأُقِيْمَ الْحَالُ مَقَامَ الظَّرْفِ لِأَنَّ |
| بيا حذف کړې شو اذا د خپل شرط سره کوم چې عامل دي په حال کې او حال لره د ظرف قائمقام جوړ شو ځکه چې |
| فِي الْحَالِ مَعْنَى الظَّرْفِيَّةِ فَالْحَالُ قَائِمٌ مَقَامَ الظَّرْفِ الْقَائِمِ مَقَامَ الْخَبَرِ فَيَكُوْنُ الْحَالُ قَائِمًا |

| |
|---|
| په حال کې د ظرفیت معنی موجود ده پس حال قائمقام دي د ظرف کوم چې قائمقام دي د خبر پس حال قائم |
| مَقَامَ الْخَبَرِ. |
| مقام دخبر دي |

**خلاصه دمتن** : ددې ځاې نه شارح د خبر دحذف وجوبي دويم مقام بيانوي

**اغراض دجامي** : وثانيها: ددې ځاې نه دخبر دحذف وجوبي دويم مثال بيانيږي چې په هغې سره يوې ضابطې طرف ته اشاره ده چې د هغې حاصل دادې (۱) هر هغه مبتدا چې صورة مصدر وي يا په تاويل د مصدر وي او منسوب الى الفاعل وي يا منسوب الى المفعول وي يا منسوب الى الفعل والمفعول دواړه وي او د منسوب اليه نه وروستو حال وي (۲) يا مبتدا اسم تفضيل وي چې مضاف وي داسې مصدر طرف ته چې صورتاً يا تاويلاً مصدر وي کوم چې فاعل يا مفعول دواړو طرف ته منسوب وي او دمنسوب اليه نه وروستو حال واقع وي نوپه داسې صورت کې خبر لره حذف کول واجب دي.

**وضاحت** : ددې ضابطې دوه (۲) جزونه دي: (۱) هغه مبتدا چې مصدر وي برابره خبره ده که صورةً مصدر وي يا تاويلاً مصدر وي او منسوب وی فاعل طرف ته يا مفعول طرف ته يا دواړو طرف ته او منسوب اليه نه وروستو حال واقع وي (۲) هغه مبتدا چې اسم تفضيل وي او مضاف وي دې مصدر طرف ته چې کوم صورةً ياتاويلاً مصدر وي اومنسوب وي فاعل طرف ته يا مفعول طرف ته يا دواړو طرف ته او منسوب اليه نه وروستو حال واقع وي.

ددغه دواړو جزونو څخه په هر يو کې شپږ (۶) صورتونه دي :

**داول جز شپږ (٦) صورتونه** : داول جز شپږ صورتونه دادې : (۱) مبتدا صورتاً مصدر وي او فاعل طرف ته منسوب وي او د منسوب اليه نه پس حال واقع وي مثال ذهابي راجلا په دې مثال کې ذهابي صورتاً مصدر دي او خپل فاعل ضمير متکلم طرف ته منسوب وي او ددې نه وروستو حال واقع وي ددې تقدير عبارت ذهابي حاصل اذا کنت راجلا دي اول مو حاصل خبر لره حذف کړو ځکه چې ظرف اذا کنت ددې متعلق دي اوظرف په خپل متعلق باندې دلالت کوي کله چې کوم خبر لره موحذف کړو نو ذهابي اذا کنت راجلا شو ، دويم : اذا کنت فعل شرط کوم چې په حال کې فاعل دي حذف مو کړو او حال مو ددې قائمقام کړو ځکه چې په حال کې د ظرفيت معنی موندې شي مثال د جاء ني زيد راکبا معنی ده جاءني زيد في زمان رکوبه کله چې حال لره

دظرف قائمقام جوړ شو نو ځکه راجلا شو پس دمبتدا خبر معنی حاصل لره په وجوبي طور باندې حذف شو ځکه چې د هغې په حذف باندې قرینه هم موجود ده او ددې قائمقام هم موجود وي قرینه راجلا دي ځکه چې راجلا په ظرف باندې دلالت کوي او ظرف په خبر باندې دلالت کوي نو راجلا به دلالت کوي په خبر باندې ځکه چې دال علی الشیء باندې دال ، دا دال علی ذالک الشیء وي او قائمقام هم راجلا دې ځکه چې راجلا قائمقام دي د ظرف اوظرف قائمقام دي د خبر لهذا راجلا به هم قائمقام شي دخبر.

(۲) مبتدا صورتاً مصدر وي او مفعول طرف ته منسوب وي او قائما ددې نه حال واقع دي مثال ضرب زید قائما په دې مثال کې ضرب صورةً مصدر دي او مفعول طرف ته منسوب دي او قائما ددې نه واقع دی په اصل کې ضرب زید حاصل اذاکان قائما دي شارح رَحِمَهُ اللّٰهُ دلته د زید نه وروستو د اذاکان مفعولا به اضافه ځکه وکړه ځکه چې ضرب زید قائما کې دوه (۲) احتمالات دي:

(۱) دا د ضرب فاعل دي (۲) ضرب مفعول دي نو شارح اذاکان الخ وویل اوپه دې سره یې دویم احتمال لره متعین کړو چې تکرار لازم نه شي ځکه د منسوب الی الفاعل مثال مخکې تیر شوي دي.

(۳) مبتدا صورتاً مصدر وي او منسوب وي فاعل او مفعول دواړو طرف ته او دیو نه حال واقع وي اوکه دغه مثال لره ضربي زیدا قائمین ولوستلې شي نودا به دهغه مثال وي چې صورةً مصدر وي او منسوب وي فاعل او مفعول دواړو طرف ته او قائمین ددواړونه حال واقع وي باقي تقدیر دعبارت او نور تفصیل مخکې تیرشوي دي.

(۴) مبتدا تاویلاً مصدر وي او منسوب وي فاعل طرف ته او ددې نه پس حال واقع وي مثال أَنْ ضَرَبْتَ قَائِمًا.

(۵) مبتدا تاویلاً مصدر وي او منسوب وي مفعول طرف ته او منسوب الیه نه وروستو حال واقع وي مثال ضربت زیدا قائما.

(٦) مبتدا تاویلاً مصدر وي او منسوب وي فاعل اومفعول دواړه طرف ته او د منسوب الیه نه وروستو حال واقع وي مثال ان ضربت زیدا قائما.

او نورو مثالونو کې که چیرته دفاعل او مفعول دواړو نه دحال دجوړول او مثال جوړول وي نو دقائما په ځای تثنیه قائمین لوستلې شی مثال ان ضربت زیدا قائمین.

**د دوهم جز شپږ. (٦) صورتونه** :او د دوهم جُز هم همدرنګې شپږ (٦) صورتونه دي په لاندې ډول

(۱) چې مبتدا اسم تفضيل وي او مضاف وي صورةً مصدر طرف ته او هغه مصدر منسوب وي فاعل طرف ته او دمنسوب اليه نه وروستو حال واقع وي مثال **اكثر شربي قائما**

(۲) مبتدا اسم تفضيل مضاف وي صورةً مصدر طرف ته او دا مصدر منسوب وي مفعول طرف ته او د منسوب اليه نه وروستو حال واقع وي **مثال اكثر ضرب زيد قائما**

(۳) مبتدا اسم تفضيل وي او صورةً مصدر طرف ته مضاف وي اودا مصدر منسوب وي فاعل او مفعول دواړو طرف ته او دمنسوب اليه نه وروستو حال واقع وي مثال **اكثر شربي السويق ملتوتا**

(۴) مبتدا اسم تفضيل وي او مضاف وي مصدر تاويلي طرف ته او هغه مصدر تاويلي منسوب وي فاعل طرف ته او دمنسوب اليه نه وروستو حال واقع وي مثال **اخطب ما يكون الامير قائما**

(۵) مبتدا اسم تفضيل وي او مضاف وي مصدر تاويلي طرف ته اودامنسوب وي مفعول طرف ته او د منسوب اليه نه وروستو حال واقع وي مثال **اكثر ان ضرب زيد قائما**

(٦) مبتدا اسم تفضيل وي او مضاف وي مصدر تاويلي طرف ته اودامنسوب وي فاعل او مفعول دواړو طرف ته او دمنسوب اليه نه وروستو حال واقع وي مثال **اكثر ان ضربت زيدا قائما**

## د ټولو مثالونو خلاصه :

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱- | مبتدا صورتاً مصدر وي | منسوب الى الفاعل وي | ذهابي راجلاً |
| ۲- | مبتدا صورتاً مصدر وي | منسوب الى المفعول وي | ضرب زيدٍ قائماً |
| ۳- | مبتدا صورتاً مصدر وي | منسوب الى الفاعل والمفعول وي | ضربي زيدٍ قائماً |
| ۴- | مبتدا تاويلاً مصدر وي | منسوب الى الفاعل وي | ان ضربتُ قائماً |
| ۵- | مبتدا تاويلاً مصدر وي | منسوب الى المفعول وي | ان ضرب زيد قائما |
| ۲- | مبتدا تاويلاً مصدر وي | منسوب الى الفاعل والمفعول وي | ان ضربت زيدا قائماً |
| ۷- | مبتدا اسم تفضيل مضاف وي صورتاً مصدر طرف ته | منسوب الى الفاعل وي | اكثر شربي قائما |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۸ | مبتدا اسم تفضيل مضاف وي صورتاً مصدر طرف ته | منسوب الى المفعول وي | اكثر ضرب زيد قائماً |
| ۹ | مبتدا اسم تفضيل مضاف وي صورتاً مصدر طرف ته | منسوب الى الفاعل والمفعول وي | اكثر شربي السويق ملتوتاً |
| ۱۰ | مبتدا اسم تفضيل مضاف وي تاويلاً مصدر طرف ته | منسوب الى الفاعل وي | اخطب مايكون الامير قائماً |
| ۱۱ | مبتدا اسم تفضيل مضاف وي تاويلاً مصدر طرف ته | منسوب الى المفعول وي | اكثر ان ضرب زيد قائماً |
| ۱۲ | مبتدا اسم تفضيل مضاف وي تاويلاً مصدر طرف ته | منسوب الى الفاعل والمفعول وي | اكثر ان ضربت زيداً قائماً |

**فذهب البصريون**: په دې عبارت سره غرض د شارح دادې چې په دې دوهم مقام كې تقدير د عبارت او د اصل متعلق دنحويانو اختلاف دې په دې خبره د ټولو اتفاق دې چې **ضربي زيداً قائماً** كې د مبتدا خبر وجوبا محذوف دې ليكن په دې خبره كې اختلاف دې چې ددې اصل څه شئ دې او د حذف خبر صورت څه دې په دې كې پنځه (۵) مذهبه دې چې شارح را نقل كړي دې:

**مذهب (۱)**: فذهب البصريون سره د اول مذهب بيان دى دبصرې دنحويانو مذهب دادې چې د **ضربي زيدا قائماً** تقدير **ضربي زيدا حاصل اذاكان قائماً** دي اول مو د **حاصل** خبر حذف كړو لكه څنګه چې د ظرف متعلقات حذف كولې شي مثال **زيد عندك** ظرف متعلق حاصل محذوف دي كله چې حاصل لره حذف كړي شو نو **ضربي زيدا اذاكان قائماً** جوړ شو **ثانياً اذاكان** فعل شرط لره كوم چې په حال عامل دي حذف مو كړه او حال لره مو د هغې قائمقام كړه ځكه چې په حال كې د ظرف معنى موندلې شي ځكه چې حال د ظرف قائمقام شو نو **ضربي زيدا قائماً** جوړ شو اوس د خبر حذف واجب دي ځكه چې حذف د خبر باندې قرينه موجود ده او قائمقام هم موجود دي قرينه **قائماً** دي ځكه چې **قائماً** دال دي په ظرف باندې او ظرف دال دي په خبر باندې او **دال على الشيء** باندې دال ، **دال على ذلك الشيء** وي او قائمقام هم **قائماً** دى ځكه **قائماً** قائمقام دي د ظرف او ظرف قائمقام دي د خبراو قائمقام ديو څيز داقائمقام ددې څيز كيدې شي .

## په ذکر شوې مقام کې د مثال په تاویل کې د نحویانو پنځه مذاهب:

قَالَ الرَّضِيُّ هٰذَا مَا قِيْلَ فِيْهِ تَكَلُّفَاتٌ كَثِيْرَةٌ ، وَ هِيَ حَذْفُ اِذَا مَعَ الْجُمْلَةِ

رضي وايي دا هغه چې ويلى شوي دي په دې کې ډير زيات تکلفات دي او هغه اذا حذف کول دي سره د جملې

الْمُضَافِ اِلَيْهَا وَلَمْ يَثْبُتْ فِيْ غَيْرِ هٰذَا الْمَكَانِ وَالْعُدُوْلُ عَنْ ظَاهِرِ مَعْنَى كَانَ النَّاقِصَةِ اِلٰى مَعْنٰى كَانَ التَّامَّةِ

مضاف اليه او ثابت نه دي په غير دې ځاې نه او عدول کول د کان ناقصه د ظاهر معنى نه د کان تامه طرف ته او

وَ الَّذِيْ يَظْهَرُ لِيْ اَنَّ تَقْدِيْرَهٗ بِنَحْوِ ضَرْبِيْ زَيْدًا يُلَابِسُهٗ قَائِمًا اِذَا اَرَدْتَ

او هغه چې ظاهر شوي وي زما د پاره بې شک د هغې تقدير مثال ضربي زيدا يلابسه قائما به وي کله چې ته اراده

الْحَالَ عَنِ الْمَفْعُوْلِ وَ ضَرْبِيْ زَيْداً يُلَابِسُنِيْ قَائِمًا اِذَا كَانَتْ عَنِ الْفَاعِلِ اَوْلٰى . ثُمَّ تَقُوْلُ

وکړې د حال د مفعول نه او وضربي زيدا يلابسني قائما به وي کله چې حال فاعل نه اولى وي نو ته به بيا وايي چې

حَذْفُ الْمَفْعُوْلِ الَّذِيْ هُوَ ذُو الْحَالِ فَبَقِيَ ضَرْبِيْ زَيْدًا يُلَابِسُ قَائِمًا وَ يَجُوْزُ حَذْفُ ذِي الْحَالِ

حذف کول د هغه مفعول چې ذوالحال دي نو باقي پاتې شو ضربي زيدا يلابس قائما او جائز دي حذف کول د ذوالحال

مَعَ قِيَامِ الْقَرِيْنَةِ كَمَا تَقُوْلُ الَّذِيْ ضَرَبْتَ قَائِماً زَيْدٌ اَيْ ضَرَبْتَهٗ ثُمَّ حُذِفَ يُلَابِسُ الَّذِيْ هُوَ خَبَرُ

سره د قيام د قريني لکه چې ته وايي الذي ضربت قائما زيد يعني ضربته بيا حذف کړې شو يلابس لره کوم چې خبر

الْمُبْتَدَاِ وَالْعَامِلِ فِي الْحَالِ وَقَامَ الْحَالُ مَقَامَهٗ كَمَا تَقُوْلُ رَاشِداً مَهْدِيًا اَيْ سِرْ رَاشِداً مَهْدِيًا فَعَلٰى

دي د مبتدا او حال کې او قائم شو حال په ځاې د دې باندې لکه چې ته وايي راشدا مهديا يعني مهديا راشدا نو بنا په

هٰذَا يَكُوْنُوْنَ مُسْتَرِيْحِيْنَ مِنْ تِلْكَ التَّكَلُّفَاتِ الْبَعِيْدَةِ وَ قَالَ الْكُوْفِيُّوْنَ تَقْدِيْرُهٗ ضَرْبِيْ زَيْداً

دې باندې دا به راحت موندونکي شي د دې تکلفات بعيده نه او کوفيانو ويلى دي چې تقدير د هغه ضربي زيدا

قَائِماً حَاصِلٌ بِجَعْلِ قَائِمًا مِنْ مُتَعَلِّقَاتِ الْمُبْتَدَاِ وَ يَلْزَمُهُمْ حَذْفُ الْخَبَرِ مِنْ غَيْرِ سَدِّ شَيْءٍ

قائما حاصل دى او قائما لره د مبتدا په متعلقات د جوړولو سره او لازم به راشي هغه لره حذف کول د خبر او څه شي لره

مَسَدَّهٗ وَ تَقْيِيْدُ الْمُبْتَدَاِ الْمَقْصُوْدِ عُمُوْمُهٗ بِدَلِيْلِ الْاِسْتِعْمَالِ وَ ذَهَبَ

د هغه قائمقام نه په غير او مبتدا مقصود لره مقيد کول او د دې عام کيدل د استعمال د دليل نه وتلى دى او ذهاب

الْاَخْفَشُ اِلٰى اَنَّ الْخَبَرِ الَّذِيْ سُدَّتِ الْحَالُ مَحَلَّهٗ مَصْدَرٌ مُضَافٌ

کړې اخفش د دې خبرې ته چې هغه خبر چې قائم شوي حال په محل د دې باندې هغه مصدر دي کوم چې مضاف

اِلٰى صَاحِبِ الْحَالِ اَيْ ضَرْبِيْ زَيْداً ضَرْبُهٗ قَائِمًا وَذَهَبَ بَعْضُهُمْ اِلٰى اَنَّ هٰذَا الْمُبْتَدَاَ لَا خَبَرَ لَهٗ

دي ذوالحال طرف نه يعني ضربي زيدا قائما او تللى دي بعضې دې خبرې طرف ته چې د دې مبتدا خبر نشته دي

لِكَوْنِهٖ بِمَعْنَى الْفِعْلِ اِذِ الْمَعْنٰى مَا اَضْرِبُ زَيْداً اِلَّا قَائِماً .

خکه چې دا معنى فعل څخه دي خکه چې د دې معنى دا ده مَا اَضْرِبُ زَيْداً اِلَّا قَائِماً .

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت کې شارح په ذکر شوې مقام کې د مثال په تاويل کې د نحويانو پنځه مذاهب بيانوي

**اغراض دجامي: اول مذهب**: په مذکوره مثال ضربي زيدا قائما د تاويل کې اول مذهب په مخکني عبارت کې تير شوي دي ليکن په دې کې د نحويانو اختلاف دي او په دې باره کې مزيد څلور مذاهب شارح جامي په پورتني عبارت کې بيان کړي دي چې د هغې تفصيل ذکر کولې شي

**دويم مذهب**: وقال الرضي: په دې عبارت سره غرض دشارح د دوهم مذهب بيان دي شيخ رضي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې د بصرينو دمذهب مطابق په ذکر شوې تو جيه کې ډير تکلفات دي.

(۱) اذا لره بمع جملة مضاف اليه حذف کول کوم چې د دې مقام نه علاوه په بل ځاې کې ثابت نه دي.

**جواب**: (۱) دا جواب غلط دي ځکه چې حذف د اذا مع الجملة شائع کثير لا تعد ولا تحصى دي. خصوصا د فاء تفريعيه په مقام باندې مثلا فهند يجوز صرفه د دې نه مخکې اذا کان الامر کذالک محذوف دي.

(۲) دکان ناقصه نه دکان تامه طرف ته عدول کول ځکه چې ظاهر دا دي چې کان ناقصه دي ځکه چې قائما منصوب دي او هغه دکان خبر دي.

**جواب**: دلته کان تامه دي ناقصه نه شي کيدي ځکه چې د کان ناقصه خبر معرفه اونکره دواړه کيدي شي حالانکه دلته قائما نکره ده دې لره معرفه راوړل جائز نه دي ثابته شوه چې کان تامه دي ناقصه نه شي کيدلي.

(۳) حال دظرف قائمقام کول چې د دې په کلام دعربو کې کوم مثال نشته.

**جواب**: حال لره د ظرف قائمقام کول مشهور او معروف دي چې په حال کې هم دظرفيت معنى شته لهذا دعلامه رضي رَحِمَهُ اللَّهُ دري واړه اعتراضونه غلط دي، علامه رضي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې اولى دا دې چې داسې وويلې شي چې د دې اصل ضربي زيدا يلابسه قائما دي که چيرته قائما دمفعول نه حال واقع وي اوکه دفاعل نه حال واقع وي نو په اصل کې ضربي زيدا يلابسني قائما دي بيا ضمير مفعول کوم چې ذوالحال دي هغه لره مو حذف کړه نو ضربي زيدا

**يلابس قائما** تري جوړ شو

<u>**وحذف**</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: دلته ذوالحال حذف کېږي مثال يې لکه **الذي ضربت قائما زيد** ددې اصل **الذي ضربته قائما زيد** دی په دې کې ه ضمير ذوالحال دي کوم چې حذف شو ددې په حذف باندې قرينه **الذي** دي ځکه چې د جملې په صله کې د عائد موجود کيدل ضروري دي ددې نه وروستو **يلابس** دي کوم چې مبتدا خبر او په حال کې عامل دي دې لره حذف کړي شو او حال لره ددې قائمقام شو نو **ضربي زيدا قائما** جوړ شو .

<u>**كما تقول راشدا مهديا**</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د حال د عامل د حذف کولو نظير او مثال پيش کوي ددې مثال **راشدا مهديا** دي ددې اصل **سرا راشدا مهديا** دی سر په حال کې عامل دي دې لره مو حذف کړو او حال لره مو ددې قائمقام جوړ کړو نو **راشدا مهديا** جوړ شو دغه شان **يلابس** چې په حال کې عامل دي دې لره حذف کړې شو او حال لره ددې قائمقام جوړ شو

**تبصره**: دشيخ رضي رَحِمَهُ اللّٰهُ تقديرهم د تکليف نه خالي نه دي ځکه چې د **يلابس** تقدير معهود او معروف نه دي همدارنګې مولانا وسيم ګل باسولي وايي چې اګر چې دبصرينو په تفسير او تشريح کې تکلفات دي او د شيخ رضی رَحِمَهُ اللّٰهُ په تقرير کې يو تکلف دي ليکن دا تکلف واحد دومره خطرناک دي چې په درې واړو باندې وزني دي . هغه دادې چې په عامل محذوف کې اصل دادې چې هغه به د افعال عامه څخه وي او ملابست د افعال خاصو څخه دي ، لهذا ددې حذف کول مناسب نه دي ، د زيات تفصيل دپاره تاسو وګورئ سوال باسولي ص ۲۵۴ .

**دريم مذهب**: په **قال الكوفيون** سره ددريم مذهب بيان دي دکوفې دنحويانو مذهب دادې چې د **ضربي زيدا قائما** اصل ضربي زيدا قائما حاصل دي داقائما دمبتدا د متغلقاتونه جوړوي يعنې د قائما تعلق دخبر محذوف سره نه دی لکه په اول او دوهم مذهب کې تير شوې دي بلکې د **قائما** تعلق د ضرب مصدر سره دي کوم چې په ترکيب کې مبتدا واقع دي او ددې نه پس ددې خبر په وجوبي طور باندې محذوف دي کوم چې حاصل دي .

<u>**يلزمهم**</u>: په دې سره علامه جامي رَحِمَهُ اللّٰهُ دکوفي دنحويانو په مذهب باندې رد کوي په دوه وجهو سره:

**اوله وجه:** په دې صورت کې خبر لره په غیر قائمقام محذوف کیدل لازم راځي ځکه چې قائماً د مبتدا د متعلقاتو څخه دي او کوم څیز چې د مبتدا د متعلقاتو څخه وي هغه د خبر قائمقام نه شي جوړ بدلې

**دوهمه وجه:** په دې صورت کې مبتدا لره مقید کول لازم راځي ځکه چې حال د خپل فاعل قید جوړیدي شي حالانکه په مبتدا کې مقصود عموم وي په دې باندې دلیل دادې چې اهل عرب په داسې موقع باندې مبتدا په عموم کې استعمالوي

**څلورم مذهب:** په ذهب الا خفش عبارت سره غرض د شارح بیان د څلورم مذهب دي د علامه اخفش مذهب دادې چې حال لره چې د کوم خبر قائمقام جوړ شوي دي هغه حاصل نه دي بلکه مصدر دي چې مضاف دي ذوالحال طرف ته او ضربی زیدا قائما په اصل کې ضربی زیدا ضربه قائما وو په دې کې قائما حال دي د ه ضمیر نه بیا ضربه چې قائما کې عامل دي دې لره مو حذف کړو او قائما لره مو د دې قائمقام جوړ کړو ، اودا خفش دلیل دادې چې په دې کې قلت د حذف دي .

لیکن دا مذهب هم د ضعف نه خالي نه دي ځکه چې عامل د مصدر ضعیف دي اوکله چې ضعیف عامل حذف شي نو عمل نه شي کولې.

**پنځم مذهب:** ذهب بعضهم: په دې عبارت سره غرض د شارح د پنځم مذهب بیان دي د بعضې نحویانو لکه علامه درستویه : د علامه ابن پاشا مذهب دادې چې دا داسې مبتدا ده چې د دې هیڅ خبر نشته لکه څنګه چې په مبتدا قسم ثاني کې د مبتدا خبر نه وي همدا رنګې دا دفعل په معنی کې دي ضربي زیدا قائما داد ما اضرب زیدا الا قائما په معنی کې دي

## د خبر د حذف وجوبي دريم مقام :

| وَ ثَالِثُهَا كُلُّ مُبْتَدَإٍ اِشْتَمَلَ خَبَرُهُ عَلَى مَعْنَى الْمُقَارَنَةِ وَ عُطِفَ عَلَيْهِ شَيْءٌ |
|---|
| اودريم هرهغه مبتدا چې شامل وي خبر د دې په معنی د مقارنت او عطف شوې وي په دې باندې بل څیز په هغه |
| بِالْوَاوِ الَّتِيْ بِمَعْنَى مَعَ وَذٰلِكَ مِثْلُ كُلُّ رَجُلٍ وَضَيْعَتُهٗ اَيْ كُلُّ رَجُلٍ مَقْرُوْنٌ مَعَ ضَيْعَتِهٖ فَهٰذَا الْخَبَرُ وَاجِبٌ حَذْفُهٗ |
| واو سره چې په معنی د مع سره وي لکه كل رجل وضيعته اى كل رجل مقرون مع ضيعته پس دا خبر واجب دي حذف |
| لِاَنَّ الْوَاوَ يَدُلُّ عَلَى الْخَبَرِ الَّذِيْ هُوَ مَقْرُوْنٌ وَ اُقِيْمَ الْمَعْطُوْفُ فِيْ مَوْضِعِهٖ. |
| کول د دې ځکه چې واو دلالت کوي په خبر باندې چې مقرون دي او معطوف لره د دې قائمقام جوړ شو |

**خلاصه دمتن**: كُلُّ رَجُلٍ وَضَيْعَتَهُ د خبر د حذف وجوبي دريم مثال صاحب دكافيې پيش كړي دي چې په دې سره يوې قاعدې طرف ته اشاره ده چې د هغې تفصيل په شرحه كې مذكور دي

**اغراض دجامي** : كُلُّ رَجُلٍ وَضَيْعَتَهُ: د حذف وجوبي دريم مثال صاحب دكافيې پيش كړي دي چې په دې سره يوې قاعدې طرف ته اشاره ده شارح دې قاعدې لره صراحتا بيانوي هر هغه مبتدا چې د دې خبر په مقارنت باندې مشتمل وي او په دې باندې يوڅيز په ذريعې د معنى د مع سره عطف وي د داسې مبتدا خبر حذف كول واجب دي مثال **كل رجل وضيعته** د دې اصل كل رجل مقرون مع ضيعته دي په دې كې د مبتدا خبر مقرون دې كوم چې د مقارنت په معنى باندې مشتمل دي او واؤ په ذريعې دمعنى دمع په ضيعته باندې عطف دي لهذا د دې خبر حذف كول واجب دي څكه چې د دې په حذف باندې قرينه هم موجود ده اوقائمقام يې هم موجود دي . قرينه پرې داده چې واو په معنى دمع سره دي څكه چې معيت په مقارنت باندې دلالت كوي او قائمقام معطوف ضيعته دي

## د خبر د حذف وجوبي څلورم مقام :

| |
|---|
| وَرَابِعُهَا كُلُّ مُبْتَدَإٍ يَكُوْنُ مُقْسَماً بِهِ وَخَبَرُهُ الْقَسَمُ وَذٰلِكَ مِثْلُ لَعَمْرُكَ لَأَفْعَلَنَّ كَذَا اَىْ لَعَمْرُكَ وَبَقَاؤُكَ قَسَمِىْ |
| اوڅلورم هر هغه مبتدا چې مقسم به وي او خبر د دې قسم وي لكه لَعَمْرُكَ لَأَفْعَلَنَّ كَذَا يعني لَعَمْرُكَ وَبَقَاؤُكَ قَسَمِىْ |
| اَىْ مَا اُقْسِمُ بِهِ فَلَا شَكَّ اَنَّ لَعَمْرُكَ يَدُلُّ عَلَى الْقَسَمِ الْمَحْذُوْفِ وَ جَوَابُ الْقَسَمِ قَائِمٌ |
| يعني مَا اُقْسِمُ بِهٖ پس هيڅ شك نشته چې لَعَمْرُكَ دلالت كوي په قسم محذوف باندې او جواب قسم د دې قائم |
| مَقَامَهُ فَيَجِبُ حَذْفُهُ وَ الْعَمْرُ وَ الْعُمْرُ بِمَعْنًى وَاحِدٍ وَ لَا يُسْتَعْمَلُ مَعَ اللَّامِ اِلَّا الْمَفْتُوْحُ |
| مقام د دې دي پس واجب دي حذف كول د دې اوعَمر اوعُمر په يو معنى دي اونه استعماليږي دلام سره مگر مفتوح |
| لِاَنَّ الْقَسَمَ مَوْضِعُ التَّخْفِيْفِ لِكَثْرَةِ اِسْتِعْمَالِهٖ. |
| څكه چې قسم د تخفيف ځاى دي د كثرت استعمال دوجې نه . |

**خلاصه دمتن**: په دې مقام كې صاحب دكافيې د خبر دحذف وجوبي څلورم مثال پيش كړو چې هغه لَعَمْرُكَ لَأَفْعَلَنَّ كَذَا دي چې په دې سره يوې قاعدې طرف ته اشاره ده چې تفصيل يې لاندې په شرحه كې ذكر كيږي .

**اغراض دجامي** : ورابعها: څلورم مثال بيانوي چې د دې نه يوه قاعده اوضابطه معلوميږي چې هر هغه مبتدا چې مقسم به وي او د دې خبر لفظ قسم وي نو په دې كې حذف دخبر واجب

دي مثال لَعَمْرُكَ لَاَفْعَلَنَّ كَذَا دا په اصل كې لعمرک قسمي لافعلن كذا خبر قسمي په وجوبي طور باندې حذف دي ددې په حذف باندې قرينه هم موجود ده او قائمقام هم موجود دي ، قرينه پرې لام د قسم دي ځكه چې لام قسم په قسم باندې دلالت كوي او د جواب قسم قائمقام دي ددې وجې نه د خبر حذف كول واجب دي .

اى لعمرک وبقاؤک: په دې عبارت سره شارح دا بيانوي چې عَمْرو په فتحې سره په معنى د بقاء ده

اى ما اقسم به: په دې عبارت سره غرض د شارح ديو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : كله چې عَمْرو په فتحې سره په معنى د بقاء سره وي نو خبر محذوف قسمي په دې باندې حمل كول صحيح نه دي ځكه چې بقاء د مخاطب صفت دي او قسم د متكلم فعل دي .

**جواب** : قسمي په معنى د ما اقسم به كې دي لهذا حمل يې صحيح كيږي .

والعَمر والعُمر: په دې عبارت سره غرض د شارح ديو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : عَمرو په فتحې سره او عُمرو په ضمې سره ددې دواړو په مينځ كې ترادف دي ياتغائر ؟ كه ترادف وي نو د عمر بالفتح تخصيص يې ولې وكړو ؟

**جواب** : ان كې ترادف دي باقى عمرو بالفتح تخصيص يې ددې وجې نه وكړو چې په لام قسم سره عمرو بالفتح مستعمليږي ځكه چې قسم د كثرت استعمال د وجې نه موضع تخفيف دي او تخفيف تقاضا د فتحې كوي .

## ﴿خَبَرُ اِنَّ وَاَخَوَاتِهَا﴾ :

## د انَّ د خبر تعريف :

| خَبَرُ اِنَّ وَاَخَوَاتِهَا اَىْ مِنَ الْمَرْفُوْعَاتِ خَبَرُ اِنَّ وَ اَخَوَاتِهَا اَىْ اَشْبَاهِهَا مِنَ الْحُرُوْفِ الْخَمْسِ الْبَاقِيَةِ |
|---|
| خبر دان او داخواتو دې د مرفوعاتو څخه دي خبر دانّ او ددې داخواتو يعني د اشباهو ددې د حروفو خمسو باقيونه |
| وَ هِيَ اَنَّ وَ كَاَنَّ وَ لٰكِنَّ وَ لَيْتَ وَ لَعَلَّ وَ هُوَ مَرْفُوْعٌ بِهٰذِهِ الْحُرُوْفِ لَا بِالْاِبْتِدَاءِ عَلَى |
| دي او هغه ان .كان .لكن .ليت .لعل دي او دا مرفوع وي ددې حروفو په وجه نه دابتدائيت په وجه په مذهب |
| الْمَذْهَبِ الْاَصَحِّ لِاَنَّهَا لَمَّا شَابَهَتِ الْفِعْلَ الْمُتَعَدِّيَ كَمَا يَجِيْءُ عَمِلَتْ رَفْعاً وَ نَصْباً مِثْلَهُ هُوَ |
| صحيح باندې ځكه چې كله دا د فعل متعدي سره مشابه وى لكه چې راروان دي نو عمل به كوي د رفعې او د |

أَيْ خَبَرُ اِنَّ وَ اَخَوَاتِهَا الْمُسْنَدُ اِلٰى شَيْءٍ اٰخَرَ بَعْدَ دُخُوْلِ اَحَدِ هٰذِهِ الْحُرُوْفِ عَلَيْهِمَا

نصب په شان دذې يعني خبردان اوداخواتوچې مسندوي بل خيزته پس ددخول ديوددې حروفونه په دې دواړو

فَقَوْلُهُ الْمُسْنَدُ شَامِلٌ لِخَبَرِ كَانَ وَ خَبَرِ الْمُبْتَدَاءِ وَ خَبَرِ لَا الَّتِيْ لِنَفْيِ الْجِنْسِ وَ

باندې پس دده داقول المسند داشامل دې دخبردكان اوخبردمبتدااوخبردهغه لاچې دنفي دجنس دپاره وي او

غَيْرِهَا وَ بِقَوْلِهِ بَعْدَ دُخُوْلِ هٰذِهِ الْحُرُوْفِ خَرَجَ جَمِيْعُهَا عَنْهُ وَ الْمُرَادُ

غيرددې نه اوپه دې قول سره چې بعد دخول هذه الحروف نو په دې سره ترې خارج شو ټول ددې نه اومراد په

بِدُخُوْلِ هٰذِهِ الْحُرُوْفِ عَلَيْهِمَا وُرُوْدُهَا عَلَيْهِمَا لِاِيْرَاثِ اَثَرٍ فِيْهِمَا لَفْظاً اَوْ مَعْنًى

دخول ددې حروفو سره په دې باندې ورودددې په دې دواړوباندې دپاره دپيداكولواثرپه دې كې لفظااومعنا

فَلَا يَنْتَقِضُ التَّعْرِيْفُ بِمِثْلِ يَقُوْمُ فِيْ قَوْلِنَا اِنَّ زَيْداً يَقُوْمُ اَبُوْهُ فَاِنَّ يَقُوْمُ هٰهُنَا مِنْ حَيْثُ اِسْنَادِهِ اِلٰى

نونه ماتيږي تعريف په دې يقوم سره زمونږپه قول ان زيدا يقوم ابوه كې خكه چې يقوم دلته په اعتبارد مسند

اَبُوْ لَيْسَ مِمَّا يَدْخُلُ عَلَيْهِ اِنَّ بِهٰذَا الْمَعْنٰى بَلْ اِنَّمَا دَخَلَ عَلٰى جُمْلَةِ يَقُوْمُ اَبُوْهُ

ابوطرف ته نه دې ددې نه چې داخل وي په دې باندې ان په دې معنى سره بلكه داداخليږي په جملې ديقوم ابوه

فَلَا يَحْتَاجُ اِلٰى اَنْ يُجَابَ عَنْهُ بِاَنَّ الْمُرَادَ بِالْمُسْنَدِ الْمُسْنَدُ اِلٰى اِسْمِ هٰذِهِ الْحُرُوْفِ

سره نواحتياج نه لري دې ته چې جواب وركړي شي ددې نه چې مراد په المسندچې مسندوي داسم ددې حروفوته

وَ يَلْزَمُ مِنْهُ اسْتِدْرَاكُ قَوْلِهٖ بَعْدَ دُخُوْلِ هٰذِهِ الْحُرُوْفِ وَلَا اِلٰى اَنْ يُجَابَ بِاَنَّ الْمُرَادَ بِالْمُسْنَدِ

اولازم دې ددې نه استدراک اوده داقول چې بعددخول هذه الحروف اونه داچې جواب وركړي چې مراد په مسند

الْاِسْمُ الْمُسْنَدُ فَيَحْتَاجُ اِلٰى تَاْوِيْلِ الْجُمْلَةِ بِالْاِسْمِ حَيْثُ يَكُوْنُ خَبَرُهَا جُمْلَةً مِثْلُ

سره اسم مسند دې نومحتاج به شي تاويل دجملې په اسم پورې په داسې شان سره چې خبرددې به جمله وي لكه

اِنَّ زَيْداً يَقُوْمُ مِثْلُ قَائِمٌ فِيْ اِنَّ زَيْداً قَائِمٌ فَاِنَّهُ الْمُسْنَدُ بَعْدَ دُخُوْلِ هٰذِهِ الْحُرُوْفِ.

ان زيدا يقوم، په مثل دقائم په ان زيدا قائم كې نودامسند دې پس ددخول ددې حروفونه.

**خلاصه دمتن**: دمبتدا اوخبر دبحث نه دفارغيدو نه پس اوس نور مرفوعات بيانوي د مرفوعاتو څخه يو ان اوددې داخواتو خبر دې بيا مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې تعريف وكړو چې ان او ددې د اخواتو خبر اصطلاحي تعريف دادې چې هغه ددې حروفو د داخليدو نه پس مسند وي.

**اغراض دجامي** : اى من المرفوعات: په دې عبارت سره غرض دشارح دابيانوي چې خبر دان واخواتها مبتدادې ددې خبرمحذوف دې چې من المرفوعات دې دا په اصل كې من المرفوعات خبر ان واخواتها دې.

اى اشباهها: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: د اخوات اضافت ضمير ان طرف ته صحيح نه دي ځکه چې د اخواتو معنى ده خويندې يعني ( خورياني ) ځکه چې ددې استعمال په ذوي العقول کې کيږي ان وغيره خو غير ذوي العقول دي ؟

**جواب**: د اخوات معنى اشباه ده دقبيل ذکر دملزوم اواراده ترې لازم نه دي ځکه چې اخ لره مشابهت لازم دي

من الحروف: په دې کې داخوات مصداق متعينوي چې دان نه مراد باقي پنځه حروف دي

وهي ان: نه باقي پنځه حروفو مصداق متعين کړو چې دحروف خمسو باقيو نه مراد ان ،کان، ليت ، لکن ، لعل دي

وهو المرفوع: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: دمبتدا دخبر نه پس دان وغيره خبر ذکر کول مستدرک اوبې فائدې دي ځکه چې ان وغيره صرف په خپل اسم کې عمل کوي په خبر کې عمل نه کوي دان خبر لکه څنګه چې په ان داخليدو نه مخکې د عامل معنوي د وجې نه مرفوع وو ددې د داخليدو نه پس هم دا عامل (ابتداء) دوجې نه مرفوع دي نه دان دحروفو دوجې نه لهذا دمبتدا خبر نه دوباره خبر د ان واخواتها ويل تکرار دي .

**جواب**: زمونږ کلام دبصرې دنحويانو دمذهب مطابق دي ، اودبصرې دنحويانو په نزد ان وغيره خبر ددې حروفو دوجې نه مرفوع دي نه دعامل معنوي ( دابتداء) دوجې نه لهذا دمبتدا دخبر نه پس ددې ذکر مستدرک اوبې فائدې نه شو اودامذهب اصح دي ځکه چې ان اوددې نظائر دفعل متعدي مشابه دي لفظا اومعناً . لفظاددې وجې نه چې لکه څنګه فعل متعدي ثلاثي اورباعي وي همدارنګې ددوې نه بعضې (انّ، انّ ليت ) ثلاثي دي اوبعضې ( کانّ ، لکنّ ، لعلّ ) رباعي دي اومعنا ددې وجې نه چې په دې کې دفعل معنى موندل کيږي لکه ان اوان په معنى دحققت اوکان په معنى دشبهت اولکن په معنى د استدرکت ،اولعل په معنى دترجيت ، او ليت په معنى دتمنيت کې دي چې کله داحروف لفظاًاومعنى دفعل متعدي مشابه وي نوددې عمل هم فعل متعدي والا ته يې ورکړو اوفعل متعدي په دوه اسمونو کې عمل کوي : (١) فاعل

(۲) مفعول ، نوداحروف هم په دوه اسمونو کې عمل کوي ،بیادفعل متعدي دوه عملونه دي (۱) عمل اصلي (۲) عمل فرعي ، عمل اصلي دادې چې فاعل مرفوع مخکې او منصوب وروسته ، اوعمل فرعي دادې چې منصوب مقدم مرفوع فاعل مؤخر چونکه حروف مشبه بالفعل دفعل متعدي فرعه ده ځکه دې فعل متعدي ته یې عمل فرعي ورکړو نولهذا ددې اول اسم منصوب اودویم به مرفوع وي

احد: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : ان وغیره دخبر تعریف جامع نه دي ځکه چې دا په ان زیدا قائم کې په قائم باندې صادق نه راځي ځکه چې داپه ټولوحروفو باندې دداخلیدونه پس مسند نه وي بلکې دحرف د ان د داخلیدو نه پس مسند وي حالانکه د بعد دخول هذه الحروف نه معلومیږي چې ان اوداخواتها خبر هغه دي چې ددې ټولو حروفو د داخلیدو نه پس مسند وي حالانکه داخلاف واقع اوبدیهي البطلان وي .

**جواب** : دخول مضاف دي ددې مضاف الیه محذوف دي چې احد دي داپه اصل کې وو بعد دخول احد هذه الحروف اوس داتعریف په ان زیدا قائم کې په قائم باندې صادق راځي ځکه چې داپه دې کې په یو حرف باندې دداخلیدو نه پس مسند وي .

علیها: په دې سره غرض دشارح ددخول دصلې بیان دي .

فقوله المسند: په عبارت سره غرض دشارح دفوائدو اودقیوداتو بیان دي چې په تعریف کې المسند په منزلې دجنس دي کوم چې دمبتدا خبردکان خبراو لاي نفي جنس غیر دټولو خبر ته شامل دي اوبعد هذه الحروف داپه منزله دفصل دي ددې نه ان اوددې نظائر خبر نه غیر باقي ټول خبرونه ترې خارج شول .

والمراد بدخول: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** :دان وغیره خبر تعریف ددخول دغیر نه مانع نه دي ځکه چې دا ان زیدا یقوم ابوه کې فقط په یقوم باندې صادق راځي ځکه چې دا ان دداخلیدونه وروستو ابوه طرف ته مسند دي حالانکه صرف یواځې یقوم دان خبر نه دي بلکه دان خبر یقوم ابوه پوره جمله ده شارح جامي ددې سوال دري جوابونه ورکوي :

**جواب (۱)**: د دخول نه مراد د دې حروف په مسند او مسند الیه باندې داسې وارد یدل چې په هغې کې اثر لفظي او اثر معنوي پیدا کړي ، داثر معنوي مطلب دادې چې دامسند لره علی وجه التحقیق مسند الیه دپاره ثابت کړي اوس په ان زیدا یقوم ابوه کې په یقوم باندې دان دخول په دې معنی سره متحقق نه دې ځکه چې دلته په یقوم کې نه خو څه اثر لفظي ظاهر شو اونه اثر معنوی ظاهر شو اثر لفظي داوو چې یقوم د ان د داخلیدو نه وروستو مرفوع وې حالانکه یقوم دان د داخلیدو دوجې نه مرفوع نه شو او اثر معنوي داوو چې ان یقوم لره د زید دپاره علی وجه التحقیق ثابتولې شي حالانکه دلته زید دپاره قیام علی وجه التحقیق ثابت نه دې بلکه قیام د ابوه دپاره ثابت دې لهذا ان زیدا یقوم ابوه سره اعتراض نه وارد یږي البته دلته یقوم ابوه مجموعه باندې دان دخول په دې معنی سره متحقق دې ځکه چې د ان په یقوم ابوه کې اثر لفظي هم دې اواثر معنوي هم دې اثر لفظي خو ځکه دې چې یقوم ابوه دان داخلیدو نه وروستو مرفوع شوي دې او اثر معنوي خو ځکه دې چې قیام اوس د زید د پاره علی وجه التحقیق ثابت دې .

فلایحتاج: په دې عبارت سره غرض دشارح دمذکوره اعتراض دوه (۲) جوابونه نقل کول اوپه هغوي باندې رد کول دي .

**جواب (۲)**: بعضې نحویانو داجواب ورکړي دې چې دمسندنه مراد مسند الی اسماء هذه الحروف دي نو اوس داتعریف په ان زیدا یقوم ابوه کې په یقوم باندې صادق نه راځي ځکه چې په دې کې یقوم د ان نه اسم طرف ته مسند نه دې بلکه ابوه طرف ته مسند دې .

**رد جواب (۲)**: شارح دې جواب لره رد کړي دې ځکه چې که چیرته مسند نه مراد مسند الی اسماء هذه الحروف وي نو بعد دخول هذه الحروف والاعبارت به مستدرک اوبې فائدې وي ځکه چې په دې صورت کې د المسند دقید نه دکان اومبتدا وغیره خبر به خارج شي اود دې قید هیڅ ضرورت به باقي پاتې نه شي .

**جواب (۳)**: بعضې حضراتو مذکوره اعتراض ته داجواب ورکړي دې چې په تعریف کې دمسند نه مراد اسم مسند دې لهذا داتعریف په یقوم باندې صادق نه راځي ځکه چې هغه فعل مسند دې اسم مسند نه دې نو لهذا په دې سره نقض نه وارد یږي .

**رد جواب(۳)**: شارح دې جواب لره هم رد کړي دی چې دا جواب تام نه دی ځکه چې بعضي وخنونو کې د ان خبر جمله وي مثال لکه ان زیدا یقوم دلته ان خبر یقوم دی کوم چې جمله ده که مسند نه مراد اسم مسند وي نو د جملې په صورت کې به جملې لره د اسم په تاویل کې کول پکار وي

**قائم في**: په دې عبارت سره غرض د شارح دادې چې خبر د ان زیدا قائم مجموعه نه ده بلکه فقط قائم خبر دی

**فانه المسند**: په دې عبارت سره غرض د شارح مثال د ممثل له سره تطبیق کول دي چې په دې کې قائم خبر دی ځکه چې هغه د دې حروفو نه یو حرف یعنې د ان د داخلیدو نه وروستو مسند دی.

## د انّ د خبر احکامات:

| |
|---|
| وَ اَمْرُهُ کَاَمْرِ خَبَرِ الْمُبْتَدَاِ اَیْ حُکْمُهُ کَحُکْمِ خَبَرِ الْمُبْتَدَاِ فِيْ اَقْسَامِهِ مِنْ کَوْنِهِ |
| او امر د دې په شان د امر د خبر د مبتدا دی یعنې حکم د دې په شان د حکم د خبر د مبتدا دی په اقسامو کې د کیدو د دې |
| مُفْرَداً وَ جُمْلَةً وَ نَکِرَةً وَ فِيْ اَحْکَامِهِ مِنْ کَوْنِهِ وَاحِداً وَ مُتَعَدِّداً وَ مُثْبَتاً وَ مَحْذُوْفاً وَ فِيْ |
| نه مفرد او جمله او نکره او معرفه او د هغه په احکامو کې د دې کیدو نه واحد او متعدد او مثبت او محذوف او د دې په |
| شَرَائِطِهِ مِنْ اَنَّهُ اِذَا کَانَ جُمْلَةً فَلَا بُدَّ مِنْ عَائِدٍ وَلَا یُحْذَفُ اِلَّا اِذَا عُلِمَ |
| شرائطو کې دي چې کله هغه جمله وي نو د عائد کیدل ضروري دي او حذف به نه شي کولې مګر کله چې معلوم |
| وَ الْمُرَادُ اَنَّ اَمْرَهُ کَاَمْرِهِ بَعْدَ اَنْ یَصِحَّ کَوْنُهُ خَبَراً بِوُجُوْدِ شَرَائِطِهِ وَ انْتِفَاءِ مَوَانِعِهِ |
| وي او مراد دادې چې د دې امر په شان د امر د ان دي چې صحیح وي کیدل د دې خبر په وجود د شرائطو او د منفي کیدو د |
| وَ لَا یَلْزِمُ مِنْ ذٰلِکَ اَنَّ کُلُّ مَا یَصِحُّ اَنْ یَکُوْنَ خَبَراً لِلْمُبْتَدَاِ یَصِحُّ اَنْ یَقَعَ خَبَراً |
| او لازم نه راځي د دې نه چې هر هغه څیز چې صحیح وي کیدل د دې خبر د پاره د مبتدا نو صحیح دي چې دا واقع شي خبر |
| لِبَابِ اِنَّ حَتّٰی یَرِدَ اَنَّهُ یَجُوْزُ اَنْ یُقَالَ اَیْنَ زَیْدٌ وَ مَنْ اَبُوْکَ وَ لَا |
| د پاره د باب د ان تر دې پورې چې اعتراض وارد شي چې جائز دي چې وویلې شي چې این زید او من ابوک او نه دي |
| یَجُوْزُ اَنْ یُقَالَ اِنَّ اَیْنَ زَیْداً وَ اِنَّ مَنْ اَبَاکَ اِلَّا فِيْ تَقْدِیْمِهِ اَیْ لَیْسَ اَمْرُهُ کَاَمْرِ |
| جائز چې وویلې شي ان این زیدا او ان من اباک مګر د دې په مقدم کولو کې یعنې نشته امر د دې په شان د امر د |
| خَبَرِ الْمُبْتَدَاِ فِيْ تَقْدِیْمِهِ فَاِنَّهُ لَا یَجُوْزُ تَقْدِیْمُهُ عَلَی الْاِسْمِ وَ قَدْ جَازَ تَقْدِیْمُ الْخَبَرِ |
| خبر او مبتدا په تقدیم د دې کې ځکه چې نه دي جائز تقدیم د دې په اسم باندې او په تحقیق سره جائز دي تقدیم د خبر |
| عَلَی الْمُبْتَدَاِ وَ ذٰلِکَ لِاَنَّ هٰذِهِ الْحُرُوْفَ فُرُوْعٌ عَلَی الْفِعْلِ فِي الْعَمَلِ فَاُرِیْدَ اَنْ یَکُوْنَ عَمَلُهَا |
| په مبتدا باندې او دا د دې وجې نه چې دا حروف دا فروع دي په فعل باندې په عمل کې نو اراده کړې چې عمل د دې |

| |
|---|
| فَرْعِيًّا اَيْضاً وَ الْعَمَلُ الْفَرْعِيُّ لِلْفِعْلِ اَنْ يَّتَقَدَّمَ الْمَنْصُوْبُ عَلَى الْمَرْفُوْعِ وَ الْاَصْلِيُّ اَنْ |
| فرعه وي همدارنګې او عمل فرعي د پاره دفعل چې منصوب مقدم وي په مرفوع باندې او عمل اصلي دادې چې |
| يَّتَقَدَّمَ الْمَرْفُوْعُ عَلَى الْمَنْصُوْبِ فَلَمَّا اُعْمِلَتِ الْعَمَلَ الْفَرْعِيَّ لَمْ يُتَصَرَّفْ فِيْ |
| مخکې وي مرفوع په منصوب باندې پس کله چې دې ته عملي فرعي ورکړې شونو تصرف به نه شي کولې په دغه |
| مَعْمُوْلَيْهَا بِتَقْدِيْمِ ثَانِيْهِمَا عَلَى الْاَوَّلِ كَمَا يُتَصَرَّفُ فِيْ مَعْمُوْلَيِ الْفِعْلِ |
| دوه معمولو کې په تقديم ددويم سره په اول باندې لکه څنګه چې تصرف کولې شي په دواړو معمولو دفعل کې د |
| لِنُقْصَانِهَا عَنْ دَرَجَةِ الْفِعْلِ اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ الْخَبَرُ ظَرْفًا اَيْ لَيْسَ اَمْرُهٗ كَاَمْرِ خَبَرِ الْمُبْتَدَا فِيْ تَقْدِيْمِهٖ |
| وجې دنقصان د درجې دفعل نه مګر چې وي خبر ظرف يعنې چې نه وي امر ددې په شان دامر دخبر او مبتدا په تقديم |
| اِلَّا اِذَا كَانَ ظَرْفًا فَاِنَّهٗ حُكْمُهٗ اِذَا حُكْمُهٗ فِيْ جَوَازِ التَّقْدِيْمِ اِذَا كَانَ |
| ددې مګر چې کله دا ظرف وي پس بې شک دهغه حکم هغه وخت کې حکم دې مقدم کېدو په جائز کېدو کې چې کله |
| الْاِسْمُ مَعْرِفَةً نَحْوُ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اِنَّ اِلَيْنَا اِيَابَهُمْ وَ فِيْ وُجُوْبِهٖ اِذَا كَانَ الْاِسْمُ نَكِرَةً |
| اسم معرفه وي مثال لکه دالله تعالى داقول اِنَّ اِلَيْنَا اِيَابَهُمْ او هغه لره واجب کېدو کې چې کله اسم نکره وي |
| نَحْوُ اِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْراً وَ اِنَّ مِنَ الشِّعْرِ لَحِكْمَةً وَ ذٰلِكَ لِتَوَسُّعِهِمْ فِي الظُّرُوْفِ |
| لکه اِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْراً وَاِنَّ مِنَ الشِّعْرِ لَحِكْمَةً او دا په وجې دهغه دوسعت په کېدو سره په ظروف کې او په |
| مَا لَا يُتَوَسَّعُ فِيْ غَيْرِهَا. |
| غير ظروف کې وسعت نه شي کېدې. |

**خلاصه دمتن:** غرض دصاحب دکافيې ددې ځاې نه خبر د ان حکم بيانول دي چې د ان وغيره دخبر حکم دمبتدا دخبر دحکم په شان دي خو بياهم ددې نه باب تقديم مستثنى دي يعني همداسې خو ان وغيره دخبر حکم دمبتدا دحکم خبر دحکم په شان دي ليکن يو فرق په کې شته دي چې دمبتدا دخبر تقديم په مبتدا باندې جائز دي او ان وغيره خبر دتقديم دهغې په اسماء باندې جائز نه دي مګر چې کله ان وغيره خبر ظرف وي نو باب تقديم يعنې (يعنى مقدم کېدو په صورت کې) هم ان وغيره خبر حکم مبتدا دخبر دحکم په شان دي يعني بيا تقديم دخبر هم جائز دي .

**اغراض دجامي:** اى حكمه كحكم: په دې عبارت سره غرض دشارح دامر دمعنى بيانول دي چې د امر معنى حکم دي يعني د ان وغيره دخبر حکم مبتدا دخبر دحکم په شان دي .

**في اقسامه**: د دې ځاې نه وجه د مشابهت بیانوي ، وجه د مشابهت د احکامو او شرائطو په اقسامو کې د خبر د مبتدا د حکم په شان دي مطلب دادې چې څنګه خبر د مبتدا مفرد وي جمله وي معرفه وي نکره وي د په شان کیدو مطلب دادې چې څنګه د مبتدا خبر یو وي متعدد وي محذوف وي مثبت وي هـ... رنګې د ان وغیره خبر کله یو وي متعدد وي محذوف وي ، مثبت وي او په شرائطو کې د هغه په شان کیدو مطلب دادې چې څنګه د مبتدا خبر که چیرته جمله وي نو په هغې عائد کیدل شرط دي اودې عائد لره حذف کول هم جائز دي کله چې قرینه موجود وي د غه شان د ان وغیره خبر چې کله جمله وي نو د هغې عائد کیدل شرط دي کوم چې هغه اسماء طرف ته راجع وي هغه لره حذف هم جائز دي ځکه چې په دې باندې څه قرینه موجودوي وغیره وغیره .

**والمراد**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : مونږ داخبره نه منو چې ان وغیره خبر حکم دمبتدا دخبر دحکم په شان وي ځکه چې این او من داخو دمبتدا دپاره خبر جوړیدي شي مثال لکه این زید من ابوک لیکن د ان وغیره خبر نشي جوړیدي داسې ویل جائز نه دي چې ان این زیدان من اباک ځکه چې ان تحقیق دپاره راځي او این او من د استفهام دپاره راځي په دې دواړو کې منافات دي .

**جواب** : د دې نه مراد دادې چې د ان وغیره خبر حکم دخبر دمبتدا په شان هله وي چې دمخکې نه هغه لره خبرجوړول صحیح خو وي دې لره اکثر خبر جوړول صحیح نه دي دموانعو دوجې نه اودشرائطو د نه موندلو دوجې نه نودهغه حکم دمبتدا دخبر په شان نه دي د دې نه دانه لازمیږي چې هر هغه لفظ چې دهغې مبتدا دخبر جوړول صحیح وي هغه د ان وغیره خبر جوړیدل صحیح دي لهذا اوس د این او من سره نقص نه واردیږي .

**اي لیس امره**: په دې عبارت سره غرض دشارح حاصل داستثناء بیانول دي چې په باب دتقدیم کې ان وغیره خبر دحکم دمبتدا دخبر په شان نه دي ځکه چې تقدیم دخبر په مبتدا باندې جائز دي اود ان وغیره خبر تقدیم په هغه اسماء باندې جائز نه دي .

**وذلک**: په دې عبارت سره غرض دشارح د ان وغیره دتقدیم دخبر دعدم جواز وجه بیانوي چې حاصل یې دادې چې داحروف په عمل کې دفعل فرع دي لهذا مناسب داده چې دې لره د فعل عمل فرعي ورکړې شي اودفعل عمل فرعي دادې چې منصوب دمرفوع نه مقدم وي اوعیمل

اصلي دادې چې مرفوع د منصوب نه مقدم وي كله چې هغه لره دفعل عمل فرعي وركړې شو نو دهغې دواړو معمولينو نه په اول باندې ثاني نه شي مقدم كولې ورنه دهغه عمل به باطل شي لكه څنګه چې دفعل دواړو معمولينو څخه اول باندې ثاني لره مقدم كيږي ځكه چې ددغې حروفو درجه دفعل نه كمه ده.

الخبر: په دې عبارت سره غرض دشارح يكون دضمير مرجع متعين كول دي چې دضمير مرجع الخبر ده

اى ليس امره: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي

**سوال**: دمصنف په عبارت كې دحرف عطف نه بغير ديومستثنى منه نه دوه استثنالازم راځي (۱) الا في تقديمه ، (۲) الا ان يكون ظرفاً ، حالانكه دا ناجائز دي.

**جواب**: الا ان يكون ظرفا دمستثنى منه اول نه استثنى نه ده بلكه دمستثنى منه اول مستثنى نه استثناء ده مقصد دعبارت دادې چې په باب دتقديم كې ان وغيره دخبر حكم مبتدا دخبر حكم په شان نه دي مګر كله چې ان وغيره خبر ظرف وي نوباب تقديم يعنې تقديم په صورت كې ان وغيره خبر حكم دمبتدا دخبر په شان دي يعنې لكه څنګه چې مبتدا معرفه وي نو خبر دتقديم دظرف جائز دي مثال في الدار زيد دغه شان كله ان وغيره اسم معرفه وي نودهغې خبر ظرف لره په اسم باندې مقدم كول جائز دي مثال ان الينا ايابهم ، اوكه مبتدا نكره وي نوخبر ظرف لره په مبتدا باندې واجب دي مثال في الدار رجل دغه شان كله چې ان وغيره اسم نكره وي نو خبر ظرف لره د اسم نه مخكې كول واجب دي مثال لكه ان من البيان لسحرا ، ان من الشعر لحكمة.

وذلك لتوسعهم: ددې ځاې نه داستثناء ثاني علت بيانوي چې لكه ان وغيره خبر ظرف وي نوبيا په باب دتقديم كې د ان وغيره خبر حكم مبتدا دخبر دحكم په شان ددې رجې نه دي چې ظروف كې هغه توسع وي كوم چې په غير ظروف كې نه وي مشهوره ضابطه اوقاعده ده چې يتوسع في الظروف مالايتوسع في غيرها.

**وجه دوسعت**: وجه دوسعت داده چې ظرف په منزله دمحارم كې وي ځكه چې هرفعل څه نه څه زمان يا مكان كې ضرور وي برابره خبره ده كه دا مكان يا زمان سره ذكر شي او يانه ځكه

چې په ظرف کې وسعت وي

## د لای نفي جنس د خبر تعریف:

| |
|---|
| خَبَرُ لَا الَّتِي الْكَائِنَةِ لِنَفْيِ الْجِنْسِ اَيْ لِنَفْيِ صِفَتِهِ اِذْ لَا رَجُلَ قَائِمٌ مَثَلاً لِنَفْيِ الْقِيَامِ |
| خبر د هغه چې کائن وي د پاره د نفي د جنس یعنې د پاره د نفي د صفت خکه چې لا رجل قائم مثلاً د پاره د قیام د نفي |
| عَنِ الرَّجُلِ لَا لِنَفْيِ الرَّجُلِ نَفْسِهٖ هُوَ الْمُسْنَدُ اِلٰى شَيْءٍ اٰخَرَ هٰذَا شَامِلٌ لِخَبَرِ الْمُبْتَدَا وَخَبَرِ اِنَّ وَ |
| دي د رجل نه نه د نفي د نفس رجل چې د امسند وي یو بل څیز طرف ته او دا شامل دي د پاره د خبر د مبتدا او د خبر د ان او د |
| كَانَ وَغَيْرِهَا بَعْدَ دُخُوْلِهَا اَيْ بَعْدَ دُخُوْلِ لَا فَخَرَجَ بِهٖ سَائِرُ الْاَخْبَارِ وَ الْمُرَادُ |
| کان وغیره نه دې دا خلیدو نه وروستو یعنې لا د داخلیدو نه پس نو خارجیږي په دې سره باقي خبرونه او مراد په |
| بِدُخُوْلِهَا مَا عَرَفْتَ فِيْ خَبَرِ اِنَّ فَلَا يَرِدُ نَحْوُ يَضْرِبُ فِيْ لَا رَجُلَ يَضْرِبُ اَبُوْهُ |
| دخول د دې سره هغه دي چې تا پیژندلي دي په خبر د ان کې پس نه وارد یږي په مثل د یضرب لا رجل یضرب ابوه کې |
| نَحْوُ لَا غُلَامَ رَجُلٍ ظَرِيْفٌ وَ اِنَّمَا عَدَلَ عَنِ الْمِثَالِ الْمَشْهُوْرِ وَ هُوَ قَوْلُهُمْ لَا رَجُلَ فِيْ |
| مثال لا غلام رجل ظریف او مصنف د مثال مشهور نه عدول کړي دي او هغه د ده دا قول دي چې لا رجل في الدار د وجې |
| الدَّارِ لِاِحْتِمَالِ حَذْفِ الْخَبَرِ وَ جَعْلِ فِي الدَّارِ صِفَتَهٗ بِخِلَافِ مَا ذَكَرَهٗ |
| د احتمال د حذف د خبر او ګرځولې په في الدار سره صفت د دې په خلاف د هغه مثال سره چې هغه یې ذکر کړي دي |
| لِاَنَّ غُلَامَ رَجُلٍ مُعْرَبٌ مَنْصُوْبٌ لَا يَجُوْزُ اِرْتِفَاعُ صِفَتِهٖ عَلٰى مَا هُوَ الظَّاهِرُ فِيْهَا |
| خکه چې غلام رجل معرب منصوب دي د دې صفت مرفوع کیدل لکه څنګه چې ظاهر دي او جائز نه دي په دې کې |
| اَيْ فِي الدَّارِ خَبَرٌ بَعْدَ خَبَرٍ لَا ظَرْفُ ظَرِيْفٍ وَلَا حَالٌ لِاَنَّ الظَّرَافَةَ لَا يَتَقَيَّدُ بِالظَّرْفِ |
| یعنې في الدار کې دا خبر دي پس د خبر نه نه ظرف د ظریف نه او نه د حال نه خکه چې ظرافت نه مقید کیږي په ظرف سره |
| وَ نَحْوِهٖ وَ اِنَّمَا اَتٰى بِهٖ لِئَلَّا يَلْزَمَ الْكِذْبُ بِنَفْيِ ظَرَافَةِ كُلِّ غُلَامِ رَجُلٍ وَ |
| او په مثل د دې او راتګ کړي دي مصنف په دې سره چې لازم نه شي کذب د انسان په نفي د ظرافت د هر غلام سره او |
| لِيَكُوْنَ مِثَالاً لِنَوْعَيْ خَبَرِهَا الظَّرْفِ وَ غَيْرِهٖ وَ يُحْذَفُ خَبَرُ لَا هٰذِهٖ حَذْفًا كَثِيْرًا اِذَا كَانَ |
| د دې د پاره چې شي مثال د پاره د خبر د دواړو صورتونه ظرف او غیر ظرف ته او حذف کیږي خبر د لا زیات کله چې |
| الْخَبَرُ عَامًّا كَالْمَوْجُوْدِ وَالْحَاصِلِ لِدَلَالَةِ النَّفْيِ عَلَيْهِ نَحْوُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَيْ لَا اِلٰهَ مَوْجُوْدٌ اِلَّا اللّٰهُ. |
| خبر عام وي لکه موجود او حاصل د پاره د دلالت د نفي په دې باندې لکه لا اله الا الله ای لا اله موجود الا الله. |

**خلاصه د متن:** د مرفوعاتو نه د لای نفي جنس د خبر تعریف کوي چې د لای نفي جنس خبر هغه دي چې د لا د داخلیدو نه وروستو یو بل څیز طرف ته مسند وي مثال لکه لا غلام رجل

ظریف فیهاً

**اغراض دجامي** : **ویحذف**: په دې عبارت سره شارح دابیانوي چې دلای نفي جنس خبر اکثر محذوف وي

**الکائنة**: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې دا **لنفي الجنس** دظرف مستقر **الکائنة** محذوف متعلق دي .

**ای لنفي صفته**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : **لا رجل قائم** کې لا نه جنس رجل نفي نه ده بلکه رجل نه صفت دقیام نفي ده نولای نفي جنس ویل څنګه صحیح شول ؟

**جواب** : دمصنف په عبارت کې **لنفي** مضاف دي ددې مضاف الیه محذوف دي چې صفت دي اصل کې دا داسې وو چې **لنفي صفة الجنس** .

**الی شئ آخر**: په دې عبارت سره شارح د **المسند** دصلی بیان کوي .

**هذا شامل**: په دې عبارت سره شارح اشاره کړې ده چې **المسند** په منزله دجنس دي خبر دمبتدا ان وغیره خبر تولو ته شامل دي .

**ای بعد دخول لا**: په دې عبارت سره شارح په **دخولها** کې د **ها** ضمیر مرجع بیانوي .

**فخرج به**: دا په منزله دفصل دي په دې سره ترې د لای نفي جنس دخبر نه غیر تول خبرونه خارج شول .

**والمراد**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستا داتعریف مانع نه دي دا په **لارجل یضرب ابوه** کې په **یضرب** باندې صادق راځي ځکه چې د لا داخلیدو نه وروستو **مسند الی الشيء** وي اوهغه شي **ابوه** دي حالانکه فقط **یضرب** دهغه خبر نه دي بلکه خبر خو **یضرب ابوه** پوره جمله ده .

**جواب** : ددې جواب بعینه هغه دي کوم چې په مخکې باب کې تیر شو ، اوددخول نه مراد دادې چې لای نفي جنس مسند او مسندالیه باندې وارد وي په دې کې داثر لفظي اوداثر معنوي دپیداکولودپاره اثر لفظي دادې چې مسند الیه منصوب اومسند مرفوع وي اواثر معنوی دادې چې مسند دمسندالیه نه نفي وکړي اودلته یضرب باندې د لادخول په دې معنی

متحقق نه دي ځکه چې دلته نه اثر لفظي دي او نه اثر معنوي اثر لفظي داوو چې ديضرب لا. ددخول نه پس مرفوع دي حالانکه دامرفوع نه دي اواثر معنوي ځکه نشته چې رجل نه دضرب نفي کيده حالانکه رجل نه د ضرب نفي نه ده بلکه يضرب ابوه د مجموعې نه نفي کيږي لهذا په دې سره نقض نه وارديږي ، او د يضرب ابوه په مجوعې باندې د لا دخول په دې معنی سره متحقق دي اثر لفظي په دې شان چې يضرب ابوه د لا داخليدو نه پس په محل درفع کې دي اواثر معنوي په دې شان چې رجل نه د ضرب اوس نفي وشوه .

<u>وانما عدل</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مضنف دمثال مشهور لا رجل في الدار نه عدول ولې وکړو ؟ حالانکه دا مثال مختصر وو په نسبت سره مثال مذکور لاغلام رجل ظريف فيها چې په دې کې طوالت دي .

**جواب** : مصنف دمثال مشهور نه ځکه عدول وکړو ځکه چې په دې کې دا احتمال هم دي چې د في الدار رجل صفت وي اوخبر محذوف وي نو په دې وخت کې د مقصود نه حاصليدو په خلاف دمصنف مثال چې په دې کې دا احتمال نشته دي ځکه چې غلام رجل معرب منصوب دي او ظريف مرفوع دي او ظاهره خبره ده چې مرفوع دمنصوب صفت نشي جوړيدي .

<u>على ما هو الظاهر</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمصنف په مثال کې هم احتمال دي چې ظريف دغلام رجل صفت وي د دې په محل باندې محمول شي ځکه چې رجل اگرکه لفظا منصوب دي ليکن محلا مرفوع دي ځکه چې په حقيقت کې مبتدا دي .

**جواب** : شارح په على ما هو الظاهر سره جواب ورکوي چې دا احتمال خلاف ظاهر اومرجوح دي راجح داده چې دا خبر دي .

<u>فيها اى في الدار</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح د ها دضمير مرجع متعين کول دي چې في الدار دي .

<u>خبر بعد خبر</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دفيها په ترکيب کې دوه احتمالات دي ياخوظرف دي دظريف دپاره يادظريف ضمير دفاعل نه حال دي اودا دواړه احتمالات صحيح نه دي ځکه چې په دواړو صورتونو کې ظرافت

د ظرف سره مقید کیدل لازم راځي حالانکه ظرافت د ظرف دار سره نه شي مقید کیدي ځکه چې کوم غلام په دار کې ظریف دي هغه د دار نه خارج هم ظریف دي

**جواب** : فیها نه ظرف دي او نه حال دي بلکه داد لا خبر ثاني دي

وانما اتی: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مثال خو لا غلام رجل ظریف باندې ختمیږي مصنف د دې نه وروستو د فیها اضافه ولې وکړه حالانکه دې د مثال سره څه تعلق نشته دي ؟

**جواب** : شارح د دې سوال دوه جوابونه ورکړي دي :

**جواب ( ۱ )** : اول جواب دادې چې مصنف د فیها اضافه د دې وجې نه وکړه چې کذب لازم نه شي ځکه چې غلام رجل نکره تحت النفي واقع ده او قاعده داده چې کله نکره تحت النفي واقع وي نو د عموم فائده ورکوي که چیرته فیها لره یې نه وي ذکر کړې نو معنی به یې داسې وي چې د هیڅ سړي څه غلام ظریف نه دي حالانکه دا دروغ دي ځکه چې ډیرو خلکو ډیر غلام ظریف وي .

**جواب ( ۲ )** : مصنف ظریف نه پس فیها د دې وجې نه ذکر کړه چې تنبیه یې وکړه چې دلای نفي جنس خبر په دوه قسمه دي : (۱) ظرف . (۲) غیر ظرف . اول مثال د ظرف او دویم مثال د غیر ظرف .

ویحذف خبرُ لا: په دې سره غرض د شارح دیحذف د ضمیر مرجع متعین کوي چې مرجع یې خبرُ لا دي .

هذه: په دې سره مشبه بلیس خارجوي ځکه چې د دې خبر اکثر محذوف نه وي .

حذفاً: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : کثیرا د یحذف مفعول مطلق دي حالانکه د مفعول مطلق شرط دادې چې هغه د فعل سابق مصدر وي او کثیراً د یحذف مصدر نه دي نو مفعول مطلق جوړول صحیح نه دي .

**جواب** : په حذفاً سره جواب ورکوي چې کثیراً صفت وي د موصوف محذوفه د حذفاً د پاره چې هغه مفعول مطلق دي د یحذف ، نو بیا څه اشکال وارد نه شو .

اذا کان الخبر عاماً: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د مصنف د عبارت نه معلوميږي چې دلای نفي جنس خبر اکثر محذوف وي على الاطلاق برابره خبره ده که دافعالو عامو څخه وي يا دافعال خاصو څخه وي حالانکه دا سې نه ده بلکه دلای نفي جنس خبر حذف کثير په هغه وخت کې وي چې کله دافعال عامه څخه وي

**جواب** : شارح دجامي داذاکان الخبر عاماً سره جواب ورکوي چې د لای نفي جنس خبر په هغه وخت کې اکثر محذوف وي چې کله هغه دافعال عامه څخه وي

لدلالة : په دې کې دحکم مذکور دوجې بيان دي دلای نفي جنس خبر کثير الحذف کيدل ددې وجې نه دي چې په دې باندې نفي دلالت کوي ځکه چې نفي تقاضا کوي دمنفي اوکله چې منفي خاص باندې څه قرينه موجود نه وي نو نفي راجع وي منفي عام طرف ته اومنفي عام چې کله په لفظونو مذکورنه وي نودا به قرينه وي چې هغه محذوف وي مثال لکه لا اله الا الله په دې کې د لا خبر محذوف دي چې موجود دي اصل کې داسې وو لا اله موجود الا الله

## په لای نفي جنس کې دنحويانو اختلاف :

| وَ بَنُوْتَمِيْمٍ لَا يُثْبِتُوْنَهُ اَیْ لَا يُظْهِرُوْنَ الْخَبَرَ فِي اللَّفْظِ لِاَنَّ الْحَذْفَ عِنْدَهُمْ وَاجِبٌ اَوِ الْمُرَادُ |
|---|
| اوبنوتميم دانه ثابتوي يعني نه ظاهروي خبرپه لفظ کې ځکه چې حذف ددوي په نزدواجب دي يامراد دادې چې |
| اَنَّهُمْ لَا يُثْبِتُوْنَهُ اَصْلاً لَا لَفْظاً وَلَا تَقْدِيْراً فَيَقُوْلُوْنَ مَعْنٰى قَوْلِهِمْ لَا اَهْلَ وَلَا مَالَ اِنْتَفَى الْاَهْلُ |
| چې دوي دابالکل نه ثابتوي نه لفظااونه تقديراًپس دوي وايي چې معنى ددې قول لااهل ولامال داده چې انتفى الاهل |
| وَ الْمَالُ فَلَا يَحْتَاجُ اِلٰى تَقْدِيْرِ خَبَرٍ وَ عَلَى التَّقْدِيْرَيْنِ يَحْمِلُوْنَ مَا يُرٰى خَبَراً فِيْ مِثْلِ |
| والمال نونه دي محتاج تقديردخبرته اوپه دواړوتقديرونوباندې حمل کوي هغه چې خبر معلوميږي په دې مثل |
| لَا رَجُلَ قَآئِمٌ عَلَى الصِّفَةِ دُوْنَ الْخَبَرِ. |
| کې چې لا رجل قائم دا حمل کوي په صفت باندې نه په خبر باندې. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان داختلاف دبنو تميم دي کوم چې دلای نفي جنس په باره کې راغلي دي چې بنو تميم دا لای نفي جنس دسره بالکل عامل نه مني .

**اغراض دجامي** : بنوتميم لايثبتونه اى لايظهرون : مصنف ددې عبارت په معنى کې دوه احتماله بيانوي شارح ددې وضاحت کوي . (۱) لايظهرون نه داولې معنى بيان دي چې بنو تميم د لای نفي جنس خبر لره په لفظ کې نه ظاهروي ځکه چې ددوي په نزد لای نفي جنس خبر لره حذف کول واجب دي په دې احتمال سره به دا ثابت شي چې بنوتميم د لای نفي جنس خبر لـ

مني ليكن وايي چې هميشه به محذوف وي
او المراد: په دې عبارت سره غرض دشارح ددويمې معنى بيان كوي چې بنو تميم دلاى نفي جنس خبر لره بالكل نه ثابتوي نه لفظاً اونه تقديراً او لا لره په خبر كې بالكل عامل نه مني
فيقولون: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي:
**سوال**: كله چې بنو تميم دلاى نفي جنس دخبر قائل نه دي نو لا اهل ولا مال والاكلام خوبه بې فائدې او لغوه شي اوددې نه به فائده تامه حاصله نه شي.
**جواب**: دهغوئ په نزد د لا اسم بمعنى انتفى دي دلا اهل ولا مال معنى داده چې انتفى الاهلُ والمالُ نو لهذا په دې صورت كې تقدير دخبر طرف ته به احتياج نه وي اوكلام به هم مفيد وي.
وعلى التقديرين: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي:
**سوال**: مذكوره توجيه به په لا اهل ولا مال كې به په كار راشي ليكن لارجل قائم اوددې په شان نور مثالونه چې په هغې كې خبر محذوف نه وي بلكه مذكور وي دهغې په باره كې به هغوي څه وايي؟
**جواب**: هغوي دې لره په خبر باندې نه محمول كوي بلكه داپه صفت باندې محمول كوي مثلاً لا رجل قائم كې په ظاهر چې كوم خبر مذكور دې هغه دلا خبر نه دي بلكه د رجل صفت دي او محل باندې محمول دي اومرفوع وي ځكه چې رجل دلا دوجې نه مبني په فتحې دي اودمبني تابع دهغې دمحل تابع وي.

## د ما و لا مشبهتين بليس د اسم تعريف:

| اِسْمُ مَا وَ لَا الْمُشَبَّهَتَيْنِ بِلَيْسَ فِيْ مَعْنَى النَّفْيِ وَ الدُّخُوْلِ عَلَى الْمُبْتَدَاِ وَ الْخَبَرِ وَ لِهٰذَا |
|---|
| اسم دما ولاچې مشابه وي دليس معنى نفي سره اوپه مبتدا اوخبرباندې داخليدوكې اوددې وجې نه دادهغه په |
| تَعْمَلَانِ عَمَلَهٗ هُوَ الْمُسْنَدُ اِلَيْهِ هٰذَا شَامِلٌ لِلْمُبْتَدَاِ وَلِكُلِّ مُسْنَدٍ اِلَيْهِ بَعْدَ دُخُوْلِهِمَا خَرَجَ بِهٖ |
| شان عمل كوي دامسند اليه دي داشامل دي مبتدا اوهرهغه مسند اليه ته پس دداخليدونه پس خارج شو په دې سره |
| غَيْرُ اِسْمِ مَا وَلَا وَ بِمَا عَرَفْتَ مِنْ مَعْنَى الدُّخُوْلِ لَا يَرِدُ مِثْلُ اَبُوْهُ فِيْ مَا زَيْدٌ اَبُوْهُ قَائِمٌ |
| غير داسم د ما ولانه اوهغه څيز چې تا پيژندلي دې دمعنى ددخول نه اونه وارديږي مثل ابوه ما زيد ابوه قائم كې |
| مِثْلُ مَا زَيْدٌ قَائِمًا وَ لَا رَجُلٌ اَفْضَلَ مِنْكَ وَ اِنَّمَا اَتَى بِالنَّكِرَةِ بَعْدَ لَا لِاَنَّ لَا لَا تَعْمَلُ اِلَّا فِيْ |
| مثال ما زيد قائما ولا رجل افضل منك اوراتګ يې وكړو په نكرې سره وروستو دلانه ځكه چې لاعمل نه كوي مګرپه |

| |
|---|
| النَّكِرَةِ بِخِلَافِ مَا فَإِنَّهَا تَعْمَلُ فِي الْمَعْرِفَةِ هٰذَا لُغَةُ أَهْلِ الْحِجَازِ وَ أَمَّا بَنُو تَمِيْمٍ |
| نکره کې په خلاف د مايې شکه هغه عمل کوي معرفه کې دا داهل حجاز ولغت دي اوهرچې بنوتميم دي نو دوي |
| فَلَا يُثْبِتُوْنَ لَهُمَا الْعَمَلَ وَ يَقُوْلُوْنَ الْاِسْمُ وَ الْخَبَرُ بَعْدَ دُخُوْلِهِمَا مَرْفُوْعَانِ بِالْاِبْتِدَاءِ كَمَا |
| نه ثابتوي دغه دواړو دپاره عمل اووايي چې اسم اوخبر ددې داخليدونه وروستومرفوع وي دابتداء دوجې نه لکه |
| كَانَ قَبْلَ دُخُوْلِهِمَا وَ عَلٰى لُغَةِ أَهْلِ الْحِجَازِ وَرَدَ الْقُرْآنُ نَحْوُ مَا هٰذَا بَشَرًا. |
| څنګه چې وومخکې د دخول ددې دواړو نه اوپه لغت داهل حجاز ونازل شوي دي لکه مثال ما هذا بشراً. |

**خلاصه دمتن**: د مرفوعاتو د اقسامو نه بل قسم د ما ولا المشبهتين بليس اسم دي ددې تعريف دا دې چې ما ولا مشبه بليس هغه اسم دي چې ددې د داخليدو نه وروستو دا مسند اليه وي.

**اغراض دجامي** : في معنى النفي: په دې عبارت سره د ماولا دليس سره د مشابهت وجه بيانوي چې په دې کې وجه د مشابهت معنى دنفي اومبتدا اوخبرباندې داخليدل دي يعنې څنګه چې په ليس کې دنفي معنى موندلې شي اودا په مبتدا اوخبرباندې داخليږي همدغه شان ماولا کې هم نفي والامعنى موندلې شي اوداهم په مبتدا اوپه خبر باندې داخليږي.

ولهذا تعملان: په دې عبارت سره غرض دشارح ثمره د مشابهت بيانوي څکه چې ماولا دليس مشابه دي ددې وجې نه داد ليس والاعمل کوي.

هو المسند اليه: په دې عبارت کې شارح د ماولا مشابه بليس داسم تعريف کوي چې ماولا مشابه بليس دا هغه اسم دي چې ددې نه يو په داخليدو نه وروستو دامسند اليه وي.

هذا: په دې عبارت سره فوائد دقيودو بيان دي چې دمصنف په عبارت کې المسند اليه په منزله دجنس ده کومه چې مبتدا اوهرمسند اليه ته شامل دي.

بعد دخولها: دا په منزله دفصل ده ددې نه ماولانه علاوه باقي ټول اسماء خارج شول.

ولما عرفت: په دې عبارت کې د هغه سوال جواب دي کوم چې په ماقبل کې دوه کرته تير شوي دي چې بعد دخولها نه مراد دادې چې ما ولا اثر لفظي اواثرمعنوي پيدا کړي لهذا ماريدا بوه قائم کې فقط ابوه باندې تعريف نه صادقيږي څکه چې د دخول نه مراد ذکر في الاول يا لحوق في الآخر نه دي بلکه مراد دادې چې هغه به مسند اليه وي اوپه مسند کې اثرلفظي او معنوي دواړه پيدا کړي په صورت معترضه کې داسې نه دي . نوبيا څه اشکال نشته

وانما اتى: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : څه وجه ده چې مصنف چې د لا اسم يې نکره ذکر کړه اود ما اسم يې معرفه ذکر کړه ؟

**جواب** : لا فقط په نکره کې عمل کوي ددې وجې نه د لا اسم يې نکره ذکر کړه په خلاف د ما چې دا معرفه اونکره دواړو کې عمل کوي ځکه چې په مسند اليه کې اصل تعريف دي ددې وجې نه د ما اسم يې معرفه ذکر کړه

وهذا لغة: ددې ځاې نه اختلاف بيانوي چې د ماولا عامل کيدل داهل حجازو په لغت کې دي اوبنوتميم ماولا بالکل عامل نه مني او وايي چې څنګه ماولا اسم اوخبر دهغه داخليدو نه مخکې مرفوع بالابتداء وي همدغه شان ددې داخليدو نه وروستو هم دابتدائيت په بناء باندې مرفوع وي

وعلى لغة اهل الحجاز: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : مصنف داهل حجاز لغت لره ولې اختيار کړو ؟

**جواب** : ځکه چې قرآن مجيد دهغوي په لغت کې نازل شوي دي قرآن مجيد کې ذکر دي :ماهذا بشرا . په دې کې بشراً منصوب دي د ما دوجې نه ، ددې نه معلومه شوه چې ما عامل دي که ما عامل نه وي نو بشرا به منصوب نه وي بلکه مرفوع به وي

## په لا کې د ليس عمل د شاذ کيدو ذکر :

| وَ هُوَ اَیْ عَمَلُ لَیْسَ فِیْ لَا دُوْنَ مَا شَاذٌّ قَلِیْلٌ لِنُقْصَانِ مُشَابَهَةِ لَا بِلَیْسَ لِاَنَّ |
|---|
| اوداىعنې عمل دليس په لا کې نه په ما کې شاذاوقليل دي ځکه چې دلا مشابهت دليس سره کم دي ځکه چې |
| لَیْسَ لِنَفْیِ الْحَالِ وَلَا لَیْسَ کَذٰلِکَ فَاِنَّهٗ لِلنَّفْیِ مُطْلَقاً بِخِلَافِ مَا فَاِنَّهٗ اَیْضًا لِنَفْیِ الْحَالِ |
| ليس دنفي دحال دپاره وي اولادا سې نه دي ليس هغه مطلق نفي دپاره راځي په خلاف د ما چې هغه هم نفي دحال |
| فَیَقْتَصِرُ عَمَلُ لَا عَلٰی مَوْرِدِ السِّمَاعِ نَحْوُ قَوْلِهٖ: |
| دپاره وي پس بندبه وي دلاعمل دسماع په ځاې کې په شان ددې قول |

| مَنْ صَدَّ عَنْ نِيْرَانِهَا | فَاَنَا ابْنُ قَيْسٍ لَا بَرَاحُ |
|---|---|
| چاچې دجنګ اور لرولې دي | نوزه ابن قيس يم اوزمادپاره هيڅ پرواه نشته دي |

| اَیْ لَا بَرَاحُ لِیْ وَ لَا یَجُوْزُ اَنْ تَکُوْنَ لِنَفْیِ الْجِنْسِ لِاَنَّهَا اِذَا کَانَتْ لِنَفْیِ الْجِنْسِ لَا |
|---|
| يعني لا براح لي اوجائزنه دي چې لادنفي جنس دپاره وي ځکه چې هغه لا کله چې نفي دجنس دپاره وي نه دي |

| |
|---|
| يَجُوْزُ فِيْمَا بَعْدَهَا الرَّفْعُ مَا لَمْ يَتَكَرَّرَ وَ لَا تَكْرَارَ فِي الْبَيْتِ اِعْلَمْ اَنَّ الْمُرَادَ بِالْمُسْنَدِ وَالْمُسْنَدِ اِلَيْهِ |
| جائزپه ما بعد دې کې رفع تر څو چې مکرر نه شي او په بيت کې تکرار نشته پوه شه چې مراد د مسند او مسند اليه نه |
| فِي هٰذِهِ التَّعْرِيْفَاتِ مَا يَكُوْنُ مُسْنداً اَوْمُسْنداً اِلَيْهِ بِالْاَصَالَةِلَا بِالتَّبْعِيَّةِ بِقَرِيْنَةِ ذِكْرِ التَّوَابِعِ فِيْمَا بَعْدُ |
| په دې تعريفاتو کې هغه دي چې مسند يا مسند اليه بالاصاله وي نه تبعاً په قرينې د ذکر کولو د توابعو په ما بعد کې |
| فَلَا يَنْتَقِضُ بِالتَّوَابِعِ. |
| نو نه ماتيږي تعريف په توابعو سره |

**خلاصه د متن:** صاحب د کافيې فرمايي چې ليس والا عمل په لا کې شاذ دي ځکه چې د لا د ليس سره مشابهت ناقص دي ، تفصيل يې لاندې په شرحه کې ذکر دي .

**اغراض د جامي :** عملُ ليس: په دې کې ضمير د مرجع متعين کړي دي چې د ضمير مرجع عملُ ليس دي .

دون: په دې کې شارح اشاره کړې ده چې د لا قيد احترازي دي د دې سره احتراز دي د ما نه .

قليل: دا د شاذ معنی تعين کول دي چې دلته د دې معنی قليل الاستعمال دي ځکه چې شاذ په دوو معنو کې استعماليږي : (۱) خلاف قانون .(۲) قليل الاستعمال . نو په قليل سره يې معنی متعين کړه

لنقصان المشابهة : په دې کې د حکم مذکور وجه بيانوي چې د ليس والا عمل په لا کې شاذ دي ځکه چې د لا د ليس سره مشابهت ناقص دي ځکه چې ليس د نفي حال د پاره راځي او لا مطلق نفي د پاره راځي نه د نفي د حال د پاره په خلاف د ما چې د هغې د ليس سره مشابهت اتم دي لکه څنګه چې ليس د نفي د حال د پاره راځي همدا رنګې ما هم د نفي د حال د پاره راځي او هرچې لا د ليس سره مشابهت ناقص دي نو لا هميشه د ليس والا عمل نه کوي بلکه د هغه عمل به په صرف مورد سماع کې بند وي هرځای به بند نه وي لکه د شاعر دا قول چې :

| | |
|---|---|
| مَنْ صَدَّ عَنْ نِيْرَانِهَا | فَاَنَا ابْنُ قَيْسٍ لَا بَرَاحٌ |

په دې کې براح د لا اسم دي د دې خبر محذوف دي چې لي دي په اصل کې دا داسې وو لا براح لي .

ولا يجوز : په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** ممکن ده چې په دې شعر کې لای نفي جنس وي مشبه بليس نه وي لهذا دعوی خو

ثابته نه شوه ؟

**جواب** : لای نفي جنس نه شي کیدي ځکه چې د لای نفي جنس د مابعد مرفوع کیدل په هغه وخت کې جائز دي کله چې د لا تکرار وي او په شعر کې خو د لا تکرار نشته نو ددې نه معلومه شوه چې دا دلای نفي جنس اسم نه دي بلکه لا داد **ما مشبه بلیس** اسم دي .

<u>اعلم ان المراد</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د ان وغیره خبر اودلای نفي جنس خبر **ماولا مشابه بلیس** اسم د هغې تعریف دخول دغیر نه مانع نه دي ځکه دا په هغه توابعو باندې صادق راځي چې هغه هم د هغه داخلیدو نه وروستو مسند مسند الیه وي .

**جواب** : په تعریفاتو کې داسناد نه مراد اسناد بالاصاله دي قرینه پرې داده چې مصنف دتوابع بحث لره دمرفوعاتو اودمنصوباتو نه وروستو مستقلاً ذکر کړي دي ددې نه معلومه شوه چې داسناد نه مراد اسناد بالاصاله دي نه چې بالتبعه لهذا داتعریفات په خپلو توابعو باندې صادق نه راځي .

**سوال** : ماتن اسم مرفوع یعني افعال ناقص اسم لره ذکر نه کړو ددې څه وجه ده ؟

**جواب** : شارح ددې نه دوه (۲) جوابونه ورکړي دي :

**اول جواب** : اول جواب دادې چې ماتن هغه لره لیکلي وو لیکن دکاتبینو نه دغلطۍ دوجې نه پاتې شو لیکن دا جواب کمزورې اوضعیف دي .

**دوهم جواب** : دویم جواب دادې چې همدغه **ماولا المشبهتین بلیس** دتعریف په ضمن کې د هغه بیان هم راغلي دي ځکه چې کله **ما** او **لا** عمل دلیس والادي نو دلیس عمل هم د **ماولا** په شان دي نو دلیس اسم مرفوع کیدو ذکر هم ضمناً راغلي دي نو ددې نه معلومه شوه چې دټولو افعالو ناقصه عمل دغه شان دي ځکه یې هغه لره ځان له ذکر نه کړو .

**تمت المرفوعات بحمد الله**

## ﴿اَلْمَنْصُوْبَاتُ﴾:

۞ (۱) مفعول مطلق

۞ (۲) مفعول به

۞ (۳) مفعول فیه

۞ (۴) مفعول معه

۞ (۵) مفعول له

۞ (۶) حال

۞ (۷) تمییز

۞ (۸) مستثنی

۞ (۹) دافعال ناقصو خبر

۞ (۱۰) دحروف مشبه بالفعل اسم

۞ (۱۱) دماولا مشبهتین بلیس خبر

۞ (۱۲) دلاي نفي جنس اسم

## ﴿ اَلْمَنْصُوْبَاتُ ﴾ :

| |
|---|
| وَ لَمَّا فَرَغَ مِنَ الْمَرْفُوْعَاتِ شَرَعَ فِي الْمَنْصُوْبَاتِ وَ قَدَّمَهَا عَلَى الْمَجْرُوْرَاتِ |
| اوكله چي فارغ شو مصنف د مرفوعاتو نه نو شروع يې وكړه په منصوباتو كې او دا يې مقدم كړل په مجروراتو باندې |
| لِكَثْرَتِهَا وَ لِخِفَّةِ النَّصَبِ فَقَالَ الْمَنْصُوْبَاتُ هُوَ مَا اشْتَمَلَ عَلَى عَلَمِ الْمَفْعُوْلِيَّةِ |
| د كثرت او د نصب د خفت د وجې نه پس وويل چي منصوبات دا هغه دي چي مشتمل وي په علامت د مفعوليت باندې |
| قَدْ تَبَيَّنَ شَرْحُهُ بِمَا ذُكِرَ فِي الْمَرْفُوْعَاتِ وَ الْمُرَادُ بِعَلَمِ الْمَفْعُوْلِيَّةِ عَلَامَةُ |
| او په تحقيق سره بيان شوي ده شرحه د دې هغه چي ذكر شوي ده په مرفوعاتو كې او مراد د علامت د مفعوليت نه |
| كَوْنِ الْاِسْمِ مَفْعُوْلاً حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً وَهِيَ اَرْبَعٌ اَلْفَتْحَةُ وَالْكَسْرَةُ وَالْاَلِفُ وَالْيَاءُ نَحْوُ رَاَيْتُ زَيْداً وَ مُسْلِمَاتٍ وَ اَبَاكَ |
| كيدل د اسم مفعول حقيقتاً او يا حكماً او دا څلور دي فتحه او كسره او الف او ياء مثال رأيتُ زيداً و مسلماتٍ او اباكَ |
| وَ مُسْلِمَيْنِ وَ مُسْلِمِيْنَ. |
| وَ مُسْلِمَيْنِ وَ مُسْلِمِيْنَ. |

**خلاصه د متن:** مصنف د مرفوعاتو نه د فارغيدو نه پس اوس په منصوباتو باندې شروع وكړه د ټولو نه مخكې د منصوباتو تعريف يې وكړو چې منصوب هغه اسم دي كوم چې د مفعول په علامت باندې مشتمل وي بيا د علامت د مفعول تشريح كوي چې د مفعول علامت كله حقيقتاً وي او كله حكماً وي او دا دې ټول څلور صورتونه دي :

(۱) نصب به كله د الف سره وي مثال رأيت زيداً

(۲) كله به د كسرې سره وي مثال رأيتُ مسلماتٍ.

(۳) او كله به د الف سره وي مثال رأيتُ اباكَ.

(۴) او كله به د ياء سره وي مثال رأيت مسلمين و مسلمين.

**اغراض د جامي :** ولما فرغ: دا عبارت د مابعد د پاره تمهيد دي چې كله مصنف د مرفوعاتو د بحث نه فارغ شو نو اوس منصوبات شروع كوي :

**سوال :** منصوبات يې په مجروراتو باندې ولې مقدم كړل ؟

**جواب :** د دې نه شارح څلور (۴) جوابات وركړي دي :

**اول جواب :** منصوبات يې ځكه په مجروراتو باندې مقدم كړل چې د منصوباتو تعداد په

نسبت سره مجروراتو ته ډیر زیات دي اوضابطه اوقاعده داده چې العزةُ للتكاثر.

**دوهم جواب** : نصب په نسبت سره جَر ته خفیف وي ددې وجې نه یې منصوبات په مجروراتو باندې مقدم کړل.

**دریم جواب** : په منصوباتو کې فعل عامل وي چې په عمل کې اصل دي او په مجروراتو کې حروف عامل دي نو منصوبات په نسبت سره د مجروراتو نه اصل او قوي دي ځکه یې مقدم کړل.

**څلورم جواب** : منصوبات یې ځکه مقدم کړل چې ددې مرفوعاتو سره مناسبت دي په دواړو کې فعل عامل دي ګویا چې دواړه ورونړه دي دواړو دیوې سینې نه پئ څکلي وي اوهغه سینه فعل دي فكانهما اخوان رضيعان من ضرع واحد وهو الفعل.

قد تبين: دعلامه جامي غرض دمنصوباتو دشرحې نه کولو وجه بیانوي چې ددې تشریح د مرفوعاتو په تعریف کې تیره شوي دي مثلاً د هُو ضمیر مرجع منصوب دي کوم چې دالمنصوبات په ضمن کې تیر شوي دي او د اشتمال نه مراد اشتمال الموصوف على الصفة دي عام دي چې لفظاً وي تقدیراً وي اویامحلاً وي المنصوبات دمنصوب جمع ده یادمنصوبة وغیره ددې تفصیل مخکې تیر شوي دي فلا نعيدها ثانياً.

والمراد بعلم المفعولية: په دې کې داوضاحت کوي چې علم په معنی دعلامت سره دي غر یا جنډه نه ده او المفعولية کې یا مصدریه ده مطلب دادې چې منصوب هغه اسم دي کوم چې مفعول کیدو علامت باندې مشتمل وي.

حقيقةً اوحكماً: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : که نصب دمفعول علامت یې نو غیر مفعول حال ،تمیز وغیره کې نصب ولې موندلې شي ؟ حالانکه ضابطه اوقاعده داده چې علامة الشيء ما يوجد فيه ولا يوجد في غيره.

**جواب** : په مفعول کې تعمیم دي برابره خبره ده که حقیقتاً وي لکه مفاعیل خمسه یاحکماً وي لکه حال تمیز وغیره.

وهي اربع: په دې کې علامت دمفعول مصداق بیانوي چې دمفعولیت علامت څلور دي: (۱) فتحه لکه رأيتُ زيداً. (۲) کسره لکه رأيت مسلمات. (۳) الف لکه رأيت اباک. (۴) یاء لکه رأيت

مسلمين و مسلمين .

## د مفعول مطلق تعريف :

| |
|---|
| فَمِنْهُ اَيْ مِنَ الْمَنْصُوْبِ اَوْ مِمَّا اشْتَمَلَ عَلٰى عَلَمِ الْمَفْعُوْلِيَّةِ الْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ |
| نو دي نه يعني د منصوب څخه يا د هغه څه نه چې د مفعوليت په علامت باندې مشتمل وي مفعول مطلق دې |
| سُمِّيَ بِهِ لِصِحَّةِ اِطْلَاقِ صِيْغَةِ الْمَفْعُوْلِ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ تَقْيِيْدٍ بِالْبَاءِ اَوْ فِيْ اَوْ مَعَ اَوِ اللَّامِ |
| دې لره دا نوم ځکه کېښودلې شوچې په دې باندې د مفعول اطلاق په با يا په في يا مع يا لام سره مقيد کېدونه بغير |
| بِخِلَافِ الْمَفَاعِيْلِ الْاَرْبَعَةِ الْبَاقِيَةِ فَاِنَّهُ لَا يَصِحُّ اِطْلَاقُ صِيْغَةِ الْمَفْعُوْلِ عَلَيْهَا اِلَّا بَعْدَ تَقْيِيْدِهَا بِوَاحِدَةٍ مِنْهَا |
| په خلاف د باقي څلورو مفعولو چې دې باندې د مفعول اطلاق هغه قيود و څخه د يو سره مقيد کېدونه وروستو صحيح |
| فَيُقَالُ الْمَفْعُوْلُ بِهٖ اَوْ فِيْهِ اَوْ مَعَهٗ اَوْ لَهٗ وَ هُوَ اَيِ الْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ ( اِسْمُ مَا |
| وي لهذا ويلې شي مفعول به يا مفعول فيه يا مفعول معه يا مفعول له او هغه يعني مفعول مطلق د هغه څيز نوم دې |
| فَعَلَهٗ فَاعِلُ فِعْلٍ ) وَ الْمُرَادُ بِفِعْلِ الْفَاعِلِ اِيَّاهُ قِيَامُهٗ بِهٖ بِحَيْثُ يَصِحُّ اِسْنَادُهٗ |
| کوم لره چې د فاعل فعل کړې وي او فاعل د فعل د کولو نه مراد فعل د فاعل سره قيام دې په داسې شان چې صحيح |
| اِلَيْهِ لَا اَنْ يَّكُوْنَ مُؤَثِّراً فِيْهِ مُوْجِداً اِيَّاهُ فَلَا يَرِدُ عَلَيْهِ مِثْلُ مَاتَ مَوْتاً |
| وي اسناد د فعل فاعل طرف ته نه چې د فعل په فاعل کې مؤثر وي د هغه موجد وي پس دې تعريف باندې مات موتا |
| وَ جَسُمَ جَسَامَةً وَ شَرُفَ شَرَفاً وَ اِنَّمَا زِيْدَ لَفْظُ الْاِسْمِ لِاَنَّ |
| و جسم جسامة و شرف شرفا مثل اعتراض وارد به نه شي او په تحقيق سره زيات کړې شوي دې لفظ اسم ځکه چې |
| مَا فَعَلَهُ الْفَاعِلُ هُوَ الْمَعْنٰى وَالْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ مِنْ اَقْسَامِ اللَّفْظِ وَيَدْخُلُ فِيْهِ الْمَصَادِرُ كُلُّهَا |
| هغه څه چې فاعل کړې وي هغه معنى ده او مفعول مطلق د لفظ اقسام څخه دې او په دې کې ټول مصادر داخليږي |
| مَذْكُوْرٍ صِفَةٌ لِلْفِعْلِ وَهُوَ اَعَمُّ مِنْ اَنْ يَّكُوْنَ مَذْكُوْراً حَقِيْقَةً كَمَا اِذَا كَانَ مَذْكُوْراً بِعَيْنِهٖ نَحْوُ |
| کوم چې مذکور دې او دا د فعل صفت او فعل عام دې حقيقةً مذکور وي څرنګه چې کله هغه بعينه مذکور وي مثال |
| ضَرَبْتُهٗ ضَرْباً اَوْ حُكْماً كَمَا اِذَا كَانَ مُقَدَّراً نَحْوُ فَضَرْبَ الرِّقَابِ اَوْ اِسْماً فِيْهِ مَعْنَى الْفِعْلِ |
| ضربته ضربا يا حکما مذکور وي کله چې مقدر وي مثال فضرب الرقاب يا اسم وي چې په دې کې د فعل معنى موجوده |
| نَحْوُ ضَارِبٌ ضَرْباً وَخَرَجَ بِهِ الْمَصَادِرُ الَّتِيْ لَمْ يُذْكَرْ فِعْلُهَا لَا حَقِيْقَةً وَ لَا حُكْماً نَحْوُ |
| وي مثال ضارب ضربا او د مذکور قيد نه هغه ټول مصادر خارج شول چې د هغې نه حقيقةً مذکور وي او نه حکما مثال |
| اَلضَّرْبُ وَاقِعٌ عَلٰى زَيْدٍ بِمَعْنَاهُ صِفَةٌ ثَانِيَةٌ لِلْفِعْلِ وَ لَيْسَ الْمُرَادُ بِهٖ اَنَّ الْفِعْلَ كَائِنٌ |
| الضرب واقع على زيد او د هغې معنى څخه وي د افعل دويم صفت دې او د دې قيد نه دا مراد نه دې چې فعل کائن وي |

بِمَعْنَى ذٰلِكَ الْاِسْمِ فَاِنَّ مَعْنَى الْاِسْمِ جُزْءُ مَعْنَاهُ بَلِ الْمُرَادُ اَنَّ مَعْنَى الْفِعْلِ مُشْتَمِلٌ
دمعنى ددې اسم پورې خکه معنى داسم دجزء دمعنى ددې دي بلکې مراد دادي چې معنى دفعل مشتمل وي په
عَلَيْهِ اِشْتِمَالَ الْكُلِّ عَلَى الْجُزْءِ فَخَرَجَ بِهٖ مِثْلُ تَادِيْباً فِيْ قَوْلِكَ ضَرَبْتُهٗ
په دې اسم پورې لکه اشتمال دکل په جزء باندې نوخارج شو په دې سره مثال تاديبا په دې قول ستاکې چې ضربته
تَادِيْباً فَاِنَّهٗ وَ اِنْ كَانَ مِمَّا فَعَلَهٗ فَاعِلُ فِعْلٍ مَذْكُوْرٍ لٰكِنَّهٗ لَيْسَ
تاديبا خکه چې بلا شبه تاديبا اګرچې دهغه قبيل څخه دي کوم سره چې فعل مذکور فاعل کړي دي ليکن نه دي
مِمَّا يَشْتَمِلُ عَلَيْهِ مَعْنَى الْفِعْلِ وَ كَذٰلِكَ خَرَجَ بِهٖ مِثْلُ كَرَاهَتِيْ فِيْ
دهغه قبيلې نه چې مشتمل وي په دې باندې معنى دفعل اوهمدارنګې خارجيږي په دې سره دامثال کراهتي په
نَحْوِ كَرِهْتُ كَرَاهَتِيْ فَاِنَّ لِلْكَرَاهَةِ اِعْتِبَارَيْنِ اَحَدُهُمَا كَوْنُهَا بِحَيْثُ قَامَتْ بِفَاعِلِ
په کرهت کراهتي کې خکه چې دکراهت دپاره دوه اعتباره دي يو کيدل دکراهتي په دې شان چې قائم وي په فاعل
الْفِعْلِ الْمَذْكُوْرِ وَاشْتَقَّ مِنْهَا فِعْلٌ اُسْنِدَ اِلَيْهِ وَلَا شَكَّ اَنَّ مَعْنَى الْفِعْلِ
د فعل مذکور پورې اومشتق کيږي ددې نه هغه فعل اسناديې شوي دي طرف ته اوشک نشته چې معنى دفعل
مُشْتَمِلٌ عَلَيْهَا حِيْنَئِذٍ وَ ثَانِيْهِمَا كَوْنُهَا بِحَيْثُ وَقَعَ عَلَيْهَا فِعْلُ الْكَرَاهَةِ
مشتمل وي په دې باندې په دې وخت کې اودويم کيدل ددې په داسې شان چې واقع وي په دې باندې فعل دکراهت
فَاِذَا ذَكَرْتَ بَعْدَ الْفِعْلِ بِاِعْتِبَارِ الْاَوَّلِ كَمَا فِيْ قَوْلِكَ كَرِهْتُ كَرَاهَةً فَهُوَ مَفْعُوْلٌ مُطْلَقٌ وَ اِذَا
هرکله داذکر شو پس دفعل نه په اول اعتبار سره لکه په دې قول ستاکې کرهت کراهة نو دامفعول مطلق دي اوکله
ذَكَرْتَ بَعْدَهٗ بِالْاِعْتِبَارِ الثَّانِيْ كَمَا فِيْ قَوْلِكَ كَرِهْتُ كَرَاهَتِيْ فَهُوَ مَفْعُوْلٌ بِهٖ لَا
چې ذکر شي پس ددې نه په دويم اعتبار سره لکه په دې قول ستاکې چې کرهت کراهتي نو دا مفعول به دي نه
مَفْعُوْلٌ مُطْلَقٌ اِذْ لَيْسَ ذٰلِكَ الْفِعْلُ مُشْتَمِلاً عَلَيْهِ بِهٰذَا الْاِعْتِبَارِ بَلْ هُوَ وَاقِعٌ عَلَيْهِ وُقُوْعَ
مفعول مطلق خکه چې نه دي دافعل مشتمل په دې باندې بلکې داواقع دي په دې باندې په شان دواقع کيدود
الْفِعْلِ عَلَى الْمَفْعُوْلِ فَخَرَجَ بِهٰذَا الْاِعْتِبَارِ عَنِ الْحَدِّ وَانْطَبَقَ الْحَدُّ عَلَى الْمَحْدُوْدِ جَامِعاً وَ مَانِعاً.
فعل په مفعول باندې نوخارج شو په دې اعتبار سره دتعريف نه اومنطبق شو تعريف په معرف باندې جامع اومانع.

**خلاصه دمتن:** ددې ځاې نه صاحب دکافيې دمفعول مطلق تعريف بيانوي چې مفعول مطلق دهغه څيز نوم دي چې کوم لره دفعل مذکور فاعل کړي وي اوهغه فعل مذکور دمفعول مطلق په معنى باندې مشتمل وي.

**اغراض دجامي :** من المنصوب: په دې عبارت سره شارح دجامي د هُوَ ضمير مرجع متعين

کوي چې د دې په مرجع کې دوه احتمالات دي . (۱) المنصوب (۲) ما اشتمل علی علم المفعولیة . اوله مرجع د دوه حیثیتونو څخه راجح ده : (۱) د دواړو ضمیر مرجع متحد ده چې په اول کې هو ما اشتمل کې د ضمیر مرجع منصوب ده نو د هغې مرجع هم کیدل په کار دي .(۲) دا مرجع مقصود بالذات ده او دویمه مرجع د دوه وجهو نه هم راجح ده : (۱) دا مرجع فردي ده . (۲) مرجع صریحي ده ، او منصوب مرجع ضمني ده .

سمي به : د دې ځای نه شارح د مفعول وجه تسمیه بیانوي چې د مفعول مطلق نوم مفعول مطلق د دې وجې نه ایښودلې شوي دي چې په دې باندې د مفعول اطلاق په غیر د څه قید نه کیږي نه د به قید او نه د له قید او نه د معه قید او نه د فیه قید په خلاف د باقي مفاعیلو چې په دې باندې د مفعول اطلاق مفعول لره باء مع یا لام څخه څه د یو سره مقید کیدو نه په غیر صحیح نه دي همدا رنګې ویلې شي مفعول به ، مفعول معه ، مفعول فیه ، مفعول له .

وهو ای المفعول المطلق : په دې عبارت سره غرض د علامه جامي د هُوَ ضمیر مرجع متعین کول دي چې د هُوَ مرجع هغه مفعول مطلق دي .

والمراد بفعل الفاعل ایاه : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د مفعول مطلق تعریف جامع نه دي ځکه چې دا په هغه موتاً ، جسامةً ، شرفاً باندې صادق نه راځي کوم چې مات زید موتاً ، جسم بکر جسامةً ، شرف عمرو شرفاً کې واقع دي ځکه چې دې لره د فعل مذکور فاعل نه دي کړي بلکه دا افعال خو الله تعالی کړي دي حالانکه دا ټول مفعول مطلق دي .

**جواب** : فاعل د مفعول لره د کولو مطلب دا دې چې هغه د فاعل سره قائم وي په دا سې شان سره چې د هغه اسناد د فاعل طرف ته صحیح وي دا مراد نه دي چې فاعل په هغې کې مؤثر او د هغې موجد هم وي او س دا تعریف په هغه موتاً ، جسامةً ، شرفاً باندې صادق راځي کوم چې مات موتاً ، جسم جسامةً ، شرف شرفاً کې واقع دي ځکه چې دا فاعل سره په دې شان دي چې د دې نسبت او اسناد فاعل طرف ته صحیح دي .

وانما زید : په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مصنف د مفعول مطلق په تعريف کې لفظِ اسم اضافه ولې وکړه ؟

**جواب** : که دلفظِ اسم اضافه يې نه کولې نو عبارت به داسې وي چې **هو ما فعله فاعل فعل** اودا صحيح نه دي ځکه چې مفعول مطلق دلفظ داقسامو څخه دي او **ما فعله فاعل فعل** معنی ده او د معنی حمل په لفظ باندې صحيح نه دي نو مصنف دلفظ اسم اضافه وکړه چې حمل يې صحيح شي .

**ويدخل فيه** : په دې عبارت سره غرض دشارح دقيوداتو فوائد بيانوي چې په تعريف کې **ما فعله فاعل فعل** دا جنس دي کوم چې ټولو مصادرو ته شامل دي .

**صفة للفعل** : په دې سره دمذکور ترکيب بيان دي چې **مذکورِ** مجرور دي د **فعلٍ** صفت اول دي .

**وهو اعم** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمفعول مطلق تعريف جامع نه دي ځکه چې دا په هغه **رقاب** باندې صادق نه راځي کوم چې په **فضرب الرقاب** کې واقع دي ځکه چې هغه لره دفعل مذکور فاعل نه دي کړي بلکه فعل غير مذکور فاعل کړي دي حالانکه دامفعول مطلق دي .

**جواب** : په **مذکورِ** کې تعميم دي برابره خبره ده که حقيقتاً مذکور وي ياحکماً دحقيقةً مطلب دادې چې بعينه مذکور وي مثال **ضربته ضرباً** اودحکماً مطلب دادې چې محذوف وي اوس دا تعريف په **فضرب الرقاب** کې په **رقاب** باندې صادق راځي ځکه چې دلته فعل اګرکه حقيقةً مذکور نه دي ليکن حکماً مذکور دي ځکه چې ددې اصل **فاضربوا ضرب الرقاب** دي .

**او اسماً** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمفعول مطلق تعريف جامع نه دي داپه **ضرباً** باندې صحيح نه راځي کوم چې **ضارب ضرباً** کې واقع دي ځکه چې هغه لره دفعل مذکور فاعل نه دي کړي بلکه صيغه دصفت فاعل کړي دي حالانکه دامفعول مطلق دي .

**جواب** : په فعل کې تعميم دي برابره خبره ده که حقيقتاً وي اوکه حکماً وي اويامعناً وي يعنې داسې اسم وي چې په هغې کې دفعل معنی موندلې شي مثال مذکور اګرکه حقيقتاً يا حکماً فعل مذکور نه دي ليکن معنیً مذکور دي ځکه چې صيغه دصفت کې معنی دفعل موندلې شي لهذا داتعريف جامع دي .

خرج به المصادر: په دې عبارت کې دقیوداتو فوائد بیانوي چې مذکور په منزله دفصل اول دې په دې سره هغه ټول مصادر خارج شول چې دهغې فعل مذکور نه وي نه حقیقةً اونه حکما اونه معناً مثال لکه الضرب واقع علی زید کې الضرب مصدر دی .

بمعناه صفة ثانیة للفعل: په دې عبارت سره غرض دعلامه جامي دبمعناه ترکیب بیانول دي چې جار مجرور دمشتمل سره متعلق او دفعل صفت ثاني دی .

ولیس المراد: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : د مفعول مطلق تعریف دده په افرادو کې په یو باندې هم صادق نه راځي ځکه چې په تعریف کې بمعناه لفظ دی چې ددې نه متبادر الی الذهن دادې چې فعل مذکور اومفعول مطلق دواړو معنی یو وي هم معنی اومتحد في المعنی وي حالانکه دفعل اومصدر یوه معنی نه شي کیدلې ځکه چې دمصدر معنی دفعل د معنی جز وي اوفعل کل وي مثال ضربتُ ضرباً کې ضربتُ فعل دی په دې کې مصدر ،زمانه نسبت الی الفاعل دري څیزونه دي . نودا کل اوضرباً مفعول مطلق (حرف مصدر) دهغه جز دی .

**جواب** : دا اعتراض هله واردیږي چې کله دبمعناه با دفي په معنی شي اوافعال عامه څخه دیو سره متعلق وي حالانکه دلته داسې نه دي بلکه باء دعلی په معنی کې ده اوجار مجرور دمشتمل متعلق دي معنی داده چې دفعل مذکور معنی د مفعول معنی باندې داسې مشتمل وي لکه څنګه چې کل په جز باندې مشتمل وي اوپه مفعول مطلق کې هم دفعل معنی، دمفعول مطلق په معنی باندې مشتمل وي لهذا اشکال رفع شو .

فخرج به: په دې عبارت سره غرض دشارح دقیوداتو فوائد بیانول دي چې بمعناه فصل ثاني دي په دې سره هغه تادیباً خارج شو کوم چې په ضربته تادیبا کې واقع دي ځکه هغه اګر که مافعله فاعل فعل مذکور دقبیل څخه دي لیکن دضرب معنی په دې باندې مشتمل نه ده .

وکذلک: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمفعول مطلق تعریف مانع نه دي ځکه چې داپه کراهتي باندې صادق راځي کوم چې کرهت کراهتي کې واقع دي ځکه چې دامافعله فاعل فعل دقبیل څخه دي لیکن دامفعول نه دي بلکه مفعول به دي .

**جواب** : بمعناه قید سره هغه تادیباً خارج شو کوم چې ضربت تادیباً کې واقع دي دغه شان بمعناه دقید سره هغه کراهتي هم خارج شو کوم چې په کرهت کراهتي کې واقع دي خکه چې په کراهت کې دوه اعتباره اودوه حیثیتونه دي (۱) کراهت په دې طور باندې کیدل چې هغه فعل مذکور دفاعل سره قائم دي او فعل ددې نه مشتق دي په دې اعتبار سره چې دفعل مذکور معنی په دې باندې مشتمل وي څنګه چې کل په جز باندې مشتمل وي (۲) کراهت په دې طور سره کیدل چې په دې باندې فعل کراهت واقع وي یعنې بمعنی الشيء المکروه وي کله چې اول اعتبار سره فعل کراهت لره ذکر کړې شي مثال کرهت کراهة نو په دې وخت کې به دامفعول مطلق وي خکه چې په دې باندې دفعل مذکور معنی مشتمل ده کاشتمال الکل علی الجز: اوکله چې دویم اعتبار سره کراهت لره دفعل نه وروستو ذکر کړې شي مثال کرهت کراهتي نودابه مفعول به وي نه چې مفعول مطلق خکه چې فعل په دې باندې مشتمل نه دي بلکه واقع دي لکه څنګه چې په مفعول باندې واقع کیږي نوچې کوم اعتبار سره مفعول به دي هغه اعتبار سره د مفعول مطلق تعریف په ده باندې نه صادقیږي

# د مفعول مطلق احکامات :

| وَ قَدْ يَكُوْنُ الْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ لِلتَّاكِيْدِ اِنْ لَمْ يَكُنْ فِيْ مَفْهُوْمِهٖ زِيَادَةٌ عَلٰى مَا يُفْهَمُ مِنَ |
|---|
| اوکله کله مفعول مطلق دتاکید دپاره وي که چیرته ددې په مفهوم کې زیادت نه وي بناپه هغه څه چې فهمیږي د |
| الْفِعْلِ وَالنَّوْعِ اِنْ دَلَّ عَلٰى بَعْضِ اَنْوَاعِه وَ الْعَدَدِ اِنْ دَلَّ عَلٰى عَدَدِهٖ مِثْلُ جَلَسَ |
| فعل نه اودنوعې نه که دلالت وکړي په بعضې انواعو باندې اوعددي دي که عدد باندې دلالت کوي مثال جلس |
| جُلُوْساً لِلتَّاكِيْدِ وَ جِلْسَةً بِكَسْرِ الْجِيْمِ لِلنَّوْعِ وَ جَلْسَةً بِفَتْحِهَا لِلْعَدَدِ فَالْاَوَّلُ اَىْ |
| جلوسا دپاره دتاکید وجِلسة په کسرې دجیم سره نوع دپاره اوجَلسة په فتحې دجیم سره دعدد دپاره پس اول یعنې |
| الَّذِيْ لِلتَّاكِيْدِ لَا يُثَنّٰى وَ لَا يُجْمَعُ لِاَنَّهٗ دَالٌّ عَلَى الْمَاهِيَةِ الْمُعَرَّاةِ |
| هغه چې دتاکید دپاره وي نه تثینه جوړیدې اونه جمع خکه چې داپه داسې ماهیت باندې دلالت کوي کوم چې خالي |
| عَنِ الدَّلَالَةِ عَلَى التَّعَدُّدِ وَالتَّثْنِيَةُ وَالْجَمْعُ يَسْتَلْزِمَانِ التَّعَدُّدَ فَلَا يُقَالُ جَلَسْتُ جُلُوْسَيْنِ اَوْ جُلُوْسَاتٍ اِلَّا اِذَا |
| وي ددلالت نه په تعدد اوتثنیه اوجمع مستلزم دي تعددلره نونشي ویلي جلست جلوسین یا جلوسات مګر کله چې |
| قُصِدَ بِهِ النَّوْعُ اَوِ الْعَدَدُ بِخِلَافِ اَخَوَيْهِ الَّذَيْنَ هُمَا لِلنَّوْعِ وَ الْعَدَدِ نَحْوُ جَلَسْتُ |
| قصد کړې شي په دې سره نوع اویاعدد په خلاف دهغه ورونوچې هغه دواړه دنوع اوعدد دپاره وي مثال جلست |

| جَلْسَتَيْنِ وَ جِلَسَاتٍ بِكَسْرِ الْجِيْمِ أَوْ فَتْحِهَا . |
|---|
| جلستين(دوه مختلفې ناستې)او جلست جلسات(متعدد دې ناستې)په کسرې دجيم سره يا په فتحې سره . |

**خلاصه دمتن**: صاحب دکافيې دمفعول مطلق اقسام بيانوي چې دمفعول مطلق درې قسمونه دي : (۱) تاکيدي . (۲) نوعي . (۳) عددي (۱) تاکيدي هغه دي چې حرفِ تاکيد دپاره راغلي وي څه نوي معنی په دې کې نه شي موندلې . (۲) نوعي هغه دي چې نوع لره بيانيدو دپاره راغلي وي (۳) عددي هغه دي چې بيانِ عدد دپاره وي .

**اغراض دجامي** : فالاول: په دې عبارت سره صاحب دکافيې تفريع ذکر کوي چې مفعول مطلق قسم اول تثنيه اوجمع راوړلې شي څکه چې محض تاکيد کې تثنيه جمع تصور نه وي او نوع اوعدد کې تثنيه اوجمع راوړولو ضرورت وي .

ان لم يكن: په دې سره غرض دقسم اول اوقسم ثاني قسم ثالث بالمقابل کيدو دصحت بيان دي چې قسم اول مفهوم کې دفعل په مفهوم باندې زيادتي نه کيږي اوقسم ثاني اوثالث کې دفعل په مفهوم باندې زيادتي کيږي همدارنګې مفعول مطلق تاکيدي تعريف اوتعين طرف ته اشاره وکړه چې مفعول مطلق تاکيدي هلته وي چې چيرته دهغه معنی اومفهوم نه فعل دمفهوم دمعنی نه څه زائد څيز پيدا نه شي بلکه دواړو نه يو معنی دمفهوم ذهن نشين شي .

ان دل على بعض انواعه: په دې سره قسم ثاني ، قسم ثالث بالمقابل کيدو بيان دي چې قسم ثاني اوثالث په دې خبره کې مشترک دي چې دهغه مفهوم کې دفعل په مفهوم باندې زيادتي کيږي ليکن قسم ثاني دفعل په بعض انواعو باندې دلالت کوي اوقسم ثالث دفعل بعضې انواعو باندې دلالت نه کوي بلکه عدد محضې باندې دلالت کوي همدارنګې مفعول مطلق نوعي طرف ته يې هم اشاره وکړه چې په فعل دنوع باندې دلالت کوي .

ان دل على عدده: په دې کې قسم ثالث دقسم اول بالمقابل کيدو دصحت بيان دي چې قسم ثالث اوقسم اول په دې خبره کې شريک دي چې ددې په مفهوم کې دفعل بعضې انواعو باندې دلالت نه کيږي ليکن قسم ثالث کې دعدد ذکر کيږي کوم چې قسم اول کې نه کيږي همدارنګې مفعول مطلق عددي تعريف طرف ته اشاره وکړه کوم چې دفعل په تعداد باندې دلالت کوي .

للتاكيد: په دې عبارت سره د ممثل له د تعين بيان دي چې جلستُ جلوساً دا دمفعول مطلق تاکيد مثال دي .

بكسر الجيم : داد ضبط اعراب بيان دي .

للنوع : دممثل له تعين دي چې جلست جلسته دامفعول مطلق نوعي مثال دي .

بفتحها : داد ضبط اعراب بيان دي .

للعدد : دممثل له تعين دي چې جلست جلسة دادمفعول مطلق دعددي مثال دي .

الذي للتاكيد : په دې عبارت سره شارح د اول مصداق متعين کړي دي چې اول نه مراد هغه مفعول مطلق دي کوم چې تاکيد دپاره وي .

لانه دال : په دې کې غرض دشارح دحکم مذکور وجه بيانوي چې قسم اول کوم چې دتاکيد د پاره راځي هغه لره تثنيه اوجمع ځکه نشي راوړلې چې قسم اول په هغه ماهيت باندې دلالت کوي کوم چې د دلالت على التعدد نه خالي وي يعنې نفس ماهيت اونفس مفهوم باندې دلالت کوي اوتثنيه اوجمع تعدد لره مستلزم ده که قسم اول لره تثنيه اوجمع راوړلې شي نواجتماع دنقيضينو لازم راځي .

فلا يقال : په دې سره په ماقبل باندې تفريع ده چې قسم اول لره تثنيه اوجمع راوړل جائز نه دي نوددې وجې نه جلست جلوسين دتثنيې سره يا جلوسات دجمعې سره نه شي ويلې .

الا اذا قصد به : داد قسم اول نه استثناء نه ده ځکه چې کله مفعول مطلق نه عدد يادنوع قصد وشي نوهغه قسم اول نه پاتې کيږي بلکه دا فلايقال نه استثناء ده يعنې جلست جلوسين يا جلست جلوسات نشي ويلې مګر کله چې دې سره دنوع يادعدد اراده وشي نوبيادمقصود مطابق تثنيه اوجمع راوړلې شي .

اللذين هما : په دې سره داخويه مصداق متعين کوي چې داخوين مصداق هغه مفعول مطلق دي چې د بيانِ عدد دپاره وي اوهغه مفعول مطلق کوم چې دبيان نوع دپاره وي هغه لره دمقصود مطابق تثنيه او جمع راوړلې شي مثال جلست جلستين وجلوسات که په کسرې دجيم سره وي نو دنوع دپاره به اوکه په فتحې دجيم سره وي نو عدد دپاره به وي .

| وَ قَدْ يَكُوْنَ الْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ بِغَيْرِ لَفْظِهِ اَىْ مُغَايِراً لِلَفْظِ فِعْلِهِ اِمَّا بِحَسْبِ الْمَادَةِ مِثْل |
|---|
| اوکله کله وي مفعول مطلق په غيردې لفظ نه يعنې دخپل فعل دلحاظ نه مغائراومختلف ياپه اعتباردمادې |
| قَعَدَتُ جُلُوْساً وَ اِمَّا بِحَسْبِ الْبَابِ نَحْوُ اَنْبَتَهُ اللّٰهُ نَبَاتاً وَ سِيْبَوَيْهِ يُقَدِّرُ لَهُ عَامِلاً مِنْ |
| سره لکه مثال قعدت جلوسايا په اعتباردباب سره وي لکه مثال انبت الله نباتااوسيبويه ددې دپاره عامل لره ددې |

بَابِهِ اَیْ قَعَدْتُ وَ جَلَسْتُ جُلُوْساً وَاَنْبَتَهُ اللّٰهُ فَنَبَتَ نَبَاتاً.

باب نه مقدر کوي یعني قعدت وجلست جلوساً او انبت الله فنبت نباتاً

**خلاصه دمتن:** صاحب دکافیې وایي چې کله کله مفعول مطلق په اعتبار دلفظ دفعل مذکور مغائر هم وي بیاهم په اعتبار د معنی مغائرنه وي.

**اغراض دجامي** : المفعول المطلق: په دې سره دیکون ضمیر مرجع متعین کړي ده چې هغه مفعول مطلق دي.

ای مغائراً: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : مثال دممثل له سره مطابق نه دي خکه چې غیر. دون دعلاوه په معنی کې راغي اوس به یې معنی داوي چې کله کله مفعول مطلق دفعل لفظ سوا اوعلاوه یې حالانکه کوم مثال یعني قعدت جلوسا ذکر کړي دي په دې کې مفعول مطلق دفعل لفظ غیر نه دي بلکه دفعل سره مذکور دي.

**جواب** : غیر ددون په معنی کې نه دي بلکه باء زائده ده اوغیر په معنی دمغائر څخه دي اوس به معنی دا وي چې کله کله مفعول مطلق دخپل دلفظ مغائر وي.

اما بحسب المادة: په دې سره دمغایرت دتعمیم بیان دي چې په مغایرت کې تعمیم دي برابره خبره ده که په اعتبار دمادې سره وي اوکه په اعتبار دباب سره وي ،په اعتبار دمادې مثال قعدت جلوساً او په اعتبار دباب مثال انبته الله نباتا چې فعل دباب مزید نه اومفعول مطلق مجرد څخه دي.

وسیبویه: په دې کې داختلاف بیان دي امام سیبویه وایي چې مفعول مطلق اوده‌غه فعل په مینځ کې لفظاً اومعنی اتحاد ضروري دي لکه څنګه چې دمعنی اعتبار سره تغائر جائز نه دي همدغه شان د لفظ اعتبار سره هم تغائر جائز نه دي نه په اعتبار دمادې سره اونه په اعتبار دباب سره ددې وجې نه هغه مذکوره دوو مثالونو کې تاویل کوي اودمفعول مطلق لفظ څخه عامل لره مقدم مني نوداسې وایي چې قعدت جلوساً تقدیري عبارت قعدت وجلست جلوساً دي اودانبته الله نباتاً تقدیري عبارت انبته الله فنبت نباتا دي

لیکن علامه مبرد علامه مازني ، علامه صیرفي تقدیر دفعل نه انکار کوي دوي وایي چې تقدیر داصل خلاف دي.

## د مفعول مطلق فعل حذف جوازي :

| وَ قَدْ يُحْذَفُ الْفِعْلُ النَّاصِبُ لِلْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ جَوَازاً |
|---|
| اوکله کله حذف کولې شي فعل لره مفعول مطلق لره نصب ورکوونکي د قرينې د قيام په وخت کې جوازاً لکه دا |
| كَقَوْلِكَ لِمَنْ قَدِمَ مِنْ سَفَرِهٖ خَيْرَ مَقْدَمٍ اَيْ قَدِمْتَ قُدُوْماً خَيْرَ مَقْدَمٍ فَخَيْرَ |
| قول ستا هغه سړي د پاره کوم چې راغلي وي د خپل سفر نه خير مقدم يعني قدمت قدوما خير مقدم پس خير |
| اِسْمُ تَفْضِيْلٍ وَ مَصْدَرِيَّتُهٗ بِاِعْتِبَارِ الْمَوْصُوْفِ اَوِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ لِاَنَّ اِسْمَ تَفْضِيْلٍ |
| اسم تفضيل دي او دې لره مصدر کيدل خپل موصوف يا مضاف اليه د اعتبار څخه دي ځکه چې د اسم تفضيل د |
| لَهٗ حُكْمُ مَا اُضِيْفَ اِلَيْهِ. |
| پاره حکم د هغه څه دي چې اضافت يې شوي وي دې طرف ته |

**خلاصه دمتن :** صاحب د کافيې وايي چې کله کله د مفعول مطلق فعل ناصب لره په وخت د قيام د قرينې جوازي طورباندې حذف کولې شي مثال هغه سړي چې د سفر نه راواپس شي اوهغه ته وويلې شي چې خير مقدم د دې تقدير عبارت قدمت قدوما خير مقدم دي اول فعل قدمت لره مو حذف کړو بيا مو قدوما حذف کړو او خير مقدم مو د هغه قائمقام جوړ کړو

**اغراض دجامي :** اي المناصب : په دې عبارت سره غرض د شارح د دوو (۲) سوالونو جوابونه ورکول دي :

**اول سوال :** لکه څنګه چې د فعل حذف جائز دي همدغه شان د فعل مشبه حذف هم جائزدي بيا د فعل تخصيص يې ولې وکړو ؟

**جواب :** د فعل نه مراد ناصب مفعول مطلق دي اود افعل اوشبه فعل دواړو ته شامل دي .

**دوهم سوال :** حذف فعل د فعل د احوالو څخه دي اوبحث په مفعول مطلق کې شروع دي لهذا خروج عن المبحث لازم راځي .

**جواب :** د فعل نه مراد هغه فعل دي کوم چې ناصب للمفعول المطلق وي اوکوم فعل مفعول مطلق د پاره ناصب وي هغه د مفعول مطلق د متلعقاتو څخه وي اوديو څيز د متعلقاتو نه بحث کول په اصل کې د هغه څيز نه بحث کول دي لهذا خروج عن المبحث نه راځي .

من سفره : داد قدم د صلې بيان دي

اى قدمت : په دې کې مثال لره په ممثل له منطبق کوي چې خبر مقدم په اصل کې قدمت قدوما خبر مقدم دي اول قدمت فعل لره مو حذف کړو بيا قدوما لره موحذف کړو او خبر مقدم لره د هغې قائمقام مو جوړ کړو .

فخير اسم تفضيل: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مونږ دانه منوچې خير مفعول مطلق دي ځکه چې دمفعول مطلق دوه شرطونه دي .(۱) د فعل سابق معنى په دې باندې وي كاشتمال الكل على الجزء ، دلته قدمت معنى په خير باندې مشتمل نه ده (۲) مفعول مطلق کې شرط دادې چې هغه به مصدر وي او خير مصدر نه دي بلکه اسم تفضيل دي .

**جواب** : خير مفعول مطلق كيدل دموصوف محذوفه داعتبار نه دي چې قدوما دي يا مضاف اليه د اعتبار نه دي ځکه چې اسم تفضيل دمضاف اليه په حکم کې وي.

## دمفعول مطلق فعل حذف وجوبي سماعي :

| |
|---|
| وَ وُجُوْباً اَىْ حَذْفًا وَاجِباً سِمَاعاً اَىْ سِمَاعِيًّا مَوْقُوْفاً عَلَى السِّمَاعِ لَا قَاعِدَةً لَهٗ |
| اووجوباً يعني حذف واجب سماعي يعني سماعي چې موقوف وي په سماع باندې دهغې دپاره څه قاعده نشته |
| يُعْرَفُ بِهَا نَحْوُ سَقْياً اَىْ سَقَاكَ اللهُ سَقْياً وَ رَعْياً اَىْ رَعَاكَ اللهُ رَعْياً وَ خَيْبَةً اَىْ خَابَ خَيْبَةً مِنْ خَابَ |
| دې پيژندلې شي په دې مثال سقيايعني سقاك الله سقيااورعيايعني رعاك الله رعيااوخيبة يعني خاب خيبة داد خاب |
| الرَّجُلُ خَيْبَةً اِذَا لَمْ يَنَلْ مَا طَلَبَ وَ جَدْعاً اَىْ جَدَعَ جَدْعاً |
| الرجل نه ماخوذدي داپه هغه صورت کې دي چې کله يوسړي خپل مطلوب و نه مومي او جدعايعني جدع جدعا |
| وَالْجَدْعُ قَطْعُ الْاَنْفِ وَالْاُذُنِ وَالشَّفَةِ وَالْيَدِ وَحَمْداً اَىْ حَمِدْتُ حَمْداً وَ شُكْراً اَىْ شَكَرْتُ شُكْراً وَ عَجَباً |
| اود جدع معنى پوزه اوغوږاوشونډې اولاس پريکيدل دي اوحمداًيعني حمدتُ حمدااوشكراًيعني شكرت شكراًاوعجبا |
| اَىْ عَجِبْتُ عَجَباً فَاِنَّهٗ لَمْ يُوْجَدْ فِيْ كَلَامِهِمْ اِسْتِعْمَالُ الْاَفْعَالِ الْعَامِلَةِ فِيْ هٰذِهِ الْمَصَادِرِ |
| يعني عجبت عجبا پس بې شکه نه موندل کيږي په کلام دعربو کې استعمال د افعال عاملو په دې مصادرو کې |
| وَ هٰذَا مَعْنٰى وُجُوْبِ الْحَذْفِ سِمَاعاً قِيْلَ عَلَيْهِ قَدْ قَالُوْا حَمِدْتُ اللهَ حَمْداً وَ شَكَرْتُهٗ شُكْرًا وَ |
| اودامعنى دوجوب الحذف سماعا چاپه دې باندې اعتراض کړي چې اهل عرب حمدت الله حمدااو شكرته شكرا او |
| عَجِبْتُ عَجَباً فَاَجَابَ بَعْضُهُمْ بِاَنَّ ذٰلِكَ لَيْسَ مِنْ كَلَامِ الْفُصَحَاءِ اَوْ |
| عجبت عجبانو بعضو جواب ورکړي دې چې د دې عواملو استعمال دفصحاو د کلام څخه نه دي او بعضو ويلي دي |

| بِأَنَّ وُجُوْبَ الْحَذْفِ إِنَّمَا هُوَ فِي مَا اسْتُعْمِلَ بِالَّلامِ نَحْوُ حَمْداً لَهُ وَ شُكْراً لَهُ وَ عَجَباً لَهُ . |
|---|
| چې وجوب حذف په دې کې دې کوم چې په لام سره استعمال وي مثال حمدا له. او شکرا له او عجبا له |

**دمتن خلاصه** : صاحب د کافیې وایي چې کله کله مفعول مطلق فعل ناصب لره وجوبا هم حذف کولې شي بیا دحذف وجوبي دوه قسمونه دي : (۱) سماعي (۲) قیاسي . (۱) دسماعي مطلب دادې چې د حذف وجوبي څه قاعده کلیه نه وي صرف د اهل عربونه اوریدلې شوي وي چې هغه په دې مقام باندې عامل لره حذف کوي (۲) اوقیاسي مطلب دادې چې دحذف وجوبي دپاره قاعده کلیه هم وي په پورتني عبارت کې دحذف سماعي مثالونه هم بیان شوي دي چې تفصیل يې لاندې په شرحه کې راځي .

**اغراض دجامي** : حذفاً واجباً: په دې سره شارح اشاره کوي چې وجوباً دواجباً په معنی کې صفت دي د موصوف محذوفه نه چې حذفاً دي .

اى سماعيا: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : سماعيا داصفت دي دحذفا اودې لره صفت جوړول صحيح دي ځکه چې صفت په موصوف باندې حمل دي اودلته حمل صحيح نه دي ځکه چې حذف سماعي دي نه چې سماع يعني مصدر.

**جواب** : دلته یاء دنسبت محذوف ده په اصل کې سماعيا وو اوس به حمل صحيح شي ځکه چې دياء نسبت لړولو سره دامصدر نه پاتې کیږي بلکه صیغه دصفت په حکم کې به شي .

موقوفا على سماع: په دې کې دسماع دمعنی بیان دي چې ددې معنی ده کوم چې محض په سماع باندې موقوف وي دهغه دپاره څه قاعده کلیه نه وي .

اى سقاك الله سقيا: دادعامل مصدر داظهار طرف ته اشاره ده صرف دتعلیم دپاره ګنې دهغه حذف کول واجب دي ذکرکول جائز نه دي .

اى رعاك الله رعيا اى خاب خيبة اى جدع جدعا: په دې ټولوکې دعامل مقدر طرف ته اشاره ده تعلیماً او تفهیماً .

من خاب: په دې کې لفظ د خيبة دماخذ اشتقاقي بیان دي چې داماخوذ دي دخاب الرجل نه .

اذالم ينل: په دې کې ددې مثال محلِ استعمال بیانوي چې دامثال په هغه وخت کې ویلې شي

چې کله يو سړي خپل مقصود ونه مومي.

**والجدع قطع** : شارح د جدع معنی بيانوي چې د جدع معنی ده پوزه غوږياشونډې پرې کول

**فائده** : دشارح په عبارت کې واو په معنی د او دي ځکه چې د جدع معنی ده چې په هغې کې يو لره پرې کول نه چې ټول پرې کول وي

**فانه لم يوجد** : په دې عبارت سره غرض دشارح په مذکوره مثال کې وجوب دحذف دفعل بيانول دي چې په ذکر شوي مثال کې فعل لره حذف کول ځکه واجب دي چې دا مصادر په کلام دعربو کې د خپلو افعالو عاملو سره نه مستعمليږي او دغه د حذف وجوبي سماعي معنی ده.

**قيل** : په دې سره دشارح غرض ديو اعتراض نقل کول دي او دهغې اعتراض نه دوه (۲) جوابونه ورکول دي.

**اعتراض** : مونږ دانه منو چې دامصادر په کلام دعربو کې دخپل افعال عامله سره نه مستعمليږي بلکه اهل عرب خو يې استعمالوي هغوي دا وايي شکرت شکرا ، وعجبت عجبا . او حمدت الله حمداً .

**جواب** : ددې نه شارح دوه (۲) جوابات ورکړي دي

**اول جواب** : په دې مصادرو سره د افعال عامله ذکر کيدل د فصحاء کلام ځکه نه دي بلکه غير فصحاء کلام کې دي او زمونږ بحث په کلام فصحاء کې دي

**دوهم جواب** : دې افعالو لره حذف کول په هغه وخت کې واجب دي چې کله مصادر دلام سره مستعمل وي مثال جدعا له شکرا له او عجبا له او تاسو چې کوم مثالونه ذکر کړل نو په هغې کې دلام ځکه مستعمل نه دي.

## د مفعول مطلق فعل حذف وجوبي قياسي :

| |
|---|
| وَ قَدْ يُحْذَفُ الْفِعْلُ النَّاصِبُ لِلْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ حَذْفًا وَاجِبًا قِيَاسِيًا يُعْلَمُ لَهٗ |
| او کله کله مفعول مطلق ناصب فعل لره واجبا قياسا حذف کولې شي يعنې حذف قياسي باندې او معلوميږي د دې |
| ضَابِطٌ كُلِّيٌّ يُحْذَفُ مَعَهُ الْفِعْلُ لُزُوْمًا فِيْ مَوَاضِعَ مُتَعَدِّدَةٍ مِنْهَا اَىْ مِنْ هٰذِهِ الْمَوَاضِعِ |
| نه قاعده کليه چې دهغې سره فعل لره لازما حذف کولې شي په متعدد ځايونو کې دهغې نه يعنې ددې ځايونونه |
| مَوْضِعُ مَا وَقَعَ اَىْ مَفْعُوْلٌ مُطْلَقٌ وَقَعَ مُثْبَتًا اُرِيْدَ اِثْبَاتُهٗ لَا نَفْيُهٗ فَاِنَّهٗ لَوْ اُرِيْدَ |
| يو ځاى هغه دي چې واقع يعنې مفعول مطلق مثبت واقع وي او اراده يې د اثبات وي نه د نفي ځکه که چيرته اراده |

نَفْيُهُ نَحْوُ مَا زَيْدٌ يَسِيْرُ سَيْراً لَا يَجِبُ حَذْفُهُ بَعْدَ نَفْيٍ دَاخِلٍ عَلَى اِسْمٍ

کړي نفي دد ې لکه مثال مازید یسیر سیراً نو دد ې حذف واجب نه دي پس د نفي نه داخل وي په داسې اسم باند ې

لَا يَكُوْنُ الْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ خَبَراً عَنْهُ اَوْ بَعْدَ مَعْنَى نَفْيٍ دَاخِلٍ عَلَى اِسْمٍ لَا يَكُوْنُ الْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ

چې نه وي مفعول مطلق خبر دد ې نه او یا پس د معنی د نفي نه په داسې اسم باند ې داخل وي چې مفعول مطلق

خَبَراً عَنْهُ اَىْ عَنْ ذٰلِكَ الْاِسْمِ وَ اِنَّمَا قَالَ عَلَى اِسْمٍ لِاَنَّهُ لَوْ دَخَلَ عَلَى

خبر وي دد ې نه یعني دد ې اسم نه او په تحقیق سره ویلي دي چې په اسم باند ې خکه چې کیرته داخل شي په

فِعْلٍ نَحْوُ مَا سِرْتُ اِلَّا سَيْراً وَ اِنَّمَا سِرْتُ سَيْراً لَا يَكُوْنُ مِنْهُ وَ اِنَّمَا وَصَفَ الْاِسْمَ

فعل باند ې لکه مثال ماسرت الا سیرا او انماسرت سیرا نو دا به دد ې قاعد ې څخه نه وي او مصنف اسم لره موصوف

بِاَنْ لَا يَكُوْنَ الْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ خَبَراً عَنْهُ لِاَنَّهُ لَوْ كَانَ خَبَراً عَنْهُ نَحْوُ مَا سَيْرِىْ اِلَّا سَيْرٌ شَدِيْدٌ لَكَانَ

کړو چې نه وي مفعول مطلق خبر دد ې نه خکه که چیرته خبر وي دد ې نه لکه مثال ماسیري الا سیر شدید نو مفعول

مَرْفُوْعًا عَلَى الْخَبَرِيَّةِ اَوْ وَقَعَ الْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ مُكَرَّراً اَىْ فِىْ مَوْضِعِ الْخَبَرِ عَنْ اِسْمٍ لَا يَصِحُّ

مطلق به د خبر کید و په بنا به مرفوع وي او یا به واقع وي مفعول مطلق مکرر یعني په خاې د خبر کې د اسم نه صحیح

وُقُوْعُهُ خَبَراً عَنْهُ فَلَا يَرِدُ نَحْوُ دُكَّتِ الْاَرْضُ دَكًّا دَكًّا وَاِنَّمَا جَمَعَ بَيْنَ الضَّابِطَتَيْنِ لِاِشْتِرَاكِهِمَا فِىْ

کیږي وقوع دد ې خبر دد ې نه نو لهذا په دُكَّتِ الْاَرْضُ دَكًّا دَكًّا په شان به اعتراض نه واقع کیږي او په تحقیق سره جمع

الْوُقُوْعِ بَعْدَ اِسْمٍ لَا يَكُوْنُ خَبَراً عَنْهُ نَحْوُ مَا اَنْتَ اِلَّا سَيْراً اَىْ تَسِيْرُ سَيْراً وَ مَا اَنْتَ

یې کړي دواړه ضابطې دو چې د اشتراک نه په وقوع کې پس د داسې اسم نه چې نه وي خبر دد ې لکه مثال ما انت

اِلَّا سَيْرَ الْبَرِيْدِ اَىْ تَسِيْرُ سَيْرَ الْبَرِيْدِ هٰذَانِ مِثَالَانِ لِمَا

الا سیرا یعني تسیر سیرا او ما انت الا سیر البرید یعني تسیر سیرا البرید یعني دا دواړه مثالونه د هغه مفعول مطلق

وَقَعَ مُثْبَتًا بَعْدَ نَفْيٍ وَ اِنَّمَا اَوْرَدَ مِثَالَيْنِ تَنْبِيهاً عَلَى اَنَّ الْاِسْمَ

دي کوم چې د نفي نه وروستو مثبت واقع وي او مصنف دوه مثالونه راوړي دو چې د تنبیه نه په دې چې اسم چې

الْوَاقِعَ مَوْقِعَ الْخَبَرِ يَنْقَسِمُ اِلَى النَّكِرَةِ وَالْمَعْرِفَةِ اَوْ اِلَى مَا هُوَ فِعْلٌ لِلْمُبْتَدَاِ وَاِلَى مَا

واقع وي په خاې د خبر نو تقسیمیږي نکرې او معرفې ته یا هغې خبر طرف ته چې منقسم کیږي مبتدا او یا هغه

يُشَبَّهُ بِهِ. فِعْلُهُ اَوْ اِلَى مُفْرَدٍ وَ مُضَافٍ وَ اِنَّمَا اَنْتَ سَيْراً اَىْ تَسِيْرُ سَيْراً مِثَالٌ

څه ته چې مشابه وي د فعل سره او یا اسم مفرد او یا مضاف طرف ته او انما انت سیرا یعني تسیر سیرا امثال دي د هغه

لِمَا وَقَعَ بَعْدَ مَعْنَى النَّفْيِ وَ زَيْدٌ سَيْراً سَيْراً اَىْ يَسِيْرُ سَيْراً مِثَالٌ لِمَا وَقَعَ مُكَرَّراً.

چې واقع وي پس د معنی د نفي نه او زید سیراً سیراً یعني یسیر سیرا امثال دي د هغه مفعول چې مکرر واقع وي

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت کې صاحب دکافيې دهغه مقاماتو نه دوه مقامات ذکرکوي چيرته چې دمفعول مطلق عامل ناصب لره په قياسي طور باندې حذف کول واجب وي دهغې اولنې مقام دادې چې هغه مفعول مطلق چې مثبت وي اونفي يامعنى دنفي نه وروستو واقع وي اونفي اويامعنى د نفي په داسې اسم باندې وي چې مفعول مطلق دهغې خبرنه شي جوړيدي اودويم هغه مفعول مطلق چې مکرر واقع وي اوپه داسې اسم باندې واقع وي چې مفعول دهغې خبرنه شي جوړيدي دغه دواړو ځايونو کې دمفعول مطلق عامل لره قياساً حذف کول واجب دي .

**اغراض دجامي** : دقياسا عطف په سماعاً باندې دي .

<u>حذفاً قياسا</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : قياسا صفت دي موصوف محذوفه دحذفاحالاتکه دې لره صفت جوړول صحيح نه دي ځکه چې صفت په موصوف باندې حمل دي دلته حمل صحيح نه دي ځکه چې حذف قياسي وي نه چې قياس (مصدر).

**جواب** : دلته ياء دنسبت موجود ده داپه اصل کې قياسياوو.

<u>يعلم له</u>: په دې سره حذف قياسي دمعنى بيان دي چې دهغې دپاره څه قاعده کليه وي چې په هغې باندې نور امثله قياس کړي شي چې چيرته قاعده اوضابطه وموندلې شي هلته حذف واجب دي .

<u>متعددة</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : په عبارت کې اصل ايجاز اواختصار وي نومصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ له په کاروو چې داسې ويلي وي چې وقياسا فيما وقع مثبتا مواضع اود منها اضافه يې نه وي کړي ځکه چې اصل مقصود خو دحذف وجوبي قياسي معرفت دي هغه ددې عبارت نه هم حاصليدې شو اوپه دې کې اختصار هم دي علامه ابن حاجب رَحِمَهُ اللّٰهُ هم داختصار پسې دي لهذا مواضع اومنها ذکر بلا ضرورت اوبې فائدې دي ..

**جواب** : مصنف دمواضع لفظ ذکر کړو اواشاره يې وکړه چې حذف وجوبي قياسي ځايونه ډير اوکثير دي او منها سره يې اشاره وکړه چې مونږ دهغې نه بعضې لره ذکر کوو پس که مصنف

ددغه اضافه نه کولې نوداوهم به پیدا کیدو چې حذف وجوبي قیاسي صرف مذکوره صورتونو کې منحصر دي حالانکه داسې نه دي نوځکه مواضع منها یې ذکر کړه .

<u>اي من هذه المواضع</u>: په دې سره دمنها ضمیر مرجع بیان دي .

<u>موضع</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : کلمه د ما کې دوه احتماله دي : (۱) یاددې نه مراد مفعول مطلق دي .(۲) یامراد موضع دي . دواړه احتمالات صحیح نه دي ځکه چې که ددې نه مراد مفعول مطلق وي نود ما حمل په منها باندې صحیح نه دي ځکه چې په منها کې من تبعیضیه ده دبعضې په معنې کې جوړ دي اومبتدا ده او ما وقع جمله ددې خبردي اوکله چې جمله خبر وي نوپه دې کې یوعاید کیدل ضروري دي کوم چې مبتدا طرف ته راجع وي دلته کې عائد نشته دي اوکه ددې نه مراد مواضع وي نواګر که دما وقع حمل په منها باندې صحیح دي لیکن بیا دوقع ضمیر په مرجع کې دوه احتماله دي یاخودهغې مرجع موضع دي یادهغه مرجع مفعول مطلق دي که مرجع موضع وي نو مثبتا په وقع باندې صحیح نه دي ځکه چې حذف او محذوف مفعول مطلق وي نه چې موضع اوکه مرجع مفعول مطلق وي نو اګر که دمثبتا حمل په وقع باندې صحیح به شي لیکن په دې صورت کې جمله صفتیه په غیرد عائد کیدل لازم راځي چې ناجائز دي .

**جواب** : ما عبارت دي دمفعول مطلق نه ددې مضاف محذوف دي کوم چې موضع ذي او د وقع ضمیر مرجع هم مفعول مطلق دي اوس به حمل هم صحیح شي اوجمله صفتیه بغیرعائد کیدل به هم لازم نه راځي .

<u>اي مفعول مطلق</u>: دادما تفسیر دي شارح وقع نه دما تفسیر لره ځکه مؤخر کړه چې دموصوف اوصفت په مینځ کې تفسیر سره فصل لازم نه شي .

<u>اريد اثباته</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مثال دممثل له سره مطابق نه دي ځکه چې ممثل له هغه مفعول مطلق دي کوم چې کلام مثبت کې وي اوکوم مثال چې مذکور دي ما انت الا سيرا داکلام منفي دي .

**جواب** : چې مثبتانه مراد دادي چې په کلام کې مفعول مطلق داثبات اراده شوي وي اګرکه کلام منفي وي اومثال مذکور کې ما انت الا سيرا کې هم مفعول مطلق داثبات اراده کړي شوي

ده ځکه چې نفي د الا دوجې نه ماته شوه يعنې ختمه شوه

لانفيه : په دې عبارت سره شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې مثبتاً قيد احترازي دې په دې سره دهغه مفعول نه احتراز دې چې دنفي اراده شوي وي

فانه لو اريد : په دې سره داحتراز وجه بيانوي چې اګر که مفعول مطلق دنفي اراده شوي وي نود هغه عامل ناصب لره حذف کول واجب نه دي مثال مازيد يسير سيرا

داخل على اسم : دا اضافه يې ددې وجې نه وکړه چې دمصنف قول داخل على اسم الى آخره دا متنازع فيه دي يعنې نفي غواړي چې دا زما صفت دي اومعنى غواړي چې دازما صفت دي نومصنف داخل على اسم لره دمعنى صفت جوړ کړه اودنفي صفت لره يې مقدر ومنلو اواشاره يې وکړه چې داخل على اسم تعلق نفي اومعنى نفي ددواړو سره دي .

المفعول المطلق : په دې کې ديکون ضمير مرجع لره متعين کوي چې ددې مرجع المفعول المطلق دي

اى عن ذلک الاسم : په دې سره غرض دشارح دعنه ضمير مرجع متعين کړي ده چې مرجع الاسم ده .

وانما قال على : په دې کې شارح دعلى اسم قيد فايده بيانوي چې دا قيد يې ځکه لږولي دي چې اګر که نفي يامنفي نفي په اسم باندې قيد داخل نه وي بلکه فعل په فعل باندې داخل وي نوبه دې وخت کې مفعول مطلق عامل ناصب لره حذف کول واجب نه دي مثال ما سرت الا سيرا وانما سرت سيرا .

وانما وصف : په دې کې اسم لره لايکون خبر عنه صفت سره دموصوف کيدو وجه بيانوي چې اسم لره لايکون سره ځکه موصوف کړه چې اګر که مفعول مطلق دهغه اسم نه خبر جوړيدې شي نوبيابه هغه د خبريت په بناء باندې مرفوع وي دمفعول مطلق دکيدو په بناء منصوب به نه وي مثال ماسيري الا سيرا شديدا

المفعول المطلق : په دې عبارت سره شارح دوقع دضمير مرجع متعين کوي چې دضمير مرجع مفعول مطلق دی.

اى في موضع الخبر : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : دالله تعالی داقول چې ﴿كَلَّآ إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا﴾ مفعول مطلق دي ځکه چې مکرر دي حالانکه د دې عامل ناصب مذکور دي محذوف نه دي نو دوهمه قاعده کلیه نه شوه ؟

**جواب** : د مفعول مطلق د مکرر کیدو په صورت کې د هغه عامل ناصب لره وجوبي طور باندې حذف کول مشروط دي په دې شرط سره چې کوم په ضابطه سابقه کې تیر شوي دي یعنې في موضع الخبر عن اسم لایصح وقوعه خبرا عنه یعنې مفعول مطلق خود خبر په ځای باندې وي او داسې اسم نه وروستو واقع وي کوم چې د خبر تقاضا کوي لیکن هغه د دې نه خبر جوړ نه شي او اذا دکت الارض دکادکا کې مفعول مطلق دکادکا د خبر په ځای کې نه دي د ماقبل والا داسم نه ځکه چې ماقبل والا اسم د الارض نائب فاعل دي مبتدا نه دي چې د خبر تقاضا کوي .

**وانما جمع** : په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : اوله قاعده او دوهمه قاعده هریوه مستقله اوجدا قاعده ده نو مصنف رَحِمَهُ ٱللَّهُ دا دواړو ولې جمع کړه او دادنورو قاعدو په شان دنورو قاعدو نه په منها و یلو سره جدا ذکر کول په کاروو .

**جواب** : دې دواړو لره یې ځکه جمع کړه چې دا دواړه په یو شرط کې شریک دي هغه دا دې چې في موضع الخبر لایکون خبرا عنه یعنې دواړه د داسې اسم نه وروستو واقع وي هغه اسم د خبر تقاضا کوي لیکن هغه دواړه مفعول مطلق داسم نه خبر نه جوړیږي د دې مناسبت د وجې نه دواړه مقاماتو لره د اختیار د پاره یو ځای ذکر کړه .

**ای تسیر سیرا**: په دې کې عامل : قدر اظهار طرف ته اشاره ده محض تعلیم او تفهیم د پاره ورنه فعل لره حذف کول واجب دي دې لره ذکر کول جائز نه دي په اصل کې ما انت الا تسیر سیرا دي .

**ای تسیر سیرالبرید**: په دې کې هم عامل مقدر لره یې ظاهر کړه .

**هذان مثالان** : په دې کې د ممثل له د تعین بیان دي چې ما انت الا سیرا او ما انت الا سیر البرید دواړه د هغه مفعول مطلق مثالونه دي کوم چې د نفي نه وروستو واقع وي .

**وانما اورد** : په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د مثال نه مقصود د ممثل له وضاحت کول دي او هغه د یو مثال نه هم حاصلیږي مصنف دوه (۲) مثالونه ولې ذکر کړل ؟

**جواب** : شارح د دې نه دري (۳) جوابات ورکړي دي :

**اول جواب** : شارح دجامي وايي چې ددوه مثالونو ذکر کولو دري وجې دي : (۱) مصنف دوه مثالونه ذکر کول په دې خبره باندې تنبيه ده چې هغه اسم چې دخبر په ځاې واقع وي اوداکله نکره وي اوکله معرفه وي اول مثال دنکرې دي اودويم مثال دمعرفي دي

**دوهم جواب** : ياپه دې خبره باندې تنبيه کړې ده چې هغه اسم کوم چې دخبر په ځاې کې واقع وي کله دمنهاًفعل وي اوکله دهغه سره دمبتدادفعل لره تشبيه ورکولې شي اول مثال دهغه دي چې دمبتدا فعل وي اودويم مثال دهغه دي چې په هغې کې دمبتدا دفعل لره مفعول مطلق لره تشبيه ورکړې ده .

**دريم جواب** : يا په دې خبره باندې تنبيه ورکړې ده چې هغه اسم کوم چې دخبر په ځاې کې واقع وي کله هغه مفرد وي اوکله مضاف وي اول مثال دمفرد دي اودويم مثال دمضاف دي .

اي تسير سيرا : په دې کې عامل مقدر اظهار طرف ته اشاره ده محض تعليم دپاره ورنه دهغه حذف کول واجب دي دې لره ذکر کول جائز نه دي .

لما وقع : په دې کې دممثل له دتعين بيان دي چې انما انت سيرا دادهغه مفعول مطلق مثال دي کوم چې معنی دنفي نه وروستو واقع وي .

اي يسير سيرا : په دې کې عامل مقدر داظهار طرف ته اشاره ده .

لما وقع مکررا : په دې کې ممثل له دتعين بيان دي زيد سيرا سيرا دهغه مفعول مطلق مثال دي کوم چې مکرر واقع وي يعنې د دويمې قاعدې مثال دي .

## د فعل د حذف وجوبي قياسي دريم مقام :

| وَ مِنْهَا اَیْ مِنَ الْمَوَاضِعِ الَّتِیْ يَجِبُ حَذْفُ الْمَفْعُوْلِ النَّاصِبِ لِلْمَفْعُوْلِ |
|---|
| اوبعضې ددې نه يعنې دهغه مواضعونه چې په هغې کې واجب دي حذف کول دهغه فعل چې نصب ورکول مفعول |
| الْمُطْلَقِ فِيْهَا مَا وَقَعَ اَیْ مَوْضِعُ مَفْعُوْلٍ مُطْلَقٍ وَقَعَ تَفْصِيْلاً لِاَثَرِ مَضْمُوْنِ |
| مطلق ته په دې کې هغه چې واقع دي يعنې په ځاې د مفعول مطلق چې واقع وي تفصيل دپاره داثر د مضمون د |
| جُمْلَةٍ مُتَقَدِّمَةٍ وَ الْمُرَادُ بِمَضْمُوْنِ الْجُمْلَةِ مَصْدَرُهَا الْمُضَافُ اِلَى الْفَاعِلِ اَوِ الْمَفْعُوْلِ وَ بِاَثَرِهِ |
| جملې متقدمې اومراد دمضمون دجملې نه هغه مصدردي چې مضاف وَي فاعل اومفعول طرف ته اوداثرنه مراد |
| غَرَضُهُ الْمَطْلُوْبُ مِنْهُ وَ بِتَفْصِيْلِ الْاَثَرِ بَيَانُ اَنْوَاعِهِ الْمُحْتَمِلَةِ مِثْلُ قَوْلِهٖ تَعَالٰى |
| غرض ددې مضمون دي چې مقصودددې نه اودتفصيل داثرنه بيان دانواعومحتملودي لکه دا قول دالله تعالى |

| |
|---|
| فَشُدُّوا الْوَثَاقَ فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ اَیْ بَعْدَ شَدِّالْوَثَاقِ وَإِمَّا فِدَاءً فَقَوْلُهُ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ جُمْلَةٌ |
| فَشُدُّواالْوَثَاقَ فَإِمَّامَنًّابَعْدُیعنې پس د شَدِّالْوَثَاقِ نه وَإِمَّافِدَاءً نو داقول دالله تعالی فَشُدُّواالْوَثَاقَ یو ه جمله ده چې دد ې |
| مَضْمُوْنُهَا شَدُّوا الْوَثَاقِ وَ الْغَرَضُ الْمَطْلُوْبُ مِنْ شَدِّ الْوَثَاقِ اِمَّا الْمَنُّ اَوِ الْفِدَاءُ فَفَصَّلَ |
| مضمون شَدُّالْوَثَاقِ دی او غرض مقصود د شَدُّالْوَثَاقِ نه یا احسان کول دي او یا فدیه اخستل دي نو تفصیل یې بیان |
| اللهُ سُبْحَانَهُ هٰذَا الْغَرَضَ الْمَطْلُوْبَ بِقَوْلِهٖ فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَ إِمَّا فِدَاءً اَیْ |
| کړو الله تعالی دد ې غرض مطلوب په دې قول سره چې پس ددوي سره احسان وکړې او یا ترې فدیه واخلې یعنې |
| إِمَّا تَمُنُّوْنَ مَنًّا بَعْدَ الشَّدِّ وَ إِمَّا تَفْدُوْنَ فِدَاءً. |
| د کفارو د نیولو نه پس یا ددوي سره احسان وکړې او یا ترې فدیه واخلې |

**خلاصه د متن:** صاحب د کافیې په دې عبارت سره دریم ځاې ذکر کړو کوم ځاې کې چې د مفعول مطلق عامل ناصبه په قیاسي طریقه باندې حذف کول واجب دي چې دا هغه مفعول مطلق دي چې د جملې د مخکنې مضمون داثر د تفصیل د بیانولو دپاره راوړل شوي وي نو دد ې فعل ناصبه حذف کول واجب دي.

**اغراض د جامي :** اي من المواضع: په دې عبارت سره یې د منها د ضمیر مرجع متعینه کړه چې د ضمیر مرجع مواضع دي.

التي یجب: په دې عبارت سره د مواضعو د تعیین بیان کوي چې د مواضعو نه مراد هغه مواضع دي په کوم کې چې د مفعول مطلق عامل ناصبه حذف کول واجب وي.

اي موضع: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال:** کلمه د ما کې دوه احتماله دي: (۱) یا ددې نه مراد مفعول مطلق دي. (۲) یا مراد موضع دي. دواړه احتمالات صحیح نه دي ځکه چې که ددې نه مراد مفعول مطلق وي نو د ما حمل په منها باندې صحیح نه دي ځکه چې په منها کې من تبعیضیه ده د بعضې په معنې کې جوړ دي او مبتدا ده او ما وقع جمله ددې خبر دي او کله چې جمله خبر وي نو په دې کې یو عاید کیدل ضروري دي کوم چې مبتدا طرف ته راجع وي دلته کې عائد نشته دي او که ددې نه مراد مواضع وي نو اګر که د ما وقع حمل په منها باندې صحیح دي لیکن بیا د وقع ضمیر په مرجع کې دوه احتماله دي یا خو د هغې مرجع موضع دي یا د هغه مرجع مفعول مطلق دي که مرجع موضع وي نو مثبتا په وقع باندې صحیح نه دي ځکه چې حذف او محذوف مفعول مطلق وي نه چې

موضع او که مرجع مفعول مطلق وي نو اګر که د مثبتا حمل په وقع باندې صحیح به شي لیکن په دې صورت کې جمله صفتیه په غیر د عائد کیدل لازم راځي چې نا جائز دي

**جواب**: ما مفعول مطلق نه عبارت دي د دې مضاف محذوف دي کوم چې موضع دي او د دوضع ضمیر مرجع هم مفعول مطلق دي اوس به حمل هم صحیح شي او جمله صفتیه بغیر عائد کیدل به هم لازم نه راځي.

**والمراد بمضمون**: په دې عبارت سره د متن وضاحت دي د مضمون د جملې نه مراد هغه مصدر دي کوم چې د جملې نه معلومیږي او دا مضاف وي یا فاعل طرف ته او یا مفعول طرف ته ، او د مضمون جملې نه مراد هغه غرض دي کوم چې د مضمون د جملې نه مطلوب او مقصود وي او د تفصیل داثر نه مراد د هغو انواعو تفصیل دي چې د هغې احتمال په سابقه جمله کې موجود وي.

**د مضمون جملې د ویستلو طریقه**: که چیرته جمله فعلیه وي نو د مضمون د جملې د ویستلو طریقه داده چې د فعل نه به مصدر وباسي او فاعل او یا مفعول طرف ته به یې مضاف کړي که چیرته جمله اسمیه وي نو د خبر نه به مصدر وباسي او مبتداء طرف ته به یې مضاف کړي لکه زید قائم مضمون د جملې قیام زید دي او ضرب زید ( په جمله فعلیه کې ) د دې مضمون د جملې ضرب زید دي.

**قوله تعالی**: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مثل مضاف دي او فشدو الوثاق مضاف الیه دي حالانکه د فشدو الوثاق مضاف الیه جوړول صحیح نه دي ځکه چې دا فعل دي او بل دا چې دا جمله ده او مضاف الیه خو مفرد وي.

**جواب**: د مثل مضاف الیه محذوف دي کوم چې قوله دي ، او فشدو الوثاق د دې مقوله ده او تعالی جمله معترضه ده لهذا مضاف الیه اسم او مفرد دي ، فاندفع الاشکال.

**ای بعد شد الوثاق**: په دې عبارت کې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې بعد مبني بر ضمه دي ځکه چې د دې مضاف الیه محذوف منوي دي.

**فقوله**: په دې عبارت سره مثال په ممثل له باندې تطبیق کوي چې د الله تعالی قول ﴿فَشُدُّوا الْوَثَاقَ﴾ جمله ده چې د دې مضمون شدوا الوثاق دي د دې نه غرض مطلوب یا خو منّ ( احسان کول ) دي او یا فداء یعني فدیه اخستل او پریخودل دي نو الله تعالی د خپل قول ﴿فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا

فِدَاء﴾ سره د دې غرض تفصیل بیان کړو نو منا او فداء دا مفعول مطلق دي کوم چې د مخکښې جملې د مضمون غرض او غایت د تفصیل په بیان کې واقع دي لهذا د دې عامل ناصب وجوبي قیاسي طور باندې حذف کړو په اصل کې فاما تمنون منا واما تفدون فداء وو

# د فعل د حذف وجوبي قیاسي څلورم مقام :

وَ مِنْهَا أَيْ مِنْ تِلْكَ الْمَوَاضِعِ مَا وَقَعَ أَيْ مَوْضِعُ مَفْعُوْلٍ مُطْلَقٍ وَقَعَ

او بعضې د دې نه یعنې د دې مواضعو نه هغه چې واقع وي یعنې په ځای د مفعول مطلق چې واقع وي د پاره د

لِلتَّشْبِيْهِ أَيْ لِأَنْ يُشَبَّهَ بِهِ أَمْرٌ آخَرُ وَ احْتَرَزَ بِهِ عَنْ نَحْوِ لِزَيْدٍ صَوْتٌ صَوْتٌ حَسَنٌ

تشبیه یعنې ځکه چې د دې سره مشابه کړې شي بل څیز او احترازیې وکړو په دې سره د لزید صوت صوت حسن نه

لِأَنَّهُ لَمْ يَقَعْ لِلتَّشْبِيْهِ عِلَاجاً أَيْ حَالَ كَوْنِهِ دَالاًّ عَلٰى فِعْلٍ

ځکه چې حسن د تشبیه د پاره نه دې واقع شوي علاجا یعنې په داسې حال کې چې دلالت کوونکې وي په یو فعل

مِنْ أَفْعَالِ الْجَوَارِحِ وَ احْتَرَزَ بِهِ عَنْ نَحْوِ لِزَيْدٍ زُهْدٌ زُهْدَ الصُّلَحَاءِ لِأَنَّ

باندې د افعال جوارحو (ظاهري اعضاء) نه د دې قید نه مصنف لزید زهد زهد الصلحاء مثال نه احتراز وکړو ځکه چې

الزُّهْدَ لَيْسَ مِنْ أَفْعَالِ الْجَوَارِحِ بَعْدَ جُمْلَةٍ وَاحْتَرَزَ بِهِ عَنْ نَحْوِ صَوْتُ زَيْدٍ صَوْتُ حِمَارٍ مُشْتَمِلَةٍ

زهد نه دې د افعال جوارحو نه پس د جملې نه او احترازیې وکړو په دې د صوت زید صوت حمار نه ځکه چې مشتمله ده

تِلْكَ الْجُمْلَةُ عَلٰى اِسْمٍ كَائِنٍ بِمَعْنَاهُ أَيْ بِمَعْنَى الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ وَ احْتَرَزَ بِهِ

دا جمله په یو داسې اسم باندې چې کائن وي د دې په معنی یعنې په معنی د مفعول مطلق او احترازیې وکړو په

عَنْ نَحْوِ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ فَإِذَا لَهُ ضَرْبٌ صَوْتَ حِمَارٍ وَعَلٰى صَاحِبِهِ أَيْ صَاحِبِ ذٰلِكَ الْاِسْمِ أَيْ الَّذِيْ

دې سره د مررت بزید فاذا له ضرب صوت حمار نه د دې په صاحب باندې یعنې په صاحب د دې اسم باندې یعنې هغه

قَامَ بِهِ مَعْنَاهُ وَاحْتَرَزَ بِهِ عَنْ نَحْوِ مَرَرْتُ بِالْبَلَدِ فَإِذَا بِهِ صَوْتٌ صَوْتَ حِمَارٍ نَحْوُ مَرَرْتُ بِهِ

چې قائم په دې سره معنی د دې او احترازیې وکړو په دې سره د مررت بالبلد فاذا به صوت صوت حمار نه لکه مررت به

فَإِذَا لَهُ صَوْتٌ صَوْتَ حِمَارٍ أَيْ يُصَوِّتُ صَوْتَ حِمَارٍ مِنْ صَاتَ الشَّيْءُ صَوْتاً بِمَعْنٰى صَوَّتَ تَصْوِيْتاً فَصَوْتُ

فاذا له صوت صوت حمار یعنې یصوت صوت حمار دا د صات الشيء صوتا نه ماخوذ دې په معنی د صوت تصویتا نه پس صوت

حِمَارٍ مَصْدَرٌ وَقَعَ لِلتَّشْبِيْهِ عِلَاجاً بَعْدَ جُمْلَةٍ هِيَ قَوْلُهُ لَهُ صَوْتٌ وَهِيَ مُشْتَمِلَةٌ عَلٰى

حمار مصدر دې چې واقع دې د پاره د تشبیه علاجا پس د جملې د اقول چې له صوت او دا مشتمل دې په داسې اسم

اِسْمٍ بِمَعْنَى الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ وَهُوَ صَوْتٌ وَمُشْتَمِلَةٌ عَلٰى صَاحِبِ ذٰلِكَ الْاِسْمِ وَهُوَ الضَّمِيْرُ الْمَجْرُوْرُ

چې په معنی د مفعول مطلق وي او هغه صوت دې او دا مشتمل وي په صاحب د دې اسم او هغه ضمیر مجرور دې

| |
|---|
| فِيْ قَوْلِهٖ لَهٗ وَنَحْوُ مَرَرْتُ بِهٖ فَإِذَا لَهٗ صُرَاخٌ صُرَاخَ الثَّكْلٰى اَىْ يَصْرَخُ صُرَاخَ الثَّكْلٰى وَهِيَ اِمْرَأَةٌ |
| په دي قول کي چي له اولکه مررت به فاذا له صراخ صراخ الثکلي يعني يصرخ صراخ الثکلي اوثکلي هغه ښځه ده چي |
| مَـاتَ وَلَـدُهَـا. |
| مړشوي وي بچي ددي. |

**خلاصه د متن:** هغه ځايونه چيرته چي د مفعول مطلق فعل ناصبه په قياسي طورباندي حذف کول واجب وي د هغي نه يو هغه مقام دي چي چيرته مفعول مطلق د تشبيه د پاره وي يعني د مفعول مطلق سره يو څيز سره تشبيه ورکړي شوي وي اوهغه دداسي جملي نه پس واقع وي چي هغه جمله دمفعول مطلق هم معنى اسم باندي مشتمل وي اوپه صاحب اسم باندي هم مشتمل وي لکه مررت بالبلد فاذا به صوت صوت حمار دي په دې کي صوت حمار مفعول مطلق دي کوم چي د تشبيه د پاره دي او د افعال جوارحو نه هم دي او پس د جملي نه واقع دي کوم چي له صوت دي او دا جمله د مفعول مطلق په هم معنى اسم باندي مشتمل دي کوم چي صوت دي او صاحب اسم باندي هم مشتمل دي کوم چي د له د ضمير مجرور دي ځکه چي ددې فعل ناصبه په وجوبي قياسي طور باندي حذف کړو په اصل کي دا داسي وو چي يصوت صوت حمار.

**اغراض دجامي :** منها اى تلک المواضع: په دې عبارت سره دمنها دضمير دمرجع بيان کړي دي.

اى موضع مفعول مطلق: په دې عبارت سره يې اشاره کړي چي ما عبارت دي د مفعول مطلق نه اوددې نه مخکي مضاف محذوف دي کوم چي موضع دي اودا هم دارنګي ديو سوال مقدر هم دي:

**سوال :** کلمه د ما کي دوه احتماله دي: (۱) ياددې نه مراد مفعول مطلق دي. (۲) يامراد موضع دي. دواړه احتمالات صحيح نه دي ځکه چي که ددې نه مراد مفعول مطلق وي نود ما حمل په منها باندي صحيح نه دي ځکه چي په منها کي من تبعيضيه ده دبعضي په معنى کي جوړ دي اومبتدا ده او ما وقع جمله ددې خبردي اوکله چي جمله خبر وي نوپه دې کي يوعايد کيدل ضروري دي کوم چي مبتدا طرف ته راجع وي دلته کي عائد نشته دي اوکه ددې نه مراد مواضع وي نواګر که دما وقع حمل په منها باندي صحيح دي ليکن بيا دوقع ضمير په مرجع کي

دوه (۲) احتماله دي يا خو د هغې مرجع موضع دي يا د هغه مرجع مفعول مطلق دي ، كه مرجع يې موضع وي نو مثبتا په وقع باندې صحيح نه دي ځكه چې حذف او محذوف مفعول مطلق وي نه چې موضع ، او كه مرجع مفعول مطلق وي نو اګر كه دمثبتا حمل په وَقَعَ باندې صحيح شي ليكن په دې صورت كې جمله صفتيه په غير د عائد كيدل لازم راځي چې ناجائز دي .

**جواب** : مامفعول مطلق نه عبارت دي ددې مضاف محذوف دي كوم چې موضع دي اود وضع ضمير مرجع هم مفعول مطلق دي اوس به حمل هم صحيح شي او جمله صفتيه په غير د عائد نه كيدل به هم لازم نه راځي .

اى لان يشبه به : په دې عبارت سره دې خبرې طرف ته يې اشاره كړې ده چې تشبيه مصدر مبني للمفعول په معنى دمشبه دي اوددې صله محذوف دي كوم چې په دي ، مراد دادې چې دمفعول مطلق سره د يوځيز تشبيه وركړې شوي وي نه دمفعول مطلق سره تشبيه وركړې شوي وي يو ځيز سره وي يعنې دمفعول مطلق مشبه به وي .

واحترز به : ددې ځاې نه دتشبيه دقيد فائده بيانوي چې داقيد احترازي دي په دې قيد سره د لزيد صوت صوت حسن دمثال نه احتراز دي ځكه چې په دې كې صوت ثاني دتشبيه دپاره نه ده بلكه دصوت اول نه بدل دي .

اى حال كونه : په دې عبارت كې دعلاجاً تركيب طرف ته يې اشاره كړې ده چې علاجا دوقع دضمير مستتر نه حال دي چې ددې مرجع مفعول مطلق دي .

دالا على فعل : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : علاجا دوقع دضمير دفاعل نه حال جوړول صحيح نه دي ځكه چې حال په ذوالحال باندې حمليږي او دلته د علاجا حمل په مفعول مطلق باندې صحيح نه دي ځكه چې د علاج معنى كيږي دافع للداء اومفعول مطلق خو دافع نه وي .

**جواب** : دعلاج نه مراد هغه علاج نه دي كوم چې دطبيبانو په اصطلاح كې دي بلكه دعلاج نه مراد دادې چې هغه دافعال جوارحو نه په يوفعل باندې دلالت كوي نو اوس يې حمل صحيح دي .

واحترز به : په دې عبارت سره دعلاجاً دقيد فائده بيانول دي چې داقيد احترازي دي ددې نه

احتراز کړي دي د لزيد زهد زهد الصلحاء دمثال نه ځکه چې په دې کې دويم زهد اګرچې دتشبيه د پاره دي ليکن دافعال جوارحو نه نه دي بلکه دافعال قلوبو نه دي .

**واحترز به:** په دې عبارت سره دبعد جملة دقيد فائده بيانوي چې داقيد احترازي دي په دې سره يې احتراز کړي دي د صوت زيد صوت حمار دمثال نه ځکه چې دااګرچې دتشبيه دپاره دي اود افعال جوارحو نه هم دي ليکن دادجملې نه پس واقع نه دي ځکه چې صوت زيد جمله نه ده .

**تلك الجملة:** په دې کې يې دمشتملة دضمير مرجع متعينه کړي

**کائن:** په دې عبارت سره ترکيب طرف ته يې اشاره کړي ده چې بمعناه ظرف مستقر دکائن متعلق صفت شو داسم .

**بمعناه اى بمعنى المفعول المطلق:** په دې عبارت سره د هٔ دضمير مرجع يې متعين کړي ده چې دضمير مرجع مفعول مطلق دي .

**واحترز به:** په دې عبارت کې دبمعناه دقيد فائده يې بيان کړي ده چې داقيد احترازي دي په دې سره دمررت بزيد فاذا له ضرب صوت حمار دمثال نه احتراز دي ځکه چې په دې کې صوت حمار اګرچې د تشبيه دپاره دي اودافعال جوارحو نه هم دي اوبعد الجملة هم دي کوم چې له ضرب دي ليکن داجمله دمفعول مطلق په هم معنی اسم باندې مشتمل نه ده .

**على:** په دې عبارت کې دې خبري طرف ته اشاره ده چې دصاحبه عطف په اسم باندې دي .

**اى الذي قام به:** په دې عبارت سره تعين دمراد بيان دي چې دصاحب نه مراد هغه اسم دي چې دهغې سره دمفعول مطلق معنی قائم وي .

**واحترز به:** په دې عبارت سره د صاحبه دقيد فائده بيانوي چې داقيد احترازي دي په دې سره احتراز دي د مررت بالبلد فاذا به صوت صوت حمار دمثال نه ځکه چې په دې کې صوت حمار اګرچې دتشبيه دپاره دي اودافعال جوارحو نه هم دي اوبعد الجملة هم دي کوم چې به صوت دي اوداد مفعول مطلق په هم معنی اسم باندې هم مشتمل دي ليکن په صاحب داسم باندې مشتمل نه دي ځکه چې آواز دبلد سره نه قائميږي .

**اى يصوت صوت حمار:** داد عامل مقدره داظهار طرف ته اشاره ده صرف دتعليم دپاره ورنه ددې حذف کول واجب دي ، ذکر کول يې جائز نه دي .

من صات الشيء : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مثال دې دممثل له سره موافق نه دي ځکه چې ممثل له مفعول مطلق دي اوصوت حمار مفعول مطلق نه دي ځکه چې دمفعول مطلق دپاره شرط دي چې هغه به مصدر وي صوت مصدر نه دي مصدر ددې وجې نه ، نه دي چې دمصدر علامت دادې چې په فارسي کې به ددې دمعنى په آخر کې به دن يا تن راځي لکه الضرب زدن ، والقتل کشتن اودصوت معنى ده صرف آواز ددې په آخر کې نه دن شته او نه تن شته . لهذا ددې مفعول مطلق جوړول صحيح نه دي

**جواب** : ددې سوال جواب يې په من صات سره ورکړو چې لفظ دصوت مجرد مزيد فيه يعنې : تصويت په معنى کې دی په معنى دآواز ويستلو لهذا ددې مفعول مطلق جوړول صحيح دي

فصوت حمار مصدر : په دې عبارت سره شارح مثال په ممثل له باندې تطبيق کوي چې مررت بزيد فاذا له صوت صوت حمار کې صوت حمار مفعول مطلق دي کوم چې دتشبيه دپاره دي اودافعال جوارحو نه هم دي اوبعدالجملة هم واقع دي کوم چې له صوت دي اوداجمله دمفعول مطلق ده معنى اسم باندې هم مشتمله ده کوم چې صوت دي اوصاحب اسم باندې هم مشتمل دي کوم چې دله ضمير مجرور دي ځکه چې ددې فعل ناصب په وجوبي قياسي طور باندې حذف کړو په اصل کې دا يصوت صوت حمار به وو .

ونحو مررت به فاذا له صراخ صراخ الثكلى : ددې ځاې نه ددې قاعدې دويم مثال پيش کړي دي لکه مررت به فاذا له صراخ صراخ الثكلى ، زما تلل وشو په داسې ښځې سره چې چغې يې وهلو په شان د هغه ښځې چې بچي يې مړه شوي وي ، صُراخ د صاد په پيش سره په وزن د سُوال دباب د عَلِمَ نه په معنى د چغې وهلو سره ، په حديث شريف کې ذکر دي : ثکلتک امک ، په تا دې مور بوره شي ، ويلې شي چې امرأة ثكلة وثكلى .

**سوال** : مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې قاعدې دوه مثالونه ولې ذکر کړل حالانکه دممثل له دوضاحت دپاره يو مثال کافي وو .

**جواب** : مصنف دوه مثالونه ددوه وجو نه ذکر کړي دي : (۱) ددې وجې نه چې معلوم شي چې مفعول مطلق کله اسم غير ذوي العقول وي لکه په اول مثال کې اوکله ذوي العقول وي لکه په

دویم مثال کې (۲) دویم ددې وجې نه چې مفعول مطلق کله نکرې طرف ته مضاف کیږي لکه په اول مثال کې اوکله دمعرفې طرف ته لکه په دویم مثال کې .

**نحو مررت به**: په دې عبارت سره دې خبرې طرف ته اشاره وکړه چې **صراخ صراخ الثکلی** عطف دې په **صوت صوت حمار** باندې .

**ای یصرخ صراخ**: دا دعامل مقدره داظهار طرف ته اشاره ده صرف دتعلیم دپاره ورنه ددې حذف کول واجب دي ذکر کول یې جائز نه دي .

**وهي امرأة**: په دې عبارت کې دثکلی دمعنی بیان کوې چې ثکلی هغه ښځې ته وایې چې دهغې بچې مړ شوي وي .

## دفعل د حذف وجوبي قیاسي پنځم مقام :

| |
|---|
| وَ مِنْهَا اَیْ مِنْ تِلْکَ الْمَوَاضِعِ مَا وَقَعَ اَیْ مَوْضِعُ مَفْعُوْلٍ مُطْلَقٍ وَقَعَ مَضْمُوْنَ جُمْلَةٍ لاَ مُحْتَمَلَ |
| اوبعضې ددې نه یعنې ددې مواضعونه هغه چې واقع وي یعنې په خاې دمفعول مطلق واقع وي مضمون دجملې |
| لَهَا اَیْ لِهٰذِهِ الْجُمْلَةِ غَیْرُهُ اَیْ غَیْرُ الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ نَحْوُ لَهُ عَلَيَّ اَلْفُ دِرْهَمٍ اِعْتِرَافاً اَیْ |
| چې محتمل نه وي ددې دپاره یعنې ددې جملې دپاره غیرددې نه یعنې غیر دمفعول مطلق لکه له علي الف درهم |
| اِعْتَرَفْتُ اِعْتِرَافاً فَاِعْتِرَافاً مَصْدَرٌ وَقَعَ مَضْمُوْنَ جُمْلَةٍ وَ هِيَ لَهُ عَلَيَّ اَلْفُ دِرْهَمٍ لِاَنَّ مَضْمُوْنَهُ |
| اعترافایعنې اعترفت اعترافا نو اعترافامصدر دي واقع شوي مضمون دجملې اوهغه له علي الف درهم دي ځکه |
| الْاِعْتِرَافُ وَلاَ مُحْتَمَلَ لَهُ سِوَاهُ وَ یُسَمّٰی هٰذَا النَّوْعُ مِنَ الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ تَاکِیْداً لِنَفْسِهٖ |
| مضمون ددې اعتراف دي اوددې محتمل ددې نه غیرنه دې اومسمی کولې شي داقسم دمفعول مطلق تاکید لنفسه |
| اَیْ لِنَفْسِ الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ لِاَنَّهُ اِنَّمَا یُؤَکِّدُ نَفْسَهُ وَ ذَاتَهُ لاَ اَمْراً |
| یعنې دنفس مفعول مطلق دپاره ځکه چې مفعول دخپل نفس اوذات تاکید کوي نه دیوداسې څیزچې ددې نه |
| یُغَایِرُهُ وَ لَوْ بِالْاِعْتِبَارِ . |
| مغایروي کرچې اعتباري وي . |

**خلاصه دمتن**: په ذکر شوي عبارت کې د بل داسې مقام ذکر کوي چې هلته د مفعول مطلق نعل ناصبه په قیاسي طور باندې حذف کول واجب دي چیرته چې مفعول مطلق د داسې جملې مضمون او خلاصه واقع وي چې په هغې کې د مفعول مطلق د معنی نه غیر د دویم معنی احتمال نه وي لکه **علي الف درهم اعترافا** ، دا په اصل کې **اعترفت اعترافا** وو ( په ماباندې زر روپې

درهم واجب دي زه ددې اعتراف کوم ، اعتراف کول ، د مفعول مطلق دې قسم ته تاکید لنفسه وايي .

**اغراض دجامي** : <u>ای من تلک المواضع</u>: په دې عبارت کې د ها ضمير مرجع يې ظاهره کړه چې هغه مواضع دي .

<u>ای موضع مفعول مطلق</u>: په دې عبارت سره يې اشاره وکړه چې دما نه مراد مفعول مطلق دي اوددې نه مخکې موضع مضاف محذوف دي

<u>ای لهذه الجملة</u>: په دې کې د لها ضمير مرجع يې متعين کړه چې دضمير مرجع جمله ده

<u>ای غير المفعول المطلق</u>: په دې عبارت کې د غيره دضمير مرجع يې متعين کړه چې هغه مفعول مطلق دي.

<u>ای اعترفت اعترافا</u>: داد عامل مقدر داظهار طرف ته اشاره ده ، په اصل کې دا اعترفت اعترافا وو

<u>فاعترافا مصدر وقع مضمون</u>: په دې عبارت کې مثال په ممثل له باندې تطبيق کول دي چې په دې مثال کې اعترافا مصدر دي کوم چې دجملې مضمون اوخلاصه واقع کيږي اوپه دې جمله کې د اعتراف نه غير بل احتمال دسره نه دي .

<u>هذا النوع</u>: داد يسمى دضمير مرجع ظاهروي .

<u>ای لنفس المفعول المطلق</u>: په دې عبارت کې دلنفسه دضمير مرجع يې ظاهره کړه چې هغه مفعول مطلق دي .

<u>لانه انما يوکد نفسه</u>: په دې عبارت کې دمفعول مطلق دتاکيد لنفسه دنام ايخودلو وجه بيانوي چونکې په دې کې مفعول مطلق دخپل ذات اودخپل نفس تاکيد کوي مؤکد اومؤکد يو ځيز وي په دې کې هيڅ قسمه تغاير نه وي نه ذاتي اونه اعتباري نوددې وجې نه دې ته تاکيد لنفسه وايي .

## د فعل د حذف وجوبي قياسي شپږم مقام :

وَ مِنْهَا مَا وَقَعَ مَضْمُوْنَ جُمْلَةٍ لَهَا اَیْ لِهٰذِهِ الْجُمْلَةِ مُحْتَمَلٌ غَيْرُهُ

اوبعضې ددې نه هغه چې واقع وي مضمون دجملې ددې دپاره يعنې ددې جملې دپاره ددې نه غير دبل ځيزاحتمال

اَیْ غَيْرُ الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ نَحْوُ زَيْدٌ قَائِمٌ حَقًّا اَیْ اُحِقُّ حَقًّا مِنْ حَقَّ يَحِقُّ اِذَا ثَبَتَ وَوَجَبَ فَحَقًّا مَصْدَرٌ

وي يعنې غير دمفعول مطلق نه لکه زيد قائم حقا يعنې احق حقا اد حق يحق نه دي چې کله ثابت وي نو حقا مصدر

| |
|---|
| وَقَعَ مَضْمُوْنَ جُمْلَةٍ وَ هِيَ قَوْلُهٗ زَيْدٌ قَائِمٌ وَ لَهَا مُحْتَمَلٌ غَيْرُهٗ لِاَنَّهَا تَحْتَمِلُ الصِّدْقَ |
| دي واقع دي مضمون د جملې او هغه دا قول چې زيد قائم او ددې د پاره بل احتمال وي خکه چې دا احتمال د صدق |
| وَالْكِذْبَ وَالْحَقَّ وَالْبَاطِلَ وَيُسَمّٰى هٰذَا النَّوْعُ مِنَ الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ تَاكِيْدًا لِغَيْرِهٖ لِاَنَّهٗ مِنْ حَيْثُ هُوَ مَنْصُوْصٌ |
| او کذب او حق او د باطل لري او مسمی کړي دا قسم د مفعول مطلق تاکید لغیره ددې حیثیت نه چې دا منصوص |
| عَلَيْهِ بِلَفْظِ الْمَصْدَرِ يُؤَكِّدُ نَفْسَهٗ مِنْ حَيْثُ هُوَ مُحْتَمَلُ الْجُمْلَةِ فَالْمُؤَكَّدُ اِسْمُ |
| علیه وي په لفظ د مصدر سره نو د خپل نفس تاکید کوي ددې حیثیت نه چې دا جمله محتمله ده پس مؤکد اسم |
| مَفْعُوْلٍ مِنْ حَيْثُ اِعْتِبَارِ وَصْفِ الْاِحْتِمَالِ فِيْهِ يُغَايِرُ الْمُؤَكِّدَ اِسْمَ فَاعِلٍ مِنْ حَيْثُ اَنَّهٗ |
| مفعول دي د حیثیت د اعتبار د وصف د احتمال نه په دې کې مؤکد مغایر دي اسم فاعل ددې حیثیت نه چې دا |
| مَنْصُوْصٌ عَلَيْهِ بِالْمَصْدَرِ وَ يَحْتَمِلُ اَنْ يَكُوْنَ الْمُرَادُ اَنَّهٗ تَاكِيْدٌ لِاَجْلِ غَيْرِهٖ لِيَنْدَفِعَ |
| منصوص علیه وي په مصدر سره او دا احتمال لري چې وي مراد دا چې تاکید د وجې د غیر نه ددې وجې نه چې دفع شي |
| وَ عَلٰى هٰذَا يَنْبَغِيْ اَنْ يَكُوْنَ الْمُرَادُ بِالتَّاكِيْدِ لِنَفْسِهٖ اَنَّهٗ تَاكِيْدٌ لِاَجْلِ نَفْسِهٖ لِيَتَكَرَّرَ وَ يَتَقَرَّرَ |
| او بناء په دې باندې مناسب دي چې وي مراد په تاکید لنفسه سره چې دا تاکید لاجل نفسه وي چې مکرر او مقرر وي |
| حَتّٰى يَحْسُنَ التَّقَابُلُ. |
| ددې د پاره چې تقابل په ښه طریقې سره راشي . |

**خلاصه د متن:** په ذکر شوي عبارت کې مزید دداسې مقام ذکر دي چې هلته د مفعول مطلق فعل ناصبه قیاسي طور باندې حذف کول واجب دي چیرته چې مفعول مطلق دداسې جمله مضمون او خلاصه واقع وي چې په هغې کې د مفعول مطلق د معنی نه غیر د دویم معنی احتمال هم موجود وي لکه زید قائم حقا دا په اصل کې وو احق حقا (زه حقه خبره کوم ، حقه وینا کول)

**اغراض د جامي :** **ای لهذه الجملة:** په دې عبارت کې د لها د ضمیر مرجع یې متعین کړي ده چې د ضمیر مرجع جمله ده .

**ای هذه الجملة:** په دې عبارت کې د لها د ضمیر مرجع یې متعین کړي ده چې د ضمیر مرجع جمله ده .

**ای غیر المفعول المطلق:** په دې عبارت کې د غیر د ضمیر مرجع یې متعین کړي ده چې د ضمیر مرجع مفعول مطلق دي .

**ای احق حقا:** دا د عامل مقدر د اظهار طرف ته اشاره ده لیکن دا صرف د پوهیدلو د پاره دي ورنه ددې حذف کول واجب دي ، ذکر کول یې جائز نه دي دا په اصل کې وو احق حقا .

من حق یحق اذا ثبت: دلته د حقا د معنی بیان کوي چې داد حق یحق نه ماخوذ دي چې د دې معنی ده ثبت وجب

فحقا مصدر وقع: په دې عبارت کې مثال په ممثل له باندې تطبیق کول دي چې په دې مثال کې حقا مصدر دی کوم چې د جملې مضمون اوخلاصه واقع ده اوهغه جمله زید قائم دي اوپه دې جمله کې د مفعول مطلق د معنی حق نه غیر د دویمې معنی احتمال هم دي اوهغه معنی کذب اوباطل دي ځکه چې زید قائم جمله خبریه ده کوم چې د صدق اود کذب ، حق اوباطل دواړو احتمال لري پس د حقا فعل ناصبه یعنې احق په وجوبي طور باندې حذف کړې شو .

لانه من حیث: په دې عبارت سره د تاکید لغیره وجه د تسمیې د بیان په ضمن کې د یو سؤال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : تاکید لغیره خو محال دي ځکه چې تاکید نوم دي د تلفظ الشيء بلفظ واحد مرتین ( تلفظ دیوخیز په یو لفظ سره دوه کرت) لهذا په ذکر شوي مثال کې حقا دخپل نفس اودخپل ذات تاکید کوي په دې اعتبار سره چې هغه دجملې محتمل دي نو د مصنف قول یسمی تاکیدا لغیره ویل څنګه صحیح شو ؟

**جواب** : شارح د دې نه دوه (۲) جوابونه ورکړي دي :

**اول جواب** : دلته د اعتباري نه تغایر مراد دي ځکه چې مضمون جمله یعنې حقا د دې حیثیت نه چې منصوص علیه په لفظ د مصدر دي یعنې لفظ د مصدر په دې باندې صراحتا دلالت کوي دا متیقن دي او د دې حیثیت نه چې هغه دجملې محتمل دي دا غیر متیقن دي لهذا د دې په مینځ کې تغایر اعتباري وموندل شو اود دې مغایرت اعتباري د وجې نه د دې نوم تاکید لغیره کیخودل شو ورنه په حقیقت کې خو دا هم تاکید لنفسه دي .

**دوهم جواب** : ویحتمل ان یکون سره د دې ذکر شوي اعتراض دویم جواب ورکوي چې د تاکید لغیره لام اجلیه اوتعلیلیه دي نو یسمی تاکیدا لغیره معنی ده یسمی تاکیدا لاجل غیره او د غیر نه مخکې مضاف محذوف دي نو عبارت به داسې وي چې ویسمی تاکیدا لاجل اندفاع غیره نو مطلب به داوي چې د دې قسم نوم تاکید لغیره د دې وجې نه دي چې دا دخپل ذات اودخپل نفس د تاکید کولو سره د غیر احتمال دفع کوي ځکه یې د دې نوم تاکید لغیره کیخودو نو حاصل د

عبارت به داسې وي چې ويسعى تاكيدا لنفسه لاجل اندفاع غيره.

وعلى هذا ينبغي: په دې عبارت كې ديوې فائدې بيان كوي چې كله يسعى تاكيدا لغيره كې لام اجليه دې نو مناسب داده چې تاكيد لنفسه كې هم لام اجليه وي ددې دپاره چې ددواړو په عبارتونو كې په ښه طريقې سره تقابل راشي نو عبارت به داسې وي چې تاكيد لاجل نفسه يعنې دخپل ذات تاكيد ، ددې دپاره چې دخپل ذات اودنفس تكرر اوتقرر وشي.

## د فعل د حذف وجوبي قياسي اوم مقام:

| |
|---|
| وَ مِنْهَا مَا وَقَعَ مُثَنًّى اَىْ عَلٰى صِيْغَةِ التَّثْنِيَةِ وَ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لِلتَّثْنِيَةِ لِلتَّكْرِيْرِ |
| اوبعضې ددې نه هغه چې واقع وي مثنى يعنې په صيغې دتثنيه باندې اګرچې نه وي دتثنيې دپاره بلكې دتكرير |
| وَ التَّكْثِيْرِ وَلَا بُدَّ فِيْ تَتْمِيْمِ هٰذِهِ الْقَاعِدَةِ مِنْ قَيْدِ الْاِضَافَةِ اَىْ مُثَنًّى مُضَافًا اِلَى الْفَاعِلِ |
| اودتكثير دپاره وي سرنشته لابدې دتكميل ددې قاعدې دپاره دقيد داضافت نه يعنې مثنى چې مضاف وي فاعل |
| اَوِ الْمَفْعُوْلِ لِئَلَّا يَرِدَ مِثْلُ قَوْلِهٖ تَعَالٰى ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ اَىْ رَجْعًا مُكَرَّرًا كَثِيْرًا |
| يامفعول ته ددې دپاره چې وارد نه شي په دې قول دالله تعالى ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ اعتراض يعنې رجوع مكرره ډيره |
| وَ فِيْ جَعْلِ الْمِثَالِ مِنْ تَتِمَّةِ التَّعْرِيْفِ لِاِفَادَةِ هٰذِهِ الْقَيْدِ تَكَلُّفٌ مِثْلُ لَبَّيْكَ اَصْلُهٗ اَلِبُّ لَكَ |
| اوپه ګرځولو دمثال كې تكميل دتعريف نه دپاره دافادې ددې قيد كې تكلف دې لكه لبيك داپه اصل كې الب لك |
| اَلْبَابَيْنِ اَىْ اُقِيْمُ لِخِدْمَتِكَ وَ اِمْتِثَالِ اَمْرِكَ وَ لَا اَبْرَحُ عَنْ مَكَانِيْ اِقَامَةً كَثِيْرَةً مُتَتَالِيَةً |
| البابين يعنې زه ولاړيم ستاد خدمت دپاره اودحكم منلو دپاره اونه جدا كيږم دخپل ځاې نه ولاړه ډيره پرلپسې |
| فَحُذِفَ الْفِعْلُ وَ اُقِيْمَ الْمَصْدَرُ مَقَامَهٗ وَ رُدَّ اِلَى الثُّلَاثِيِّ بِحَذْفِ زَوَائِدِهٖ ثُمَّ حُذِفَ |
| نوحذف شو فعل اوقائم شو مصدر په ځاې ددې اوروا پس كړې شو ثلاثي ته په حذف دزوائدو سره بيا حذف كړې شو |
| حَرْفُ الْجَرِّ مِنَ الْمَفْعُوْلِ وَاُضِيْفَ الْمَصْدَرُ اِلَيْهِ وَ يَجُوْزُ اَنْ يَّكُوْنَ مِنْ لَبَّ بِالْمَكَانِ بِمَعْنٰى اَلَبَّ فَلَا يَكُوْنُ |
| حرف جر دمفعول نه اومضاف يې كړو مصدر دې طرف ته اوجائز دې چې وي د لب بالمكان نه په معنى دالب نو نه به وي |
| مَحْذُوْفَ الزَّوَائِدِ وَ عَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ سَعْدَيْكَ اَىْ اُسْعِدُكَ اِسْعَادًا بَعْدَ اِسْعَادٍ بِمَعْنٰى اُعِيْنُكَ اِلَّا |
| زوائد محذوف اوپه همدې باندې سعديک قياس دى يعنې اسعدک اسعادا پس داسعاد معنى زه ستامدد كوم مګر |
| اَنَّ اُسْعِدُ يَتَعَدّٰى بِنَفْسِهٖ بِخِلَافِ اَلِبُّ فَاِنَّهٗ يَتَعَدّٰى بِاللَّامِ. |
| داكه اسعد متعدي بنفسه وي په خلاف دالب ځكه چې دامتعدى باللام دي. |

**خلاصه دمتن:** صاحب دكافيې دلته آخري مقام بيانوي چيرته چې دمفعول مطلق فعل ناصبه قياسي طور باندې حذف كول واجب دي چې هغه مفعول مطلق چې دتثنيې په صورت

باندې وي ددې فعل ناصبه حذف کول هم واجب دي لکه لبيک داپه اصل کې الب لک البابين وو نو بالآخر دتعليلاتو نه پس لبيک جوړ شو چې تفصيل يې لاندې په شرحه کې راروان دي .
همدارنګې سعديک داپه اصل کې اسعدک اسعادا بعد اسعاد دفعل ناصبه حذف اودڅو تبديلو نه پس دا سعديک جوړ شو

**اغراض دجامي** : اي على صيغة التثنية : په دې عبارت سره غرض دشارح ددوه سوالينو مقدرو جواب ورکول دي .

**اول سوال** : مثال د ممثل له سره مطابق نه دي ځکه چې ممثل له هغه مفعول مطلق دي کوم چې تثنيه وي او لبيک ددې معنى ثتنيه نه ده بلکې ددې معنى تکرار اوکثرت ده .

**دوهم سوال** : ددې قاعدې تقاضا داده چې ضرب ضربين کې فعل ناصبه په قياسي طور باندې حذف کول واجب دې ځکه چې په دې کې مفعول مطلق يعنې ضربين تثنيه واقع ده حالانکه ددې فعل مذکور دي محذوف نه دي او نه د چا په نزد باندې ددې حذف کول واجب دي .

**جواب** : مثنى . شارح په دې عبارت سره ددواړو سوالونو جواب ورکوي چې د مثنى نه مراد دادې چې هغه د تثنيې په صورت باندې وي او په معنى دتکرير اوتکثير باندې وي نو اوس دواړه سوالونه رفع شو ،اول سوال په دې طريقې باندې رفع شو چې لبيک صورة تثنيه ده اود تکراراو تکثير په معنى کې دي . او دويم سوال په دې طريقې سره رفع شو چې ضربين اګر چې صورةً تثنيه ده ليکن ددې معنى تکرير او تکثير نه ده ځکه چې د فعل ناصبه حذف کول واجب نه دي .

ولابد: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : مصنف ته په کاروو چې هغه د مضاف الى الفاعل يا الى المفعول قيد لرولې اودايې ويلې وي چې منها ما وقع مثنى مضافا الى الفاعل والمفعول ځکه چې په ذکر شوي صورت کې دمفعول مطلق دفعل ناصبه حذف کول په هغه وخت کې وي چې کله دافاعل يامفعول طرف ته مضاف وي که چيرته فاعل يامفعول طرف ته مضاف نه وي نو ددې حذف کول واجب نه دي لکه ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ په دې کې كَرَّتَيْنِ مفعول مطلق دي کوم چې دتثنيې په صورت کې واقع دي

ليکن چونکې دافاعل يا مفعول طرف ته مضاف نه دي ددې وجې نه فعل مذکور دي محذوف نه دي .

وفي جعل المثال: په دې عبارت کې شارح دغرض په فاضل هندي باندې رد کول دي ، فاضل هندي دمذکوره اعتراض جواب داورکړي دي چې مصنف داضافت دقيد په مثال باندې داکتفاء کولو دوجې نه، نه دي ذکر کړي ځکه چې په لبيک اوسعديک کې مفعول مطلق دمفعول طرف ته مضاف دي ګويا چې دامثال تعريف دضابطې دتتمې نه دي نوشارح دا رد کړو چې دتعريف اودضابطې دتتمې جوړولو کې تکلف دي ځکه چې مثال دتعريف اودضابطې دتام کيدو نه پس دوضاحت دپاره وي نه ددې تعريف يادضابطې دتتمې دپاره .

اصله الب لک البابين: په دې عبارت کې دعامل مقدر داظهار طرف ته اشاره ده ، صرف دتعليم دپاره ورنه ددې حذف کول واجب دي ذکر کول يې جائز نه دي .

اى اقيم: په دې عبارت سره دمثال دمعنى بيان دي چې دلبيک معنى ده زه ستا دخدمت اوستادامر دتعميل دپاره ولاړ يم مسلسل کثرت سره اوزه دخپل ځاې نه ، نه جدا کيږم .

فحذف الفعل: په دې عبارت سره مثال په ممثل له باندې تطبيق کول دي چې لبيک په اصل کې الب لک البابين دي الب فعل يې حذف کړو اومصدر يې ددې قائمقام کړو نو البابين لک شو بيا البابين نه زوائد يعني همزه مکسوره او الف يې حذف کړو اودايې مجرد طرف ته منتقل کړو نو لبين لک شو بيا مصدر يې کاف ضمير طرف ته مضاف کړو او لام جاره يې حذف کړو اونون دتثنيې داضافت په وجه وغورزيدو نو لبيک شو بيا مو باء په باء کې مدغم کړه نو لبيک شو .

ويجوز: په دې عبارت سره دلبيک ددويمې توجيه بيان کوي چې لبيک په اصل کې الب لک لبين وو الب فعل يې حذف کړو مصدر يې ددې قائمقام کړو نو لبين لک شو بيا مصدر يې کاف دضمير طرف ته مضاف کړواو لام جاره يې حذف کړو اونون دتثنيې داضافت په وجه وغورزيدو نو لبيک شو بيا مو باء په باء کې مدغم کړه نو لبيک شو .

**داولې توجيه اوددويمې توجيه** په مينځ کې صرف دومره فرق دي چې داولې توجيه مطابق لبيک د محذوف الزوائدو نه دي اوددويمې توجيه مطابق دمحذوف الزوائد نه ، نه دي .

وعلى هذا القياس سعديک: په دې عبارت کې ددويم مثال سعديک دتوجيه بيان دي چې دايې په لبيک په اوله توجيه باندې قياس کول په کار دي ، سعديک په اصل کې اسعدک اسعادين وو

معنی يې د ' ده چې زه ستا تائيد اونصرت اومدد کوم بار بار په کثرت سره تائيد اونصرت کول اسعد فعل يې حذف کړو مصدر يې ددې قائمقام کړو بيا زوائد يعنې همزه مکسوره اوالف يې حذف کړو اونون د تثنيې د اضافت دوجې نه وغورزيدو نو سعديک شو .

الا ان اسعد يتعدى بنفسه : په دې عبارت سره داول مثال اودويم مثال په مينځ کې فرق ظاهروي ، اسعد دابې دواسطې دحرف جر نه متعدي وي . او الب دلام په واسطه باندې متعدي وي .

## ﴿ اَلْمَفْعُوْلُ بِهٖ ﴾ :

## د مفعول به تعريف :

| |
|---|
| اَلْمَفْعُوْلُ بِهٖ هُوَ مَا وَقَعَ اَيْ هُوَ اِسْمٌ مَا وَقَعَ عَلَيْهِ فِعْلُ الْفَاعِلِ وَ لَمْ يَذْكُرِ |
| مفعول به هغه چې واقع وي يعنې داهغه اسم دي چې واقع وي په دې باندې فعل دفاعل اوذکر يې نه کړو ماتن |
| الْاِسْمَ اِكْتِفَاءً بِمَا سَبَقَ فِي الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ وَ الْمُرَادُ بِوُقُوْعِ فِعْلِ الْفَاعِلِ |
| اسم اکتفاء يې وکړه په هغه څيزباندې کوم چې په مفعول مطلق کې تيرشوي دي اومرادپه وقوع فعل دفاعل په |
| عَلَيْهِ تَعَلُّقُهٗ بِهٖ بِلَا وَاسِطَةِ حَرْفِ الْجَرِّ فَاِنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ فِيْ ضَرَبْتُ زَيْدًا اِنَّ الضَّرْبَ وَاقِعٌ |
| دې پورې متعلق کيدل دي بې د واسطې د حرف جر نه ځکه چې دوي وايي په ضربت زيدا کې چې ضرب واقع دي |
| عَلٰى زَيْدٍ وَلَا يَقُوْلُوْنَ فِيْ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ اِنَّ الْمُرُوْرَ وَاقِعٌ عَلَيْهِ بَلْ مُتَلَبِّسٌ بِهٖ . |
| په زيد باندې اودا به نه وايي په مررت بزيد کې چې مرور واقع دي په ده باندې بلکې ددې سره متلبس دي . |

**خلاصه دمتن** : به دې عبارت سره صاحب دکافيې دمفعول به تعريف کوي چې مفعول به دهغه څيز نوم دي چې په هغې باندې دفاعل فعل واقع وي لکه ضربت زيداً .

**اغراض دجامي** : اي هو اسم : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : کلمه دما ددوه حالتونو نه خالي نه ده يا به ددې نه مراد اسم وي ، اويا به مسمى ، اودادواړه احتماله صحيح نه دي ځکه چې که چيرته دما نه مراداسم واخلې نو په دې باندې دفاعل دفعل وقوع صحيح نه دي ځکه چې دفعل وقوع په مسمى باندې کيږي نه په اسم باندې اوکه چيرته دمانه مراد مسمى واخلې نو خروج عن المبحث به لازم راشي ځکه چې بحث په اسم

کې کیږي نه په مسمی کې .

**جواب** : دما نه مراد مسمی دي لیکن مضاف محذوف دي کوم چې اسم دي په اصل کې دا هو اسم ما وقع الخ وو اوس د فاعل د فعل وقوع هم صحیح شوه او خروج عن المبحث هم لازم رانه غلو

ولم یذکر الاسم : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : په دې صورت کې خوپه تعریف کې تقدیرلازم راغلوکوم چې جائزنه دي ځکه چې تعریف د معرف دوضاحت دپاره وي اوپه تقدیر کې تجهیل دي کوم چې مخل اونقصان ده دې تعریف او وضاحت ته .

**جواب** : په تعریف کې تقدیر په هغه وخت کې ناجائز دي چې کله په دې باندې قرینه موجود نه وي اوکه چیرته قرینه موجود وي نو جائز دي اودلته قرینه موجود ده چې دمفاعیلو نه د تولو نه مخکې مفعول یعنې دمفعول مطلق په تعریف کې لفظ داسم مذکور دي اوهمدا لفظ په تولو مفاعیلوکې ملحوظ دي.

والمراد بوقوع : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمفعول به تعریف جامع نه دي داپه ایاک نعبد کې په ایاک باندې صادق نه راځي ځکه چې عبادت په الله باندې نه واقع کیږي بلکې عبادت دالله دپاره وي همدارنګې داتعریف په ما ضربت زیدا کې په زید باندې هم صادق نه راځي ځکه چې ضرب په زید باندې واقع نه دي بلکه دزید نه دضرب نفي دي حالانکه دامفعول به دي .

**جواب** : په مفعول به باندې دفاعل دفعل دواقع کیدو نه مراد دادې چې ددې سره دفعل تعلق وي بیا دا تعلق عام دي که نفیا وي یا اثباتا وي ، اوس داتعریف په ایاک نعبد کې په ایاک باندې صادق راغي ځکه چې دعبادت تعلق دالله سره دي اثباتا اوپه ما ضربت زیدا کې په زید باندې هم صادق راغلو ځکه چې اګرچې دضرب تعلق دزید سره اثباتا نه دي لیکن نفیا دي اوقاعده داده چې السوالب تابعة للموجبات ، چې سوالب داتابع وي دموجباتو.

بلاواسطة : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : دمفعول به تعریف ددخول دغیر نه مانع دي ځکه چې داتعریف په مررت بزید کې په

زید باندې صادق راځي ځکه چې ددې سره د مرور دفعل تعلق دي حالانکه دامفعول به نه دي بلکه جار مجرور دي

**جواب** : د تعلق نه مراد تعلق بلاواسطه حرف جار دي او په ذکر شوي مثال کې د زید سره د مرور والا فعل تعلق خو دي لیکن بې د واسطې د حرف جر نه . نه دي بلکه په واسطې د حرف جر دي لهذا په دې باندې تعریف صادق نه راځي .

**فانهم یقولون** : په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د دې څه وجه ده چې په ضربت زیدا کې زید یې مفعول به جوړ کړو او په مررت بزید کې یې زید مفعول به جوړ نه کړو حالانکه چې لکه څنګه په ضربت زیدا کې د ضرب د زید سره تعلق دي همدارنګې په مررت بزید کې هم د مرور تعلق د زید سره دي .

**جواب** : د دې وجه عرف او عادت دي چې د اهل لغتو عادت همدارنګې جاري دي چې په ضربت زیدا کې خو دا وایي چې ضرب په زید باندې واقع دي او په مررت بزید کې دا نه وایي چې د فعل مرور په زید باندې واقع دي بلکې دا وایي چې مرور د دې سره متلبس دي .

## د تعریف د قیودو فوائد:

| |
|---|
| فَخَرَجَ بِهِ الْمَفَاعِيْلُ الثَّلَاثَةُ الْبَاقِيَةُ فَإِنَّهُ لَا يُقَالُ فِيْ وَاحِدٍ مِنْهَا إِنَّ الْفِعْلَ |
| نو خارج شو په دې سره باقي مفاعیل ثلاثه ځکه چې د دې نه یو ته نه شي ویلې چې فعل واقع دي په دې باندې |
| وَاقِعٌ عَلَيْهِ بَلْ فِيْهِ أَوْ لَهُ أَوْ مَعَهُ وَ الْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ بِمَا يُفْهَمُ مِنْ مُغَايَرَتِهِ لِفِعْلِ |
| بلکې په دې کې یا د دې د پاره یا د دې سره او مفعول مطلق د هغه څه د وجې نه چې فهمیږي د مغایرت د فعل د |
| الْفَاعِلِ فَإِنَّ الْمَفْعُوْلَ الْمُطْلَقَ عَيْنُ فِعْلِهِ. |
| فاعل د وجې نه خارج شو ځکه چې مفعول مطلق د خپل فعل عین وي . |

**اغراض د جامي** : فخرج به : په دې عبارت سره غرض د شارح د قیودا تو فوائد بیانول دي ،

**ماوقع علیه فعل الفاعل** نه باقي مفاعیل مفعول فیه ، مفعول معه ، مفعول له خارج شو ځکه چې د دې په باره کې دا نه شي ویلې چې په دې باندې فعل واقع وي بلکې ویلې شي چې په دې کې فعل واقع وي یا د دې د پاره واقع دي یا د دې سره واقع دي او همدارنګې مفعول مطلق هم خارج شو ځکه چې **وقع علیه فعل الفاعل** نه دا هم معلومیږي چې مفعول به د فعل مغایر وي حالانکه چې

هيځ يو فعل په خپل نفس اوپه خپل ذات باندې نه واقع کيږي اومفعول مطلق دفعل مغاير نه وي بلکه ددې عين وي

## د فعل د فاعل نه مراد او مقصد :

وَ الْمُرَادُ بِفِعْلِ الْفَاعِلِ فِعْلٌ بِ اعْتُبِرَ اِسْنَادُهُ إِلَى مَا هُوَ فَاعِلٌ حَقِيْقَةً أَوْ حُكْماً

اومراد دفعل دفاعل نه هغه فعل چې معتبر کړې شي اسناد دې هغه طرف ته چې فاعل وي حقيقةً اوياحکمًا نو

فَخَرَجَ بِهِ مِثْلُ زَيْدٌ فِيْ ضُرِبَ زَيْدٌ عَلَى صِيْغَةِ الْمَجْهُوْلِ فَإِنَّهُ لَمْ يُعْتَبَرْ اِسْنَادُهُ إِلَى فَاعِلِهِ وَ

خارج شو په دې سره زيد په ضرب زيد کې په صيغې دمجهول سره خکه چې نه دې معتبر اسناد دې فاعل ته اوځه

لاَ يُشْكَلُ بِمِثْلِ أُعْطِيَ زَيْدٌ دِرْهَماً فَإِنَّهُ يَصْدُقُ عَلَى دِرْهَماً أَنَّهُ وَقَعَ عَلَيْهِ

اشکال نشته په اعطي زيد درهما باندې خکه چې داصادقيږي په درهما باندې خکه چې په دې باندې واقع کيږي

فِعْلُ الْفَاعِلِ الْحُكْمِيِّ الْمُعْتَبَرِ اِسْنَادُ الْفِعْلِ إِلَيْهِ فَإِنَّ مَفْعُوْلَ مَالَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهُ فِيْ حُكْمِ الْفَاعِلِ

فعل دفاعل حکمي چې معتبر دي اسناد دفعل دې طرف ته خکه چې مفعول مالم يسم فاعله په حکم دفاعل کې

وَ بِمَا ذَكَرْنَا ظَهَرَ فَائِدَةُ ذِكْرِ الْفَاعِلِ فَلاَ يَرِدُ أَنَّهُ لَوْ قَالَ مَا وَقَعَ عَلَيْهِ الْفِعْلُ

دي اوپه هغه چې مونږ ذکر کړې ظاهريږي فائده د ذکر دفاعل نو نه وارديږي داکه چيرته وويل شي ماوقع عليه الفعل

لَكَانَ أَخْصَرَ نَحْوُ ضَرَبْتُ زَيْداً فَإِنَّ زَيْداً قَدْ وَقَعَ عَلَيْهِ بِلاَ وَاسِطَةِ حَرْفِ الْجَرِّ فِعْلٌ

نو دابه ډير مختصر وي لکه ضربت زيدا خکه زيدا کله واقع کيږي په دې باندې بې دواسطې دحرف جر نه فعل

أُعْتُبِرَ اِسْنَادُهُ إِلَى الْفَاعِلِ الَّذِيْ هُوَ ضَمِيْرُ الْمُتَكَلِّمِ .

چې معتبر وي اسناد دې هغه فاعل ته چې هغه ضمير دمتکلم وي .

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب کافيه دفعل دفاعل نه چې کوم مراد او مقصود دي دهغې وضاحت کوي

**اغراض دجامي** : <u>والمراد بفعل</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : دمفعول به تعريف نه مانع دي اونه جامع ، جامع څکه نه دي چې دا په ضُرِبَ زيد کې په زيد باندې صادق نه راځي خکه چې په دې باندې دفاعل فعل واقع ږي حالانکه زيد مفعول به نه دي بلکه نائب فاعل دي ، اوجامع خکه نه دي خکه چې داتعريف په اعطي زيد درهما کې په درهما باندې صادق نه راځي خکه چې په دې باندې دفاعل فعل نه دي واقع بلکه دنائب فاعل

فعل واقع دي

**جواب**: نو ددې جواب دادې چې ما وقع علیه فعل الفاعل کې فعل الفاعل مرکب اضافي دي په دې کې مضاف په فعل کې هم تصرف اوتاویل کولې شي اوپه مضاف الیه الفاعل کې هم تاویل کولې شي په مضاف کې به داتاویل کولې شي چې دفعل نه مراد مطلق فعل نه دي بلکه هغه فعل مراد دي چې دهغې اسناد فاعل طرف ته معتبر وي اوپه فاعل کې داتاویل وکړې شي چې په دې کې تعمیم دي برابره خبره ده چې فاعل حقیقتاً وي اویا حکما چې کله دفعل نه مراد هغه فعل وي چې دهغې اسناد فاعل طرف ته معتبر وي نو ددې نه ضرب زید کې زید خارج شو ځکه چې ددې فعل اسناد فاعل طرف ته نه دي بلکه مفعول طرف ته دي اوچې کله په فاعل کې تعمیم وي برابره خبره ده چې حقیقتاً وي اویاحکما نوداتعریف په اعطي زید درهما کې په درهما باندې صادق راغلو ځکه چې په دې باندې دفعل حکمي فعل واقع کیږي ځکه چې زید دنائب فاعل کیدو دوجې نه دفاعل په حکم کې کیږي.

**وبما ذکرنا**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: علامه ابن حاجب رَحِمَهُ اللَّهُ په خپل کتاب کې داختصار قائل دي اوپه عبارت کې اصل ایجاز او اختصار دي نومصنف ته په کار وو چې داسې یې ویلي وي چې ما وقع علیه الفعل په دې سره مقصود هم حاصلیدو اواختصار هم وو د الفاعل اضافه بې فائدې اوبې ضرورته دي.

**جواب**: دپورتنې تقریر اودسوال اوجواب نه دالفاعل دذکر کولو فائده هم واضحه شوه چې ددې نه هغه زید خارج شوکوم چې په ضُرب زید کې واقع دي اوپه دې کې داخل دي درهما کوم چې په أعطي زید درهما کې واقع دي که چیرته الفاعل یې نه وي ذکر کړي نو دفاعل اوداسناد اعتبار به مقدر منل راتللو نو چې کله یې فاعل ذکر کړو نو اوس صرف داسناداعتبار مقدر منل راغلل ځکه چې داقید بې فائدې اوبې ضرورته نه دي بلکې ضروري دي.

**فان زیدا**: په دې عبارت سره مثال په ممثل باندې تطبیق کوي چې په ضربت زیدا کې زید مفعول به دي ځکه چې په دې باندې بې دواسطې دحرف جر نه دفاعل فعل واقع کیږي اوددې فعل اسناد فاعل طرف ته معتبر دي اوهغه فاعل ضمیر متکلم دي.

## د مفعول به جوازي او وجوبي تقديم :

| |
|---|
| وَ قَدْ يَتَقَدَّمُ الْمَفْعُوْلُ بِهِ عَلَى الْفِعْلِ الْعَامِلِ فِيْهِ لِقُوَّةِ الْفِعْلِ فِي الْعَمَلِ فَيَعْمَلُ |
| او كله كله مقدم وي مفعول به په هغه فعل باندې چې عامل وي په دې كې دوجې دقوت دفعل نه په عمل كې نو عمل |
| فِيْهِ مُتَقَدِّماً وَ مُتَأَخِّراً إِمَّا جَوَازاً مِثْلُ اَللّٰهَ اَعْبُدُ وَ وَجْهَ الْحَبِيْبِ اَتَمَنّٰى وَ إِمَّا وُجُوْباً فِيْمَا تَضَمَّنَ |
| به كوي په دې كې مقدم يا مؤخر يا جوازا لكه الله اعبد ووجه الحبيب اتمنى او يا وجوبا په هغه ځه كې چې متضمن |
| مَعْنَى الْإِسْتِفْهَامِ وَ الشَّرْطِ نَحْوُ مَنْ رَأَيْتَ وَمَنْ تُكْرِمْ يُكْرِمْكَ هٰذَا إِذَا لَمْ يَكُنْ مَانِعٌ مِنَ التَّقْدِيْمِ |
| وي معنى دا ستفهام او شرط لره لكه من رايت ومن تكرم يكرمك دا په هغه صورت كې چې نه وي مانع دتقديم نه |
| كَوُقُوْعِهِ فِيْ حَيِّزِ اَنْ نَحْوُ مِنَ الْبِرِّ اَنْ تَكُفَّ لِسَانَكَ. |
| لكه واقع كيدل د دې په ځاى دان لكه من البر ان تكف لسانك . |

**خلاصه دمتن:** دتعريف نه دفارغيدو نه پس اوس دمفعول به احكام بيانوي ، په پورتني عبارت كې دمفعول به يوه قاعده بيانوي چې كله مفعول به دفعل نه مقدم وي بيا دا تقديم كله جائز وي لكه الله اعبد او كله واجب لكه من رايت او كه چيرته كوم مانع موجود وي نو بيا تقديم جائز نه دي لكه من البر ان تكف لسانك ، چې باقي تفصيل او وضاحت يې لاندې په شرحه كې ذكر شوې دي

**اغراض دجامي :** المفعول به : په دې عبارت سره بيان دمرجع كوي چې د يتقدم دضمير مرجع مفعول به دي

العامل فيه : په دې عبارت سره غرض دشارح ددوه (۲) سوالينو مقدرو جواب وركول دي :

**اول سوال :** تقديم دمعمول په فعل باندې دفعل دا حوالو او دمباحثو نه دي دا په بحث دفعل كې ذكر كول په كار وو نه دا سم په بحث كې دلته ددې ذكر خروج عن المبحث دي .

**دوهم سوال :** چې لكه څنګه مفعول به دفعل نه مقدم وي نو همدا رنګې شبه فعل نه هم مقدم وي نو دفعل تخصيص يې ولې وكړو ؟

**جواب :** دلته دفعل نه مراد مطلق عامل دي كوم چې فعل او شبه فعل دواړو ته شامل دي او د فعل تخصيص يې ددې وجې نه وكړو چې دا په عمل كې اصل دي او د اول سوال جواب يې په دې طريقې سره وركړو چې دلته دفعل نه مراد مطلق فعل نه دي بلكه عامل او ناصب دمفعول

به دي خکه چي داد مفعول به د متعلقاتو اومباحثونه دي په همدي بناء باندي دايي په ذکر د مفعول کي ذکر کړو نو خروج عن المبحث لازم رانه غلو

**لقوة الفعل**: په دي عبارت کي دحکم مذکور دوجي بيان دي چي مفعول به د فعل نه مقدم کول د دي وجي نه جائز دي چي دفعل عامل قوي دي اودا په معمول مقدم اومؤخر دواړو کي عمل کوي .

**اما جوازاً**: په دي عبارت کي د مفعول به د اقسامو بيان کوي چي د دي دري ۳ قسمونه دي (۱) جائز (۲) واجب (۳) ممتنع

**(۱)**: دجوازي مثال لکه الله اعبد په دي کي لفظ د الله مفعول به دي داعبد اوددي نه به جوازي طريقي سره مقدم دي اوپه وجه الحبيب اتمنى کي وجه الحبيب مفعول به دي د اتمنى کوم چي د دي نه په جوازي طريقي سره مقدم دي .

**(۲)**: د مفعول به په وجوبي طريقي سره مقدم کيدل په هغه وخت کي کيږي چي کله مفعول به د استفهام يا د شرط معنى ته متضمن وي د استفهام مثال من رايت په دي کي من مفعول به دي کوم چي د رأيت نه په وجوبي طور باندي مقدم دي اودشرط مثال لکه من تکرم يکرمک په دي کي من مفعول به دي دتکرم اوددي نه په وجوبي طريقي سره مقدم دي .

**(۳)**: هذا اذا لم يکن په دي عبارت سره ددريم قسم بيان کوي چي د مفعول به تقديم جواز يا وجوب په هغه وخت کي دي چي کله دتقديم نه کوم مانع موجود نه وي اوچي کله کوم مانع موجود وي نو د مفعول به مقدم کيدل ممتنع دي اوهغه مانع د مفعول به د ان مصدريه لاندي واقع کيدل دي لکه من البر ان تکف لسانک په دي کي لسانک دتکف مفعول به دي داپه خپل عامل تکف باندي مقدم کول جائز نه دي خکه چي ان مصدر فعل په تاويل د مصدر سره گرځوي او مصدر کمزوري عامل دي دخپل معمول په مقدم کولو کي عمل نه شي کولي خکه چي په دي صورت کي د مفعول به مقدم کول ممتنع دي .

## د مفعول به د فعل حذف جوازي :

| وَ قَدْ يُحْذَفُ الْفِعْلُ الْعَامِلُ فِي الْمَفْعُوْلِ بِهِ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ مَقَالِيَةٍ اَوْ حَالِيَةٍ جَوَازاً نَحْوُ |
|---|
| اوکله کله حذف کيږي هغه فعل چي عامل وي په مفعول به کي دوجي د قيام د قريني مقالبي اوياحاليي جوازاً لکه |

زَيْداً لِمَنْ قَالَ مَنْ اَضْرِبُ اَىْ اَضْرِبُ زَيْداً فَحُذِفَ الْفِعْلُ لِلْقَرِيْنَةِ الْمَقَالِيَةِ الَّتِیْ
زید دهغه چاد پاره چې ووایي من اضرب یعنې اضرب زیدانو حذف کړې شو فعل دپاره دقیام دقرینې مقالیې هغه

هِيَ السُّوَالُ وَ نَحْوُ مَكَّةَ لِلْمُتَوَجِّهِ اِلَيْهَا اَىْ تُرِيْدُ مَكَّةَ فَحُذِفَ الْفِعْلُ لِلْقَرِيْنَةِ الْحَالِيَةِ وَ وُجُوْباً فِیْ
چې سوال دي اولکه مکة دې طرف ته تلونکي دپاره یعنې ترید مکة نو حذف کړې شوه قرینه حالیه اووجوبا په

اَرْبَعَةِ مَوَاضِعَ تَخْصِيْصُهَا بِالذِّكْرِ لَيْسَ لِلْحَصْرِ لِوُجُوْبِ الْحَذْفِ فِیْ بَابِ الْاِغْرَاءِ
څلورو ځایونو کې دایې خاص کړو دذکر پورې دانه دي دپاره دحصر دوجې دوجوب دحذف نه په باب داغراء کې

وَالْمَنْصُوْبِ عَلَى الْمَدْحِ اَوِالذَّمِّ اَوِالتَّرَحُّمِ بَلْ لِكَثْرَةِ مَبَاحِثِهَا بِالنِّسْبَةِ اِلٰى هٰذِهِ الْاَبْوَابِ.
اوپه منصوب علی المدح اویاذم اویاترحم کې بلکې دکثرت مباحثو دي نه په نسبت سره دې ابوابو ته

**خلاصه دمتن:** کله کله دمفعول به فعل په وخت دقیام دقرینې کې حذف کولې شي بیا داحذف به یا جوازي وي لکه یو کس ووایي چې من اضرب نو ددې په جواب کې وویل شي زیدا ، زیدا مفعول به دي دفعل محذوف کوم چې اضرب دي په اصل کې اضرب زیدا وو اضرب فعل یې حذف کړو د قرینې مقالیې ( دسائل سوال ) دوجې نه همدارنګې کوم کس چې مکې طرف نه روان وي او ده ته وویل شي چې مکة . نو مکة مفعول به دي دفعل محذوف کوم چې ترید دي داپه اصل کې ترید مکة وو د ترید فعل یې حذف کړو ددې په حذف باندې قرینه حالیه ( دمکې طرف ته دتللو حالت ) دي .

**اغراض دجامي :** وجوباً: ددې عطف په جوازاً باندې دي یعنې دمفعول به دفعل ناصبه حذف کله وجوبي وي اوداوجوبي په څلورو ځایونو کې وي چې په دې څلوره ځایونو کې حذف کول واجب دي چې تفصیل یې مخکې را روان دي

**العامل في المفعول به:** په دې عبارت سره غرض دشارح ددوه سوالونو مقدرو جواب ورکول دي

**سوال (۱)** : دلته دمفعول به بحث کیږي نه دحذف دفعل لهذا دحذف دفعل نه بحث کول اشتغال بما لایعني اوخروج عن المبحث دي

**سوال (۲)** : چې لکه څنګه دفعل حذف کول جائز دي همدارنګې دشبه فعل [illegible]ف کول هم جائز دي دفعل تخصیص یې ولې وکړو؟

**جواب** : په العامل سره شارح ددواړو سوالونو جواب ورکړو چې دلته مطلق فعل مراد نه دي

بلکه عامل او ناصب للمفعول به مراد دي لهذا خروج عن المبحث لازم رانه غلو همدارنګي شبه فعل هم په دې کې داخل شو ځکه چې لفظ د العامل فعل اوشبه فعل دواړو ته شامل دي او دې تفصیل مخکې په بحث د مفعول مطلق کې تفصیلاً تیر شوي دي ، هلته یې وګورئ

مقالية اوحالية : په دې عبارت سره شارح د قرینې اقسام بیانوي چې قرینه په دوه (۲) قسمه ده (۱) قرینه حالیه (۲) قرینه مقالیه دهر یو مثال په شرحه کې ذکر دي

تخصیصها : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : دحذف وجوبي تخصیص دار بعة مواضع سره صحیح نه دي ځکه چې ددې څلورو (۴) ځایونو نه غیر هم د مفعول به د عامل ناصبه حذف کول واجب وي لکه (۱) باب الاغراء (۲) منصوب على المدح ۳ منصوب على الذم (۴) منصوب على الترحم . د باب الاغراء مثال لکه اخاک اخاک یعني الزم اخاک په دې کې اخاک مفعول به دي ددې فعل وجوبي طور باندې حذف دي . د منصوب على المدح مثال الحمد لله الحمید یعني اعني الحمید او د منصوب على الذم مثال لکه اتاني زید الفاسق یعني اعني الخبیث ، او د منصوب على الترحم مثال لکه مررت بزید المسکین یعني اعني المسکین په دې ټولو ځایونو کې د مفعول به د عامل حذف کول واجبیږي .

**جواب** : د مواضع اربعة تخصیص دحصر دپاره نه دي بلکه داپه نسبت سره نورو ځایونو ته . اوپه دې څلورو ځایونو کې مباحث ډیر دي ځکه یې داذکر کړل اونور مواضع یې دغیر اهم کیدو دوجې نه ذکر نه کړل .

**فائده (۱)** : د اغراء معنی ده مخاطب په یو فعل باندې برانګیخته کول اوپه باب داغراء کې دتنګي دوخت په بناء باندې حذف دفعل واجب وي

**فائده (۲)** : په اغراء اوتحذیر کې فرق دي په اغراء کې اقدام على الشيء باندې برانګیخته کولې شي اوپه تحذیر کې اعراض عن الشيء باندې برانګیخته کولې شي لکه ایاک والاسد لهذا بعضې حضراتو چې اغراء په تحذیر کې داخله کړي ده داصحیح نه ده

## د مفعول به د فعل حذف وجوبي سماعي :

| اَلْاَوَّلُ مِنْ تِلْكَ الْمَوَاضِعِ الْاَرْبَعَةِ سِمَاعِيٌّ مَقْصُوْرٌ عَلَى السِّمَاعِ لَا يَتَجَاوَزُ عَنْ اَمْثِلَةٍ مَحْدُوْدَةٍ مَسْمُوْعَةٍ |
| --- |
| اول ددې څلورو ځایونه سماعي دي چې مقصور وي په سماع باندې چې تجاوز نه کوي دمثالونو محدودو مسموعو |

| |
|---|
| بِأَنْ يُقَاسَ عَلَيْهَا اَمْثِلَةٌ أُخرىٰ نَحْوُ اِمْرَأً وَنَفْسَهُ اَیْ اُتْرُکْ اِمْرَأً وَنَفْسَهُ وَانْتَهُوْا خَيْراً لَّكُمْ اَیْ |
| نه چې قیاس کړي شي په دې باندې نور مثالونه لکه امرأ ونفسه یعني اترک امرأ ونفسه وانتهوا خیرا لکم یعني منع |
| اِنْتَهُوْا عَنِ التَّثْلِيْثِ وَاقْصِدُوْا خَيْراً لَّكُمْ وَ هُوَ التَّوْحِيْدُ وَ اَهْلاً وَ سَهْلاً اَیْ اَتَيْتَ اَهْلاً |
| شي ای عیسایانو د تثلیث نه او اراده وکړي د خپل خان د پاره د خیر او هغه خیر توحید دی او اهلا وسهلا یعنې اَتَيْتَ اَهْلاً |
| مَكَاناً مَأْهُوْلاً مَعْمُوْراً لاَ خَرَاباً وَ اَهْلاً لاَ اَجَانِبَ وَ وَطِيْتَ سَهْلاً مِنَ الْبِلاَدِ |
| هغه ځای ماهول یعنې آباد ته نه خراب ته او راغلی یې ته خپلوانو ته نه پردو ته او تا په نرم ځای باندې قدم کیخودو |
| لاَ حَزْناً. |
| نه په سخت باندې |

**خلاصه دمتن**: هغه څلور ځایونه چیرته چې د مفعول به فعل ناصبه حذف کول واجب دي د دې نه اول مقام سماعي دي یعني د دې کومه قاعده کلیه نشته بلکه په مورد د سماع باندې مقصور او بند دي لکه امرأ ونفسه او انتهوا خیرا لکم.

**اغراض دجامي**: <u>من تلک المواضع</u>: په دې سره شارح د جامي اشاره کړې چې په الاول باندې الف لام د عهد خارجي دي د دې نه خاص مواضع مراد دي

<u>مقصور</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: ماتن راتلونکي دري اقسام: منادی، تحذیر، ما اضمر عامله کې هم د فعل حذف سماعي یعني مسموع عن العرب دي نو د اول قسم تخصیص او د دې تقابل د اقسامو ثلاثو سره صحیح نه دي.

**جواب**: شارح مقصور علی السماع سره جواب ورکوي چې د سماعي معنی ده صرف په سماع باندې موقوف کیدل د عربو نه او ریدل شوي وي او محدود مثالونو نه متجاوز نه وي او په دې باندې به نور مثالونه، نه شي قیاس کولې په خلاف د منادی، تحذیر وغیره چې د هغه مورد په سماع باندې مقصور نه دي بلکې په دې باندې نور مثالونه هم قیاس کولې شي لهذا تقابل صحیح دي.

<u>امرأ ونفسه</u>: په دې عبارت سره د مثال وضاحت کوي چې دا په اصل کې اترک امرأ ونفسه دي امرأ مفعول به دي د اترک د پاره کوم چې په وجوبي طور باندې محذوف دي او د نفسه په ترکیب کې دوه احتماله دي (۱) واو عاطفه دي او د نفسه عطف په امرأ باندې دي (۲) واو په معنی د مع دي او نفسه مفعول معه دي.

**وانتهوا خیرا لکم** : دا د حذف سماعي دویم مثال دي دا په اصل کې انتهوا عن التثلیث واقصدوا خیرا لکم وو، خیراً مفعول به دي د اقصدوا کوم چې محذوف دي وجوباً او سماعاً

**اهلاً وسهلاً** : دا دریم مثال دي د دې اصل اتیت اهلا او وطیت سهلا دي او لفظ د اهل د دوه (۲) شیانو په مقابله کې راځي

**(۱)** : دخراب او وران په مقابله کې په دې صورت کې اهل په معنی د ماهول او د معمور به وي او دا به صفت وي د پاره د مکاناً موصوف محذوف نو معنی به یې دا سې شي چې ته آباد ځای ته راغلې یې نه وران ځای ته .

**(۲)** دویم د اجنبي په مقابله کې په دې صورت کې به یې معنی داوي چې ته خپل کور او خپلو خپلوانو ته راغلې یې نه پردو او اجنبي خلکو ته ، او سهل د سخت په مقابله کې راځي د وطیت سهلاً معنی داده چې تا په نرم ځای قدم ایخي دي نه په سخت ځای باندې .

## د منادی تعریف :

| |
|---|
| وَ الْمَوْضِعُ الثَّانِيْ مِنْ تِلْكَ الْمَوَاضِعِ الْاَرْبَعَةِ الْمُنَادٰى وَ هُوَ الْمَطْلُوْبُ اِقْبَالُهٗ اَيْ تَوَجُّهُهٗ اِلَيْكَ بِوَجْهِهٖ |
| او دویم ځای د دې مواضعو اربعو نه منادی ده او دا هغه ده چې مطلوب وي اقبال د دې یعنې توجه د دې تا ته په مخ |
| اَوْ بِقَلْبِهٖ كَمَا اِذَا نَادَيْتَ مُقْبِلًا عَلَيْكَ بِوَجْهِهٖ حَقِيْقَةً مِثْلُ يَا زَيْدُ اَوْ حُكْمًا مِثْلُ |
| سره یا په زړه سره لکه ته دا سې کس ته آواز و کړې چې مخامخ وي تا ته مخ د هغه حقیقةً لکه یازید او یا حکماً لکه |
| يَا سَمَاءُ وَ يَا جِبَالُ وَ يَا اَرْضُ فَاِنَّهَا نُزِّلَتْ اَوَّلًا مَنْزِلَةَ مَنْ لَهٗ صَلَاحِيَّةُ النِّدَاءِ ثُمَّ اُدْخِلَ |
| یاسماء و یاجبال و یا ارض خکه چې دا نازل شوي اولا په منزلې د هغه چاچې وو د هغه د پاره صلاحیت د نداء بیا داخل |
| عَلَيْهَا حَرْفُ النِّدَاءِ وَ قُصِدَ نِدَائُهَا فَهِيَ فِيْ حُكْمِ مَنْ يُطْلَبُ اِقْبَالُهٗ |
| شو په دې باندې حرف نداء او اراده کړې شوه نداء د دې نو دا په حکم د هغه چا کې دي چې طلب کوي متوجه کول په |
| بِخِلَافِ الْمَنْدُوْبِ لِاَنَّهُ الْمُتَفَجَّعُ عَلَيْهِ اُدْخِلَ عَلَيْهِ حَرْفُ النِّدَاءِ لِمُجَرَّدِ التَّفَجُّعِ لَا |
| خلاف د مندوب خکه چې مندوب متفجع علیه دي داخل شوي په دې باندې حرف نداء صرف د تفجع د پاره نه د |
| لِتَنْزِيْلِهٖ مَنْزِلَةَ الْمُنَادٰى وَ قُصِدَ نِدَائِهٖ فَخَرَجَ بِهٰذَا الْقَيْدِ عَنْ تَعْرِيْفِ الْمُنَادٰى وَلِهٰذَا |
| پاره د واقع کیدو په ځای د منادی او د اراده کولو د نداء نو خارج شو په دې قید سره د تعریف د منادی نه او د دې وجې |
| اَفْرَدَ الْمُصَنِّفُ اَحْكَامَهٗ بِالذِّكْرِ فِيْمَا بَعْدُ وَ فِيْهِ تَحَكُّمٌ فَاِنَّ الْمَنْدُوْبَ |
| نه جدا او ره مصنف احکام د دې په ذکر کولو سره وروستو او په دې کې د زورنې فیصله ده خکه چې مندوب |

| |
|---|
| اَيْضًا كَمَا قَالَ بَعْضُهُمْ مُنَادًى مَطْلُوْبٌ اِقْبَالُهُ حُكْمًا عَلٰى وَجْهِ التَّفَجُّعِ فَاِذَا قُلْتَ |
| همدارنګې لکه چې بعضو ويلي دي چې منادى مطلوب دي اقبال د دې حکماپه وجه د تفجع نو هرکله چې وويل |
| يَا مُحَمَّدَاهُ فَكَاَنَّكَ تُنَادِيْهِ وَ تَقُوْلُ لَهُ تَعَالَ فَاَنَا مُشْتَاقٌ اِلَيْكَ فَالْاَوْلٰى اِدْخَالُهُ |
| يامحمداه نو ګوياچې ته هغه ته آواز کوې اوته ورته وايې چې راشه ځکه چې زه ستامشتاق يم نو اولى داخلول د |
| تَحْتَ الْمُنَادٰى كَمَا فَعَلَهُ صَاحِبُ الْمُفَصَّلِ وَ قِيْلَ الظَّاهِرُ مِنْ كَلَامِ سِيْبَوَيْهِ اَيْضًا |
| مندوب دي لاندې د منادى لکه صاحب د مفصل چې کړي او چاويلي دي چې ظاهر دي د کلام د سيبويه نه همدارنګې |
| اِنَّهُ دَاخِلٌ فِي الْمُنَادٰى بِحَرْفٍ نَائِبٍ مَنَابَ اَدْعُوْ مِنَ الْحُرُوْفِ الْخَمْسَةِ وَ هِيَ |
| همدارنګې چې مندوب په منادى کې داخل دي په داسې حرف سره چې قائمقام وي د ادعو د پنځو حروفو نه او هغه |
| يَا وَاَيَا وَهَيَا وَ اَيْ وَ الْهَمْزَةُ وَ احْتَرَزَ بِهِ عَنْ نَحْوِ لِيُقْبِلْ زَيْدٌ . |
| يا وايا وهيا واى والهمزة دي او احترازيې وکړو په دې سره د ليقبل زيد مثال نه . |

**خلاصه دمتن:** دصاحب د کافيې دعبارت حاصل دادې چې هغه مواضع چيرته چې د مفعول به د فعل ناصبه وجوبي طورباندې حذف کولې شي دهغې نه دويم مقام منادى دي .

**د منادى تعريف** : د منادى تعريف دادې چې منادى هغه اسم دي چې دهغې متوجه کول مطلوب وي دهغه حرف په ذريعه کوم چې د ادعو قائمقام وي .

**اغراض دجامي** : <u>الموضع</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د ترکيب دي شارح دابيان کړه چې الثاني صفت دي د موصوف محذوف الموضع دپاره .

<u>من تلک المواضع</u>: په دې عبارت سره شارح داظاهره کړه چې په الثاني کې الف لام عهدي دي .

<u>اى توجهه</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د اقبال معنى بيانول دي چې د اقبال معنى ده توجه .

<u>بوجهه اوقلبه</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د دوه سوالونو مقدرو جواب ورکول دي .

**اول سوال** : د منادى تعريف جامع نه دي ځکه چې داپه هغه زيد باندې صادق نه راځي کوم چې په يازيد کې واقع دي چې کله دا نداء کوونکي ته دمخکې نه متوجه وي ځکه چې د ده اقبال مطلوب نه دي ورنه د تحصيل حاصل خرابي به لازم راشي ځکه چې هغه د مخکې نه متوجه دي .

**دوهم سوال** : همدارنګې د منادى تعريف په هغه منادى باندې هم صادق نه راځي چې کله

دده او د منادی په مینځ کې دیوال و غیره حائل واقع وي ځکه چې دده اقبال او متوجه کول نه متصور کیږي د حائل اود مانع دوجې نه

**جواب** : دمنادی په اقبال کې تعمیم دي برابره خبره ده چې دمخ سره وي چې دې ته اقبال وجهي ویلي شي یا د زړه سره وي چې دې اقبال ته اقبال قلبي ویلي شي داقبال وجهي مثال سو مدبر ( مخ اړونکي ) رابلل . اوداقبال قلبي مثال لکه یو مقبل ( مخکې نه متوجه شوي کس ) رابلل . همدارنګې دا تعریف په هغه منادی باندې هم صادق راغې چې ددې اودمنادی په مینځ کې څه حائل وي ځکه چې دا هم اقبال قلبي دي

<u>حقیقة اوحکماً</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : یاسماء او یا ارض اویاجبال ددې اقبال نه متصور کیږي نه بالوجه اونه بالقلب ځکه چې دا غیر ذوي العقول اوغیر ذوي الروح دي حالانکه قرآن مجید کې دامنادی واقع ده لکه ﴿ یَٰأَرۡضُ ٱبۡلَعِي مَآءَكِ وَيَٰسَمَآءُ أَقۡلِعِي ﴾

**جواب** : اقبال عام دي برابره خبره ده که دا حقیقتاً وي اویاحکماً اویامجازاً ، حقیقتاً لکه یازید ، حکما لکه یا سماء یا ارض یاجبال ، دحکماً مطلب دادې چې مخکې منادی ددې څیز په مرتبه کې فرض کړي شوي وي چې په کوم څیز کې د نداء صلاحیت وي بیا په دې باندې حرف نداء داخله کړي شوه اوددې دنداء قصد اواراده بې وکړه حکما ددې اقبال مطلوب دي

<u>بخلاف المندوب</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : چې کله په اقبال کې تعمیم دي برابره خبره ده که دا حقیقتاً وي اویاحکماً وي اویا مجازاً نو مندوب دمنادی په تعریف کې داخل شو ځکه چې حکماً ددې اقبال مطلوب دي لهذا دایې دمنادی نه پس جدا ذکر کول صحیح نه دي مصنف رَحِمَهُ اللهُ مندوب جدا ولې ذکر کړو ؟

**جواب** : دالمطلوب اقباله په قیدسره یې مندوب دمنادی نه خارج کړو ځکه چې مندوب متفجع علیه کیږي اوپه دې کې مقصود دمتکلم دمنادی په مرتبه کې فرض کول اوراغوښتل او نداء کول نه دي بلکه صرف تفجع اواظهار درد اوافسوس وي ځکه چې په مندوب کې نه اقبال حقیقي موجود دي اونه حکمي لهذا داقباله دقید نه دا خارج شو په دې بناء باندې مصنف دا جدا ذکر کړو

<u>وفیه تحکم</u>: په دې عبارت سره شارح دجامي په صاحب دکافیه باندې اعتراض کول دي چې -

المطلوب اقباله دقید نه مندوب دمنادی دتعریف نه خارج کول او دحقیقتاً او دحکما تعمیم کول او یا سماء یاارض یا جبال داخلول داتحکم یعنې حکم بې دلیله دي ځکه چې سماء او ارض وغیره چې په هغې کې د اول نه دمنادی دجوړیدو صلاحیت نه وي به وجه دغیر ذوي العقول کیدو هغه دمنادی حکمي په حکم کې داخلول اوهغه مندوب په کوم کې چې دمخکې نه حقیقةً د منادی جوړېدو صلاحیت موجود وي اووروسته دعارض دمرګ دوجې نه ختم شو داپه منادی حکمي کې نه داخلول بالادستي او بې دلیله حکم دي لهذا مندوب هم حکما منادی ده على وجه التفجع ددې اقبال مطلوب وي مثلاً چې کله څوک ووايي یامحمداهٗ ګویا چې دا نبي کریم ﷺ ته آواز کوي او وايي چې تاسو تشریف راوړي زه ستاسو د زیارت او د لیدو مشتاق یم لهذا اولی داده چې مندوب هم په منادی کې داخل کړي لکه صاحب دمفصل چې داخل کړي اودسیبویه دکلام نه هم داظاهره ده.

**تبصره**: دشرح جامي ددې اعتراض جواب بعضې شارحینو داورکړي دي چې مندوب په کلام دعربو کې کثیر الاستعمال اوددې باب وسیع دي اګرچې دادمنادی حکمي په حکم کې داخل کړي شي نوپه باب وسیع اوکثیر الاستعمال کې به دمجاز ارتکاب لازم راشي حالانکه مجاز په وخت دضرورت کې د ډیرې مجبورۍ په حالت کې کله کله استعمالوي ځکه چې مندوب نه حقیقةً منادی دي اونه حکماً اونه مجازاً په منادی کې داخلولې شي.

همدارنګې په کلمه د مندوب باندې کلمه د وا داخله وي که چیرته مندوب په منادی کې داخل کړي نو وا به په حرف نداء کې داخلوي حالانکه دا هیڅ په حروف نداء کې نه ده شمار کړې ددې وجوهو په اساس باندې علامه ابن الحاجب رَحِمَهُ اللّٰهُ مندوب مستقل اوجدا ذکرو اوپه منادی حکمي کې یې داخل نه کړو.

<u>ای من الحروف</u>: داحرف نائب بیان دي چې دحرف نه مراد مطلق حرف نه دي بلکه ددې نه هغه حرف مراد دي کوم چې دپنځو حروفو نه وي.

<u>وهي</u>: په دې عبارت کې دپنځو حروفو دمصداق بیان کوي چې ددې مصداق یا ایا هیا ای همزه مفتوحه ده.

<u>واحترز به</u>: په دې عبارت سره شارح بحرف نائب دقید فائدې بیانوي چې داقید احترازي دي ددې نه دلیقبل زید مثال نه احتراز دي ځکه چې په دې کې اګرچې: زید اقبال مطلوب دي

ليکن دداسې حرف به ذريعه نه دي کوم چې دادعوا قائمقام وي بلکه دلام امر په ذريعه باندې دي او لام دامر د ادعوا قائمقام نه دي

## د طلب اقسام :

| لَفظاً اَوْ تَقْدِيراً تَفصِيلٌ لِلطَّلَبِ اَىْ طَلَباً لَفظِيّاً بِاَنْ تَكُوْنَ آلَةُ الطَّلَبِ لَفظِيَّةً نَحْوُ |
|---|
| لفظاً يا تقديراً اتفصيل دي د پاره د طلب يعنې طلب لفظي وي په دې طريقې سره چې آله د طلب لفظي وي لکه |
| يَا زَيْدُ اَوْ تَقْدِيرِيّاً بِاَنْ تَكُوْنَ آلَتُهُ مُقَدَّرَةً نَحْوُ يُوْسُفُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا اَوْ لِنِيَابَةٍ اَىْ |
| يازيد يا تقديري وي په دې طريقې سره چې آله د طلب مقدر وي لکه يُوْسُفُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا يا د نيابت نه يعنې د |
| نِيَابَةً لَفظِيَّةً بِاَنْ يَكُوْنَ النَّائِبُ مَلْفُوْظاً اَوْ تَقْدِيرِيَّةً بِاَنْ يَكُوْنَ النَّائِبُ مُقَدَّراً كَمَا فِي |
| نيابت لفظي نه په دې طريقې سره چې نائب لفظي وي يا تقديري په دې طريقې سره چې نائب مقدر وي لکه په ذکر |
| الْمِثَالَيْنِ الْمَذْكُوْرَيْنِ اَوْ لِلْمُنَادىٰ وَالْمُنَادىٰ الْمَلْفُوْظُ مِثْلُ يَا زَيْدُ وَالْمُقَدَّرُ مِثْلُ اَلَا يَا اسْجُدُوْا اَىْ اَلَا يَا قَوْمُ اسْجُدُوْا |
| شوودوه مثالونو کې يا منادى او منادى ملفوظ لکه يازيد او مقدر لکه الا يا اسجدوا يعنې الا يا قوم اسجدوا . |

**خلاصه د متن:** صاحب د کافيې دمنادى دتعريف تکميل کوي چې منادى هغه اسم دي چې ددې متوجه کيدل په هغه حرف سره طلب کړې شي چې دادعوا قائمقام وي برابره خبره ده چې دالفظي وي او يا تقديري .

**اغراض دجامي :** تفصيل للطلب : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** دلفظاً اوتقديراً په ترکيب کې دري احتماله دي : (۱) دابه مفعول مطلق وي دالمطلوب (۲) دابه مفعول به مطلق وي دنائب نه . (۳) دابه حال وي داقباله دضمير نه چې دهغې مرجع منادى ده اودا دري واړه احتمالات صحيح نه دي . (۱) اول احتمال خو ددې وجې نه صحيح نه دي چې مطلوب په طلب باندې مشتمل نه دي نه لفظاً اونه تقديراً حالانکه دمفعول مطلق شرط دادې چې دمخکنې فعل معنى په دې باندې مشتمل وي . (۲) دوهم احتمال ځکه صحيح نه دي چې نائب په نيابت باندې مشتمل دي نه په لفظاً اوتقديراً باندې . (۳) دريم احتمال ځکه صحيح نه دي چې دحال حمل په ذوالحال باندې کيږي اودلته دلفظاً اوتقديرا په منادى باندې حمل صحيح نه دي ځکه چې منادى ملفوظ يامقدر وي لفظاً ياتقديراً نه وي .

**جواب :** دري واړه احتمالات صحيح دي : (۱) دامفعول مطلق دي دمطلوب دپاره پاتې شو دا

سوال چې مطلوب په طلب باندې مشتمل نه دي نه لفظاً اونه تقدیراً نو ددې جواب دادې چې لفظاً او تقدیراً مفعول مطلق دي دمطلوب په اعتبارد موصوف محذوف کوم چې طلب دي او ددې په آخر کې یاء دنسبت محذوف ده تقدیر دعبارت داسې دي چې بحرف نائب مناب ادعوا طلباً لفظیاً اوتقدیریاً ، دطلب لفظي مطلب دادې چې آله دطلب ملفوظ وي لکه یازید اودطلب تقدیري مطلب دادې چې آله دطلب مقدر وي لکه یوسف اعرض عن هذا ، داپه اصل کې یوسف اعرض عن هذا وو (۲) دا مفعول مطلق دي دنائب ، پاتې شو داسوال چې نائب په نیابت باندې مشتمل دي په لفظاً اوتقدیراً باندې مشتمل نه دي ددې جواب دادې چې نائب په اعتبار دموصوف محذوف نیابةً مفعول مطلق دي اوددې په آخر کې یاء دنسبت محذوف ده تقدیر دعبارت داسې دي چې بحرف نائب مناب ادعوا نیابةً لفظیاً اوتقدیریاً او دنیابت لفظي مطلب دادې چې نائب ملفوظ وي لکه یازید اود نیابت تقدیري مطلب دادې چې نائب مقدر وي لکه یوسف اعرض عن هذا داپه اصل کې وو یوسف اعرض عن هذا (۳) داحال دي د اقباله د ضمیر نه ، پاتې شو دا سوال چې د حال په ذو الحال باندې حمل کیږي ، نو ددې جواب دادې چې لفظاً اسم مفعول ملفوظاً په معنی باندې دي او تقدیرا د اسم مفعول مقدراً په معنی باندې دي نو اوس به حمل صحیح شي ، نو تقدیر د عبارت به داسې شي چې بحرف نائب مناب ادعوا حال کون المنادی ملفوظاً اومقدراً او د منادی ملفوظ مثال یازید او د مقدر مثال الا یسجدوا ای الا یاقوم اسجدوا

## دمنادی د منصوب کیدو وجه :

| وَ اِنْتِصَابُ الْمُنَادىٰ عِنْدَ سِيْبَوَيْهِ عَلٰى اَنَّهُ مَفْعُوْلٌ بِهٖ وَ نَاصِبُهُ الْفِعْلُ الْمُقَدَّرُ وَ اَصْلُ |
|---|
| اوانتصاب دمنادی په نزد دسیبویه ددې وجې نه دې چې هغه مفعول به دي اوددې ناصب فعل مقدر دي اواصل |
| يَا زَيْدُ اَدْعُوْ زَيْداً فَحُذِفَ الْفِعْلُ حَذْفاً لَازِماً لِكَثْرَةِ اِسْتِعْمَالِهٖ وَ لِدَلَالَةِ حَرْفِ النِّدَاءِ |
| دیازیداِدعوزیداً دي نوحذف یې کړوفعل په لازمي طورسره دوجې دکثرت استعمال نه اودوجې ددلالت دحرف نداء |
| عَلَيْهِ وَ اِفَادَتِهٖ فَائِدَتَهُ وَ عِنْدَ الْمُبَرِّدِ بِحَرْفِ النِّدَاءِ لِسَدِّهٖ مَسَدَّ الْفِعْلِ |
| نه په دې باندې اودوجې دفائدې ورکولو نه اوپه نزد دمبرد دحرف نداء دوجې نه دې دوجې دقائمقام کیدو دفعل نه |
| وَ قَالَ اَبُوْ عَلِيٍّ فِيْ بَعْضِ كَلَامِهٖ اِنَّ يَا وَ اَخَوَاتِهَا اَسْمَاءُ الْاَفْعَالِ فَعَلٰى هٰذَيْنِ الْمَذْهَبَيْنِ لَا |
| اوابوعلی نه خیل بعضې کلام کې ویلی دي چې یاءاوددې اخوات اسماءالافعال دي نوبناپه دې دواړومذاهبونه |

| |
|---|
| يَكُوْنُ مِنْ هٰذَا الْبَابِ اَيْ مِمَّا انْتُصِبَ الْمَفْعُوْلُ بِهٖ بِعَامِلٍ وَاجِبِ الْحَذْفِ وَعَلَى الْمَذَاهِبِ كُلِّهَا مِثْلُ يَازَيْدُ جُمْلَةٌ |
| به وي داددې باب نه يعني منصوب وي مفعول به دوجې د عامل نه اودا په ټولو مذاهبو باندې يازيد مثال جمله ده |
| وَلَيْسَ الْمُنَادٰى اَحَدَ جُزْاَئَيِ الْجُمْلَةِ فَعِنْدَ سِيْبَوَيْهِ جُزْءُ الْجُمْلَةِ اَيِ الْفِعْلُ وَ الْفَاعِلُ مُقَدَّرَانِ وَعِنْدَ الْمُبَرِّدِ |
| اونه ده منادى يو د دوه جزونو دجملې نه نو دسيبويه په نز د جزء دجملې يعني دفعل اودفاعل مقدر دي اودمبرد په |
| حَرْفُ النِّدَاءِ قَائِمٌ مَقَامَ اَحَدِ جُزْاَئَيِ الْجُمْلَةِ اَيِ الْفِعْلِ وَالْفَاعِلُ مُقَدَّرٌ وَعِنْدَ اَبِيْ عَلِيٍّ اَحَدُ جُزْاَئَيْهَا اِسْمُ الْفِعْلِ |
| نزد حرف نداء قائم دي په ځاې د يو جزء دجملې يعني دفعل اودفاعل مقدر او په نزد دابي علي يوجزد اسم الفعل |
| وَالْاٰخَرُ ضَمِيْرٌ مُسْتَتِرٌ فِيْهِ . |
| اوبل ضمير مستتر په دې کې |

**اغراض دجامي** : <u>وانتصاب المنادى</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : منادى دباب دحذف دعامل نه جوړول صحيح نه دي ځکه چې دمنادى عامل ياء حرف نداء ده کوم چې مذکور ده .

**جواب** : دمصنف کلام دسيبويه دمذهب مطابق دي (۱) دسيبويه مذهب دادې چې دمنادى منصوب کيدل دمفعول به په بناء باندې دي اوفعل ناصب مقدر دي يازيد په اصل کې ادعو زيدا وو فعل دکثرت استعمال دوجې نه وجوبا حذف کړې شواوددې وجې نه چې حرف ندا په دې باندې دلالت کوي اوهغه د فعل محذوف فائده ورکوي (۲) اودمبرد مذهب دادې چې دمنادى منصوب کيدل دحرف نداء دوجې نه دي ځکه چې داپه عمل کې دفعل قائمقام دي (۳) اودابوعلي مذهب دادې چې ياء اوددې نظائر داسماء افعالو په شان دي اوخپل مابعد ته دمفعوليت په بناء باندې نصب ورکوي ، د مبرد اودابوعلي دمذهب مطابق منادى دحذف دعامل دباب نه . نه دي ، اودسيبويه مذهب مطابق د حذف دعامل دباب نه دي اودمصنف په نزد مذهب دسيبويه راجح دي ځکه يې منادى دحذف دعامل په باب کې يې شمار کړو .

<u>وعلى المذاهب</u>: په دې عبارت سره شارح د يوې فائدې بيان کوي چې ددرې واړو مذاهبو مطابق يازيد وغيره جمله ده اومنادى دجملې ددوه جزونو نه يو جزء هم نه دي دسيبويه دمذهب مطابق دجملې دواړه جزونه فعل اوفاعل مقدر دي اودمبرد په نزد حرف نداء دجملې ددواړو جزونو نه يو جزء دفعل قائمقام دي اوفاعل مقدر دي ، اودابوعلي دمذهب مطابق دجملې ددواړو جزونو نه يو جزء اسم فعل دى ا[illegible] جزء په دې کې ضمير مستتر دي . ددرې واړو مذاهبو مطابق

زید منادی د جملې نه خارج دې

## اعراب د منادی :

| |
|---|
| وَ يُبْنٰى اَيِ الْمُنَادىٰ قَدَّمَ بَيَانَ انْبِنَاءِ وَ الْخَفْضِ وَ الْفَتْحِ عَلَى النَّصَبِ لِقِلَّتِهَا بِالنِّسْبَةِ اِلَى النَّصَبِ |
| او مبني به وي بعنې منادی مخکې يې کړو بيان د بناء او د جر او د فتح په نصب باندې د وجې د کم نسبت نه د نصب |
| وَ لِطَلَبِ الْاِخْتِصَارِ فِيْ بَيَانِ النَّصَبِ بِقَوْلِهِ وَ يُنْصَبُ مَا سِوَاهُمَا عَلٰى مَا يُرْفَعُ |
| سره او د طلب د اختصار نه په بيان د نصب کې په دې قول سره چې وينصب ماسواهما په هغه څه باندې چې رفع ور کولې |
| بِهٖ اَىْ عَلَى الضَّمَّةِ اَوِ الْاَلِفِ اَوِ الْوَاوِ الَّتِيْ يُرْفَعُ بِهَا الْمُنَادىٰ فِيْ غَيْرِ صُوْرَةِ النِّدَاءِ اَوِ |
| شي دې سره يعنې ضمه يا الف يا واو باندې کوم سره چې د منادی په غير نداء صورت کې رفع ور کولې شي يا |
| الْفِعْلُ مُسْنَدٌ اِلَى الْجَارِ وَ الْمَجْرُوْرِ اَعْنِيْ بِهٖ وَلاَ ضَمِيْرَ فِيْهِ وَ اِرْجَاعُ الضَّمِيْرِ اِلَى الْاِسْمِ غَيْرُ مُلاَئِمٍ |
| فعل چې مسند وي جار مجرور طرف ته قصد کوم زه به او نشته ضمير په دې کې او راجع کول د ضمير اسم ته غير مناسب |
| لِسَوْقِ الْكَلاَمِ اِنْ كَانَ اَيِ الْمُنَادىٰ مُفْرَداً اَىْ لاَ يَكُوْنُ مُضَافاً وَلاَ شِبْهَ مُضَافٍ وَ هُوَ كُلُّ اِسْمٍ |
| دې د سياق کلام سره که چيرته وي يعنې منادی مفرد يعنې نه وي مضاف او نه شبه مضاف او دا هر هغه اسم دې چې |
| لاَ يَتِمُّ مَعْنَاهُ اِلاَّ بِانْضِمَامِ اَمْرٍ آخَرَ اِلَيْهِ مَعْرِفَةً قَبْلَ النِّدَاءِ اَوْ بَعْدَهٗ وَ اِنَّمَا |
| نه پوره کيږي معنی د دې مګر په يو ځای کولو د بل امر د دې سره معرفه مخکې د نداء نه او يا وروسته د دې نه او په |
| بُنِيَ الْمُفْرَدُ الْمَعْرِفَةُ لِوُقُوْعِهٖ مَوْقِعَ الْكَافِ الْاِسْمِيَّةِ الْمُشَابِهَةِ لَفْظاً وَ مَعْنًى لِكَافِ |
| تحقيق سره مبني يې کړه مفرد معرفه د دې د وقوع نه په ځای د کاف اسميه چې مشابه دې لفظاً او معناً د کاف |
| الْخِطَابِ الْحَرْفِيَّةِ وَ كَوْنِهٖ مِثْلَهَا اِفْرَاداً وَ تَعْرِيْفاً وَ ذٰلِكَ لِاَنَّ يَا زَيْدُ بِمَنْزِلَةِ اَدْعُوْكَ وَ هٰذِهِ الْكَافُ |
| خطاب حرفيه سره د مثل کيدو د وجې نه مفرداً و معرفه او دا که چې يا زيد په منزله د ادعوک دې او دا کاف په شان |
| كَكَافِ ذٰلِكَ لَفْظاً وَ مَعْنًى وَ اِنَّمَا قُلْنَا ذٰلِكَ لِاَنَّ الْاِسْمَ لاَ يُبْنٰى اِلاَّ لِمُشَابَهَةِ الْحَرْفِ |
| د کاف د ذلک دې لفظاً او معنی او مونږ دا خکه وويل خکه چې اسم د انه وي مبني مګر د وجې د مشابهت د حرف او |
| اَوِ الْفِعْلِ وَلاَ يُبْنٰى لِمُشَابَهَةِ الْاِسْمِ الْمَبْنِيِّ مِثْلُ يَا زَيْدُ وَ يَا رَجُلُ مِثَالاَنِ لِمَا هُوَ |
| يا د فعل سره او نه شي مبني کيدې د مشابهت د اسم مبني سره لکه يا زيد و يا رجل دا دواړه مثالونه د هغه څه دې چې |
| مَبْنِيٌّ عَلَى الضَّمَّةِ اَوَّلُهُمَا مَعْرِفَةٌ قَبْلَ النِّدَاءِ وَ ثَانِيْهِمَا مَعْرِفَةٌ بَعْدَ النِّدَاءِ وَ يَا زَيْدَانِ مِثَالُ |
| مبني وي په ضمه باندې اول د دې نه معرفه وي مخکې د نداء نه او دويم معرفه ده پس د نداء نه او يا زيدان مثال |
| الْمَبْنِيِّ عَلَى الْاَلِفِ وَ يَا زَيْدُوْنَ مِثَالُ الْمَبْنِيِّ عَلَى الْوَاوِ. |
| دې د مبني على الالف او يا زيدون د امثال دې د مبني على الواو. |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت کې دمنادی داقسامو بیان کوي . منادی په څلور قسمه ده :
(۱) منادی مبني علی علامة الرفع (۲) منادی مجرور (۳) منادی مبني علی الفتح (۴) منادی معرب منصوب ، چې د دې خلاصه داده چې که چیرته منادی مفرد معرفه وي نودابه په علامت درفع باندې مبني وي لکه یازید ، که چیرته په منادی باندې لام داستغاثې داخل وي نودامعرب به مجرور وي لکه یالزید ، اوکه چیرته دمنادی په آخر کې دالف داستغاثه وي نودابه مبنی علی الفتح وي لکه یازیداه که چیرته منادی مفرد معرفه اومنادی مستغاث نه وي نودابه معرب منصوب وي لکه یا عبدالله .

**اغراض دجامي** : ای المنادی: په دې عبارت سره په یبني کې دهو ضمیر مستتر مرجع یې بیان کړه.

قدم بیان البناء : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د منادی د پاره په اعتبار د اعراب سره څلور (۴) احوال دي : (۱) بناء علی علامة الرفع . (۲) جر . (۳) بناء علی الفتح . (۴) نصب ، په دې څلورو کې اصل نصب دي ځکه چې منادی د منصوباتو نه ده اوپه منصوباتو کې بحث کیږي نوعلامه ابن حاجب رَحِمَهُ اللهُ دپاره مناسب وو چې نصب یې مقدم کړي وي اوباقي دري امور یې وروسته ذکر کړي وي نو مصنف دابرعکس ولې وکړو یعنې نصب یې وروسته کړو اودانور یې مخکې کړل ؟

**جواب** : ددې دوه (۲) وجهې دي :

**اوله وجه** داده چې منادی منصوب کثیرالاستعمال اوباقي دري واړه قلیل الاستعمال دي یاقلیل المحل دي اوقلیل په کثیرو باندې مقدم وي ددې وجې نه مصنف رَحِمَهُ اللهُ نصب مؤخر کړو .

**دوهمه وجه** داده چې علامه ابن حاجب رَحِمَهُ اللهُ خوداختصارقائل دي نود طلب داختصار دپاره یې داسې وکړل ځکه چې دمنصوب منادی مواقع اومواضع ډیر زیات دي که چیرته دنصب بیان یې مقدم کړي وي نو بیابه ټول مقامات فردا فردا اوجدا جدا بیانول لازم راتلل چې په هغې سره طوالت لازم راتلو ځکه چې علامه مخکې ددې مقابلات اومغایرات ( دري اقسام ) کوم چې لږ وو هغه یې بیان کړل ددې نه پس یې داوویل چې وینصب ماسواها چې په دې ماسوی کې به منادی منصوب وي او ددې نه اختصار هم حاصل شو کوم چې د مصنف مطلوب او

مقصود دي

اي على الضمة : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دمصداق دما كوي چې په ما كې تعموم دي ضمه ، الف ، واو ټولوته شامل دي

الخ: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي

**سوال** : د يبنى دضمير مرجع منادى ده او ديرفع دضمير مرجع هم منادى ده حاصل د عبارت به داوي چې يبنى المنادى على ما يرفع به المنادى په دې صورت كې به اجتماع ضدين على شئ واحد به لازم راشي ځكه يبنى دلالت كوي چې منادى مفرد معرفه مبني وي او يُرفع دلالت كوي چې معرب وي ځكه چې رفع د القابو داعراب نه دي نودانه دي مګر تعارض اوتناقض

**جواب** : شارح ددې دوه (۲) جوابات وركړي دي

**اول جواب** : اجتماع دضدينو په يو محل كې په يوزمان كې خوناجائزدي ليكن په دوه زمانو مختلفو كې جائزدي دلته دادويم صورت دي چې اجتماع دضدينو په دوه زمانو مختلفو كې راغلي ځكه چې د يبنى نه مراد دحرف نداء داخليدو نه پس زمانه ده او ديرفع نه مراد دحرف نداء ددخول نه مخكې دنداء غير صورت زمانه ده ، نومقصد دعبارت به داوي چې هغه منادى مفرد معرفه چې دحرف نداء ددخول نه مخكې معرب وو دحرف نداء دداخليدوته پس په علامت درفع به مبني ويلي شي .

او الفعل: په دې عبارت سره دسوال ددويم جواب بيان دي

**دوهم جواب** : دا اعتراض په هغه وخت كې وارديږي چې كله ديرفع نائب فاعل په دې كې ضمير دهو مستتر وي اوهغه منادى طرف ته راجع وي حالانكه داسې نه دي بلكه ديرفع نائب فاعل به دي .

وارجاع الضمير: په دې عبارت سره غرض دشارح په فاضل هندي باندې رد كول دي ، فاضل هندي د مذكوره اعتراض جواب داوركړي چې ديرفع دضميرمرجع اسم دي نه منادى لهذا اجتماع دمتضادينو په يو امر باندې لازم نه راځي . مولاناجامي دفاضل هندي جواب رد كړي وجه د رد يې داده چې د يرفع د هو ضمير اسم طرف ته راجع كول د سياق كلام سره مناسب او موافق نه دي ځكه چې دلته په منادى كې بحث كيږي نه په مطلق اسم كې ، همدارنګې په دې صورت كې به انتشار دضمائرو به لازم راشي

ان کان ای المنادی : په دې عبارت سره غرض د شارح دکان دضمیر مرجع بیانول دي

ای لایکون : په دې عبارت سره غرض د شارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : مثال د ممثل له سره مطابق نه دي ځکه چې ممثل له منادی مفرد دي اومثال زیدان زیدون مفرد نه دي بلکه تثنیه اوجمع ده .

**جواب** : دلته مفرد د مضاف او شبه مضاف په مقابله کې دي نه د تثنیې او د جمع په مقابله کې ، لهذا مفرد تثنیه او جمع ته به هم شامل وي . او د مفرد معنی داده چې مضاف شبه مضاف نه وي او زیدان او زیدون مضاف او شبه مضاف نه دي . لهذا مثال د ممثل له سره مطابق شو

وهو کل اسم لایتم : په دې عبارت سره دشبه مضاف دتعریف بیان دي چې شبه مضاف هغه اسم دي چې دهغې معنی دیوبل امر دیوځاې کولو نه په غیر تام نه وي .

قبل النداء : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مثال د ممثل له سره مطابق نه دي ځکه چې ممثل له منادی مفرد معرفه دي اوپه مثال کې رجل نکره ده نه چې معرفه .

**جواب** : په معرفه کې تعمیم دي ، برابره خبره ده چې د نداء نه مخکې معرفه وي او یا د نداء نه پس معرفه وي لکه په یارجل کې رجل دنداء نه مخکې نکره وه لیکن دنداء نه پس معرفه شوه .

وانما بني : په دې عبارت سره غرض دشارح دمنادی مفرد معرفه دمبني کیدو وجه بیانول دي چې ددې تقریر دادې چې منادی مفرد معرفه دکاف اسمي په ځاې کې واقع کیږي اوپه افراد او تعریف کې ددې مشابه دي اوکاف اسمي دذلک دکاف خطاب حرفي مشابه دي لفظاً اومعناً او قاعده ده چې هغه اسم چې دهغه اسم په ځاې واقع وي کوم چې دمبني الاصل مشابه وي نودغه اسم به هم مبني وي لهذا منادی مفرد معرفه مبني وي مثلاً په یازید کې دزید ادعوک کاف د کاف اسمي په ځاې واقع دي اودا کاف اسمي دذلک کذ ف حرفي مشابه دي لفظاً اومعنا لفظاً خوظاهر دي اومعنا ځکه چې دادواړه معنی دخطاب دپاره وضع شوي دي

وانما قلنا : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : منادى مفرد معرفه دمبني كيدو په دليل كې صرف **لوقوعه موقع الكاف الاسمية** ويل كافي وو د دې نه پس **المشابهة لكاف الخطاب الحرفية** ويلو څه ضرورت وو ؟

**جواب** : د **المشابهة** اضافه يې د دې وجې نه وكړه څكه چې اسم مبني وي مبني اصل دحرف يا د فعل د مشابهت دوجې نه ، اسم مبني سره دمشابهت دوجې نه مبني نه وي په دې بناء باندې مصنف د **المشابهة** اضافه وكړه صرف كاف ضمير اسمي سره دمنادى مفرد معرفه دمشابه كيدو دوجې نه د دې بناء ثابت نه وي .

<u>**مثالان**</u>: په دې عبارت سره دممثل له دتعين بيان كوي چې **يازيد** او **يارجل** كې دادواړه دهغه منادى مفرد مثالونه دي چې مبني بنا برضمه وي اول مثال دنداء نه مخكې دمعرفې دي اودويم مثال دنداء نه دپس معرفې دي .

<u>**مثال**</u>: په دې عبارت سره دممثل له دتعين بيان دي چې **يازيدان** دهغه منادى مفرد معرفې مثال دي كوم چې په علامت رفع الف باندې مبني وي او **يازيدون** د هغه منادى مثال دي كوم چې په علامت رفع واو باندې مبني وي .

## منادى مجرور په لام الاستغاثة سره :

| وَ يُخْفَضُ أَيْ يَنْجَرُّ الْمُنَادىٰ بِلَامِ الْإِسْتِغَاثَةِ أَيْ بِلَامٍ تَدْخُلُهُ |
|---|
| اوجرور كولې شي يعنې جربه وركوي منادى ته دلام استغاثې دوجې نه يعنې په داسې لام سره چې داخليږي په |
| وَقْتَ الْإِسْتِغَاثَةِ وَ هِيَ لَامُ التَّخْصِيصِ أُدْخِلَتْ عَلَى الْمُسْتَغَاثِ دَلَالَةً عَلَى أَنَّهُ |
| وخت داستغاثه كې اوهغه لام دتخصيص دي چې داخليږي په مستغاث باندې دلالت كوي په دې خبرې چې دا |
| مَخْصُوصٌ مِنْ بَيْنِ أَمْثَالِهِ بِالدُّعَاءِ مِثْلُ يَا لَزَيْدٍ وَ إِنَّمَا فُتِحَتْ لِئَلَّا يَلْتَبِسَ |
| مخصوص دي په مينځ دخپلو امثالو كې لكه يالزيد او فتحه وركړې شوه د دې وجې نه چې التباس رانه شي د |
| بِالْمُسْتَغَاثِ لَهُ إِذَا حُذِفَ الْمُسْتَغَاثُ نَحْوُ يَا لَلْمَظْلُومِ أَيْ يَا لَقَوْمٍ فَإِنَّهُ لَوْ لَمْ تُفْتَحْ لَامُ |
| مستغاث له سره چې كله حذف شي مستغاث لكه ياللمظلوم يعنې يالقوم څكه چې كه چيرته فتحه ورنه كړې لام |
| الْمُسْتَغَاثِ لَمْ يُعْلَمْ أَنَّ الْمَظْلُومَ فِي هٰذَا الْمِثَالِ مُسْتَغَاثٌ أَوْ مُسْتَغَاثٌ لَهُ وَ لَمْ يُعْكَسِ |
| دمستغاث ته نونه معلوميږي چې مظلوم په دې مثال كې مستغاث دي او يامستغاث له او د دې عكس يې نه |
| الْأَمْرُ لِأَنَّ الْمُنَادىٰ الْمُسْتَغَاثَ وَاقِعٌ مَوْقِعَ كَافِ الضَّمِيرِ الَّتِيْ تُفْتَحُ لَامُ الْجَرِّ مَعَهَا |
| دې اخستې څكه چې منادى مستغاث واقع وي په ځاى دكاف دضمير چې فتحه وركوي د دې سره لام دجر نه |

| |
|---|
| نَحْوُ لَکَ بِخِلاَفِ الْمُسْتَغَاثِ لَهُ لِعَدَمِ وُقُوْعِهِ مَوْقِعَ الضَّمِيْرِ فَإِنْ عَطَفْتَ عَلَى الْمُسْتَغَاثِ بِغَيْرِ |
| لکه لک بخلاف المستغاث له دعدم وقوع نه په ځاي دضمير که چيرته عطف کړي شي په مستغاث باندې په غير د |
| يَا نَحْوُ يَا لِزَيْدٍ وَ لِعَمْرٍو وَ كَسَرْتَ لاَمَ الْمَعْطُوْفِ لِاَنَّ الْفَرْقَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْمُسْتَغَاثِ |
| ياء لکه يالزيد ولعمرو نو کسره به ورکولې شي لام دمعطوف ته ځکه چې فرق په مينځ ددې اوپه مينځ دمستغاث |
| لَهُ حَاصِلٌ بِعَطْفِهِ عَلَى الْمُسْتَغَاثِ وَ اِنْ عَطَفْتَ مَعَ يَا فَلاَ بُدَّ مِنْ فَتْحِ |
| له حاصل دي دوجې دعطف نه په مستغاث باندې اوکه چيرته عطف کړي سره ديانه نولابدي ده دفتحې ورکولو |
| اللاَّمِ الْمَعْطُوْفِ اَيْضاً نَحْوُ يَالَزَيْدٍ وَيَالَعَمْرٍو. |
| نه لام دمعطوف ته همدارنګې لکه يالزيد ويالعمرو |

**خلاصه دمتن:** ددې ځاي نه دمنادی ددويم قسم بيان دي که چيرته په منادی باندې لام داستغاثې داخل وي نودابه معرب مجرور وي لکه يالزيد .

**اغراض دجامي :** اي ينجر : په دې عبارت سره غرض دشارح ددوه سوالونو مقدرو جواب ورکول دي :

**اول سوال :** اول سوال دادې چې خفض باب متعدي دي لهذا داد خافض صفت دي نه دمنادی که چيرته دمنادی صفت شي نودابه خروج عن المبحث لازم راشي .

**دوهم سوال :** دويم سوال دادې چې خفض دحرکت سره خاص دي ځکه چې داهغه منادی مستغاث ته به شامل نه وي کوم چې مجرور بالحرف وي لکه يالزيدين حالانکه دې ته هم منادی مستغاث ويلې شي .

**جواب :** په ينجر سره شارح ددوارو سوالونو جواب ورکوي چې يخفض د ينجر په معنی کې دي اودا لازمي دي اودمنادی صفت دي همدارنګې جر عام دي منادی مجرور بالحرکت اومجرور بالحرف دواړو ته شامل دي .

اي بلام تدخله : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** دلام اضافت استغاثې طرف ته صحيح نه دي ځکه چې لام حرف دي اوحرف خپل مدلول اومعنی طرف ته مضاف وي اواستغاثه دلام دمعانيو اومدلول نه ، نه دي .

**جواب :** دلام اضافت استغاثې طرف ته دادنی ملابست اومناسبت دوجې نه دي اوهغه ادنی

ملابست دادي چې دا داستغاثې په وخت کې په لام د منادی باندې داخلیږي .

وهي لام التخصیص : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د لام ډیرې معاني دي تعلیل ، تخصیص ، ابتداء وغیره دلته کومه یوه معنی مراد ده

**جواب** : شارح جواب ورکوي چې دلام نه مراد لام دتخصیص دي اوداپه مستغاث باندې داخلولې شي په دې خبرې باندې ددلالت کولو دپاره چې دادخپلو امثالو په مینځ کې ددعاء سره مخصوص دي

وانما فتحت : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : لام استغاثه لام جاره دي اولام جاره چې کله په اسم ظاهر باندې داخل وي نوداپه خپله مکسوریږي ددې دپاره چې لام ابتدائیه مفتوحې سره ددې التباس لازم رانه شي نوبیایې لام استغاثه ته فتح ولې ورکړه ؟

**جواب** : لام داستغاثې ته یې فتحه ددې وجې نه ورکړه چې دمنادی مستغاث اومستغاث له سره په هغه وخت کې التباس لازم رانه شي چې کله مستغاث حذف کړې شي لکه یاللمظلوم داپه اصل کې وو یالقوم للمظلوم اوس که چیرته دمستغاث لام ته یې فتحه ورنه کړه نودانه معلومیږي چې په مثال کې مظلوم مستغاث دي اوکه مستغاث له ځکه چې په دواړو باندې لام جاره داخلیږي نودفرق کولو دپاره یې دمستغاث لام مفتوح اودمستغاث له لام یې مکسور کړو.

ولم یعکس الامر : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : که چیرته مقصود دمستغاث اودمستغاث له په مینځ کې فرق کول اوالتباس ختمول وو نو ددې بالعکس سره چې دمستغاث لام ته کسره اودمستغاث له لام ته فتحه ورکړې نومصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ داسې ولې ونه کړل ؟

**جواب** : چونکه منادی مستغاث دکاف ضمیر په ځاې واقع کیږي اوپه کاف ضمیر باندې لام مفتوحه داخلیږي لکه لک نومستغاث باندې هم لام مفتوح داخل کړې ددې مناسبت نه چې دا کاف دضمیر قائمقام اوددې په ځاې واقع دي په خلاف دمستغاث له چې هغه دکاف ضمیر په ځاې واقع نه دي ، لهذا دا یې په خپل اصل باندې پریخودو سره دې ته یې کسره ورکړه ځکه

چې اصل د لام د هغه لام جاره كله په اسم ظاهر باندې داخل وي نو دا په خپله مكسور وي لكه ولله

**فان عطفت** : دا په ماقبل باندې تفريع ده چې د مستغاث لام ته فتحه ددې وجې نه وركړې شوه چې مستغاث او د مستغاث له په مينځ كې التباس رفع شي ورنه په اصل كې په دې كې هم كسره وه دغه وجه ده چې كه چيرته ديو بل سبب دوجې نه مستغاث او د مستغاث له په مينځ كې فرق كيږي نو بيا به د مستغاث لام ته فتحه نه شي وركولې بلكه چې ددې كوم اصل حركت چې كسره ده دا به وركولې شي مثلا كه چيرته په منادى مستغاث باندې د كوم اسم عطف وكړې شي يا د حرف نداء داعادې نه په غير نو د معطوف لام ته به كسره وركولې شي نه فتحه لكه **يالزيد ولعمرو** . د لعمرو لام مكسور دې ځكه چې دلته د معطوف او د مستغاث له په مينځ كې په مستغاث باندې د عطف دوجې نه فرق حاصل شو ځكه چې معطوف د معطوف عليه په حكم كې وي چې كله معطوف عليه منادى مستغاث وي نو معطوف به هم منادى مستغاث وي نه مستغاث له ، چونكې د عطف دوجې نه مستغاث او د مستغاث له په مينځ كې فرق واضح شو نو د لام په ذريعه د فرق كولو ضرورت پاتې نه شو ځكه چې **يالزيد ولعمر** كې معطوف **ولعمرو** كې لام ته ددې خپل اصلي حركت كسره وركړې شوه او كه چيرته د كوم اسم منادى په مستغاث باندې عطف كړې شي د ياء داعادې سره نو بيا به د مستغاث لام مكسور ويل جائز نه دي بلكه مفتوح ويل واجب دي دوجې دويرې د التباس نه لكه **يالزيد ويالعمرو** ځكه چې كله په معطوف باندې يا حرف نداء او د لام استغاثې اعاده وكړې شو نو دا مستقل منادى د مستغاث په حكم كې شي ګويا چې ماقبل په دې باندې عطف نه دې ځكه چې په دې باندې لام مفتوح وي چې د مستغاث له سره يې التباس نه وي .

## منادى په لام الاستغاثه سره د معرب كيدو وجه :

| وَ إِنَّمَا أُعْرِبَ الْمُنَادٰى بَعْدَ دُخُوْلِ لَامِ الْإِسْتِغَاثَةِ لِاَنَّ عِلَّةَ بِنَائِهٖ كَانَتْ مُشَابَهَتُهٗ |
|---|
| او په تحقيق سره معرب كړې شوه منادى پس د دخول د لام د استغاثې نه ځكه چې علت د بناء ددې وو مشابهت |
| لِلْحَرْفِ وَ اللَّامُ الْجَارَّةُ مِنْ خَوَاصِ الْإِسْمِ فَبِدُخُوْلِهَا ضَعُفَتْ مُشَابَهَتُهٗ لِلْحَرْفِ |
| ددې د حرف سره او لام جاره دا د خواصو د اسم نه دي نو په دخول ددې سره دوه چنده شو مشابهت د حرف سره نو |
| فَـأُعْرِبَ عَلٰى مَا هُوَ الْأَصْلُ فِيْهِ . |
| اعراب يې وركړو كوم چې په اصل كې وو . |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب کافیه د منادی په لام الاستغاثه باندې د معرب کیدو وجه بیانوي

**اغراض دجامي** : وانما اعرب المنادی: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : منادی مستغاث خو هم دکاف اسمي په ځاې باندې واقع ده لهذا داهم مبني کیدل په کاروو دا یې معرب ولې کړو ؟

**جواب** : دجواب حاصل دادې چې دمنادی مفرد معرفې دمبني کیدو وجه داوه چې هغه مبني الاصل دحرف سره مشابه وو لیکن چې کله په دې باندې لام داستغاثې داخل شو کوم چې د خواصو داسم نه دي نو ددې مشابهت دحرف سره ضعیف شو ځکه چې هغه منادی مفرد معرفه په خپل اصلي حالت اعراب باندې راغله .

## په منادی بلام الاستغاثه باندې یو اعتراض او د هغې جواب :

| |
|---|
| قِيْلَ قَدْ يُخْفَضُ الْمُنَادٰى بِلَامَيِ التَّعَجُّبِ وَ التَّهْدِيْدِ اَيْضاً فَلَامُ التَّعَجُّبِ نَحْوُ يَا لِلْمَاءِ وَ |
| ویلې شوي دي چې کله کله مجرور یږي منادی په لام دتعجب سره او په لام دتهدید سره نو لام دتعجب لکه یا للماء و |
| يَا لِلدَّوَاهِيْ وَلَامُ التَّهْدِيْدِ نَحْوُ يَالَزَيْدٍ لَاَقْتُلَنَّكَ فَلِمَ اَهْمَلَ الْمُصَنِّفُ ذِكْرَهُمَا وَكَيْفَ يَصْدُقُ قَوْلُهٗ فِيْمَا بَعْدُ |
| یا للدواهي او لام تهدید لکه یالزید لاقتلنک نو ولې پریخودو مصنف ذکر ددې دواړو او څنګه به صادق راشي وروستي |
| وَ يُنْصَبُ مَاسِوَاهُمَا كُلِّيًا وَ اُجِيْبَ بِاَنَّ كُلًّا مِنْ هَاتَيْنِ اللَّامَيْنِ لَامُ الْاِسْتِغَاثَةِ |
| قول دمصنف چې وینصب ماسواهما په کلي طریقې سره او جواب یې ورکړو چې هریو ددې دواړو لامینو نه لام داستغاثې |
| كَاَنَّ الْمُهَدِّدَ اِسْمَ فَاعِلٍ يَسْتَغِيْثُ بِالْمُهَدَّدِ اِسْمَ مَفْعُوْلٍ لِيَحْضُرَ فَيَنْتَقِمَ مِنْهُ وَ يَسْتَرِيْحَ |
| دي ګویا چې مهدد اسم فاعل فریاد کوي دمهدد اسم مفعول نه چې حاضر شي نو انتقام به واخلي ددې نه او راحت |
| مِنْ اَلَمِ خُصُوْمَتِهٖ وَ كَاَنَّ الْمُتَعَجِّبَ يَسْتَغِيْثُ بِالْمُتَعَجَّبِ مِنْهُ لِيَحْضُرَ فَيَقْضِيَ |
| بیاموزي دتکلیف دخصومت نه او ګویا چې تعجب کوونکي فریاد کوي دمتعجب منه نه چې حاضر شي نو پوره یې |
| مِنْهُ الْعَجَبَ وَ يَتَخَلَّصَ مِنْهُ وَ اُجِيْبَ عَنْ لَامِ التَّعَجُّبِ بِوَجْهٍ آخَرَ ذَكَرَهُ |
| کړو ددې نه تعجب او خلاصی به بیاموزي ددې نه او جواب یې ورکړي دلام دتعجب نه په بل وجې سره چې ذکر کړي |
| الْمُصَنِّفُ فِي الْاِيْضَاحِ وَهُوَ اَنَّ الْمُنَادٰى فِيْ قَوْلِهِمْ يَا لِلْمَاءِ وَلِلدَّوَاهِيْ لَيْسَ الْمَاءُ وَلَا الدَّوَاهِيْ وَاِنَّمَا الْمُرَادُ يَاقَوْمُ |
| مصنف په الایضاح کې او هغه داچې منادی ددې قول یا للماء ویاللدواهي کې الماء او الدواهي نه ده بلکه مراد یاقوم |

| |
|---|
| اَوْ يَا هٰؤُلَاءِ اِعْجَبُوْا لِلْمَاءِ وَلِلدَّوَاهِيْ وَلَا يَخْفٰى عَلَيْكَ اَنَّ الْقَوْلَ بِحَذْفِ الْمُنَادٰى عَلٰى تَقْدِيْرِ كَسْرِ اللَّامِ |
| ياهؤلاء اعجبوا للماء وللدواهي دي اوخفي دې نه وي په تا باندې چې حذف دمنادی قول دلام کسرې په تقدیر باندې هم |
| ظَاهِرٌ وَ اَمَّا عَلٰى تَقْدِيْرِ فَتْحِهَا فَمُشْكِلٌ لِاِنْتِفَاءِ مَا يَقْتَضِيْ فَتْحَهَا |
| ظاهر دي اوهرچې په تقدیر دفتحې ددې باندې نومشکل دي دوجې دانتفاء دهغه څیزچې تقاضاکوي دفتحې |
| حِيْنَئِذٍ كَمَا هُوَ الظَّاهِرُ مِمَّا سَبَقَ. |
| ددې په دې وخت کې لکه داظاهر دي مخکې. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب کافیه په منادی بلام الاستغاثه باندې اعتراض کیږي نو شارح دا بیانوي .

**اغراض دجامي** : قیل: په دې عبارت سره شارح په مصنف باندې شوي دوه (۲) اعتراضونه نقل کوي اودهغې جواب ورکوي :

**اول اعتراض** :منادی چې لکه څنگه دلام استغاثې دوجې نه مجروروي همدارنگې دلام تعجب او د لام تهدید د دخول د وجې نه به هم مجرور وي د لام تعجب مثال لکه یاللماء ویاللدواهي او د لام تهدید مثال لکه یالزید لاقتلک نومصنف دادواړه ولې ذکر نه کړل ؟

**دوهم اعتراض** : چې کله منادی دلام تعجب اودلام تهدید دوجې نه مجروروي نو دمصنف قول وینصب ماسواهما به څنگه صحیح وي څکه چې ماسواه کې هغه منادی هم شامله ده چې په هغې باندې لام د تعجب اولام دتهدید داخل وي حالانکه ددې وجې نه منادی منصوب نه وي بلکه مجرور وي .

**اول جواب** : په اجیب سره شارح ددواړو سوالونو جوابات ورکوي چې حاصل یې دادي چې لام دتعجب اولام دتهدید په حقیقت کې همدا لام داستغاثې دي گویا چې نومونه مختلف دي اومصداق یې یودي څکه چې مهدِد ، دمهدَد نه فریادکوي چې هغه حاضر شي اودادهغه نه انتقام واخلي اودخصومت دتکلیف نه په راحت کې شي همدارنگې لام دتعجب کې گویا چې متعجب ، دمتعجب منه نه فریادکوي چې هغه حاضرشي اودادهغه نه خپل تعجب پوره کړي اودهغه نه خلاصی بیاموزي .

**دوهم جواب** : په اجیب سره شارح دجامي دلام تعجب په باره کې دویم جواب ورکوي چې حاصل یې دادي چې په اصل کې ماء اودواهي منادی نه دي بلکه منادی محذوف ده کوم چې

قوم او هؤلاء دي داپه اصل کې وو یاقوم اعجبوا للماء یاهؤلاء اعجبوا للدواهي

ولایخفی: په دې عبارت سره دشارح دجامي غرض په دویم جواب باندې اعتراض کول دي چې په لام تعجب باندې فتحه هم جائزده اوکسره هم جائزده که چیرته الماء اوالدواهي په لام باندې کسره وي نودا به مستغاث له جوړشي اوقوم هؤلاء کوم چې محذوف دي دابه مستغاث جوړ شي په دې صورت کې کوم اشکال نشته لیکن که چیرته الماء الدواهي په لام باندې فتحه وي نوبیا حذف دمنادی قول محل داشکال دي ځکه چې دفتحې مقتضی منتفي دي اوهغه منادی دکاف اسمي په ځای واقع کیږي او الماء الدواهي منادی نه ده بلکه منادی قوم او هؤلاء محذوف دي

## منادی مبني په فتحې سره:

| وَ يُفْتَحُ اَیْ يُبْنَى الْمُنَادٰی عَلَى الْفَتْحِ لِإِلْحَاقِ اَلِفِهَا اَیْ اَلِفُ الْاِسْتِغَاثَةِ |
|---|
| اوفتحه ورکولې شي یعنې منادی مبنی کولې شي په فتحې باندې په یوځای کولو دالف سره یعنې الف داستغاثې |
| بِآخِرِهِ لِاِقْتِضَاءِ الْاَلِفِ فَتْحَ مَاقَبْلَهَا وَلَا لَامَ فِيْهِ حِيْنَئِذٍ لِاَنَّ اللَّامَ يَقْتَضِي الْجَرَّ وَ الْاَلِفُ |
| په آخر دې پورې دتقاضاکولو دالف دفتحې ماقبل ددې اوپه دې کې به لام نه وي ځکه چې لام تقاضاکوي دجراوالف |
| الْفَتْحَ فَبَيْنَ اَثَرَيْهِمَا تَنَافٍ فَلَا يَحْسُنُ الْجَمْعُ بَيْنَهُمَا مِثْلُ يَا زَيْدَاهُ بِإِلْحَاقِ |
| دفتحې نوپه مینځ ددې دواړواثرکې منافات دي نوځه نه ده جمع په مینځ ددې دواړوکې لکه یازیداه په الحاق |
| الْهَاءِ بِهٖ لِلْوَقْفِ. |
| دهاء سره ددې پورې دپاره دوقف. |

**خلاصه دمتن:** په دې ځای کې دمنادی ددریم قسم بیان دي چې که چیرته دمنادی په آخر کې الف داستغاثې داخل وي نومنادی به مبني علی الفتح وي لیکن په دې صورت کې به لام پرې نه وي داخل لکه یازیداه.

**اغراض دجامي:** ای یبنی المنادی: په دې عبارت سره شارح دیو سوال مقدرجواب ورکوي:

**سوال:** ویفتح معطوف دي په مخکې ویخفض باندې اوخفض نه اعراب مراد دي، یعنې خفض حرکت اعرابي ته وایي، لهذا دیفتح نه به هم اعراب مراد وي نو یفتح المنادی دینصب المنادی په معنی به وي چې کله یفتح دینصب په معنی باندې وي نووروسته وینصب ماسواها دذکر نه به استغناء راشي اوددې دذکرکولو ضرورت به پاتې نه وي.

**جواب** : د دې جواب دادې چې د یفتح نه مراد د دې حقیقي معنی بناء علی الفتح دي نه چې یفتح دینصب په معنی باندې دي او وروسته د ینصب نه مراد معرب منصوب کیدل دي ځکه چې د یفتح ذکر د ینصب نه، نه مستغني کوي

اى الف الاستغاثة : په دې عبارت سره په الفها کې د ها ضمیر مرجع متعین کوي چې د ها ضمیر مرجع الف الاستغاثه دي

لاقتضاء الالف : په دې عبارت سره د مفتوح کیدو وجه بیانوي ، د منادی په آخر کې د الف استغاثه د لاحق کیدو په صورت کې به د منادی د مفتوح کیدو وجه داده چې کله د منادی په آخر کې الف د استغاثې داخل وي نو دا د ماقبل د مفتوح کیدو تقاضا کوي .

ولا لام فیه : په دې عبارت کې بیان د فائدې کوي مصنف دا بیانوي چې کله د منادی په آخر کې الف د استغاثې داخل وي نو په دې صورت کې به په دې باندې لام د استغاثې نه داخلیږي

لان اللام : په دې عبارت سره د لام د نه موجودیدو وجه بیانوي چې لام تقاضا کوي د جر او الف تقاضا کوي د فتحې او د دې دواړو په اثر کې منافات دي د دې وجې نه دا دواړه نه جمع کیږي لکه یازیداه د دې په آخر کې الف د استغاثې دي او هاء د وقف ده .

## د منادی منصوب بیان :

| وَ يُنْصَبُ مَا سِوَاهُمَا أَيْ يُنْصَبُ بِالْمَفْعُوْلِيَّةِ مَا سِوَى الْمُنَادَى الْمُفْرَدِ الْمَعْرِفَةِ |
|---|
| او منصوب به وي غیر د دې دواړو نه یعني منادی به منصوب وي په مفعولیت سره غیر د منادی مفرد معرفې نه |
| وَالْمُنَادَى الْمُسْتَغَاثِ مَعَ اللَّامِ أَوِ الْأَلِفِ لَفْظًا أَوْ تَقْدِيْرًا إِنْ كَانَ مُعْرَبًا قَبْلَ دُخُوْلِ حَرْفِ النِّدَاءِ لِأَنَّ |
| او منادی مستغاث سره د لام او الف نه لفظاً او تقدیراً که چیرته معرب وي مخکې د دخول د حرف ندا نه ځکه چې |
| عِلَّةَ النَّصْبِ وَ هِيَ الْمَفْعُوْلِيَّةُ مُتَحَقِّقَةٌ فِيْهِ وَمَا غَيَّرَهُ مُغَيِّرٌ عَنْ حَالِهِ وَمَا سِوَى |
| علت د نصب هغه مفعولیت دي چې متحقق وي په دې کې او نه وي بدل کړي یو بدلونکي د خپل حال نه او غیر |
| الْمُفْرَدِ الْمَعْرِفَةِ إِمَّا مَا لَا يَكُوْنُ مُفْرَدًا بِأَنْ يَكُوْنَ مُضَافًا أَوْ شِبْهَ مُضَافٍ وَإِمَّا مَا يَكُوْنُ مُفْرَدًا وَلٰكِنْ لَا يَكُوْنَ |
| د منادی مفرد معرفې نه یا هغه چې نه وي مفرد چې وي مضاف او یا شبه مضاف او یا به مفرد وي لیکن نه به وي |
| مَعْرِفَةً وَ إِمَّا مَا لَا يَكُوْنُ مُفْرَدًا وَلَا مَعْرِفَةً فَالْقِسْمُ الْأَوَّلُ وَ هُوَ مَا لَا يَكُوْنُ مُفْرَدًا لِكَوْنِهِ مُضَافًا |
| معرفه او یا به هغه وي چې نه وي مفرد او نه معرفه نو اول قسم دا هغه دي چې نه وي مفرد د وجې د کیدو نه مضاف |

مِثْلَ يَا عَبْدَ اللهِ وَ الْقِسْمُ الثَّانِيْ وَ هُوَ مَا لَايَكُوْنُ مُفْرَدًا لِكَوْنِهِ شِبْهَ مُضَافٍ مِثْلَ يَا طَالِعًا جَبَلًا وَالْقِسْمُ الثَّالِثُ

لکه یاطالعاً جبلاً او دویم قسم هغه دي چې نه وي مفرد دوجې د کیدونه شبه مضاف لکه یاطالعاً جبلاً او دریم قسم

وَهُوَ مَا يَكُوْنُ مُفْرَدًا وَلٰكِنْ لَا يَكُوْنُ مَعْرِفَةً مِثْلَ يَا رَجُلًا مَقُوْلًا لِغَيْرِ مُعَيَّنٍ اَيْ لِرَجُلٍ غَيْرِ

هغه چې وي خو لیکن نه وي معرفه لکه یارجلاً چې ویلې شوي د پاره د غیر معین یعنې دپاره دسړي غیر

مُعَيَّنٍ وَ هٰذَا تَوْقِيْتٌ لِنَصْبِ رَجُلًا لَا تَقْيِيْدٌ لَهُ لِاَنَّهُ مَنْصُوْبٌ لَا يَحْتَمِلُ الْمُعَيَّنَ

معین او دا توقیت دي دنصب د رجلاً دپاره تقید نه دي ددې دپاره خکه چې داوي منصوب او احتمال د معین نه لري

وَالْقِسْمُ الرَّابِعُ وَهُوَ مَالَا يَكُوْنُ مُفْرَدًا وَلَا مَعْرِفَةً مِثْلَ يَا حَسَنًا وَجْهُهُ ظَرِيْفًا وَلَمْ يُوْرِدِ الْمُصَنِّفُ لِهٰذَا الْقِسْمِ مِثَالًا

او څلورم قسم هغه دي چې نه وي مفرد او نه معرفه لکه یاحسناً وجهه ظریفاً او رانه وړ و مصنف ددې قسم دپاره مثال

اِذْ حَيْثُ اِتَّضَحَ اِنْتِفَاءُ كُلٍّ مِنَ الْقَيْدَيْنِ بِمِثَالٍ سَهُلَ تَصَوُّرُ اِنْتِفَائِهِمَا مَعًا فَلَا

خکه چې کله واضحه شوه د مثال نه ددوا ړو قیدونو نه انتفاء نو ددواړو دجدا منتفي کولو تصور آسان شو نو نشته

حَاجَةَ اِلٰى اِيْرَادِ مِثَالٍ لَهُ عَلَى اِنْفِرَادِهٖ مَعَ اَنَّ الْمِثَالَ الثَّانِيْ يَحْتَمِلُهُ فَيُمْكِنُ اَنْ يُرَادَ بِقَوْلِهٖ

حاجت د راوړو د مثال ددې دپاره جدا سره ددې نه چې دویم مثال ددې احتمال لري نو ممکن ده چې راوړي په دې قول

يَا طَالِعًا جَبَلًا هٰذِهِ الْعِبَارَةُ اَعَمُّ مِنْ اَنْ يُرَادَ بِهَا مُعَيَّنٌ اَوْ غَيْرُ مُعَيَّنٍ فَاَمْثِلَةُ الْاَقْسَامِ بِاَسْرِهَا مَذْكُوْرَةٌ وَ هٰذِهِ

سره چې یاطالعاً جبلاً دا عبارت عام چې مراد کړي شي په دې سره معین او یا غیر معین نو د ټولو مثالونو ذکر شوا و دا

الْاَمْثِلَةُ كُلُّهَا مِثَالٌ لِمَا سِوَى الْمُسْتَغَاثِ اَيْضًا فَلَا حَاجَةَ اِلٰى اِيْرَادِ مِثَالٍ لَهُ عَلٰى حِدَةٍ.

مثالونه ټول مثالونه دي غیر د مستغاث نه همدا رنګې نو ضرورت نشته راوړو د مثال ده ته جدا.

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت کې مصنف د منادی د څلورم قسم بیان کوي چې کله چیرته منادی مفرد معرفه نه وي او منادی مستغاث هم نه وي نو دا به معرب منصوب وي لکه یاعبدالله.

**اغراض دجامي:** بالمفعولية: په دې عبارت سره شارح دجامي د منادی د منصوب کیدو وجه بیانوي چې منادی د مفعول کیدو دوجې نه به منصوب وي.

ماسوی المنادی المفرد المعرفة الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال:** هما ضمیر او ددې په مرجع کې مطابقت نشته خکه چې ضمیر د تثنیې دي او مرجع دري شیان دي: (۱) منادی مفرد معرفه . (۲) منادی مستغاث باللام . (۳) منادی مستغاث

بالالف نومرجع امور ثلاثه شو ځکه چې وينصب ماسواها نوداضمير دواحد مؤنث سره راوړل په کار وو

**جواب** : د راجع او مرجع په مينځ کې مطابقت موجود دي ځکه چې مرجع دوه (۲) شيان دي . (۱) منادی مفرد معرفه . (۲) منادی مستغاث مطلقاً ، برابره خبره ده چې مستغاث باللام وي يا بالالف نو اجمالاً دوه قسمه دي البته په تفصيل کې دري قسمه جوړيږي مستغاث باللام ، مستغاث بالالف يې دواړه جدا قسمونه شمار کړي دي .

لفظاً اوتقديراً : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : په ياغلامي کې غلامي منادی مفرد معرفه اودمستغاث نه غير دي حالانکه په دې باندې نصب نشته .

**جواب** : په نصب کې تعميم دي برابره خبره ده چې لفظي وي اوکه تقديري ، اوپه غلامي کې نصب اګرچې لفظي نه دي ليکن تقديري دي .

ان کان معرباً : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : يا په يوم ينفع الصادقين کې يوم ينفع الصادقين چې کله يوکس علم جوړکړي نودامنادی مفرد معرفه اودمنادی مستغاث نه ماسواء ده حالانکه دامعرب منصوب نه دي بلکه مبني بالفتح دي نود مصنف وينصب ماسواها ويل څنګه صحيح دي ؟

**جواب** : منادی مفرد معرفه او د منادی مستغاث نه غير د منصوب کيدو شرط دادې چې هغه په حرف نداء باندې د داخليدو نه مخکې معرب وي او يا يوم ينفع حرف نداء د داخليدو نه مخکې مبني ده ځکه چې قاعده داده چې ظرف کله جملې طرف ته مضاف وي نو دا مبني وي .

لان علة النصب : په دې عبارت سره غرض د شارح په غير د منادی مفرد معرفه او د مستغاث د منصوب کيدو وجه بيانول دي چې په دې کې د نصب علت متحقق او موجود دي او هغه مفعول کيدل دي او کوم داسې مغير هم و نه موندل شو چې دا د خپل اصلي حالت نصب او د اعراب نه بدل کړي لکه څنګه چې منادی مفرد معرفه او منادی مستغاث کې مغير موندل شوي ځکه ددې دواړو نه غير منادی دخپل اصلي حالت نصب باندې باقي پريخي ده .

وما سوی المنادی المفرد المعرفة : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول

دي

**سوال** : دمثال نه مقصود دممثل له وضاحت وي اووضاحت يومثال سره هم کيږي نومصنف دري مثالونه ولې ذکر کړل ؟

**جواب** : د مثال تعدد د ممثل له د تعدد د وجې نه دي ځکه چې د منادی مفرد معرفې څلور (۴) قسمونه دي اول دا چې مفرد نه وي بلکه مضاف وي لکه **یاعبدالله** . دوهم داچې مفرد نه وي بلکه شبه مضاف وي لکه **یاطالعاً جبلاً** . دريم دا چې مفرد وي ليکن معرفه نه وي لکه **یارجلاً** څلورم دا چې نه مفرد وي اونه معرفه لکه **یاحسنا وجهه ظریفا** ، د دې آخري قسم مثال يې بيان نه کړو چې د هغې وجه شارح وروسته ذکر کوي ، نوچې کله ممثل له متعدد وو نومصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ مثالونه هم متعدد بيان کړل .

**مقولاً**: په دې عبارت کې بيان دترکيب دي ، دې خبرې طرف ته يې اشاره کړې ده چې لغير معين د مقولا متعلق شواودرجلاً نه حال دي .

**ای لرجل غیر معین**: په دې عبارت سره يې اشاره وکړه چې غير معين صفت دي دموصوف محذوف درجل دپاره .

**وهذا توقیت**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : رجلاً دغيرمعين سره دمقيد کولوضرورت نشته ځکه چې کله رجلاً منصوب وي نوبه دې کې دمعين احتمال دسره نه وي ځکه چې که چيرته معين وي نوبيابه منصوب نه وي بلکې مبني به وي **علی علامة الرفع** .

**جواب** : غير معين درجل تقيد نه دي بلکه درجل دپاره توقيت دي يعنې رجل منصوب دهغه وخته پورې وي چې کله ترڅوپورې دغير معين دپاره وي .

**ولم یورد**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ددې خبرې څه وجه ده چې مصنف ددري قسمونو مثالونه ذکر کړي ليکن دڅلورم قسم مثال يې نه دي ذکر کړي

**جواب** : شارح ددې دوه (۲) جوابونه شارح ورکړي دي

**اول جواب** : چې کله د مفرد او د معرفې دواړو قيدونو نه د هر يو قيد انتفا د مثالونو سره

واضحه شوه نو يواځې ددې دواړو دانتفاء تصور آسان شو ددې وجې نه ددې مثال يې جدا ذکر نه کړو يعنې چې کله دمفرد دنه کيدو مثال يې هم ذکر کړو. او دمعرفې دنه کيدو مثال يې هم ذکر کړو نو ددواړو دنه يوځاې کيدو مثال په آساني سره معلوميږي

**دوهم جواب**: په مع سره ددويم جواب بيان دي چې دويم مثال يعني **ياطالعاجبلاً** دځلورم قسم دمثال احتمال هم لري ځکه چې ممکن ده چې **ياطالعاً جبلا** نه داعبارت مراد واخستل شي عام ددې نه چې ددې نه معين مراد وي ياغير معين که چيرته معين مراد وي نو ددويم قسم مثال به جوړشي او که چيرته غير معين ترې مراد وي نو دځلورم قسم دپاره به مثال جوړ شي نو دټولو قسمونو مثالونه په متن کې ذکر دي

**وهذه**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: دمصنف دپاره ضروري وو چې لکه څنګه ده دمنادی مفرد معرفه دماسواء مثالونه ذکرکړل همدارنګې دمستغاث دماسواء مثالونه به يې هم ذکرکړي وي داسې يې ولې ونه کړل

**جواب**: دامثالونه چې لکه څنګه منادی مفرد دمعرفه نه ماسواء کې دي همدارنګې دمنادی مستغاث دماسواء کې هم دي لهذا ددې دپاره دجدا مثالونو دذکرکولو ضرورت نه وو .

## توابع دمنادی :

| |
|---|
| وَ تَوَابِعُ الْمُنَادٰى الْمَبْنِيِّ عَلٰى مَا يُرْفَعُ بِهِ الْمُفْرَدَةُ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً اِنَّمَا قَيَّدَ |
| اوتوابع دمنادی مبني په هغه خبرسره چې رفع ورکولې شي په دې سره مفرد حقيقةً او يا حكماً په تحقيق سره مقيد |
| الْمُنَادٰى بِكَوْنِهٖ مَبْنِيّاً لِاَنَّ تَوَابِعَ الْمُنَادٰى الْمُعْرَبِ تَابِعَةٌ لِلَفْظِهٖ فَقَطْ وَ قَيَّدْنَا |
| کړه مصنف منادی په کيدوددې سره مبني ځکه چې توابع دمنادی معرب تابع دي دلفظ فقط اومونږه مقيد کړو |
| الْمَبْنِيَّ بِكَوْنِهٖ عَلٰى مَا يُرْفَعُ بِهٖ لِاَنَّ تَوَابِعَ الْمُسْتَغَاثِ بِالْاَلِفِ لَا |
| مبني په کيدو ددې سره په هغه څيزسره چې رفع ورکولې شي په دې سره ځکه چې توابع دمستغاث بالالف نه |
| يَجُوْزُ فِيْهَا الرَّفْعُ نَحْوُ يَا زَيْداً وَ عَمْرواً لَا وَ عَمْرٌو لِاَنَّ الْمَتْبُوْعَ مَبْنِيٌّ عَلَى الْفَتْحِ وَ قَيَّدَ التَّوَابِعَ |
| دي جائزپه دې کې رفع لکه يازيدا وعمروا وعمرو ځکه چې متبوع مبني ده په فتحې سره اومقيد يې کړل توابع |
| بِكَوْنِهَا مُفْرَدَةً لِاَنَّهَا لَوْ لَمْ تَكُنْ مُفْرَدَةً لَا حَقِيْقَةً وَلَا حُكْماً كَانَتْ مُضَافَةً بِالْاِضَافَةِ الْمَعْنَوِيَّةِ وَ |
| په کيدوددې سره مفردځکه چې که نه وي مفرد نه حقيقةً اونه حكماً نو دابه مضاف وي په اضافت معنوي سره او |
| حِيْنَئِذٍ لَا يَجُوْزُ فِيْهَا اِلَّا النَّصْبُ وَ اِنَّمَا جَعَلْنَا الْمُفْرَدَةَ اَعَمَّ مِنْ اَنْ تَكُوْنَ مُفْرَدَةً حَقِيْقَةً |
| په دې وخت کې نه دي جائزپه دې کې مګرنصب اوپه تحقيق سره وګرځول مفرد عام ددې چې وي مفرد حقيقةً چې |

بِأَنْ لاَ تَكُوْنَ مُضَافَةً مَعْنَوِيَّةً وَلاَ لَفْظِيَّةً وَلاَ شِبْهَ مُضَافٍ أَوْ حُكْماً بِأَنْ تَكُوْنَ مُضَافَةً لَفْظِيَّةً أَوْ مُشَبَّهَةً بِالْمُضَافِ

نه وي مضاف معنوي او نه لفظي او نه شبه مضاف او يا حكما چې وي مضاف لفظي او يا شبه مضاف خكه

فَإِنَّهُمَا لَمَّا انْتَفَتْ فِيْهِمَا الإِضَافَةُ الْمَعْنَوِيَّةُ كَانَتَا فِيْ حُكْمِ الْمُفْرَدَةِ لِتَدْخُلَ فِيْهَا

چې كله منتفي شو په دې كې اضافت معنوي نو دا به وي په حكم د مفرد كې د دې د پاره چې داخل شي په دې كې

الْمُضَافَةُ بِالإِضَافَةِ اللَّفْظِيَّةِ وَالْمُشَبَّهَةُ بِالْمُضَافِ لِأَنَّهُمَا كَالتَّوَابِعِ الْمُفْرَدَةِ فِيْ جَوَازِ الرَّفْعِ وَالنَّصْبِ نَحْوُ يَا زَيْدُ

مضاف په اضافت لفظي او شبه مضاف خكه چې دا په شان د توابع مفرد دي په جواز د رفع او د نصب لكه يا زيد

الْحَسَنُ الْوَجْهِ وَالْحَسَنَ الْوَجْهِ وَيَا زَيْدُ الْحَسَنُ وَجْهُهُ وَالْحَسَنَ وَجْهُهُ وَلَمَّا لَمْ يَجْرِ الْحُكْمُ الآتِيْ فِي التَّوَابِعِ

الحسن الوجه والحسن الوجه و يا زيد الحسن وجهه والحسن وجهه او هر كله چې جاري نه شو را تلونكي حكم په توابعو

كُلِّهَا بَلْ فِيْ بَعْضِهَا وَ لَمْ يَجْرِ فِيْمَا هُوَ جَارٍ فِيْهِ مُطْلَقاً بَلْ لاَ بُدَّ

ټولو كې بلكې په بعضو توابعو كې او نه جاري كيږي په هغه څه كې چې جاري وي په دې كې مطلق بلكې لابدي ده

فِيْ بَعْضِهَا مِنْ قَيْدٍ فَصَّلَ التَّوَابِعَ الْجَارِيَةَ هٰذَا الْحُكْمُ. فِيْهَا وَ صَرَّحَ

په بعضو كې د قيد نه په تفصيل سره بيان كړل مصنف هغه توابع چې جاري دا حكم په دې كې او تصريح يې وكړه

بِالْقَيْدِ فِيْمَا هُوَ مُحْتَاجٌ إِلَيْهِ فَقَالَ مِنَ التَّاكِيْدِ أَيْ الْمَعْنَوِيِّ لِأَنَّ التَّاكِيْدَ اللَّفْظِيَّ حُكْمُهُ فِي الأَغْلَبِ حُكْمُ

په قيد سره هغه چې محتاج اليه وي نو وويل د تاكيد نه يعني معنوي خكه چې د تاكيد لفظي حكم په اغلب كې حكم

الأَوَّلِ إِعْرَاباً وَ بِنَاءً نَحْوُ يَا زَيْدُ زَيْدُ وَ قَدْ يَجُوْزُ إِعْرَابُهُ رَفْعاً وَ نَصْباً وَ كَأَنَّ

د اول وي په اعتبار د اعراب او بناء سره لكه يا زيد زيد او په تحقيق سره جائز دي اعراب د دې رفعا او نصبا او ګويا

الْمُخْتَارَ عِنْدَ الْمُصَنِّفِ ذٰلِكَ وَلِذٰلِكَ لَمْ يُقَيِّدِ التَّاكِيْدَ بِالْمَعْنَوِيِّ وَالصِّفَةِ مُطْلَقاً وَ عَطْفِ الْبَيَانِ

چې غوره په نزد د مصنف دا دي او د دې وجې نه مقيد يې نه كړو په معنوي سره او صفت مطلقاً او عطف بيان

كَذٰلِكَ وَ الْمَعْطُوْفِ بِحَرْفٍ الْمُمْتَنِعِ دُخُوْلُ يَا عَلَيْهِ يَعْنِي الْمُعَرَّفَ بِاللاَّمِ بِخِلاَفِ الْبَدَلِ

همدارنګې او معطوف په هغه حرف چې ممتنع وي دخول د يا په دې باندې يعني معرف باللام په خلاف د بدل سره

وَ الْمَعْطُوْفِ الْغَيْرِ الْمُمْتَنِعِ دُخُوْلُ يَا عَلَيْهِ فَإِنَّ حُكْمَهَا غَيْرُ حُكْمِهَا كَمَا سَيَجِيْئُ

او هغه معطوف چې نه وي ممتنع دخول د يا په دې باندې نو حكم د دې د توابعو د حكم نه غير دي چې زر دي به يې

تُرْفَعُ حَمْلاً عَلَى لَفْظِهِ الظَّاهِرِ أَوِ الْمُقَدَّرِ لِأَنَّ بِنَاءَ الْمُنَادٰى عَرَضِيٌّ

بيان راشي مرفوع به ويلي شي دوجې د حمل نه په هغه لفظ ظاهر يا مقدر خكه چې بناء د منادى عارضي دي نو

فَيُشْبِهُ الْمُعْرَبَ فَيَجُوْزُ أَنْ يَكُوْنَ تَابِعُهُ تَابِعاً لِلَفْظِهِ وَ تُنْصَبُ حَمْلاً عَلَى مَحَلِّهِ

مشابه شو د معرب سره نو جائز ده چې تابع د دې تابع د لفظ او منصوب به ويلي شي د وجې د حمل نه په محل باندې

لِأَنَّ حَقَّ تَابِعِ الْمُنَادَى الْمَبْنِيِّ أَنْ يَكُوْنَ تَابِعاً لِمَحَلِّهِ وَهُوَ هٰهُنَا مَنْصُوْبُ الْمَحَلِّ بِالْمَفْعُوْلِيَّةِ مِثْلُ

خكه حق د تابع د منادى مبني هغه دا چې وي به تابع د دې محل او هغه دلته منصوب المحل دي بالمفعولية لكه

| |
|---|
| يَاتَيْمَ اَجْمَعُوْنَ وَاَجْمَعِيْنَ فِي التَّاكِيْدِ يَازَيْدُ الْعَاقِلُ وَالْعَاقِلَ فِي الصِّفَةِ وَاقْتَصَرَ عَلٰى مِثَالِهَا لِاَنَّهَا |
| ياتيم اجمعون واجمعين په تاكيد كې يازيد العاقلُ والعاقلَ صفت كې او اتنفاء يې وكړه په دې مثال باندې خكه چې |
| اَكْثَرُ وَاَشْهَرُ وَيَاغُلَامَ بِشْرٍوَ بِشْراً فِيْ عَطْفِ الْبَيَانِ وَيَا زَيْدُ وَالْحَارِثَ وَالْحَارِثُ فِي الْمَعْطُوْفِ |
| دا اكثر او ډير مشهور وي وياغلام بشرو بشرا په عطف بيان كې ويازيد والحارث والحارث په معطوف كې په هغه |
| بِحَرْفِ الْمُمْتَنِعِ دُخُوْلُ يَا عَلَيْهِ. |
| هغه حرف سره چې ممتنع وي دخول د يا په دې باندې. |

**خلاصه دمتن:** دصاحب دكافيې دعبارت حاصل دادې چې دمنادى مبني هغه توابع كوم چې مفرد وي برابره خبره ده چې تابع دصفت وي ياتاكيدوي ياعطف بيان وي اوياداسې معطوف بالحرف وي چې په هغې باندې دخول د يا ءممتنع وي دداسې توابعوحكم دادې چې دابه په لفظ باندې محمول كولو سره سره مرفوع ويل هم جائز دي اوپه لفظ باندې محمول كولو سره سره منصوب ويل هم جائز دي.

**اغراض دجامي:** على مايرفع: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال:** داقاعده منقوضه اوماته ده په يازيدا والحارث مثال سره خكه چې په دې كې الحارث دمنادى جوړيدو تابع دي اوداتابع معطوف په حرف دي چې په دې باندې دخول د يا ء ممتنع دي حالانكه په دې كې دوه وجهې جائز نه دي بلكه نصب متعين دي.

**جواب:** دمبني نه مراد مطلق مبني نه ده بلكه مراد هغه منادى مفردمعرفه ده كوم چې مبني على علامة الرفع وي اوپه يازيدا والحارث كې زيدمبني على علامة الرفع نه دي بلكه مبني على الفتح دي لهذا ددې سره نقض نه واردېږي.

**حقيقتاً اوحكماً:** په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال:** داقاعده منقوضه ده دهغه الحسن سره كوم چې په يازيدالحسن الوجه كې واقع دي خكه چې په دې كې دوه وجهې رفع اونصب جائزدي حالانكه دادمفرد تابع نه دي بلكه مضاف په اضافت لفظيه سره دي ، اوهمدارنګې داقاعده منقوضه ده هغه الحسن سره كوم چې په يازيد الحسن وجهه كې واقع دي خكه چې په دې كې هم دوه وجهې جائزدي حالانكه دادمفرد تابع نه دي بلكه داشبه مضاف دي.

**جواب** : په مفرد کې تعمیم دي برابره خبره ده چې داحقیقي وي یاحکمي وي ، مفرد حقیقي هغه دي چې مضاف په اضافت معنویه اومضاف په اضافت لفظیه اوشبه مضاف نه وي ، او مفرد حکمي هغه دي چې هغه فقط مضاف په اضافت معنویه سره نه وي ، اومضاف په اضافت لفظي سره وي اوشبه مضاف وي نومضاف په اضافت لفظیه سره اوشبه مضاف په مفرد حکمي کې داخل دي او په اول مثال کې الحسن اګرچې مفرد حقیقي نه دي لیکن مفرد حکمي دي ځکه چې دامضاف په اضافت معنویه سره نه دي بلکه مضاف په اضافت لفظي سره دي همدارنګې په دویم مثال کې اګرچې الحسن مفرد حقیقي نه دي لیکن مفرد حکمي دي ځکه چې داشبه مضاف دي .

**وانما قید**: په دې عبارت سره شارح منادی دمبني دقید سره دمقید کولو وجه بیانوي چې منادی یې دمبني قید سره ددې وجې نه مقید کړه چې دمنادی معرب تابع فقط دلفظ تابع وي د لفظ اودمحل د تابع کیدو په صورت کې دوه اعرابه جائز نه وي.

**وقیدنا**: په دې عبارت کې منادی مبني علی مایرفع به دقید سره دمقید کولو وجه بیانوي چې ددې تفصیل مخکې تیر شوي دي ، چې منادی مبني علی مایرفع دقید سره یې ددې وجې نه مقید کړو چې ددې نه منادی مبني مستغاث بالالف دتوابعو خارجول مقصود دي ځکه چې په دې دوه اعرابه جائز نه دي بلکه نصب متعین دي لکه **یازیداه عمروا** په دې کې عمرو مرفوع نه شي ویلي بلکه نصب متعین دي ځکه چې متبوع مبني علی الفتح دي .

**وقید التوابع** : په دې عبارت سره توابع دمفرد دقید سره دمقید کولو وجه بیانوي چې توابع یې دمفرد قید سره ددې وجې نه مقید کړو چې که چیرته توابع مفرد نه وي نه مفرد حقیقي اونه مفرد حکمي نودا به مضاف وي په اضافت معنویه سره اوپه دې صورت کې په دې کې نصب متعین دي رفع جائز نه ده

**وانما جعلنا**: په دې عبارت کې دمفرد حقیقي اودحکمي دتعمیم فائده بیانوي چې داتعمیم یې ددې وجې نه کړي دي چې مضاف **بالاضافة اللفظیه** اوشبه مضاف په دې حکم کې داخل شي ځکه چې هغه هم درفع اودنصب په جواز کې دتوابع مفرد په شان دي

**ولمالم یجر الحکم** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : توابع پنځه دي مصنف بعضې ذکر کړي مثلاً بدل یې پریخودي حالانکه د ټولو حکم

بيانول په کړو ، اوهمدارنګې په عبارت کې اصل ايجاز اواختصار وي نومصنف ته په کار وو چې داسې يې ويلي وي چې توابع المنادى المبني المفردة ترفع على لفظه وتنصب على محله ددې نه پس من الصفة والتاكيد وغيره به يې نه ذکر کولې ځکه چې توابع معلوم اومشهور دي په مينځ د خلکو ددې دذکر کولو ضرورت نه وو ، همدارنګې ددې خبرې څه وجه ده چې مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ بعضې توابع مطلق ذکر کړي اوبعضې يې مقيد ذکر کړي

**جواب** : راتلونکي حکم ترفع على لفظه وتنصب على محله په ټولو توابعو کې نه جاري کيږي په بعضو کې جاري کيږي اوپه بعضو کې نه جاري کيږي ځکه چې په کومو توابعو کې حکم جاري کيږي صرف هغه يې ذکر کړل اوباقي يې ذکر نه کړل اوبياچې په کومو توابعو کې په بعضو کې حکم جاري کيږي د هغې نه په بعضو کې مطلق جاري کيږي اوپه بعضو کې دقيد ضرورت وي ځکه يې چې چيرته دقيد حاجت اوضرورت وو هلته يې قيد ذکر کړو اوچې کوم ځاې کې دقيد دذکر کولو ضرورت نه وو نو هلته يې قيد ذکر نه کړو .

اى المعنوي : په دې عبارت سره توضيح دمتن ده شارح دابيان کړه چې دلته دتاکيد نه تاکيد معنوي مراد دي نه مطلق تاکيد .

لان التاكيد : په دې عبارت سره دتاکيد په معنوي قيد سره دمقيد کولو وجه بيانوي ، په اغلب او اکثرو مذاهبو د نحويانو کې داعراب اودبناء په اعتبار سره دتاکيدلفظي حکم بعينه دمؤکد وي لکه يازيد زيد په دې کې اول زيد موکد مبني برضمه دي نو دويم زيد کوم چې تاکيد دي دابه هم مبني برضمه وي په دې کې دوه وجهې جائز نه دي .

وقد يجوز : په دې عبارت کې داغلب دقيد فائده بيانوي چې داغلب نه مراد اغلب المذاهب دي نه اغلب الاستعمال اوداغلب قيد يې ددې وجې نه ولږول چې بعضې نحويانو په تاکيدلفظي کې هم رفع اونصب دواړه جائز کړي رفع په لفظ باندې محمول کوي اونصب په محل باندې محمول کوي لکه يازيد زيد وزيداً

وكان المختار : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : چې کله دتاکيد نه تاکيد معنوي مراد دي نومصنف رَحِمَهُ اللَّهُ تاکيد دمعنوي قيد سره ولې مقيد نه کړو چې لکه څنګه المعطوف بحرف يې په الممتنع دخول يا عليه په قيد سره مقيد کړي

**جواب**: چونکې دمصنف په نزد مختار دبعضې نحویانو مذهب وو چې په تاکید لفظي کې هم رفع اونصب دواړه جائز دي ددې وجې نه مصنف تاکید مطلق ذکر کړو دمعنوي قید سره یې مقید نه کړو

**مطلقا**: په دې عبارت کې بیان دعموم دي چې دصفت نه مطلق صفت مراد داعام دي که معرف باللام وي یامعرف باللام نه وي

**وعطف البیان کذلک**: ددې مطلب دادې چې عطف بیان هم دصفت په شان مطلق دي معرف باللام وي اویا نه وي.

**یعني**: ددې نه مراد تعیین دي چې معطوف بحرف چې په دې باندې دخول دیاء ممتنع وي ددې نه مراد هغه معطوف بحرف دي کوم چې معرف باللام وي.

**بخلاف**: په دې عبارت سره شارح دجامي تاکید ،صفت ، عطف البیان اودمعطوف بحرف ددې څلورو په خاص طور باندې دذکرکولو اومعطوف بحرف یې دالممتنع دخول یاعلیه دقید سره دمقید کولو فائده بیانوي چې مصنف داڅلور په خاص طور باندې څکه ذکر کړل اومعطوف بحرف یې په الممتنع دخول یا علیه په قید سره یې ددې وجې نه مقید کړل چې بدل اومعطوف بحرف په کوم باندې چې دیاء دخول ممتنع نه وي ددې دواړو حکم دهغه څلورو دحکم نه لږ مختلف اوبدل دي چې ددې تفصیل به ان شاء الله نژدې راشي.

**حملاً**: په دې عبارت سره شارح بیان دترکیب کوي چې علی لفظه جار مجرور حملاً متعلق شو د ترفع دپاره مفعول له شو.

**الظاهر**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: داقاعده منقوضه اوماته ده دهغه الحارث سره کوم چې یاافق العاقل کې واقع دي څکه چې په دې حمل علی اللفظ نه کیږي څکه چې دمتبوع په لفظ باندې ضمه موجود نه ده.

**جواب**: که دمنادی مبني کیدل عارضي وي نودابه دمعرب مشابه وي لکه څنګه چې دمعرب اعراب دیوعارض دوجې نه کیږي هغه عارض دي دعامل همدارنګې منادی بناء هم د یو عارض دوجې نه وي اوهغه عارض دي ددې کاف اسمي په ځای واقع کیدل دي لهذا دامنادی مشابه شوه دمعرب سره نولکه څنګه چې دمعرب تابع ددې لفظ تابع وي همدارنګې منادی مبني تابع به هم ددې لفظ تابع وي.

حملاً: په دې عبارت کې شارح بيان دترکيب کوي چې على محله په اعتبار دمتعلق سره مفعول له دي د تنصب دپاره

لان حق: په دې عبارت سره دحمل على محله علت بيانوي چې په محل باندې ددې وجې نه محمول کړو چې منادی مبني دتابع حق دادې چې هغه ددې دمحل تابع وي اودلته منادی متبوع دمفعول کيدو دوجې نه محل په نصب کې دي لهذا تابع باندې به هم نصب وي .

مثل ياتيم اجمعون: په دې عبارت سره دتوابعو مثالونه بيانوي چې دتاکيد مثال ياتيم اجمعون اجمعين ، اجمعون کې په حالت درفع باندې وي نوپه لفظ باندې به محمول وي او اجمعين په حالت دنصب کې به وي نو په محل باندې محمول وي دصفت مثال يې بيان کړو يازيد العاقلُ والعاقلَ که په العاقل باندې رفع وي نوحمل على لفظه به وي اوکه نصب وي نوحمل به على محله وي ، ياغلام بشر بشراً دعطف بيان مثال دي رفع حمل على لفظه اونصب حمل على محله بناء باندې اوبيازيد والحارث والحارث معطوف بالحرف چې په دې باندې دخول دياء ممتنع وي ددې مثال دي په الحارث باندې رفع اونصب دواړه جائز دي حملاً على لفظه ومحله .

واقتصر: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مصنف صرف دصفت مثال باندې اکتفاء ولې وکړه دنورو دري توابعو مثالونه يې ولې ذکر نه کړل ؟ .

**جواب** : مصنف صرف دصفت په مثال باندې اکتفاء وکړه ددې دکثرت استعمال اودخلکو په مينځ کې دشهرت دوجې نه ، دشهرت دوجې نه دصفت مثال اوقع في ذهن المبتدي وي ، اودنورو دري قسمونو مثالونه يې دايجاز اودا ختصار دوجې نه پريخوده . بعضې شارحينو داويلي دي چې مصنف خصوصاً دصفت مثال ذکرکړي په علامه اصمعي باندې يې رد کړي دي ، علامه اصمعي وايي چې منادی مبني صفت تابع په طورباندې نه واقع کيږي ځکه دمنادی مفرد معرفه کاف ضميراسمي په ځاي اوددې قائمقام واقع کيږي نوددې حکم به دضميروالاوي او د ضميرمتعلق قاعده ده چې المضمر لايوصف ولايوصف به چې نه موصوف کيدې شي اونه صفت چې کله ضمير صفت نه شي راوړلې نودمنادی مفرد معرفه صفت هم نه شي راوړي نومصنف د صفت تابع خاص مثال ذکر کړو په اصمعي باندې يې ردوکړو وجه دردداده چې داصمعي دليل

ضعيف دي ځکه چې يوځيز دبل ځيز سره مشابهت تشبيه په ټولو امورو کې تقاضا نه کوي

## په معطوف کې د نحويانو اختلاف:

| |
|---|
| وَ الْخَلِيْلُ بْنُ اَحْمَدَ وَ هُوَ اُسْتَاذُ سِيْبَوَيْهِ فِي الْمَعْطُوْفِ بِحَرْفِ الْمُمْتَنِعِ دُخُوْلُ يَا عَلَيْهِ |
| اوخليل بن احمد اودااستاذدي دسيبويه په داسې معطوف کې چې په هغې باندې ممتنع وي دخول ديا په دې |
| يَخْتَارُ الرَّفْعَ مَعَ تَجْوِيْزِهِ النَّصْبَ لِاَنَّ الْمَعْطُوْفَ بِحَرْفٍ فِي الْحَقِيْقَةِ مُنَادًى مُسْتَقِلٌّ |
| باندې غوره کوي رفع سره دجائزکيدودنصب نه ځکه چې معطوف بحرف په حقيقت کې مستقل منادى دي نو |
| فَيَنْبَغِيْ اَنْ يَّكُوْنَ عَلٰى حَالَةٍ جَارِيَةٍ عَلَيْهِ عَلٰى تَقْدِيْرِ مُبَاشَرَةِ حَرْفِ النِّدَاءِ لَهُ وَ هِيَ الضَّمَّةُ |
| مناسب ده چې وي په داسې حالت باندې چې جاري وي په دې باندې تقدير دمباشرت دحرف نداءاوهغه ضمه ده |
| اَوْ مَا يَقُوْمُ مَقَامَهَا وَ لٰكِنْ لَمَّا لَمْ يُبَاشِرْهُ حَرْفُ النِّدَاءِ جُعِلَتْ تِلْكَ الْحَالَةُ |
| اوياهغه چې قائم وي په ځای ددې خوليکن چې کله په دې باندې نه داخليږي حرف نداء نوو ګرځولې شو دغه حالت |
| اِعْرَابًا فَصَارَتْ رَفْعًا وَاَبُوْعَمْرِو بْنُ الْعَلَاءِ النَّحْوِيُّ الْقَارِيُّ الْمُقَدَّمُ عَلَى الْخَلِيْلِ يَخْتَارُ فِيْهِ النَّصْبَ |
| اعرابي نوو ګرځيدا رفع اوابوعمروبن العلاء النحوي قاري چې مقدم دې په خليل باندې غوره کوي په دې کې نصب |
| مَعَ تَجْوِيْزِهِ الرَّفْعَ فَاِنَّهُ لَمَّا اِمْتَنَعَ فِيْهِ تَقْدِيْرُ حَرْفِ النِّدَاءِ بِوَاسِطَةِ اللَّامِ لَا يَكُوْنُ مُنَادًى |
| سره دجائزکيدودرفع ځکه چې کله ممتنع وي په دې کې تقدير دحرف نداء په واسطې د لام سره نودانه ده منادى |
| مُسْتَقِلًّا فَلَهُ حُكْمُ التَّبْعِيَةِ وَ تَابِعُ الْمَبْنِيِّ تَابِعٌ لِمَحَلِّهِ وَ مَحَلُّهُ النَّصْبُ وَ اَبُو الْعَبَّاسِ |
| مستقله نوددې دپاره دې حکم دتابعيت اوتابع دمبني داتابع دې دمحل اومحل ددې نصب دې اوابوالعباس |
| الْمُبَرِّدُ اِنْ كَانَ الْمَعْطُوْفُ الْمَذْكُوْرُ كَالْحَسَنِ اَيْ كَاِسْمِ الْحَسَنِ فِيْ جَوَازِ نَزْعِ اللَّامِ عَنْهُ |
| المبرد که چيرته معطوف مذکوروي په شان دالحسن يعنې په شان داسم دحسن په جوازدجداکولودلام کې ددې نه |
| فَكَالْخَلِيْلِ اَيْ فَاَبُوا الْعَبَّاسِ مِثْلُ الْخَلِيْلِ فِيْ اِخْتِيَارِ رَفْعِهِ لِاِمْكَانِ جَعْلِهِ مُنَادًى |
| نوبياپه شان دخليل دې يعنې ابوالعباس په شان دخليل دې په غوره کولودرفع دوجې دامکان دګرځولودې منادى |
| مُسْتَقِلًّا بِنَزْعِ اللَّامِ عَنْهُ وَ اِلَّا اَيْ وَ اِنْ لَمْ يَكُنِ الْمَعْطُوْفُ الْمَذْكُوْرُ كَاِسْمِ الْحَسَنِ |
| مستقله په جداکولودلام سره ددې نه اوکه چيرته نه وي يعنې که چيرته نه وي معطوف مذکورپه شان داسم دحسن |
| فِيْ جَوَازِ نَزْعِ اللَّامِ عَنْهُ مِثْلُ النَّجْمِ وَ الصَّعِقِ فَكَاَبِيْ عَمْرٍو اَيْ فَاَبُوا الْعَبَّاسِ مِثْلُ |
| په جائزکيدودجداکولودلام سره ددې نه لکه النجم والصعق نوبياپه شان دابي عمرو دې يعنې ابوالعباس په شان |
| اَبِيْ عَمْرٍو فِيْ اِخْتِيَارِ النَّصْبِ لِاِمْتِنَاعِ جَعْلِهِ مُنَادًى مُسْتَقِلًّا. |
| دابي عمرو دې په غوره کولو دنصب کې دوجې دممتنع ګرځولودې نه منادى مستقل. |

**خلاصه دمتن:** هغه معطوف بالحرف چې په هغې باندې دخول دياء ممتنع وي چې کله هغه

منادى مبني على علامة الرفع تابع وي نوپه دې كې دجمهورو په نزد رفع اونصب دواړه جائزدي البته په اولويت كې دنحويانو اختلاف دي دامام خليل په نزدداسې معطوف بحرف كې رفع غوره ده اودابوعمرو په نزدباندې نصب غوره دي ، ابوالعباس مبرد نحوي وايي چې كله معطوف بالحرف دالحسن په شان وي يعنې ددې نه لام حذف كول جائزوي نودامام خليل مذهب غوره دي اوكه چيرته معطوف مذكور د الحسن په شان نه وي يعنې ددې نه لام حذف كول جائز نه وي نود ابوعمرو مذهب غوره دي ، ددې وجه په شرحه كې راځي

**اغراض دجامي** : په دې عبارت سره صاحب دكافيې وايي چې منادى مبني على علامة الرفع هغه توابع كوم چې مضاف وي دامنصوب وي لكه يارجل اباعبدالله .

**وابن احمد**: په دې عبارت سره دامام خليل تعارف مقصود دي چې ددې نه مراد خليل بن احمد فراهيدي دي كوم چې دامام سيبويه استاذ دي په اصل كې دخليل نوم ددري نحويانو تير شوي دي : (۱) دسيبويه استاذ (۲) دسيبويه همعصر اوهم زمان . (۳) دسيبويه شاګرد ، نو استاذ دسيبويه وويل نو داباقي دوه نور يې ترې خارج كړل .

**بحرف الممتنع** : په دې عبارت سره دابيانوي چې په المعطوف باندې لام دعهد دي ددې نه مراد المعطوف بحرف الممتنع دخول ياعليه دي چې ددې مخكې تفصيل ذكر شوي دي .

**مع تجويز** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : اختيار په دوه معنو باندې استعماليږي : (۱) په معنى دترجيح اوداولويت . (۲) په معنى دقطع اودجزم اودوجوب سره ،نو دلته كومه معنى مراد ده ؟.

**جواب** : نوشارح مع تجويزه سره جواب وركړو چې دلته اختيار په معنى دقطع ووجوب نه دي بلكه اختيار په معنى دترجيح دي يعنې خليل رفع ته ترجيح وركوي اونصب هم جائز ګڼړي .

**لان المعطوف** : په دې عبارت سره دخليل ددليل بيان كوي چې معطوف په حقيقت كې مستقل منادى وي ځكه چې حرف عاطف ياء حرف نداء قائمقام وي لهذا مناسب داده چې داپه همدې حالت باندې پريخودل شي كوم چې دحرف نداء دداخليدو نه پس مستقل منادى وي اومنادى مستقل باندې ضمه يا الف يا واو وي نو په دې باندې به هم ضمه الف او واو كيدل په كاردي ليكن معرف باللام كيدو دوجې نه په دې باندې حرف نداء دخول ممتنع دي ځكه يې دې ته د

منادی مستقل والاحیثیت ورکړو مبنی علی علامة الرفع خو نه شي کولی البته حتی الامکان ددې لحاظ کولو سره مبني علی علامة الرفع په ځای معرب مرفوع کړو نو ددې وجې نه یې رفع غوره کړه .

العلاء النحوي: په دې عبارت کې بیان دتعارف دې ، ابوعمرو نحوي قاري داد خلیل نه مقدم دې اودا ټول صفات صفات مادحه دي دابوعمرو مدح دتوصیف دپاره دي داصفات موضحه نه دي ځکه چې ابوعمرو مشهور اومعروف دې په مینځ د نحویانو کې دهیڅ وضاحت محتاج نه دې اود المقدم علی الخلیل نه مراد تقدم باعتبار الزمان مراد دې نه په اعتبار درتبې سره ځکه چې لم یسبق علی الخلیل احد في علم النحو .

مع تجویزه: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** :اختیار په دوه معنو باندې استعمالیږي : (۱) په معنی دترجیح اوداولویت . (۲) په معنی دقطع اودجزم اودوجوب سره ،نو دلته کومه معنی مراد ده ؟.

جواب : نوشارح مع تجویزه سره جواب ورکړو چې دلته اختیار په معنی دقطع ووجوب نه دي بلکه اختیار په معنی دترجیح دي یعني خلیل رفع ته ترجیح ورکوي اونصب هم جائز ګڼړي .

فانه لما: په دې عبارت کې دابوعمرو ددلیل بیان دي چې کله معطوف بالحرف دمعرف باللام کیدو دوجې نه دحرف نداء دخول په دې باندې ممتنع دي نودامستقل منادی نه جوړیږي لهذا ددې حکم دخالص تابع حکم به وي اودمنادی مبني تابع ددې دمحل تابع وي اومتبوع چونکه محلاً منصوب دي لهذا په تابع باندې به هم نصب غوره وي .

وابو العباس: په دې عبارت سره ددریم مذهب بیان کوي ابوالعباس مبرد دخلیل اودابوعمرو په مینځ کې محاکمه کوي چې کله معطوف معرف باللام الف دالحسن په شان وي یعنې ددې نه لام حذف کول جائز وي نودخلیل مذهب به غوره وي ، ځکه چې کله ددې نه لام حذف کول جائز دي نودلام حذف کول اودامستقل منادی جوړول ممکن دي لهذا په دې باندې به رفع غوره وي اوکه چیرته معرف باللام د الحسن په شان نه وي یعنې ددې نه لام حذف کول جائز نه وي نودابوعمرو مذهب غوره دي ځکه چې کله ددې نه لام حذف کول جائز نه وي نوددې مستقل منادی جوړول ممتنع دي چې کله ددې مستقل منادی جوړول ممتنع دي نوددې حکم به دتابع والاوي اودمنادی مبني تابع ددې دمحل تابع وي او متبوع محلاً منصوب دي لهذا نصب به

غوره وي

اي فابو العباس : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ان كان كالحسن شرط او كالخليل جزا ده حالانكه ددې جزا جوړول صحيح نه دي ځكه جزا جمله وي اودا جمله نه ده

**جواب** : فكالخليل داخبر دي دپاره دمبتدا محذوف كوم چې ابوالعباس دي مبتدا اوخبر يوځاې كړو جمله شوه لهذا ددې جزا جوړول صحيح دي .

مثل الخليل : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : كالخليل دابوالعباس خبر دي حالانكه كاف حرف دي دحرف خبر جوړول صحيح نه دي .

**جواب** : په مثل سره يې جواب وركړو چې كاف په معنى دمثل سره اسم دي لهذا ددې خبر جوړول صحيح دي .

## د توابعو د مضاف بيان :

| |
|---|
| وَ الْمُضَافَةُ عَطْفٌ عَلَى الْمُفْرَدَةِ اَىْ وَ تَوَابِعُ الْمُنَادٰى الْمَبْنِيِّ عَلٰى مَا يَرْفَعُ بِهٖ |
| او مضاف دا عطف دي په مفردة باندې يعني توابع د منادى مبني بناء په هغه څه چې رفع وركوي په دې سره |
| الْمُضَافَةُ بِالْاِضَافَةِ الْحَقِيْقِيَّةِ تُنْصَبُ لِاَنَّهَا اِذَا وَقَعَتْ مُنَادٰى تُنْصَبُ |
| مضاف ته په اضافت حقيقي سره نصب به وركوي ځكه چې كله داعلت واقع شي منادى نونصب به وركوي نو |
| فَنَصْبُهَا اِذَا وَقَعَتْ تَوَابِعَ اَوْلٰى لِاَنَّ حَرْفَ النِّدَاءِ لَا يُبَاشِرُهَا |
| نصب ددې چې كله واقع شي توابع نوپه طريق اولى به منصوب وي ځكه چې حرف ندانه داخليږي په دې باندې |
| مِثْلُ يَاتَيْمُ كُلُّهُمْ فِي التَّاكِيْدِ وَيَازَيْدُ ذَا الْمَالِ فِي الصِّفَةِ وَيَارَجُلُ اَبَاعَبْدِاللّٰهِ فِي عَطْفِ الْبَيَانِ وَلَا يَجِئُ الْمَعْطُوْفُ |
| لكه ياتيم كلهم په تاكيد كې ويازيدذالمال په صفت كې ويارجل اباعبدالله په عطف بيان كې اونه راځي معطوف |
| بِحَرْفِ الْمُمْتَنِعِ دُخُوْلُ يَا عَلَيْهِ مُضَافًا لِاَنَّ اللَّامَ يَمْتَنِعُ دُخُوْلُهَا عَلَى |
| په داسې حرف سره چې ممتنع وي دخول د ياء په دې باندې مضاف ځكه چې لام ممتنع دي دخول ددې په |
| الْمُضَافِ بِالْاِضَافَةِ الْحَقِيْقِيَّةِ . |
| مضاف باندې په اضافت حقيقي سره . |

**خلاصه دمتن** : صاحب دكافيې وايي چې منادى مبني على علامة الرفع هغه توابع چې مضاف وي هغه منصوب وي لكه يارجل اباعبدالله .

**اغراض دجامي** : عطف على المفردة : په دې عبارت کې بيان دترکيب دي چې المضافة عطف دي په المفردة باندې .

اى وتوابع المنادى : په دې عبارت کې حاصل دعطف بيان دي مقصد دادې چې منادى مبني على علامة الرفع هغه توابع کوم چې مضاف وي دامنصوب وي .

بالاضافة الحقيقية : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داقاعده منقوضه اوماته ده په هغه الحسن سره کوم چې په يازيدالحسن الوجه کې واقع دي ځکه چې دامنادى مبني على علامة الرفع تابع مضاف دي حالانکه په دې باندې نصب متعين نه دي بلکه رفع اونصب دواړه جائز دي .

**جواب** : دلته دمضاف نه مراد مضاف بالاضافة الحقيقية دي اوپه ذکرشوي مثال کې الحسن مضاف بالاضافة الحقيقية يعنې مضاف بالاضافة المعنويه نه دي بلکه مضاف بالاضافة اللفظية دى اوپه مفرد حکمي کې داخل دي نه په المضافة کې لهذا نقض به وارد نه وي .

لانها : په دې عبارت سره شارح هغه منادى چې مبني وي په علامت درفع اوهغه توابع چې مضاف وي ددې دمنصوب کيدووجه بيانوي چې کله مضاف په خپله منادى واقع وي نودابه منصوب وي نوچې کله دامنادى دمبني تابع وي نوپه طريق اولى ددې منصوب کول په کاردي ځکه چې په دې صورت کې حرف نداءچې کوم موجب دبناء دي ددې نه لرې دي په ذهن کې دې وي چې دلته د اولويت دنصب نه مراداولويت په طريقې دوجوب دي يعنې په توابعو دمضاف باندې نصب واجب دي .

ياتيم کلهم : په دې عبارت سره شارح دتاکيد مثال بيانوي .

يازيد ذا المال : په دې عبارت سره غرض دشارح دصفت مثال بيانول دي .

ولا يجيء : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دتوابع مضاف تاکيد صفت وغيره مثالونه يې بيان کړل ليکن دمعطوف بالحرف الممتنع دخول ياء مثال يې بيان نه کړو ددې مثال بيان هم کول په کار وو .

**جواب** : هغه معطوف بحرف چې په هغې باندې دخول دياء ممتنع وي هغه نه شي مضاف کيدي ځکه چې دامعرف باللام وي اومضاف بالاضافة الحقيقية باندې دلام دخول ممتنع دي ددې وجې نه يې ددې مثال ذکر نه کړو .

...

# توابع د بدل او د غير معطوف :

وَ الْبَدَلُ وَ الْمَعْطُوْفُ غَيْرُ مَا ذُكِرَ اَىْ غَيْرُ الْمَعْطُوْفِ الَّذِيْ ذُكِرَ مِنْ قَبْلُ وَ هُوَ

اوبدل اوهغه معطوف چې دهغې ذکر شوي يعنې غير دهغه معطوف نه چې مخکې يې ذکر شوي او دا هغه معطوف

الْمُمْتَنِعُ دُخُوْلُ يَا عَلَيْهِ فَغَيْرُهُ الْمَعْطُوْفِ الَّذِيْ لاَ يَمْتَنِعُ دُخُوْلُ يَا عَلَيْهِ

دي چې ممتنع وي دخول د ياء په دې باندې نوغير د دې نه هغه معطوف دې چې نه وي ممنتع دخول د ياء په دې

حُكْمُهُ اَىْ حُكْمُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حُكْمُ الْمُنَادَى الْمُسْتَقِلِّ الَّذِيْ بَاشَرَهُ حَرْفُ

باندې نوحکم د دې يعنې د حکم د هريو د دې دواړو نه په شان د حکم د منادی مستقل دې هغه چې داخل وي حرف

النِّدَاءِ وَ ذٰلِكَ لِاَنَّ الْبَدَلَ هُوَ الْمَقْصُوْدُ بِالذِّكْرِ وَ الْاَوَّلُ كَالتَّوْطِيَةِ لِذِكْرِهِ وَ

نداء او دا د دې وجې نه څکه چې بدل هغه مقصد د دې بالذکر او اول په شان د تمهيد دې د دې د ذکر کولو او

الْمَعْطُوْفُ الْمَخْصُوْصُ مُنَادَى مُسْتَقِلٌّ فِي الْحَقِيْقَةِ وَلاَ مَانِعَ مِنْ دُخُوْلِ حَرْفِ النِّدَاءِ عَلَيْهِ فَيَكُوْنُ

معطوف مخصوص چې منادی مستقل ده په حقيقت کې او نشته څه مانع د دخول د حرف نداء نه په دې کې نو وي

حَرْفُ النِّدَاءِ مُقَدَّراً فِيْهِ مُطْلَقاً اَىْ حَالَ كَوْنِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُطْلَقاً فِيْ هٰذَا الْحُكْمِ غَيْرَ مُقَيَّدٍ

به حرف نداء په دې کې مقدره مطلقا يعنې په حال کون د هريو د دې نه مطلقا دې په دې حکم کې او مقيد نه دې

بِحَالٍ مِنَ الْاَحْوَالِ اَىْ سَوَاءٌ كَانَا مُفْرَدَيْنِ اَوْ مُضَافَيْنِ اَوْ مُضَارِعَيْنِ لِلْمُضَافِ اَوْ

په يو حال سره د احوالو نه يعنې برابره خبره ده چې دا دواړه مقدر وي او يا مضاف وي او يا شبه مضاف وي او يا

نَكِرَتَيْنِ فَالْبَدَلُ مِثْلُ يَا زَيْدُ وَعَمْرُو وَيَا زَيْدُ اَخَا عَمْرٍو وَيَا زَيْدُ طَالِعاً جَبَلاً وَيَا زَيْدُ رَجُلاً صَالِحاً وَالْمَعْطُوْفُ مِثْلُ يَا

نکره وي نو بدل لکه يا زيد وعمرو و يا زيد اخاعمرو و يا زيد طالعا جبلا و يا زيد رجلاً صالحا او معطوف لکه يا

زَيْدُ وَعَمْرُو وَيَا زَيْدُ وَاَخَا عَمْرٍو وَيَا زَيْدُ وَطَالِعاً جَبَلاً وَيَا زَيْدُ وَرَجُلاً صَالِحاً.

زيد وعمرو و يا زيد و اخاعمرو و يا زيد و طالعا جبلا و يا زيد و رجلاً صالحا.

**خلاصه دمتن:** بدل او هغه معطوف چې په هغې باندې دخول د ياء ممتنع نه وي د دې دواړو حکم د مستقل منادی والا دي.

**اغراض دجامي :** اى غير المعطوف: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال :** المعطوف غير ماذکر کې المعطوف موصوف او غير ماذکر صفت دي او د موصوف او صفت په مينځ کې په تعريف او تنکير کې مطابقت ضروري دي دلته مطابقت نشته څکه چې المعطوف معرفه ده او غير ماذکر نکره ده څکه چې غير د معرفې طرف ته د مضاف کيدو باوجود معرفه نه

شي جوړيدي

**جواب** : لفظ غير اګرچې معرفې طرف ته دمضاف کيدو باوجود معرفه نه جوړيږي ليکن که چيرته دغير دمضاف اليه صرف يو ضد وي نودامعرفه جوړيږي دلته مضاف اليه **معطوف بالحرف الممتنع دخول يا عليه** دي اوددې ضد صرف يو دي اوهغه دي معطوف بالحرف چې په هغې باندې دخول ديا ممتنع نه وي لهذا دلته غير معرفه دي اودموصوف اوصفت په مينځ کې مطابقت موجود دي .

**اى حكم كل واحد**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دحکمه ضمير بدل اومعطوف بالحرف طرف ته راجع دي نودراجع اودمرجع په مينځ کې مطابقت نه دي **حكمهما** ويل په کاروو .

**جواب** : مرجع بدل اومعطوف بحرف دواړه دي ليکن د**كل واحد** تاويل سره لهذا دراجع اودمرجع په مينځ کې مطابقت موجود دي .

**المنادى**: په دې عبارت کې بيان دترکيب دي ، المستقل داصفت دي دموصوف محذوف کوم چې المنادى دي .

**الذي باشره**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : بدل اومعطوف بحرف هم مستقل منادى دي لهذا دامستقل منادى سره تشبيه ورکول **تشبيه الشيء مع نفسه** دي کوم چې جائز نه دي .

**جواب** : دلته منادى مستقل نه مراد هغه منادى ده چې په هغې باندې حرف نداء براه راست اوبې واسطه داخل وي اوبدل اومعطوف بحرف باندې حرف نداء بې واسطې نه داخليږي لهذا دا **تشبيه الشيء مع نفسه** نه دي بلکه **تشبيه احد القسمين مع آخر** دي .

**وذلک لان البدل**: په دې عبارت سره دحکم مذکور وجه بيانوي چې بدل مقصود بالذات وي اومبدل منه په طور دتمهيد اوتوطيه وي چې کله مقصود بدل دي نوپه حقيقت کې منادى هم بدل وي نه مبدل منه لهذا دبدل مستقل منادى والاحکم به وي ، اودمعطوف بحرف حکم دمنادى مستقل والاخکه دي چې حرف عطف دحرف نداء قائمقام دي اوپه دې باندې دحرف نداء ددخول نه کوم مانع هم نشته لهذا په دې کې حرف نداء مقدر وي څکه چې ددې حکم به د

منادی مستقل والاوي

اي حال: په دې عبارت کې بیان دترکیب دي مطلقاً حال واقع دي په حکمه کې د ة ضمیر نه

**سوال**: قاعده داده چې حال دفاعل نه جوړیږي یادمفعول نه دمضاف الیه نه حال جوړول صحیح نه دي.

**جواب**: دمضاف الیه نه حال جوړول په هغه وخت کې صحیح وي چې کله مضاف حذف کړي اومضاف الیه ددې قائمقام جوړکړي دلته داسې کیږي چې حکم حذف کړي او ة ضمیر ددې قائمقام کړي عبارت به داسې وي چې **وهو مطلقاً کالمنادی المستقل الخ**.

غیر مقید: په دې عبارت سره شارح دمطلقا معنی بیان کړي ده چې مطلقا په معنی دکامل سره نه دي بلکه دمطلق مقید په مقابله کې دي مطلب دادې چې بدل اومعطوف ددې دواړو حکم دمستقل منادی دحکم په شان کیدل دي اودیوحال سره مقید نه وي بلکه مطلق وي برابره خبره چې دامضاف وي یا مفرد وي یاشبه مضاف وي یانکره وي.

فالبدل مثل: په دې عبارت سره شارح دبدل اودمعطوف مثالونه بیانوي.

**دبدل مثال**: لکه **یازید عمرو** دادبدل مفرد غیر مضاف مثال دي، او**یازید اخاعمرو** دادبدل مضاف مثال دي، او**یازید طالعاً جبلا** دادبدل دشبه مضاف مثال دي، او**یازید رجلا صالحا** دادبدل نکره غیرمعینه مثال دي.

**دمعطوف مثالونه**: (۱) **یازید وعمرو** دادمعطوف غیرمضاف مثال دي. (۲) **یازید واخاعمرو** داد معطوف مضاف مثال دي. (۳) **یازید وطالعاً جبلا** دادمعطوف شبه مضاف مثال دي. (۴) **یازید ورجلاً صالحا** دمعطوف نکرې مثال دي.

## منادی مفرد معرفه او هغه علم چې موصوف وي په ابن سره:

| |
|---|
| وَالْعَلَمُ اَيِ الْعَلَمُ الْمُنَادَى الْمَبْنِيُّ عَلَى الضَّمِّ اَمَّا كَوْنُهُ مُنَادًى فَلِاَنَّ الْكَلَامَ فِيْهِ وَ اَمَّا كَوْنُهُ مَبْنِيًّا عَلَى الضَّمِّ |
| اوعلم یعني منادی مبني برضمه یاکیدودې نه منادی ځکه چې کلام په دې کې دي اویاد کیدوددې مبني برضمه |
| فَلِمَا يُفْهَمُ مِنْ اِخْتِيَارِ فَتْحِهِ الْمُنْبِئُ عَنْ جَوَازِ ضَمِّهِ فَاِنَّ جَوَازَ الضَّمَّةِ لَا يَكُوْنُ اِلَّا فِيْ |
| نوهغه چې فهمیږي دغوره کولودفتحې نه چې خبرورکوي دجواز دضمې نه ځکه چې جواز دضمې نه وي مګر په |
| الْمَبْنِيِّ عَلَى الضَّمِّ الْمَوْصُوْفُ بِاِبْنٍ مُجَرَّدٍ عَنِ التَّاءِ اَوْ مَلْحُوْقٍ بِهَا اَعْنِيْ |
| مبني برضمه کې چې موصوف وي په ابن سره چې خالي وي دتا نه یادهغه موصوف سره چې لاحق وي دتاسره یعني |

اِبْنَةٌ بِلا تَخَلُّلِ وَاسِطَةٍ بَيْنَ الاِبْنِ وَ مَوْصُوْفِهٖ كَمَا هُوَ الْمُتَبَادِرُ اِلَى الْفَهْمِ فَيَخْرُجُ

ابنه بې د خلل نه چې واقع وي په مينځ دابن کې او د موصوف د دې کې لکه چې دا متبادر الى الفهم دې نو خارجيږي

عَنْهُ مِثْلُ يَازَيْدَنِ الظَّرِيْفَ ابْنَ عَمْرٍو مُضَافاً اَىْ حَالَ كَوْنِ ذٰلِكَ الاِبْنِ مُضَافاً اِلٰى عَلَمٍ آخَرَ فَكُلُّ

د دې نه دامثال لکه يازيدن الظريف ابن عمر ومضاف په حال کون د دې ابن کې چې مضاف وي بل علم ته نو هر

عَلَمٍ يَكُوْنُ كَذٰلِكَ يَجُوْزُ فِيْهِ الضَّمُّ كَمَا عَرَفْتَ مِنْ قَاعِدَةِ بِنَاءِ الْمُفْرَدِ عَلٰى مَا يُرْفَعُ

هغه علم چې وي دارنګې نوجائز ده په دې کې ضمه لکه تاچې پيژندلي د قاعدې د بناء نه په هغه څه چې مرفوع

بِهٖ لٰكِنْ يُخْتَارُ فَتْحُهٗ لِكَثْرَةِ وُقُوْعِ الْمُنَادَى الْجَامِعِ لِهٰذِهِ الصِّفَاتِ وَ الْكَثْرَةُ مُنَاسِبَةٌ

وي په دې کې لکن غوره فتحه ده دوجې د ډيروقوع د منادى نه چې جامع وي د دې صفاتو دپاره او کثرت مناسب

لِلتَّخْفِيْفِ فَخَفَّفُوْهُ بِالْفَتْحَةِ الَّتِىْ هِىَ حَرَكَتُهُ الاَصْلِيَّةُ لِكَوْنِهٖ مَفْعُوْلاً بِهٖ.

دې د تخفيف سره نوخفيفه يې کړه په فتحې سره هغه چې حرکت اصلي دې د وجې د کيدو نه مفعول به.

**خلاصه دمتن:** مخکې قاعده تيره شوه چې منادى مفرد معرفه په علامت د رفع باندې مبني وي نو اوس دا د هغې قاعدې نه استثناء ده چې منادى مفرد معرفه اګرچې مبني **على علامة الرفع** وي ليکن چې کله منادى مفرد معرفه علم وي او موصوف وي او د دې صفت لفظ د **ابن** يا **ابنة** وي نو بيا لفظ د ابن او ابنة بل علم طرف ته مضاف وي نو په دې صورت کې اوله منادى مفرد معرفه (علم موصوف) **مبني على علامة الرفع** نه وي بلکه په دې باندې رفع مختار ده اګرچې ضمه هم جائز ده.

**اغراض دجامي :** اى العلم المنادى: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال :** دلته خو د منادى او د توابعو د منادى بحث روان دي، نه د علم موصوف نو په **العلم الموصوف** سره خروج عن المبحث لازم راځي.

**جواب :** د علم نه مراد علم المنادى دي ځکه چې بحث د منادى کيږي نو د دې وجې نه **خروج عن المبحث** لازم نه راځي.

مبني على الضم: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال :** ذکر شوې قاعده منقوضه او ماته ده په **ياعبدالله بن عمرو** باندې په دې کې عبدالله منادى علم موصوف دې د ابن سره او ابن مضاف دې دويم علم عمرو طرف ته ليکن په دې کې

فتحه مختار نه ده بلکه نصب واجب دي .

**جواب** : دعلم منادی نه مطلق منادی مراد نه ده بلکه منادی **مبني على الضم** مراد ده په دې باندې شارح داقرینه پیش کړي چې مصنف رَحِمَهُ اللهُ **يختار فتحه** وویل ددې عبارت نه دضمې جواز معلومیږي اودضمې جواز صرف په منادی **مبني على الضم** کې کیږي .

**مجرد عن التاء** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : داقاعده منقوضه اوماته ده په **ياهند ابنة عمرو** سره ځکه چې په **هند** باندې فتحه مختار او ضمه جائز ده حالانکه دالفظ د ابن سره موصوف نه ده بلکه ابنة سره موصوف ده

**جواب** : په لفظ دابن کې تعمیم دي برابره خبره ده چې دا**مجرد عن التاء** وي يا **ملحوق بالتاء** وي اوپه ذکر شوي مثال کې **ملحوق بالتاء** ده اوپه ابن کې تعمیم دي نو نقض به وارد نه وي .

**بلا تخلل** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : داقاعده ماته ده په **يازيد الظريف ابن عمرو** سره ځکه چې زيد علم موصوف دي لفظ د ابن سره اودامضاف دي دویم علم عمرو طرف ته نوددذکر شوې قاعدې په رڼا کې په **يازيد** باندې فتحه په کار وه سره دجواز دضمې حالانکې مختار خو فتحه جائز نه ده بلکې ضمه واجب ده .

**جواب** : مراد دادې چې په لفظ دابن اوددې دموصوف په مینځ کې کوم فاصل نه وي اوپه ذکر شوي مثال کې د**ظريف** فاصله موجود ده لهذا ددې په ذریعه نقض نه واردیږي .

**اى حال كون** : په دې کې بیان دترکیب دي **مضافة** دا حال دي دابن نه .

**فكل علم** : په دې عبارت سره دذکر شوې قاعدې خلاصه بیانوي چې هرهغه علم چې ددې په شان وي یعنې مبني وي او موصوف وي لفظ دابن یادابنة سره اومضاف وي دویم علم طرف ته نوپه دې کې اګر چې ضمه هم جائز ده لیکن فتحه غوره دي ددې وجه داده چې هغه منادی چې په هغې کې داټول صفات موندل کیږي نوددې واقع کیدل په کلام دعربو کې ډیر وي او کثرت دخفت تقاضا کوي اوپه حرکاتو کې فتحه **اخف الحركات** ده ددې وجې نه نحویانو په دې فتحې سره خفیف کړه اودا فتحه هم دمنادی حرکت اصلیه دي ځکه چې دامفعول به جوړیږي .

**فائده** : په یاد مو وي چې دمنادی دپاره حرکت اصلیه فتحه کیدل صورتاً دي نه حقیقتاً ځکه چې حقیقتاً حرکت اصلیه دمنادی دپاره نصب دي .

## د معرف باللام د ندا طريقه :

| |
|---|
| وَ إِذَا نُودِيَ الْمُعَرَّفُ بِاللَّامِ أَيْ إِذَا أُرِيدَ نِدَاؤُهُ قِيلَ مَثَلاً يَا أَيُّهَا الرَّجُلُ |
| اوكله چې معرف باللام ته نداوكړل شي يعنې چې كله د دې د ندا اراده وكړې شي نوويلې به شي چې ياايها الرجل |
| بِتَوَسُّطِ أَيْ مَعَ هَاءِ التَّنْبِيهِ بَيْنَ حَرْفِ النِّدَاءِ وَالْمُنَادَى الْمُعَرَّفِ بِاللَّامِ تَحَرُّزاً عَنْ اِجْتِمَاعِ آلَتَيِ |
| په توسط داى اوهاء دتنبيه سره په مينځ دحرف نداء اودمنادى معرف باللام كې دخان ساتلو داجتماع د دوه آلو د |
| التَّعْرِيفِ بِلَافَاصِلَةٍ وَيَا هٰذَا الرَّجُلُ بِتَوَسُّطِ هٰذَا وَيَا أَيُّهٰذَا الرَّجُلُ بِتَوَسُّطِ الْأَمْرَيْنِ مَعاً وَالْتَزَمُوا |
| تعريف بې د فاصلې نه او ياهذاالرجل په توسط د هذا سره او ياايهذاالرجل په توسط د دوه امرينو يوځاې اولازم كړې |
| يَعْنِي الْعَرَبَ رَفْعَ الرَّجُلِ مَثَلاً وَإِنْ كَانَ صِفَةً وَحَقُّهَا جَوَازُ الْوَجْهَيْنِ الرَّفْعِ وَ النَّصْبِ كَمَا |
| دي يعنې عربو مثلاً د رجل رفع اګرچې دا صفت وي او د دې حق په دواړو وجهو كې د رفعې او د نصب جواز دي لكه |
| مَرَّ لِأَنَّهُ أَيِ الرَّجُلُ مَثَلاً هُوَ الْمَقْصُودُ بِالنِّدَاءِ فَالْتُزِمَ رَفْعُهُ لِتَكُونَ |
| چې مخكې تيرشوي دي ځكه چې دا يعنې رجل مثلاهمدا مقصود بالنداء دي نولازم دي رفع د دې د دې د پاره چې |
| حَرَكَتُهُ الْإِعْرَابِيَّةُ مُوَافِقَةً لِلْحَرَكَةِ الْبِنَائِيَّةِ الَّتِي هِيَ عَلَامَةُ الْمُنَادَى فَتَدُلَّ عَلَى |
| حركت اعرابيه د حركت بنائيه سره موافق شي كوم چې د منادى علامت دي پس دا حركت اعرابيه په دې خبره دلالت |
| أَنَّهُ هُوَ الْمَقْصُودُ بِالنِّدَاءِ وَهٰذَا بِمَنْزِلَةِ الْمُسْتَثْنَى عَنْ قَاعِدَةِ جَوَازِ الْوَجْهَيْنِ فِي صِفَةِ الْمُنَادَى |
| كوي چې دا مقصود بالنداء دي اودا په منزله دمستثنى كې دي د قاعدې د جواز د دوه وجهونه په صفت د منادى كې |
| وَلِهٰذَا لَمْ يَذْكُرْ هُنَاكَ مَا يُخْرِجُ صِفَةَ الْإِسْمِ الْمُبْهَمِ عَنْ تِلْكَ الْقَاعِدَةِ. |
| او د دې وجې نه مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دلته دا قيد يې ذكر نه كړو چې د دې قاعدې نه داسم مبهم صفت خارج كړي. |

**د متن خلاصه:** چې كله د معرف باللام نه ندا كول مقصود وي نو د حرف نداء او منادى معرف باللام په مينځ كې اي او هاء د تنبيه راوړه نو يا ايها الرجل يې ووايه د دې د پاره چې بې د فاصلې نه د دوو آلو د تعريف اجتماع لازم رانه شي يا د حرف ندا او د معرف باللام په مينځ كې هذا راوړه ياهذا الرجل ووايه يا اي او هذا دواړه راوړه ايهذا الرجل ووايه .

**اغراض د جامي:** اى اذا اريد: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال :** اذا نودي المعرف شرط او قيل يا ايهذا الرجل جزاء ده او د جزا په شرط باندې ترتب كيږي او دلته ترتب صحيح نه دي ځكه چې ياايها الرجل كې منادى اي دي نه الرجل ځكه چې الرجل داي

صفت دي پس داویل چې کله معرف باللام منادی جوړه کړي شي نویاایها الرجل ویل به صحیح نه وي ځکه چې الرجل چې کوم معرف باللام دي هغه بالکل دسره منادی ده نه او اې چې کومه منادی ده هغه معرف باللام نه ده .

**جواب** : دلته شرط نودې په معنی دارادې دندا ده نومطلب به داوي چې کله معرف باللام دنداء اراده وکړي شي نو یاایها الرجل کې اګر چې دلفظ په اعتبار سره الرجل دای منادی صفت دي لیکن په اعتبار د ارادې سره اصل مقصود بالنداء همدا الرجل دي لهذا دجزا ترتب په شرط باندې صحیح دي .

**مثلاً**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : د مصنف دعبارت نه معلومیږي چې کله هم د معرف باللام ندا کول مقصود وي نو ایها الرجل به ویلي شي حالانکه خبره داسې نه ده ځکه چې یا ایها الکرام وغیره هم ویلي شي ، په بل عبارت سره سوال دادې چې دجزاء ترتب په شرط باندې صحیح نه دي ځکه چې شرط کلي اوعام دي اوجزاء جزئي او خاص دي دخاص ترتب په عام باندې صحیح نه دي نومعنی به داوي چې کله معرف باللام ندا کړي شي اوچې کله معرف باللام هم وي نو یا ایها الرجل هم ویلي شي اودامعنی باطله ده .

**جواب** : مثلاً سره مصنف جواب ورکړي دي چې حاصل یې دادې چې په جزا کې قیل نه پس دمثلاً لفظ مقدر منلي شي نوجزابه هم کلي جوړه شي اویاایها الرجل ذکر په طور دتمثیل به وي نه په طور د تخصیص لهذا جزاء هم ټولو اسماء مبهمه اومعرفه ته به شامل وي .

**والتزموا**: په دې عبارت سره علامه ابن حاجب رَحِمَهُ اللّٰهُ دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مخکې تاسوویل چې دمنادی مبني هغه تابع چې مفرد وي برابره خبره ده چې داصفت وي اویا تاکید وي په داسې تابع باندې رفع اونصب دواړه جائز دي نوددې قاعدې مطابق یاایهاالرجل کې الرجل باندې رفع اونصب دواړه جائز کیدل په کار دي ځکه چې الرجل دای صفت مفرد دي اوای منادی مبني دي حالانکه په الرجل باندې رفع متعین ده نصب جائز نه دي .

**جواب** : یا ایها الرجل کې اګرچې الرجل دمنادی صفت دي اودتابع کیدودوجې نه ددې حق دا

وو چې په دې باندې دوه اعرابه رفع اونصب جائز کيدل په کاردي ليکن اهل عربوپه دې باندې صرف يو اعراب د رفع لازم کړي دي ددې دپاره چې دامعلومه شي چې اصل منادى الرجل دي اوهمدامقصود بالنداء دي اې غير مقصوددي صرف دفاصلې په غرض يې راوړي نوداي مرفوع کړي دي ددې دپاره چې د دې حرکت اعرابيه (رفع) ددې دحرکت بنائيه (ضمه) سره موافق شي کوم چې دمنادى علامت دي نوحرکت اعرابيه په دې خبره باندې دلالت کوي چې اصل مقصود بالنداء همدا الرجل دي.

**ولهذا:** په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال:** دمصنف په عبارت کې تناقض دي خکه چې د وتوابع المنادى نه معلوميږي چې دمنادى مبني په تابع کې دوه وجهې جائزدي (۱) رفع (۲) نصب .اود والتزموا نه معلومه شوه چې صرف يوه وجه جائز ده چې هغه رفع ده.

**جواب:** داعبارت دمخکنې قاعدې نه داستثناء درجه لري ددې وجې نه مصنف هلته ديوداسې قيد اضافه نه ده کړي کوم چې داسم مبهم (اسم نکرې) صفت ترې خارج کړي.

## توابع د معرف باللام:

| |
|---|
| وَ تَوَابِعِهِ بِالْجَرِّ عَطْفٌ عَلَى الرَّجُلِ أَىْ وَ الْتَزَمُوْا رَفْعَ تَوَابِعِ الرَّجُلِ مُضَافَةً أَوْ مُفْرَدَةً |
| اوتوابع ددې په جرسره داعطف دي په الرجل باندې يعنې دوي لازم کړي رفع دتوابع دالرجل په مضاف يامفرد باندې |
| نَحْوُ يَاأَيُّهَا الرَّجُلُ الظَّرِيْفُ وَيَاأَيُّهَا الرَّجُلُ ذُوالْمَالِ لِأَنَّهَا تَوَابِعُ مُنَادىً مُعْرَبٍ وَجَوَازُالْوَجْهَيْنِ إِنَّمَايَكُوْنُ |
| لکه ياايها الرجل الظريف اوياايها الرجل ذوالمال خکه چې دامنادى دمعرب دتوابعونه ده اوجوازددوه وجهو داوې |
| فِيْ تَوَابِعِ الْمُنَادىٰ الْمَبْنِيِّ وَقَالُوْا بِنَاءً عَلَى قَاعِدَةِ تَجْوِيْزِ إِجْتِمَاعِ حَرْفِ النِّدَاءِ مَعَ اللَّامِ وَ هِيَ إِجْتِمَاعُ |
| په توابعو دمنادى مبني کې اودوي وويل بناء په قاعدې دتجويزداجتماع دحرف نداسره دلام اوهغه اجتماع ددوه |
| أَمْرَيْنِ أَحَدُهُمَا كَوْنُ اللَّامِ عِوَضاً عَنْ مَحْذُوْفٍ وَ ثَانِيْهِمَا لُزُوْمُهَا لِلْكَلِمَةِ يَا أَللّٰهُ لِأَنَّ أَصْلَهُ الْإِلٰهُ |
| امرينويودې نه کيدل دلام عوض دمحذوف نه اودويم لزوم ددې دکلمې سره لکه ياالله خکه چې اصل ددې الاله دي |
| فَحُذِفَتِ الْهَمْزَةُ وَ عُوِّضَتِ اللَّامُ عَنْهَا وَ لَزِمَتِ الْكَلِمَةُ فَلَا يُقَالُ فِيْ سَعَةِ الْكَلَامِ لَاهٌ |
| پس همزه حذف کړي شوه ددې په عوض لام راوړي شواوهغه لام کله لازم شوه پس په وسعت دکلام کې لاه نه شي ويلې |
| وَلَمَّا لَمْ يَجْتَمِعْ هٰذَانِ الْأَمْرَانِ فِيْ مَوْضِعٍ آخَرَ أُخْتُصَّ هٰذَا الْإِسْمُ بِذٰلِكَ الْجَوَازِ وَ لِهٰذَا |
| اوهرکله چې نه جمع کيږي دادواړه امرونه په بل ځاي کې نوخاص يې کړو دااسم په دې جواز پورې اوددې وجې نه |

| |
|---|
| قَالَ خَاصَّةً وَاَمَّا مِثْلُ النَّجْمِ وَالصَّعِقِ وَاِنْ كَانَتِ اللاَّمُ لاَزِمَةً فِيْهِ لٰكِنْ لَيْسَتْ عِوَضاً عَنْ مَحْذُوْفٍ |
| يې وويل خاصةً او هر چې په النجم او الصعق مثال کې دي اګرچې په دې کې لام لازم وي ليکن نه وي عوض د محذوف نه |
| وَاَمَّا النَّاسُ وَاِنْ كَانَتِ اللاَّمُ فِيْهِ عِوَضاً عَنِ الْهَمْزَةِ لِاَنَّ اَصْلَهُ الْاُنَاسُ لٰكِنْ لَيْسَتْ لاَزِمَةً لِلْكَلِمَةِ |
| او هر چې الناس دي اګرچې په دې کې لام عوض وي د همزې نه ځکه چې دا په اصل کې الاناس دي لکن نه دي لازم د کلمې |
| لِاَنَّهُ يُقَالُ نَاسٌ فِيْ سَعَةِ الْكَلاَمِ فَلاَ يَجُوْزُ اَنْ يُقَالَ يَاالنَّجْمُ وَيَاالنَّاسُ وَلِعَدَمِ جَرَيَانِ |
| سره ځکه چې دا ویلې شي ناسٌ په وسعت د کلام کې نو نه دي جائز چې وویل شي یاالنجم او یاالناسُ او د عدم جریان |
| هٰذِهِ الْقَاعِدَةِ فِي الَّتِيْ فِيْ قَوْلِهِ شِعْر : |
| ددې قاعدې هغه چې په دې شعر کې ذکر دي |

| | |
|---|---|
| مِنْ اَجْلِكِ يَا الَّتِيْ تَيَّمْتِ قَلْبِيْ | وَ اَنْتِ بَخِيْلَةٌ بِالْوَصْلِ عَنِّيْ |
| ستا د محبت د وجې نه ای محبوبې تا زما زړه پامال کړو | حالانکې ته د ما سره په میلاویدو کې بخیله یې |

| |
|---|
| لِاَنَّ لاَمَهَا لَيْسَتْ عِوَضاً عَنْ مَحْذُوْفٍ وَ اِنْ كَانَتْ لاَزِمَةً لِلْكَلِمَةِ حَكَمُوْا عَلَيْهِ بِالشُّذُوْذِ |
| ځکه چې ددې لام د محذوف په عوض کې نه دي اګرچې کلمې ته لازم دي او نحویانو حکم کړې په دې باندې د شذوذ |
| وَ فِي الْغُلاَمَانِ فِيْ قَوْلِهِمْ ع فَيَا الْغُلاَمَانِ . اللَّذَانِ فَرَّا لِاِنْتِفَاءِ الْاَمْرَيْنِ كِلَيْهِمَا حَكَمُوْا |
| او په الغلامان کې چې په دې قول فیاالغلامان فرا کې واقع دي د وجې د انتفاء د دواړه امرینو حکم کړې په دې باندې |
| بِاَنَّهُ اَشَدُّ شُذُوْذاً . |
| چې دا اشد شذوذا دي . |

**خلاصه د متن:** په دې عبارت سره ماتن دفع د سوال مقدر وکړه او وې ویل چې یا الله کې اګر چې په ظاهر د دوو آلو اجتماع کیږي او ای وغیره سره فاصله هم نه ده لیکن په حقیقت کې دا اجتماع نه دي ځکه چې د الله د لام همزه د مفتوحې په عوض کې ده او د ا د کلمې جز دي پس په حقیقت کې اله د تعریف یاء ده لام نه دي لهذا د تعریف د دوو آلو په مینځ کې اجتماع لازم رانه غله .

**اغراض د جامي :** بالجر عطف: په دې سره غرض د شارح د توابعه د لفظ د ضبط اعراب او وجه د اعراب بیانول دي چې دا مجرور دي وجه داده چې دا عطف دي په الرجل باندې کوم چې مجرور دي .

اي والتزموا: په دې کې حاصل د عطف بیان دي چې نحویانو د الرجل په توابعو باندې هم رفع

لازم کړي برابره خبره ده داتابع مفرده وي یا مضاف وي مفرد طرف ته لکه مثال یا ایها الرجل الظریف دمضاف مثال یا ایها الرجل ذوالمال

لانها: په دې کې د الرجل په توابعو باندې رفع دلازم کولو وجه بیانوي چې د الرجل په توابعو باندې بې رفع ددې وجې نه لازم کړه ځکه چې دامنادی دمعرب دتوابعو نه ده اومنادی معرب توابع ددې لفظ تابع وي په دې باندې صرف یو اعراب جائز کیږي او ددوو وجهو جواز منادی مبني په توابعو کې وي .

وقالوا: په دې عبارت سره غرض دصاحب دکافیې دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: مخکې ماتن قاعده بیان کړي چې کله معرف باللام دنداکول مقصود وي نوحرف ندا اومعرف باللام په مینځ کې دایها وغیره فاصله ضروري ده داقاعده منقوضه اوماته دې په یا الله سره ځکه چې په دې کې حرف نداء بې دفاصل نه معرف باللام باندې داخل ده اودتعریف دوه آلې جمع کیږي .

**جواب**: په یا الله کې اګرچې په ظاهره باندې ددوو آلو اجتماع په نظر راځي لیکن په حقیقت کې اجتماع نه ده ځکه چې په دې کې لام دهمزې محذوفې په عوض کې دي اوداد کلمې جز جوړشوي دي او په حقیقت کې آله دتعریف یاء ده لام نه دي لهذا په تعریف کې ددوو آلو جمع کیدل لازم نه راځي .

بناء: په دې عبارت سره شارح ددې خبرې وضاحت کوي چې نحویانو په یاالله کې چې کوم حرف ندا او معرف باللام داجتماع جائز کړي ده هغه دیوې نوې قاعدې په بناء اوهغه قاعده داده چې کله دوه امره جمع وي اوهلته حرف ندا اولام جمع کیدل هم جائز وي (۱) لام دکوم حرف محذوفه په عوض کې وي اصلي نه وي . (۲) لام کلمه لازم وي ددې نه جدا نه وي .

لان اصله: په دې کې شارح وجه بیانوي چې لفظ دالله کې لام عوضي اولازمي دي چې لفظ دالله په اصل کې الاله وو همزه موحذف کړه اوددې په عوض مو لام راوړو اودا لام دکلمې سره لازم دي ددې نه جدا نه دي چنانچې په وسعت کلام کې لاه نه شي ویلی .

ولمالم یجتمع: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: دلیل دې ددعوی سره مطابق نه دي ځکه چې ددلیل نه دتعریف ددوآلو داجتماع نه د

لفظ د الله سره عدم اختصاص معلومیږي بلکي د دعوی نه د لفظ د الله سره د اختصاص مفهوم وي ؟

**جواب** : واقعي دليل د مفهوم په اعتبار سره عام دي چې کله هم دوه شيان موندل شي هلته د دوو آلو تعريف جمع کيږي ليکن په ټول عربي لغت کې صرف يو ځاې دي چې هلته دا دوه امرونه موندل کيږي هغه يو ځاې الله دي ګويا چې دا يو داسې کلي دي چې په يو فرد کې منحصر دي په بل ځاې کې دا دوه امره اجتماعاً نه موندل کيږي دده وجې نه لفظ د الله د دې جواز سره مختص شو د دې وجې نه مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ خاصةً وويل .

**واما مثل النجم** : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دا قاعده منقوضه اوماته ده په النجم او الصعق سره ځکه چې د دې لام هم د کلمې سره لازم دي په دې باندې حرف ندا دخول بې د فاصلې نه جائز کيدل په کار دي حالانکه جائز نه دي .

**جواب** : اګر چې د دې لام د کلمې سره لازم دي ليکن د چا په عوض کې نه دي د دې وجې نه په دې باندې د حرف ندا داخليدل بې د فاصلې نه جائز نه دي .

**واما الناس** : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دا قاعده منقوضه اوماته ده په الناس سره ځکه چې د دې الف د محذوف په عوض کې دي ځکه چې د دې اصل اناس دي حالانکه په دې باندې د حرف ندا داخليدل بې د فاصلې نه جائز نه دي .

**جواب** : اګرچې د دې لام د محذوف په عوض کې دي ليکن د کلمې سره لازم نه دي چنانچې په وسعت د کلام کې ناس ويلي شي د دې وجې نه په دې باندې د حرف ندا داخليدل بې د فاصلې نه جائز نه دي .

**ولعدم جريان** : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دا قاعده منقوضه اوماته ده د شاعر په دې شعر سره چې :

**من اجلک يا التي تيمت قلبي وانت بخيلة بالوصل عني**

په دې کې التي باندې حرف ندا بې د فاصلې نه داخل دي او لام اګرچې د کلمې سره لازم دي ليکن د محذوف په عوض کې نه دي د دې باوجود په دې باندې حرف ندا بې د فاصلې نه داخل دي .

**جواب** : جواب دادي چي دا شاذ دي

**فائده** : په تيمُ کې تا په ضمې او کسرې دواړو سره ويل جائز دي

وفي الغلامان : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : داقاعده منقوضه اوماته ده دشاعر په دې شعر سره چې **فيا الغلامان اللذان فرا** ، ځکه چې په دې کې د الغلامان الف لام نه دکلمې سره لازم دي او نه دمحذوف په عوض کې دي ددې باوجود په دې باندې حرف ندا بې دفاصلې نه داخل دي

**جواب** : چې کله دغلامان الف لام نه عوضي دي اونه لازمي نو ددې وجې نه نحويان په دې باندې داشذ شذوذا حکم لروي چې په دې کې دوه شاذه جمع دي چې يو په الټي کې شاذ دي چې مکمل شعر د... دي فيا الغلامان الذان فرا ، اياکما ان تکسبان شرا . (ترجمه : اى هغه دوه جينکو چې تختيدلي وي ، خپل ځان دبدى دارتکاب نه بچ وساتى ).

**تنبيه** : په تکسبان کې دوه (۲) نسخې دي :

(۱) : په حذف د نون سره ان تکسبا لکه څنګه چې واضح دي چې ان مصدريه ناصبه نون تثنيه غورځوي .

(۲) : په اثبات دنون سره په دې صورت کې وجه يارعايت اولحاظ دسجع بندي وي يا دانون دتثنيې نه دي بلکه دانون ، نون وقايه دي په اصل کې ان تکسباني وو .

## په ياتيم تيم عدي کې درفعې اود نصب د دواړو جواز :

| وَ لَکَ اَیْ وَ جَازَ لَکَ فِیْ مِثْلِ یَا تَیْمَ تَیْمَ عَدِیٍّ اَیْ فِیْ تَرْکِیْبٍ تَکَرَّرَ فِیْهِ الْمُنَادیٰ الْمُفْرَدُ |
|---|
| اوتاد پاره يعني تاته جائز دي ياتيم تيم عدي په مثل کې يعني په داسې ترکيب کې چې تکرار روي په دې کې منادى مفرد |
| الْمَعْرِفَةُ صُوْرَةً وَوَلِیَ الثَّانِیَ اِسْمٌ مَجْرُوْرٌ بِالْاِضَافَةِ فِی الْاَوَّلِ الضَّمُّ وَ النَّصَبُ وَ فِی الثَّانِیْ النَّصَبُ فَحَسْبُ |
| معرفه صورةً اوددويم سره اسم مجرور په اضافت ملاوشوي وي په اول کې ضمه اونصب اوپه دويم کې صرف نصب |
| اَمَّا الضَّمُّ فِی الْاَوَّلِ فَلِاَنَّهٗ مُنَادیً مُفْرَدٌ مَعْرِفَةٌ کَمَا هُوَ الظَّاهِرُ وَ النَّصَبُ عَلٰی اَنَّهٗ |
| هرچې ضمه ده په اول کې نو ددې وجې نه چې دامنادى مفرد معرفه ده لکه چې ظاهر دي اونصب بناء په دې چې دا |
| مُضَافٌ اِلٰی عَدِیٍّ الْمَذْکُوْرِ وَ تَیْمُ الثَّانِیْ تَاکِیْدٌ لَفْظِیٌّ فَاصِلٌ بَیْنَ الْمُضَافِ وَ الْمُضَافِ اِلَیْهِ وَ ذٰلِکَ |
| مضاف دي عدي مذکور طرف ته اودويم تيم تاکيد لفظي دي فاصل دي په مينځ د مضاف اومضاف اليه کې اوداد |

| |
|---|
| مَذْهَبُ سِيْبَوَيْهِ أَوْ مُضَافٌ إِلَى عَدِيٍّ الْمَحْذُوْفِ بِقَرِيْنَةِ الْمَذْكُوْرِ وَ ذٰلِكَ مَذْهَبُ الْمُبَرِّدِ وَ |
| سيبويه مذهب دي اويا مضاف دي عدي محذوف طرف ته په ذكرشوي قرينې سره اوداامام مبرد مذهب دي او |
| السِّيْرَافِيُّ أَجَازَ الْفَتْحَ مَكَانَ النَّصْبِ عَلٰى أَنْ يَّكُوْنَ فِي الْأَصْلِ يَاتَيْمُ بِالضَّمِّ تَيْمَ عَدِيٍّ فَفُتِحَ |
| سيرافي جائز كړي ده فتحه په خاى دنصب چې داپه اصل كې ياتيمُ په ضمې سره تيمَ عديٍ دي نوفتحه يې وركړه |
| اِتْبَاعاً لِنَصْبِ الثَّانِيْ كَمَا فِيْ يَا زَيْدَ بْنَ عَمْرٍو وَ تَعَيَّنَ النَّصْبُ فِي الثَّانِيْ لِأَنَّهُ إِمَّا |
| اتباع يې وكړه ددويم نصب لكه په يازيدبن عمرو كې چې دي اومتعين كړي يې دي نصب په دويم كې خكه چې |
| تَابِعُ مُضَافٍ أَوْ تَابِعٌ مُضَافٌ وَ تَمَامُ الْبَيْتِ: |
| داتابع دي دمضاف اوياپه خپله تابع دمضاف دي اومكمل شعر داسې دي چې |

| | |
|---|---|
| يَاتَيْمُ تَيْمَ عَدِيٍّ لَا أَبَا لَكُمْ | لَا يُلْقِيَنَّكُمْ فِيْ سَوْءَةٍ عُمَرُ |
| اى تيم عدي ستاپلارنشته دي | واقع دي نه كړي هرگزتاعمرپه ناكاره ځيزكې |

| |
|---|
| وَ الْبَيْتُ لِجَرِيْرٍ حِيْنَ أَرَادَ عُمَرُ التَّيْمِيُّ الشَّاعِرُ أَنْ يَّهْجُوَهُ فَقَالَ جَرِيْرٌ خِطَاباً لِبَنِيْ تَيْمٍ لَا |
| اوداشعردجريردي چې كله عمرتيمي شاعرددې دهجوې اراده وكړه نوجريربني تيم تهي خطاب كولوچې ته مه |
| تَتْرُكُوْا عُمَرَ أَنْ يَّهْجُوَنِيْ فَيُلْقِيَنَّكُمْ فِيْ سَوْءَةٍ أَيْ مَكْرُوْهٍ مِنْ قِبَلِيْ |
| پريږده عمرچې هغه زماهجوه وكړي پس هغه دې تاواقع نه كړي په بدځيزكې يعني په ناكاره ځيزكې زماطرف |
| يَعْنِيْ مُهَاجَاتَهُ إِيَّاهُمْ. |
| نه يعني هغه قصد كوي زما دهجوې |

**خلاصه دمتن**: صاحب دكافيې وايي چې په ياتيم تيم عدي مثال كې رفع اونصب دواړه جائز دي.

**اغراض دجامي**: اى وجاز به دې عبارت سره غرض دشارح بيان دتركيب دي چې الضم والنصب داد لك ظرف فاعل دي په [illegible] متعلق سره كوم چې جاز دي.

**في تركيب**: په دې عبارت سره [illegible] سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال**: مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ خو قواعد [illegible] يې يو مثال جزئي ياتيم تيم عدي ولې بيان كړو؟

**جواب**: دلته يې هم قاعده كليه بيان كړې ځكه چې دمثل نه مراد هرهغه تركيب دي چې په هغې كې منادي مفرد معرفه كې صورةً تكرار وي اوددويمې منادى سره كوم اسم مجرور بالاضافت يوځاى شوي وي يعني ددې نه پس مضاف اليه واقع وي.

صورةً: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: مونږ داخبره نه منو چې په ياتيم تيم عدي کې منادی مفرد معرفه ده بلکه منادی مضاف ده يا عدي مذکور طرف ته لکه دادسيبويه مذهب دي ياعدي محذوف طرف ته لکه دادمبرد مذهب دي

**جواب**: دمفرد نه مراد دادي چې هغه صورةً مفرد وي اوپه ذکر شوي مثال کې اګرچې حقيقتاً منادی مضاف ده ليکن صورةً مفرد دي.

في الاول: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دمصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ داقول ولک في مثل ياتيم تيم عدي الضم والنصب کې حکم په مجهول لازم راځي ځکه چې دانه معلوميږي چې دا دوه اعرابه په اول تيم باندې دي ياپه دويم باندې نو خبره دلته مجهوله شوه اوحکم په مجهول باندې باطل دي.

**جواب**: ضمه اونصب په اول کې وي نه په دويم کې اوقرينه پرې داده چې بحث دمنادی شروع دي او منادی اول ده اوپه دويم کې به صرف نصب وي.

اما الضم: په دې سره په اول غرض کې دضمې دجائزکيدو وجه بيانوي چې په اول کې ضمه ددې وجې نه جائز ده چې دامنادی مفرد معرفه ده اومنادی معرفه په علامت درفع باندې مبني وي.

والنصب: په دې سره په اول غرض کې دنصب دجائزکيدو دوجې بيان دي چې په دې باندې نصب ددې وجې نه جائز دي چې دامضاف دي عدي مذکور طرف ته اومنادی مضاف منصوب وي.

وتيم الثاني: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: که چيرته اول تيم مضاف وي عدي مذکورطرف ته نودمضاف اومضاف اليه په مينځ کې دتيم سره به فصل لازم راشي کوم چې جائز نه دي؟

**جواب**: دمضاف اومضاف اليه په مينځ کې فصل په اجنبي سره ناجائزوي اودويم تيم داول تيم دپاره اجنبي نه دي بلکې ددې دپاره تاکيد اوتاکيد دمؤکد عين وي نودافصل په منزله د لافصل کې دي.

وذلک مذهب سیبویه : په دې عبارت سره غرض د شارح بیان د اختلاف دې په دې کښې درې مذاهب دي

**مذهب (۱)** : اول تیم مذکور عدي طرف ته مضاف کیدل د سیبویه مذهب دې .

**مذهب (۲)** : او د مبرد په نزد باندې اول تیم باندې نصب د دې وجې نه جائزدې چې دا مضاف دې عدي محذوف طرف ته په دې باندې قرینه عدي مذکور دې دا په اصل کښې وو یاتیم عدي تیم عدي ، مبرد وایي چې په دې صورت کښې تقدیم تاخیر د فصل د خرابیو نه خلاصې کیږي .

**مذهب (۳)** : والسیرافي : د اول تیم په ځاې د نصب باندې فتح جائزوي ځکه چې د دې اصل یاتیم تیم عدي دې اول تیم مفرد د معرفه کیدو په بناء باندې مبني په ضمې دې او دویم تیم عدي مذکور طرف ته د مضاف کیدو د وجې نه منصوب دې نو اول تیم د دویم تیم د تابع کیدو په اساس په دې باندې فتحه جائز ده لکه یازیدبن عمرو کښې د ابن عمرو تابع کوي او په زید باندې فتحه جائز ده .

وتعین النصب : په دې عبارت سره شارح د دویم تیم اعراب او د دې وجه بیانوي چې په دویم تیم کښې صرف نصب جائز دې ځکه چې دا یا د مضاف تابع دې لکه د سیبویه مذهب دې او د مضاف تابع منصوب وي یا خو دا په خپله مضاف دې لکه د مبرد مذهب دې او تابع د مضاف هم منصوب وي . پوره شعر دا دې :

| یَاتَیْمُ تَیْمَ عَدِيٍّ لاَ اَبَاً لَکُمْ | لاَ یُلْقِیَنَّکُمْ فِيْ سَوْءَةٍ عُمَرُ |
|---|---|
| ای تیم عدي ستاپلارنشته دي | واقع دې نه کړي هرگزتاعمرپه ناکاره ځیزکښې |

دا شعر د جریر شاعر دې چې کله عمرتیمي د جریر د هجوې اراده وکړه نو جریر بنوتمیم ته خطاب کوي او وایي چې عمر ته زما د هجوې د پاره اجازت مه ورکوي دا سې نه چې تا زما د طرف نه په یو ناکاره او ناخوښه کار کښې واقع کړي یعنې که چیرته دا زما هجوه وکړي نوزه به د ټولو هجوه وکړم چې د هغې په وجه به تاسو ټول ذلیل او خوار شي .

**تبصره** : مصنف رَحِمَهُ اللهُ په ولک في مثل یاتیم تیم عدي الضم والنصب کښې حصر وکړو او د سیرافي رَحِمَهُ اللهُ مذهب یې رد کړو وجه د رد یې داده چې د سیرافي مذهب کمزورې دې او یاتیم تیم عدي په یازید بن عمرو باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دې ځکه چې یازید بن عمرو کښې په زید باندې فتح د ابن په اتباع کښې نه ده بلکه د دې په شان د منادی د کثیر الاستعمال د وجې نه

ځکه چې مخکې د دې تفصيل تير شوي دي.

## په منادى مضاف الى ياء المتكلم کې څلور وجوهات:

| |
|---|
| وَ الْمُنَادَى الْمُضَافُ اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ يَجُوْزُ فِيْهِ وُجُوْهٌ اَرْبَعَةٌ فَتْحُ الْيَاءِ مِثْلُ يَا غُلَامِيَ وَ سُكُوْنُهَا |
| او هغه منادى چې مضاف وي ياء د متكلم طرف ته نو جائز دي په دې کې څلور وجهې فتحه د ياء لکه ياغلاميَ او سكون |
| مِثْلُ يَا غُلَامِيْ وَ اِسْقَاطُ الْيَاءِ اِكْتِفَاءً بِالْكَسْرَةِ اِذَا كَانَ قَبْلَهَا كَسْرَةٌ اِحْتِرَازاً عَنْ نَحْوِ |
| د دې لکه ياغلاميْ او ساقطول د ياء د پاره د اکتفا په کسرې باندې چې کله مخکې د دې نه کسره وي احترازدې د مثل د |
| يَا فَتَايَ مِثْلُ يَا غُلَامِ وَقَلْبُهَا اَلِفاً نَحْوُ يَا غُلَامَا وَ هٰذَانِ الْوَجْهَانِ يَقَعَانِ غَالِباً فِي النِّدَاءِ لِاَنَّ |
| يافتاى نه لکه ياغلامِ او بدلول د دې په الف باندې لکه ياغلاما او دا دواړه وجهې واقع کيږي غالبا په نداء کې ځکه چې |
| النِّدَاءَ مَوْضِعُ تَخْفِيْفٍ لِاَنَّ الْمَقْصُوْدَ غَيْرُهُ فَيَقْصِدُ الْفَرَاغَ مِنَ النِّدَاءِ بِسُرْعَةٍ |
| نداء ځاى د تخفيف دي ځکه چې مقصود د نداء نه غير دي نو قصد کوي متکلم د فراغ د نداء نه په جلتئ سره چې |
| لِيَتَخَلَّصَ اِلَى الْمَقْصُوْدِ مِنَ الْكَلَامِ فَخُفِّفَ يَا غُلَامِيْ بِوَجْهَيْنِ حَذْفُ الْيَاءِ |
| خلاصى ومومي د کلام نه مقصود طرف ته پس تخفيف يې وکړو په ياغلامي کې په دواړو وجهو سره د ياء حذف کول او |
| وَ اِبْقَاءُ الْكَسْرَةِ دَلِيْلاً عَلَيْهِ وَ قَلْبُ الْيَاءِ اَلِفاً لِاَنَّ الْاَلِفَ وَ الْفَتْحَةَ اَخَفُّ مِنَ الْيَاءِ |
| پريخودل د کسرې په دې باندې د دلالت کولو د پاره او ياء په الف سره بدلول ځکه چې الف او فتحه زيات خفيفه دي د ياء |
| وَ الْكَسْرَةِ وَهُمَا اَيْ هٰذَانِ الْوَجْهَانِ وَاِنْ كَانَا وَاقِعَيْنِ فِي الْمُنَادَى الْمُضَافِ اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ لٰكِنْ |
| او کسرې نه او دا يعني دا دواړه وجهې اګر که واقع وي په هغه منادى کې چې مضاف وي ياء د متکلم طرف ته ليکن |
| لَا يَقَعَانِ فِي كُلِّ مُنَادًى كَذٰلِكَ بَلْ فِيْمَا غَلَبَ عَلَيْهِ الْاِضَافَةُ اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ |
| نه واقع کيږي په هره منادى کې همدا رنګې بلکې په هغه منادى کې چې غالب وي په دې باندې اضافت ياء د متکلم |
| وَ اشْتَهَرَ بِهَا لِتَدُلَّ الشُّهْرَةُ عَلَى الْيَاءِ الْمُغَيَّرَةِ بِالْحَذْفِ اَوِ الْقَلْبِ فَلَا |
| طرف ته او په دې سره يې مشهور کړو د دې د پاره چې دلالت وکړي شهرت د ياء مغيره په حذف او يا بدلولو سره نو نه شي |
| يُقَالُ يَا عَدُوْ وَ عَدُوَّا وَ قَدْ جَاءَ شَاذاً فِي الْمُنَادَى يَا غُلَامَ بِالْفَتْحِ اِكْتِفَاءً بِالْفَتْحَةِ |
| ويلې چې ياعدو او ياعدوا او په تحقيق سره راغلې شاذ په منادى کې ياغلامَ په فتحې سره د پاره د اکتفا په فتحې باندې |
| عَنِ الْاَلِفِ وَيَكُوْنُ الْمُنَادَى الْمُضَافُ اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ بِالْهَاءِ فِي هٰذِهِ الْوُجُوْهِ كُلِّهَا وَقْفاً اَيْ |
| د الف نه او وي منادى مضاف ياء د متکلم طرف ته په هاء سره په دې ټولو وجوهو کې په صورت د وقف کې يعني |
| فِي حَالَةِ الْوَقْفِ تَقُوْلُ يَا غُلَامِيَهْ وَ يَا غُلَامِيْهْ وَ يَا غُلَامِهْ وَ يَا غُلَامَاهْ فَرْقاً بَيْنَ الْوَقْفِ وَ الْوَصْلِ |
| په حالت د وقف کې به ته وايې چې ياغلاميه وياغلاميه وياغلامه وياغلاماه د وجې د فرق نه په مينځ د وقف او وصل کې |

**خلاصه دمتن:** صاحب دکافيې وايي چې هغه منادی چې ياء د متکلم طرف ته مضاف وي په دې کې څلور وجهې دي (۱) په فتحې دياء سره لکه ياغلاميَ (۲) په سکون د ياء سره لکه ياغلاميْ (۳) ياء حذف کول اوپه ماقبل کسره باندې اکتفاء کول لکه ياغلامِ (۴) ياء په الف سره بدلول لکه ياغلاما. همدارنګې په حالت د وقف کې په دې ټولو صورتونو کې په آخر کې هاء دوقف لرول هم جائز دي

**اغراض دجامي:** المنادی: په دې عبارت سره غرض دشارح ديوسوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال:** ستاسو دغه قاعده منقوضه اوماته ده په جاءني غلامي کې په غلامي سره ځکه چې دامضاف دې ياء د متکلم طرف ته ليکن په دې کې څلور وجوه جائزنه دي بلکه صرف دوه وجهې جائز دي. (۱) سکون دياء (۲) اوفتحه دياء.

**جواب:** دلته مطلق مراد نه دي بلکه منادی مضاف الی ياء المتکلم مراد دي المضاف صفت دې د موصوف محذوف المنادی ځکه چې بحث دمنادی روان دي.

وجوه: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال:** يجوز فعل دې ددې دپاره فاعل دمفرد کيدل ضروري دي اوياغلامي دجملې کيدو دوجې نه د فاعل جوړيدو صلاحيت نه لري.

**جواب:** د يجوز فاعل ياغلامي نه دي بلکه ددې فاعل وجوه محذوف دي کوم چې مفرد دي.

اربعة: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال:** ياغلامي ياغلاميَ وغيره تفصيل دي اوتفصيل داجمال تقاضا کوي دلته مخکې کوم اجمال نشته؟

**جواب:** دلته اربعة مقدر دي لهذا دتفصيل نه مخکې اجمال موجود دي.

مثل: ددې لفظ په اضافه کولو سره شارح ديو سوال مقدر جواب ورکوي:

**سوال:** مصنف رَحِمَهُ اللهُ خودقواعد کليه بيان پسې دي؛ دلته غلامي خو جزئي من الجزئيات دي ددې نه معلوميږي چې څلور وجوه صرف په ياغلامي کې جائز وي.

**جواب** : دلته مثل محذوف دي مراد ترې هرهغه منادی ده چې مضاف وي یاء دمتکلم طرف ته نو حکم دیاغلامي یا امي وغیره ټولو ته به شامل وي اودلته دقاعدې کلیې بیان وي .

اذا كان قبلها : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داقاعده منقوضه اوماته ده په یافتای په مثل سره یافتای منادی مضاف ده یاء دمتکلم طرف ته حالانکې په دې کې یاء حذف کول اوپه ماقبل کسره باندې اکتفاء کول جائز نه دي .

**جواب** : دلته یوشرط محذوف دي هغه دادې چې یاء حذف کول اوپه ماقبل کسره باندې اکتفاء کول په هغه وخت کې جائز وي چې کله یاء ماقبل مکسور وي اوپه ذکر شوي مثال کې یاء ماقبل مکسور نه دي .

وهذان الوجهان : داجمله مستانفه ده چې دسائل دیوسوال جواب دي سائل سوال کړي دي چې وجوه اربعه مذکوره مساوي في الاستعمال دي یامتفاوت في الاستعمال ؟.

**جواب** : په دې کې تفاوت دي په آخري دوه وجهو کې ندا کثیر الوقوع وي ځکه چې دندا موضع تخفیف دي ځکه چې نداء مقصود بالذات نه وي بلکه مقصود بالذات هغه کلام وي چې دنداء نه پس واقع وي ځکه چې دمتکلم دنداء نه زر فارغیدل غواړي ددې دپاره چې ددې نه خلاصي ومومي مقصودطرف ته متوجه وي په دې اساس باندې نداء کې په نسبت دنورو مواضعو زیات تخفیف وکړي شو لهذا په یاغلامي کې په دوه (۲) وجهو کې تخفیف موندل کیږي :

**(۱)**: یاء حذف کول اوپه ماقبل کسره باندې اکتفاء کول ددې دپاره چې کسره په یاء محذوفه باندې دلالت وکړي .

**(۲)**: یاء په الف سره بدلول ځکه چې الف اوفتحه د یاء اوکسرې نه خفیف دي .

وهما اي هذان الوجهان : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داقاعده ماته ده په یاعدوي سره ځکه چې دامنادی مضاف دی یاء دمتکلم طرف ته حالانکه په دې کې یاء حذف کول اوپه ماقبل کسره باندې اکتفاء کول اویاء په الف سره بدلول دادواړه وجهې جائز نه دي .

**جواب** : دا دوه وجهې په هر منادی مضاف الی یاء المتکلم کې نه جاري کیږي بلکه په هغه منادی

کې جاري کيږي چې دهغې اضافت شوي وي ياء دمتکلم طرف ته کثير اومشهور وي اودا شهرت په دې ياء باندې دلالت کوي چې دحذف کيدو دوجې نه ياپه الف سره دبدليدو دوجې نه دخپل هيئت اصليه نه بدل شوي وي چونکې دياعدوي اضافت ياء دمتکلم طرف ته مشهور نه دي ځکه چې په دې کې دا دوه وجې جائز نه وي .

**وقد جاء** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : منادی مضاف ياء دمتکلم طرف ته په دې کې يوه بله پنځمه وجه هم جائز ده هغه داچې ياء به په الف سره بدل کړي شي بيابه الف حذف کړي اوپه ماقبل فتحه باندې به اکتفاء وکړي شي لکه **يا غلامَ** دا په اصل کې **ياغلامي** وو بيا **ياغلاما** شو ددې نه **ياغلامَ** جوړ شو لهذا په وجوه اربعه کې به انحصار باطل شي .

**جواب** : دا وجه شاذ او خلاف د قاعدې ده د قاعدې په اعتبار سره صرف څلور (۴) وجهې جائز دي لهذا حصر صحيح دي .

**وبالهاء وقفا**: صاحب دکافيې وايي چې دمنادی مضاف الی ياء المتکلم په آخر کې دوجوه اربعو مذکورو په حالت دوقف کې هاء داخليږي پس **يا غلاميه** او**ياغلامه** او**ياغلاماه** به ويلي شي .

**ويکون المنادی المضاف**: په دې کې يکون مقدر کړو اواشاره يې وکړه چې **بالهاء** جارمجرور د**يکون** محذوف متعلق دي اوپه **يکون** کې ضميرمستتر المنادی المضاف طرف ته راجع دي .

**في هذه الوجوه کلها** : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو وهم ازاله کول دي اوهغه وهم دااوو چې شايد د**بالهاء** تعلق دآخري دوو وجهو سره وي دا وهم يې لرې کړو چې د**بالهاء** تعلق دڅلورو وجهو سره دي .

**وقفا اي في حالة الوقف** : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دترکيب دي **وقفا** منصوب دي بناء بر ظرفيت په اعتبار دحذف دمضاف سره .

**فرقا**: په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د علت دي په حالت د وقف کې **مضاف الی ياء المتکلم** کې د منادی په آخر کې د هاء د داخلولو وجه داده چې د وقف او د وصل په مينځ کې فرق پيدا شي .

## په یا ابي او یا امي کې د څلورو وجوهاتو نه غیر نورو وجوهات:

| |
|---|
| وَ قَالُوْا اَيِ الْعَرَبُ فِيْ مُحَاوَرَاتِهِمْ يَا اَبِيْ وَ يَا اُمِّيْ عَلَى الْوُجُوْهِ الْاَرْبَعَةِ كَسَائِرِ مَا اُضِيْفَ اِلٰى |
| او ویلي یعني عربو په خپلو محاوراتو کې یا ابي او یا امي په څلورو وجوهو سره لکه ټول هغه الفاظ چې اضافت یې شوی |
| يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ مَعَ وُجُوْهٍ اُخَرَ زَائِدَةٍ عَلَيْهَا لِكَثْرَةِ اِسْتِعْمَالِ نِدَائِهِمَا فِيْ كَلَامِهِمْ |
| وي یاء د متکلم ته سره د نورو وجوهو چې زائد وي په دې باندې دوجې د کثرت استعمال نداء د دې نه په کلام د دوي کې |
| كَمَا اَشَارَ اِلَيْهَا بِقَوْلِهِ وَ يَا اَبَتِ وَ يَا اُمَّتِ اَيْ قَالُوْا يَا اَبَتِ وَ يَا اُمَّتِ اَيْضاً |
| لکه اشاره کړې دې ته مصنف په دې قول سره چې یَا اَبَتِ وَیَا اُمَّتِ یعني دوي ویلي چې یَا اَبَتِ وَیَا اُمَّتِ همدا رنګې |
| بِاِبْدَالِ الْيَاءِ بِالتَّاءِ فَتْحاً وَ كَسْراً اَيْ حَالَ كَوْنِ التَّاءِ مَفْتُوْحَةً عَلٰى وَفْقِ حَرَكَةِ الْيَاءِ |
| په بدلولو د یاء سره په تاء باندې په فتحې او کسرې سره یعني په حالت د مفتوح کیدو کې موافق د حرکت د یاء |
| اَوْ مَكْسُوْرَةً لِمُنَاسَبَةِ الْيَاءِ وَ قَدْ جَاءَ الضَّمُّ اَيْضاً يَا اَبَتُ وَ يَا اُمَّتُ |
| یا د مکسور کیدو په حالت کې دوجې د مناسبت یاء نه او ضمه هم راغلي ده همدا رنګې لکه یا ابتُ او یا امتُ دوجې |
| لِاِجْرَائِهِ مَجْرَى الْمُفْرَدِ الْمَعْرِفَةِ وَ لَمْ يَذْكُرْهُ لِقِلَّةٍ وَ قَالُوْا يَا اَبَتَا وَ يَا اُمَّتَا |
| د اجراء کیدو د دې په ځاې د مفرد معرفه کې او دا یې نه دې ذکر کړي دوجې د قلت نه او ویلي دي چې یَا اَبَتَاوَیَا اُمَّتَا |
| بِالْاَلِفِ بَعْدَ التَّاءِ جَمْعاً بَيْنَ الْعِوَضَيْنِ دُوْنَ الْيَاءِ فَمَا قَالُوْا يَا اَبَتِيْ وَ يَا اُمَّتِيْ |
| په الف سره پس د تاء نه دوجې د جمع کیدو نه په مینځ د دواړو عوضینو کې نه د یاء کې نو چا چې ویلي دي یَا اَبَتِيْ وَیَا اُمَّتِيْ |
| لِاِحْتِرَازٍ عَنِ الْجَمْعِ بَيْنَ الْعِوَضِ وَالْمُعَوَّضِ عَنْهُ فَاِنَّهُ غَيْرُ جَائِزٍ. |
| دوجې د احتراز د جمع نه په مینځ د عوض او معوض عنه کې ځکه چې دا غیر جائز دي. |

**خلاصه متن**: صاحب د کافیې ویلي دي چې اهل عرب په خپلو محاوراتو کې د دې څلورو وجوهو نه غیر کوم چې په یاغلامي کې جائز دي یا ابي او یا امي کې د دې د نداء د کثرت دوجې نه دوه (۲) نورې وجهې هم په خصوصي طور باندې جائز کړي دي:

(۱) یاء په تاء سره بدلول یا ابتِ او امتِ ویل بیا تاء د یاء د حرکت موافق مفتوح یا د یاء مناسبت دوجې نه مکسور ویلي شي.

(۲) تاء نه پس د الف اضافه کول یا ابتا او یا امتا ویل په دې صورت کې الف او تاء دا دواړه د یاء په عوض کې وي او په دې کې کومه خرابي نشته دي ځکه چې جمع بين العوضين

یا ابتي او یا امتي ویل صحیح نه دي ځکه چې د عوض اود معوض عنه اجتماع جائز نه

ده لانه یوجب اللغو

**اغراض دجامي** : ای العرب: په دې سره دا ظاهروي چې دقالوا دضمیر مرجع العرب دي

فی محاوراتهم: په دې سره غرض دشارح دقالوا دصلې بیان کوي

ای قالوا یا ابت: په دې عبارت کې بیان دترکیب دي چې یا ابت او یاامت عطف دي په یاابي اویاامي باندې لکه څنګه چې معطوف علیه یا ابي اویاامي دقالوا مقوله ده همدارنګې یا ابت یاامت هم دقالوا مقوله ده

ای حال: په دې عبارت سره غرض دشارح بیان دترکیب دي چې فتحا وکسرا دتاء نه حال دي

مفتوحة اومکسورة: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : فتحا وکسرا حال جوړول صحیح نه دي ځکه چې دحال حمل په ذوالحال باندې کیږي اوفتحاکسراً دمصدر کیدو دوجې نه ، نه محمولیږي

**جواب** : فتحا وکسرا په تاویل داسم مفعول سره مفتوحة ومکسورة حال شو لهذا حال جوړول صحیح دي

وقد جاء: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : یا ابتُ ویا امتُ مفرد معرفې قائمقام جوړول اومبنی علی الضم ویل هم ثابت دي ځکه چې دلته صورةً اضافت نه دي . بیامصنف دا ولې ذکر نه کړو ؟

**جواب** : دتاء ضمه اګرچې ثابت ده لیکن قلیل ده اود القلیل کالمعدوم قاعدې لاندې ددې اعتبار ونه کړې شو

## په یاابنَ ام او یاابنَ عم کې داعراب وجوه:

| |
|---|
| وَ قَالُوْا يَا ابْنَ اُمِّ وَ يَا ابْنَ عَمِّ خَاصَّةً هٰذَا الْاِخْتِصَاصُ بِالنَّظَرِ اِلَى الْاُمِّ وَ الْعَمِّ |
| اوهغوي ویلي دي یاابن ام ویاابن عم خاص طورباندې دااختصاص ام اوعم طرف ته دنظر کولوپه اعتبارسره دي |
| اَیْ لَا يُقَالُ يَا ابْنَ اَخٍ وَ يَا ابْنَ خَالٍ بَلْ يُقَالُ يَا ابْنَ اَخِيْ وَيَا ابْنَ خَالِيْ لَا بِالنَّظَرِ اِلَى الْاِبْنِ اَيْضاً |
| یعني یاابن اخ اویاابن خال نه شي ویلې بلکه یاابن اخي ویاابن خالي ویلې شي نه دابن طرف ته دنظر کولوپه وخت کې هم |
| فَاِنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ يَا بِنْتَ اُمِّ وَيَا بِنْتَ عَمِّ عَلَى الْوُجُوْهِ الْاَرْبَعَةِ مِثْلُ بَابِ يَا غُلَامِيْ فَقَالُوْا يَا ابْنَ |
| ځکه چې هغه وایي یابنت ام ویابنت عم په څلوروجوهو باندې په شان دباب دیاغلامي پس هغوي ویلي دي یاابن |

| |
|---|
| أُمِيْ وَيَا ابْنَ عَمِّيَ بِفَتْحِ الْيَاءِ وَسُكُوْنِهَا وَيَا ابْنَ أُمِّ وَيَا ابْنَ عَمِّ بِحَذْفِ الْيَاءِ وَالْاِكْتِفَاءُ بِالْكَسْرَةِ |
| امي اويا ابن عمي په فتحې دياء اوددې په سكون سره يا ابن ام ويا ابن عم دياء په حذف كولو اود كسرې په اكتفاء |
| وَ يَا ابْنَ أُمَّا وَ يَا ابْنَ عَمَّا بِإِبْدَالِ الْيَاءِ أَلِفاً وَ قَالُوْا بِزِيَادَةِ وَجْهٍ آخَرَ |
| كولو سره اويا ابن اما ويا ابن عما ياء په الف سره دبدلولو سره اوهغوي ديوې بلې وجې اضافه هم كړې دې چې شاذ |
| شُذَّ فِي الْمُضَافِ إِلَى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ يَا ابْنَ أُمَّ وَيَا ابْنَ عَمَّ بِحَذْفِ الْأَلِفِ وَالْاِكْتِفَاءُ بِالْفَتْحَةِ |
| دې په اضافت كې ياء متكلم طرف ته اويا ابن ام ويا ابن عم په حذف دالف او اكتفاء كول په فتحې سره دوجې د |
| لِكَثْرَةِ الْاِسْتِعْمَالِ وَطُوْلِ اللَّفْظِ وَ ثِقْلِ التَّضْعِيْفِ. |
| كثرت استعمال اودلفظ دطوالت اودتضعيف دثقل دوجې نه. |

**خلاصه دمتن** : صاحب د كافيې وايي چې يا ابن ام ويا ابن عم دا دواړه هم دباب دغلامي په شان دي په دې باب كې دغلامي په شان څلور وجوهات جائز دي اودهغه څلورو وجهو نه غير يوه بله وجه هم جائز ده اوهغه داده چې ياء په الف سره بدل كړې شي بيا الف حذف كړې شي اوپه ماقبل فتحه باندې اكتفاء وكړې شي اويا ابن ام اويا ابن عم ويلې شي.

**اغراض دجامي** : وهذا الاختصاص: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال** : مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د خاصة لفظ وويل ددې نه معلوميږي چې وجوه خمسه مذكوره په دې صورت كې جائز دي چې كله لفظ ابن مضاف وي اولفظ عم اوام مضاف اليه وي يعنې تخصيص مضاف مضاف اليه دواړو اعتبارا تو سره وي كه چيرته په دې كې په يو كې تبديلي وشي نو وجوه خمسه به جائز نه وي حالانكه په يا بنت ام يا بنت عم كې هم وجوه خمسه مذكوره جائز دي.

**جواب** : د خاصة تعلق صرف دمضاف اليه سره دې يعنې مضاف اليه لفظ دام يادعم كيدل په كار دي په دې كې تبديلي نه ده په كار كه چيرته مضاف تبديل شي دابن په ځاې بنت شي نو كوم حرج نه راځي لهذا يا بنت امِ كې هم وجوه خمسه مذكوره جائز دي اوپه يا ابن خالي يا ابن اخي يا ابن اختي كې جائز نه دي.

بزيادة وجه اخر هذ: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال** : د مصنف عبارت وقالوا يا ابن امر خاصة الخ بې فائدې دي ځکه چې کله مثل باب يا غلامي وويل نو په دې کې وجه خامس هم راغلـه ځکه چې پـه يـا غلامي کې داپنځمـه وجه هم جـائزده اګرچې على وجه الشذوذ ده لکه حضرت جامي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې وقد جاء شاذا في المنادى يا غلامَ بالفتح

**جواب** : په دواړو کې فرق دادې چې په ياغلامي کې وجه خامس شاذ وو ليکن يا ابن امر او ياابن عمر کې شاذ نه دي په دې اساس باندې مصنف رَحِمَهُ اللهُ دامستقل ذکر کړي دي .

لكثرة : په دې سره حذف دالف او اکتفاء پـه فتحې باندې ددې وجه بيـانوي چې الف يې حذف کړو اوپه ماقبل فتحه باندې داکتفاء کولو دري وجوهات دي :

(۱) ددې نداء کثير الاستعمال دي او کثرت استعمال دخفت تقاضا کوي اوفتحه اخف الحركات ده .

(۲) دطوالت دلفظ دوجې نه ځکه چې په يا غلامي کې دري لفظه دي او يا ابن امر کې څلور الفاظ دي : (۱) يا . (۲) ابن . (۳) امر . (۴) ياء دمتكلم اوپه يا ابن عمر کې هم څلور الفاظ دي ځکه چې په دې تخفيف وکړي شو په خلاف د ياابي او يا امي کې چې هغه کثير الاستعمال دي ليکن په دې کې طوالت نشته .

(۳) د تضعيف د ثقل د وجې نه ځکه چې ددې دواړو په آخر کې ميم مشدد دي په دې اساس باندې تخفيف وکړي شو ، پـه خلاف د ياابن ابي چې په دې کې کثرت د استعمال هم دي او طوالت د لفظ هم دي ليکن په دې کې ثقل د تضعيف نشته ځکه يې په دې کې تخفيف نه دي کړي .

## د منادی د ترخيم تعريف :

| وَ لَمَّا كَانَ مِنْ خَصَائِصِ النِّدَاءِ التَّرْخِيْمُ شَرَعَ فِيْ بَيَانِهِ فَقَالَ وَ تَرْخِيْمُ الْمُنَادَىٰ جَائِزٌ اَىْ |
|---|
| اوکله چې دنداء دخصائصونه ترخيم وونو مصنف ددې په بيان شروع وکړه پس وي ويل چې ترخيم دمنادی جائزده يعني |
| وَاقِعٌ فِيْ سَعَةِ الْكَلَامِ مِنْ غَيْرِ ضَرُوْرَةٍ شِعْرِيَّةٍ دَعَتْ اِلَيْهِ فَاِنْ دَعَتْ اِلَيْهِ ضَرُوْرَةٌ |
| واقع دي په وسعت د کلام کې په غير د ضرورت شعري نه کوم چې دې طرف ته داعي وي پس که چيرته دې ته ضرورت پيښ |
| فَبِالطَّرِيْقِ وَ هُوَ فِيْ غَيْرِهِ اَىْ غَيْرِ الْمُنَادَىٰ وَاقِعٌ ضَرُوْرَةً اَىْ لِضَرُوْرَةٍ شِعْرِيَّةٍ |
| شي نوپه طريق اولى جائزدي او ددې په غير کې يعني په غير دمنادی کې ضرورةً واقع دي يعني د ضرورت شعري د |

| |
|---|
| دَاعِيَةٍ اِلَيْهِ لاَ فِيْ سَعَةِ الْكَلاَمِ وَ هُوَ اَيْ تَرْخِيْمُ الْمُنَادىٰ حَذْفٌ فِيْ |
| وجې نه کوم چې دې طرف ته داعي وي نه په وسعت د کلام کې او هغه يعنې ترخيم د منادی چې حذف کولې به شي په |
| آخِرِهٖ اَيْ آخِرِ الْمُنَادىٰ تَخْفِيْفاً اَيْ لِمُجَرَّدِ التَّخْفِيْفِ لاَ لِعِلَّةٍ اُخْرىٰ مُفْضِيَةٍ اِلَى الْحَذْفِ الْمُسْتَلْزِمِ لِلتَّخْفِيْفِ فَعَلٰى |
| آخر د دې کې يعنې د منادی په آخر کې تخفيفاً يعنې صرف د تخفيف د پاره نه د بل علت د پاره چې مفضي وي حذف |
| هٰذَا يَكُوْنُ ذٰلِكَ التَّعْرِيْفُ مَخْصُوْصاً بِتَرْخِيْمِ الْمُنَادىٰ وَ يُعْلَمُ مِنْهُ |
| د مستلزم ته د پاره د تخفيف نو بناء په دې باندې وي به دا تعريف خاص د ترخيم د منادی پورې او معلوميږي د دې نه |
| تَرْخِيْمُ غَيْرِ الْمُنَادىٰ بِالْمُقَايَسَةِ وَ يُمْكِنُ حَمْلُهٗ عَلٰى تَعْرِيْفِ التَّرْخِيْمِ مُطْلَقاً بِاِرْجَاعِ |
| ترخيم د غير د منادی په توسط د قياس او ممکن دي حمل کول د دې په تعريف د ترخيم باندې مطلقاً په راجع کولو |
| ضَمِيْرِ الْمَرْفُوْعِ اِلَى التَّرْخِيْمِ مُطْلَقاً وَالضَّمِيْرِ الْمَجْرُوْرِ اِلَى الْاِسْمِ. |
| د ضمير د مرفوع ترخيم ته مطلقاً او په راجع کولو د ضمير د مجرور اسم طرف ته. |

**خلاصه د متن**: صاحب د کافيې وايي چې په منادی کې ترخيم په هر حال کې جائز دي برابره خبره ده که د ضرورت شعري د وجې نه وي او يا نه وي او په غير منادی کې د ضرورت شعري د وجې نه ترخيم جائز دي او په نثر کلام کې ترخيم جائز نه دي.

**اغراض د جامي**: ولما کان: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دلته بحث خو د مفعول به د عامل ناصب د حذف کيږي نه د منادی په آخر کې د حذف کولو چې هغې ته ترخيم وايي نو د ترخيم د منادی بحث ذکر کول خروج عن المبحث دي.

**جواب**: ترخيم د منادی د خصائصو نه دي او د يو څيز د خصائصو په ذکر کولو سره هغه څيز واضح کيږي د همدې وجې نه مصنف رحمه الله ترخيم ذکر کړو.

اى واقع: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: د جواز دوه قسمونه دي: (۱) جواز وقوعي يعنې کوم چې په کلام د عربو کې موجود وي (۲) جواز امکاني لکه جواز مطابقي او دې ته جواز تصوري هم ويلې شي يعنې کوم چې موجود في الخارج نه وي نو دلته کوم يو جواز مراد دي؟

**جواب**: دلته جواز وقوعي مراد دي.

في سعة الكلام: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: وقوع په دوه قسمه ده: (۱) وقوع په وسعت د کلام کې (۲) وقوع په وخت د ضرورت

کې . دلته کومه يو وقوع مراد ده ؟

**جواب** : دلته دوقوع نه مراد هغه وقوع ده کوم چې په وسعت دکلام اوپه کلام نثر کې وي دضرورت شعري دوجې نه،نه وي نوپس ځکه چې دضرورت شعري نه په غيرپه وسعت کلام کې جائز وي نو په ضرورت شعري کې خو به په طريقِ اولی جائز وي .

**هو المنادى**: په دې سره دا واضح کوي چې دغيره ضمير منادى طرف ته راجع دي .

**اي لضرورة**: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دترکيب دي چې ضرورةً مفعول له دي جائز په معنی د واقع سره دې ددې وجې نه منصوب دي .

**اي ترخيم المنادى**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د هُوَ ضمير په مرجع کې دوه احتماله دي : (۱) يادې مرجع مطلق ترخيم دي . (۲) يا ترخيم د منادى ده ، که چيرته مرجع ترخيم د منادى وي نو د مطلق ترخيم تعريف معلوم به نه وي ، او که چيرته مرجع مطلق ترخيم وي نو (۱) دمصنف قول **وشرطه الخ** به صحيح نه وي ځکه چې مصنف رَحِمَهُ اللهُ چې کوم شرائط بيان کړي دي هغه د ترخيم د منادى دي نه د مطلق ترخيم .
(۲) همدارنګې به اضمار قبل الذکر لازم راشي ځکه چې مخکې د مطلق ترخيم ذکر نه دي .
(۳) همدارنګې تعريف داعم بالاخص لازم راځي ځکه چې **في آخره** کې ضمير منادى طرف ته راجع دي هغه خاص دي اومطلق ترخيم عام دي نو تعريف داعم بالاخص لازم راځي .

**جواب**: ددې دپاره شارح دوه جوابه ورکړي دي :

**جواب ( ۱ )** : اول جواب دادې چې د هُوَ ضمير مرجع ترخيم دمنادى دی پاتې شو داسوال چې د مطلق ترخيم تعريف نه معلوميږي نوددې جواب دادې چې دترخيم دمنادى دتعريف نه د مطلق ترخيم تعريف هم معلوميږي ځکه چې ددواړو تعريفونو په غير دځه فرق نه يو شان دي نو د مطلق ترخيم تعريف د ترخيم دمنادى په تعريف باندې قياس کولې شي .

**جواب ( ۲ )**: د هُوَ ضمير مرجع مطلق ترخيم دي اودآخره ضميراسم طرف ته راجع دي نه دمنادى طرف ته پاتې شوداسوال چې **وشرطه** کې شرائط دترخيم دمنادى دي نه دمطلق ترخيم (۱) نو جواب دادې چې شرائط هم دمطلق ترخيم دي کوم چې دمطلق ترخيم منادى په ضمن کې موندل کيږي .(۲) پاتې شو داسوال چې اضمار قبل الذکر لازم راځي نوددې جواب دادې چې ذکرمقيد ذکر مطلق ته مستلزم دي نو ترخيم دمنادى نه مطلق ترخيم هم معلوميږي لهذا

اضمار قبل الذکر لازم نه راځي (۳) دریم داچې تعریف داعم بالاخص هم لازم نه راځي ځکه چې په آخره کې ضمیر مطلق اسم طرف ته راجع دي نه دمنادی طرف ته نوتعریف دمساوي بالمساوي شو

**فائده** : دویم جواب په یمکن سره ذکر کوي اوشارح په دې سره ددې ضعف طرف ته اشاره کوي ځکه چې دآخره ضمیر مطلق اسم طرف ته راجع کول ضعیف دي ځکه چې بحث دمنادی شروع دي نه دمطلق اسم نودمطلق اسم طرف ته ضمیر راجع کول دسیاق کلام خلاف دي .

ای لمجرد : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : تعریف دترخیم ددخول دغیر نه مانع نه دي ځکه چې داپه رام اوداع وغیره باندې صادق راځي ځکه چې ددې په آخر کې حذف هم دتخفیف دپاره دي حالانکه ددې حذف ته ترخیم نشي ویلې ؟

**جواب** : مراد دادې چې حذف صرف دتخفیف په غرض سره وي دبل کوم علت دوجې نه ،نه وي مثلاً اصل حذف دتعلیل په وجه شوي وي بیا داحذف مستلزم دتخفیف وي نوداسې حذف ته ترخیم نه شي ویلې اوداع او رام وغیره کې حذف صرف دتخفیف دوجې نه ، نه دې بلکه داعلال دوجې نه شوي دي .

## دترخیم دمنادی شرائط :

| |
|---|
| وَ شَرْطُهُ اَیْ وَ شَرْطُ تَرْخِیْمِ الْمُنَادٰی عَلَی التَّقْدِیْرِ الْاَوَّلِ اَوْ شَرْطُ التَّرْخِیْمِ اِذَا کَانَ وَاقِعاً فِي الْمُنَادٰی |
| اوددې شرط یعني شرط دترخیم دمنادی په اول تقدیر باندې اویاشرط دترخیم چې کله واقع وي په منادی کې |
| عَلَی التَّقْدِیْرِ الثَّانِيْ اُمُوْرٌ اَرْبَعَةٌ ثَلَاثَةٌ مِنْهَا عَدَمِیَّةٌ وَ هُوَ اَنْ لاَّ یَکُوْنَ مُضَافاً حَقِیْقَةً اَوْ |
| په دویم تقدیر باندې څلور امور دي دري ددې نه عدمي دي اوهغه دادي چې دامنادی مضاف نه وي نه حقیقتاً او |
| حُکْماً فَدَخَلَ فِیْهِ الْمُشَبَّهُ بِالْمُضَافِ اَیْضاً اِذْ لاَ یُمْکِنُ الْحَذْفُ مِنَ الْاَوَّلِ لِاَنَّهٗ لَیْسَ |
| نه حکماًنوداخل شو په دې کې شبه مضاف هم دارنګې ځکه چې نه دې ممکن حذف داول نه ځکه چې دا نه دې آخري |
| آخِرَ اَجْزَاءِ الْمُنَادٰی نَظَراً اِلَی الْمَعْنٰی وَلاَ مِنَ الثَّانِيْ لِاَنَّهٗ لَیْسَ آخِرَ اَجْزَائِهٖ |
| جزدمنادی داجزاونه په نظرکولوسره معنی ته اونه دویم(مضاف الیه)ځکه چې دانه دې آخري جزدمنادی داجزاونه |
| نَظَراً اِلَی اللَّفْظِ فَامْتَنَعَ التَّرْخِیْمُ فِیْهِمَا بِالْکُلِّیَّةِ وَ اَنْ لاَّ یَکُوْنَ مُسْتَغَاثاً لاَ مَجْرُوْراً بِاللاَّمِ |
| په نظرکولوسره لفظ ته نوممتنع دې ترخیم په دې دواړو کې بالکلیة اوبل داچې دانه وي مستغاث مجرور باللام دوجې |

لِعَدَمِ ظُهُوْرِ اَثَرِ النِّدَاءِ فِيْهِ مِنَ النَّصْبِ اَوِ الْبِنَاءِ فَلَمْ يَرِدْ عَلَيْهِ التَّرْخِيْمُ الَّذِيْ هُوَ مِنْ خَصَائِصِ

دعدم ظهور داثر دندا ،نه په دي کي دنصب يادبنا ،نه نونه وارديږي په دې باندې هغه ترخيم چې هغه دخصائصو د

الْمُنَادیٰ وَلاَ مَفْتُوْحاً بِزِيَادَةِ الْاَلِفِ لِاَنَّ الزِّيَادَةَ تُنَافِي الْحَذْفَ وَ لَمْ يَذْكُرِ الْمَنْدُوْبَ

منادی نه وي او نه مفتوح وي په زيادت دالف سره ځکه چې الف دامنافي دي دحذف سره او مندوب يې ذکر نه کړو

لِاَنَّهُ غَيْرُ دَاخِلٍ فِي الْمُنَادیٰ عِنْدَهُ وَ مَا وَقَعَ فِيْ بَعْضِ النُّسَخِ فَكَاَنَّهُ

ځکه چې دا نه دی داخل په منادی کې دده په نزد او هغه چې واقع دي په بعضو نسخو کې چې ولامندوبا ذکر دي نو ګويا

مِنْ تَصَرُّفِ النَّاسِخِيْنَ مَعَ اَنَّ وَجْهَ اِشْتِرَاطِهِ عِنْدَ دُخُوْلِهِ فِي الْمُنَادیٰ ظَاهِرٌ وَ هُوَ

چې دا د تصرف د ناسخينو نه دي سره ددې چې وجه دا شتراط په وخت د دخول ددې په منادی باندې ظاهره ده او هغه

اَنَّ الْاَغْلَبَ فِيْهِ زِيَادَةُ الْاَلِفِ فِيْ آخِرِهٖ لِمَدِّ الصَّوْتِ اِظْهَاراً لِلتَّفَجُّعِ فَلاَ

دا چې غالب په دې کې زياتوالي د الف په آخر د منادی کې د پاره د اوږدوالي د آواز دي د پاره د اظهار د جزع او فزع نو نه دي

يُنَاسِبُهُ التَّرْخِيْمُ لِلتَّخْفِيْفِ وَ اَنْ لاَ يَكُوْنَ جُمْلَةً لِاَنَّ الْجُمْلَةَ مَحْكِيَّةٌ بِحَالِهَا

مناسب ترخيم د پاره د تخفيف او بل دا چې نه وي دا منادی جمله ځکه چې جمله د خپل حال نه حکايت کوي نو لهذا

فَـــلاَ تُـغَـيَّرُ.

دا نه شي متغير کيدي.

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافيې په دې عبارت کې د ترخيم د منادی شرائط ذکر کوي د ترخيم د منادی څلور شرطونه دي چې دده نه دري عدمي او يو وجودي دي ، دري عدمي شرطونه دا دي : (۱) منادی مضاف نه وي . (۲) منادی مستغاث باللام وبالالف نه وي . (۳) منادی جمله نه وي ، او وجودي شرط دا دي چې په دوو خبرو کې يوه خبره موندل ديږي . (۱) منادی علم زائد على الثلاثة وي . (۲) يا د منادی په آخر کې تاء د تانيث وي .

**اغراض دجامي** : اي شرط ترخيم المنادی: په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د مرجع دي که چيرته حذف وي نو بيا به د ترخيم د منادی تعريف مقصود وي نو بيا د شرطه ضمير مرجع هم ترخيم د منادی ده او که چيرته د مطلق ترخيم تعريف مقصود وي نو مرجع به هم مطلق ترخيم وي.

**اذا كان واحدا**: په دې عبارت سره غرض د شارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د ضمير مرجع مطلق ترخيم جوړول صحيح نه دي ځکه چې په شرطه سره مصنف کوم شرائط بيان کړي دي هغه د مطلق ترخيم نه دي بلکې د ترخيم د منادی دي

**جواب** : دا شرط دمطلق دترخیم دي لیکن په شرط د دې چې دامطلق ترخیم په منادی کې واقع وي

امور اربعة: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : دامقام مقام دحصر دي مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ ته دحصر لفظ ذکر کول په کار وو ؟

**جواب** : شرطه مبتدا ده خبر محذوف دي کوم چې امور اربعة دي اودامفید دحصر دي

ثلاثة منها: په دې عبارت سره غرض دشارح ددوه مقدره سوالونو جواب ورکول دي :

**سوال ( ۱ )** : شاید امور اربعة اوشرائط اربعة یوشان او علی نمط واحد وي .

**جواب** : امور اربعة علی نمط واحد نه دي بلکه په دې کې دري عدمي او یو وجودي دي .

**سوال ( ۲ )** : دترخیم دشرائطو دوه قسمونه دي : عدمي ، وجودي ، وجودي اشرف من العدمي وي نو د شرط وجودي تقدیم اولی وي.نو دلته مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ شرائط عدمي ولې مقدم کړل؟

**جواب**: عدمي شرائط زیات وو او قاعده داده چې العزة للتکاثر ، نودې قاعدې ماتحت مو عدمي په وجودي باندې مخکې کړل .

حقیقتا اوحکماً: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستا قاعده منقوضه اوماته ده په یاطالعا جبلاً سره ځکه چې دامضاف نه دي بلکه شبه مضاف دي په دې کې ترخیم جائز کیدل په کاروو ځکه چې په دې کې عدمي شرط ان لایکون مضافا موندل کیږي حالانکه په دې کې ترخیم جائز نه دي لکه څنګه چې په مضاف کې ترخیم نه جائز کیږي .

**جواب** : په ان لایکون مضافا کې تعمیم دي برابره خبره ده که داحقیقي وي اوکه حکمي وي ، اوشبه مضاف اګرچې مضاف حقیقي نه دي لیکن مضاف حکمي دي .

اذ لایمکن: په دې سره غرض دشارح دشرط مذکور عدمي وجه بیانول دي چې منادی مضاف کې دترخیم دوه صورتونه دي : (۱) دمضاف په آخر کې به حذف کولې شي . (۲) یابه دمضاف الیه په آخر کې حذف کولې شي . (۱) که چیرته دمضاف په آخر کې حذف کولې شي نو په وسط دکلام کې به ترخیم لازم راشي ځکه چې مضاف مضاف الیه کې بالنظر الی المعنی کلمه واحده وي (۲) اوکه چیرته دمضاف الیه په آخر کې حذف کولې شي نو په غیر منادی کې به ترخیم لازم

راشي ځکه چې د مضاف مضاف اليه دلفظ په اعتبار سره دوه جدا جدا کلمې وي کله چې د مضاف په آخر کې هم نه شي حذف کولې اود مضاف اليه په آخر کې هم نه شي حذف کولې نوپه مرکب اضافي کې بالکليه ترخيم منع اوناجائز دي .

**وان لايكون مستغاثا**: په دې کې بيان دترکيب دي ، دان او دلا اضافه يې وکړه دا يې ظاهره کړه چې د **مستغاثا** عطف په **مضافا** باندې دي اوهغه د **يكون** خبر دي نودابه هم د**يكون** خبر وي .

**لامجرورا باللام**: په دې کې بيان دتعميم دي ، دمنادى مستغاث کې تعميم دي برابره خبره ده چې **مجرور** باللام وي يامفتوح وي په زيادت دالف سره اوپه دواړو کې ترخيم نه شي کيدي .

**لعدم ظهور اثر النداء**: په دې عبارت سره په مستغاث باللام کې دترخيم دعدم جواز وجه بيانوي چې حاصل يې دادې چې دنداء اثر يانصب وي يا **بناء على الضم** وي نصب ددې وجې نه اثر دي چې منادى په حقيقت کې دادعو فعل مفعول به کيږي اوبناء ددې وجې نه اثر دي ځکه چې منادى دکاف حرفي مشابه دي اودا اثر نصب او**بناء على الضم** منادى مستغاث باللام کې نه ظاهريږي ځکه چې دامجرور وي لهذا دترخيم دمنادى دخصوصياتو نه ده نوپه دې باندې نه وارديږي .

**لان الزيادة تنافي الحذف**: په دې سره دمستغاث بالالف کې ترخيم دعدم جواز وجه بيانوي منادى مستغاث بالالف کې مد صوت او دآواز اوږدوالي مطلوب اومقصود وي ځکه چې په آخر کې الف زياتولې شي اوپه ترخيم کې اختصار دمنادى مطلوب وي ددې وجې نه په آخر کې يو دوه حرفه حذف کولې شي نودزيادتي اوپه حذف کې منافاة دي ددې وجې نه منادى مستغاث بالالف کې ترخيم جائز نه دي .

**ولم يذكر المندوب**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دترخيم دعدمي شرائطو نه يوشرط داهم دي چې دامندوب نه وي مصنف داولې ذکر نه کړو؟

**جواب** : چونکې دمصنف په نزد مندوب په منادى کې داخل نه دي ددې وجې نه يې مندوب ذکر نه کړو .

**وما وقع**: په دې عبارت سره غ س دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دکافيې په بعضو نسخو کې خو **ولا مندوبا** موجود دي .

**جواب**: شارح دجامي د دې دوه جوابه ورکړي دي

**جواب (۱)**: دا د ناسخینو او د کاتبینو تصرف دي هغوي د غلطۍ نه ولا مندوبا لیکلي دي.

**جواب (۲)**: مَعَ ان وجه سره دویم حواب ورکړو چې که چیرته مندوب په منادی کې داخل ومنل شي نو بیا مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د ولا مندوبا سره د دې نفي د دې وجې نه، نه ده کړي ځکه چې د دې وجه واضحه وه او هغه دا چې کوم علت د مستغاث بالالف وو هغه په همدې کې موجود دي چې منادی په مندوب کې د اظهار د تشجع د پاره د دې په آخر کې الف زیات کړو او په دې سره اوږد والي د آواز مقصود وي او حذف د دې منافي دي لهذا ترخیم به جائز نه وي د دې وجې نه مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د ولا مندوبا ویلو ضرورت محسوس نه کړو.

وان لایکون: په دې عبارت سره غرض د شارح بیان د ترکیب دي ، د جملةً عطف په مضافا باندې دي.

لان الجملة: په دې عبارت سره غرض د شارح د مذکور شرط وجه بیانوي چې جمله کله علم وي نو دا مبني وي او د خپل حال حکایت وي لهذا په دې کې څه قسم تغیر حذف وقطع نه شي کیدي او نه د دې قصه محکي عنها باندې به دلالت فوت شي چې په دې سره به مقصود فوت شي او په ترخیم کې تغیر او حذف ضروري دي لهذا په جمله کې به ترخیم نه شي کیدي.

## د منادی د ترخیم څلورم شرط:

| |
|---|
| وَالشَّرْطُ الرَّابِعُ أَحَدُ الْأَمْرَيْنِ الْوُجُوْدِيَّيْنِ وَهُوَ أَنْ يَّكُوْنَ الْمُنَادٰى إِمَّا عَلَماً زَائِداً عَلٰى ثَلَاثَةِ أَحْرُفٍ لِأَنَّهُ |
| او څلورم شرط یو د دې امرینو وجودینو نه هغه دا دي چې منادی یا علم وي او زائد وي په درې حروفو باندې ځکه چې |
| لِعَلَمِيَّتِهِ نَاسَبَهُ التَّخْفِيْفُ بِالتَّرْخِيْمِ لِكَثْرَةِ نِدَاءِ الْعَلَمِ مَعَ أَنَّهُ لِشُهْرَتِهِ فِيْمَا |
| دوجې د علمیت نه مناسب دي د دې سره تخفیف دوجې د کثرت د علم ندا نه دوجې د شهرت نه په هغه څه کې چې |
| أَبْقٰى مِنْهُ دَلِيْلٌ عَلٰى مَا أُلْقِيَ وَ لِزِيَادَتِهِ عَلَى الثَّلَاثَةِ لَمْ يَلْزَمْ نَقْصُ الْإِسْمِ عَنْ أَقَلِّ أَبْنِيَةِ |
| باقي وي د دې نه دلیل په هغه څه چې حذف کړي شوي وي او یا د وجې د زیادت نه په درې حروفو باندې نه لازمیږي |
| الْمُعْرَبِ بِلَا عِلَّةٍ مُوْجِبَةٍ وَ إِمَّا اِسْماً مُتَلَبِّساً بِتَاءِ التَّانِيْثِ وَ إِنْ لَمْ يَكُنْ عَلَماً وَلَا |
| ناقص کیدل د اسم کم د اوزانو د معرب بې د علت موجبه نه او یا اسم متلبس وي په تاء تانیث سره اګر که علم نه وي او نه |
| زَائِداً عَلَى الثَّلَاثَةِ لِأَنَّ وَضْعَ التَّاءِ عَلَى الزَّوَالِ فَيَكْفِيْهِ أَدْنٰى مُقْتَضٍ لِلسُّقُوْطِ |
| زائد وي په درې حروفو باندې ځکه چې وضع د تاء د زوال د پاره وي نو کافي کیږي ادنی مقتضی د پاره د سقوط نو |

| |
|---|
| فَكَيْفَ اِذَا وَقَعَ مَوْقِعاً يَكْثُرُ فِيْهِ سُقُوْطُ الْحَرْفِ الْاَصْلِيِّ وَ لَمْ |
| څنګه به وي چې کله تاء په داسې ځاې کې واقع وي چې زيات وي په هغه ځاې کې ساقطيدل د حرف اصلي او نشته |
| يُبَالُوْا بِبَقَاءِ نَحْو ثُبَةٍ وَ شَاةٍ بَعْدَ التَّرْخِيْمِ عَلٰى حَرْفَيْنِ لِاَنَّ بَقَاءَهُ كَذٰلِكَ لَيْسَ |
| څه باک په بقاء د مثل ثبة او شاة کې د پس ترخيم نه په دوه حرفونو باندې ځکه چې ددې بقاء همدارنګې نه دې د |
| لِاَجْلِ التَّرْخِيْمِ بَلْ مَعَ التَّاءِ اَيْضاً كَانَ نَاقِصاً عَنْ ثَلَاثَةٍ اِذِ التَّاءُ كَلِمَةٌ اُخْرٰى بِرَأْسِهَا وَ لَا يُرَخَّمُ |
| وجې د ترخيم نه بلکه سره د تاء هم ناقص دې د درې حروفو نه ځکه چې تاء بله کلمه ده په خپله او ترخيم نه شي کيدې |
| لِغَيْرِ ضَرُوْرَةٍ مُنَادًى لَمْ يَسْتَوْفِ الشُّرُوْطَ الْمَذْكُوْرَةَ اِلَّا مَا شَذَّ نَحْوُ يَا صَاحِ فِيْ يَا صَاحِبُ |
| په غير د ضرورت د داسې منادى نه چې نه شي پوره کولې ذکر شوي شرطونه مګر کوم چې شاذ دې لکه ياصاح ياصاحب |
| وَ مَعَ شُذُوْذِهٖ فَالْوَجْهُ فِيْ تَرْخِيْمِهٖ كَثْرَةُ اِسْتِعْمَالِهٖ مُنَادًى. |
| کې او د شذوذ سره نو وجه په ترخيم ددې منادى کې هغه کثرت استعمال د منادى دې. |

**خلاصه دمتن** : ددې ځاې نه څلورم شرط يعنې وجودې شرط بيانوي چې په دوه خبرو کې يوه خبره وموندل شي ياد اد منادى مرخم علم جوړشي او ددرې حروفو نه په زياتو باندې مشتمل وي يا ددې په آخر کې تاء د تانيث وي.

**اغراض دجامي** : <u>لانه لعلميته ناسبه التخفيف</u> : دعلميت د شرط لړولو وجه بيانوي چې دعلميت شرط يې ددې وجې نه ولړول چې دعلم ندا ډيره کيږي او کثرت تقاضا کوي دتخفيف، ځکه چې دآخر نه ترخيم وکړو او تخفيف په کې وکړو همدارنګې دعلم دشهرت دوجې نه چې کومه حصه ددې باقي ده هغه ددې په حذف شوي حصه باندې به دلالت کوي.

<u>ولزيادته على الثلاثة</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح د زائد على الثلاثة دشرط وجه بيانوي چې دا شرط يې ددې وجې نه ولړول چې دکوم علت موجبه نه په غير د اسم معرب د اوزانو نه په کم ترين وزن نه هم کم تر وزن باندې کيدل لازم رانه شي ( يعنې ددرې حروفونه په کمو حروفو باندې کيدل لازم رانه شي ).

**فائده** : بلاعلة موجبة قيد يې ددې وجې نه ولړول چې ددې دپاره چې عصا، يد، دم وغيره ترې خارج شي ځکه چې په دې کې نقص دعلت موجبه دوجې نه دې.

<u>اسما</u>: په دې کې بيان د ترکيب دې چې بتاء التانيث ظرف مستقر معلبسا متعلق صفت شود موصوف محذوف اسما يعنې اګرچه منادى علم نه وي يا علم وي ليکن زائد على الثلاثة نه

وي نوبيا شرط دادې چې داد تاء تانيث سره متلبس وي .

لان وضع التاء على الزوال: په دې عبارت سره دشرط مذكور وجه بيانوي چې دتاء وضع دزوال او سقوط دپاره ده لهذا ددې دساقطيدو دپاره ادنى مقتضى كافي دي يعنې دتاء دغورزولو د پاره بهانې جوړوي په بعضې ځايونو كې په داسې ځاې كې واقع وي چې چيرته حروف اصلي هم غورزيږي پس دترخيم د وجې نه تاء هم ساقطيږي خلاصه داده چې دمنادى دآخر نه حرف اصلي په كثرت سره ساقطيږي اوهغه تاء چې دهغې وضع په زوال باندې وي نوهغه خو به په طريقِ اولى سره ساقطيږي .

ولم يبالوا: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : د تاء تانيث په صورت كې چې كله زائد على الثلاثة حروفو والا شرط نه وي نو ياثبة اويا شاة كې د ترخيم نه پس اسم معرب په كم وزن ( دري حروف) باندې باقي نه وي بلكه دوه حروف پاتې كيږي مثل يا ثب او يا شا كې وېلې شي .

**جواب** : دثبة اوشاة دترخيم نه پس په دوه حروفو باندې باقي پاتې كيدل دترخيم دوجې نه ،نه دي بلكې دترخيم نه مخكې دتاء سره هم په دوه حرفونو باندې وو ځكه چې تاء جدا مستقله كلمه ده .

ولا يرخم: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : يا صاحب كې ترخيم نه پس ياصاح ويلې شي حالانكه په دې كې وجودي شرط يعنې احدالامرين نه يوهم نه موندل كيږي نه په آخر كې تاء تانيث دي نه علم دي اگرچې زائد على الثلاثه دي ليكن زائد على الثلاثة په غير دعلم نه معتبر نه وي .

**جواب** : جواب دادې چې په ياصاحب كې ترخيم شاذ اوخلاف قانون دي .

ومع شذوذه: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : دشذوذ دوه قسمه دي : (۱) شذوذ مع الداعي . (۲) شذوذ من غير الداعي ، دلته كوم يو مراد دي ؟

**جواب** : دلته شذوذ مع الداعي مراد دي او داعي په دې منادى كې كثير الاستعمال كيدل دي .

## په ترخيم د منادى كې د محذوف د كميت ذكر :

وَ لَمَّا فَرَغَ مِنْ بَيَانِ شَرَائِطِ التَّرْخِيْمِ شَرَعَ فِيْ بَيَانِ كَمِّيَّةِ الْمَحْذُوْفِ بِسَبَبِهٖ

اوكله چې فارغ شو مصنف د بيان د شرائطو د ترخيم نه نو شروع يې وكړه په بيان د كميت د محذوف كې په سبب

فَقَالَ فَإِنْ كَانَ فِيْ آخِرِهٖ اَيْ آخِرِ الْمُنَادٰى زِيَادَتَانِ كَائِنَتَانِ فِيْ حُكْمِ الزِّيَادَةِ الْوَاحِدَةِ

ددې كې نو وې ويل چې كه چيرته ددې په آخر كې يعنې په آخر د منادى كې دوه زيادات چې كائن وو په حكم د يو زيادت

فِيْ اَنَّهُمَا زِيْدَتَا مَعًا وَ احْتَرَزَ بِهٖ عَنْ نَحْوِ ثَمَانِيَةٍ وَ مَرْجَانَةٍ فَإِنَّ الْيَاءَ وَ

كې وي په دې خبره چې دا دواړه زيات شوي يو ځاى او په دې سره يې احتراز وكړو د ثمانية او مرجانة نه ځكه چې يا او

النُّوْنَ فِيْهِمَا زِيْدَتَا اَوَّلًا ثُمَّ زِيْدَتْ تَاءُ التَّأْنِيْثِ فَلَمْ يُحْذَفْ مِنْهُمَا اِلَّا الْاَخِيْرُ كَاَسْمَاءَ

نون په دې دواړو كې زيات شوي اولاً بيا زيات شوي تاء د تانيث نو حذف نه شو ددې دواړو نه مګر آخري لكه اسماء

اِذَا جَعَلْتَهَا فَعْلَاءَ مِنَ الْوَسَامَةِ اَيِ الْحُسْنِ كَمَا هُوَ مَذْهَبُ سِيْبَوَيْهِ لَا

په هغه وخت كې چې ته وګرځوې فعلاء د وسامة نه يعنې په معنى د حسن سره لكه دا مذهب د امام سيبويه دې نه

اَفْعَالًا جَمْعَ اِسْمٍ عَلٰى مَا هُوَ مَذْهَبُ غَيْرِهٖ لِاَنَّهُ يَكُوْنُ حِيْنَئِذٍ مِنْ بَابِ عَمَّارٍ وَ

د افعالا په وزن د اسم جمع ده په هغه مذهب چې د سيبويه نه غير دې ځكه چې وي به دې وخت كې د باب د عمار او

مَرْوَانَ اَوْ كَانَ فِيْ آخِرِهٖ حَرْفٌ صَحِيْحٌ اَيْ صَحِيْحٌ اَصْلِيٌّ لِتَبَادُرِهٖ اِلَى الذِّهْنِ لِاَنَّ

مروان يا وي په آخر ددې كې حرف صحيح يعنې صحيح اصلي چې د دې د منتقل كيدو نه ذهن طرف ته ځكه چې

الْغَالِبَ فِي الْحَرْفِ الصَّحِيْحِ الْاَصَالَةُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ نَحْوُ سَعْلَاةٍ لِاَنَّهُ لَا يُحْذَفُ مِنْهُ اِلَّا التَّاءُ وَهُوَ

غالب په حرف صحيح كې اصل كيدل دي نو وځي ددې نه د سعلاة مثال ځكه چې نه حذف كيږي ددې نه مګر تاء او دا

اَعَمُّ مِنْ اَنْ يَكُوْنَ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْمًا فَيَشْمُلُ مِثْلَ مَرْمِيٍّ وَ مَدْعُوٍّ فَإِنَّ الْحَرْفَ الْاَخِيْرَ مِنْهُمَا فِيْ حُكْمِ

عام دي ددې نه چې حقيقةً وي او يا حكماً نو دا شامليږي مرمي او مدعو مثال ته ځكه چې حرف آخر ددې نه په حكم د

الصَّحِيْحِ فِي الْاَصَالَةِ قَبْلَهُ مَدَّةٌ اَيْ اَلِفٌ اَوْ وَاوٌ اَوْ يَاءٌ سَاكِنَةٌ حَرَكَةُ مَاقَبْلَهَا مِنْ جِنْسِهَا

صحيح كې دي په اصل والي كې مخكې ددې نه مده وي يعنې الف يا واو يا ياء ساكنه وي او ما قبل حركت ددې د جنس

وَالْمُرَادُ بِهَا الْمَدَّةُ الزَّائِدَةُ لِتَبَادُرِهَا اِلَى الذِّهْنِ لِغَلَبَتِهَا وَ كَثْرَتِهَا فَيَخْرُجُ

نه وي او مراد په دې ځاى كې مده زائده ده چې د امتبادر الى الذهن دي دوجې د غلبې او د ډير واقع كيدو نه نو خارجيږي

مِنْهُ نَحْوُ مُخْتَارٍ فَاِنَّهُ لَا يُحْذَفُ مِنْهُ اِلَّا الْحَرْفُ الْاَخِيْرُ وَ هُوَ اَيْ وَ الْحَالُ اَنَّ فِيْ آخِرِهٖ

ددې نه مختار مثال ځكه چې ددې نه ،نه حذف كيږي مګر آخرنى حرف او هغه يعنې حال دا چې په آخر ددې كې

حَرْفًا صَحِيْحًا قَبْلَهُ مَدَّةٌ اَكْثَرُ مِنْ اَرْبَعَةٍ مِنَ الْحُرُوْفِ كَمَنْصُوْرٍ وَعَمَّارٍ وَمِسْكِيْنٍ لِئَلَّا يَلْزَمَ

حرف صحيح وي او مخكې ددې نه مده وي او زيات وي د څلورو حروفو نه لكه منصور، عمار، مسكين ځكه چې لازم نه

| |
|---|
| مِنْ حَذْفِ حَرْفَيْنِ مِنْهُ عَدَمُ بَقَائِهِ عَلَى اَقَلِّ اِبْنِيَةِ الْمُعْرَبِ وَاِنَّمَا لَمْ يَأْخُذْ هٰذَا الْقَيْدَ فِيْ |
| شي دحذف ددوه حرفينو ددې نه عدم بقاء په کم بناء دمعرب باندې اوپه تحقيق سره نه دي اخستې دا قيد په دې |
| قَوْلِهٖ زِيَادَتَانِ فِيْ حُكْمِ الْوَاحِدَةِ لِاَنَّ نَحْوَ ثُبُوْنَ وَ قُلُوْنَ يُرَخَّمُ بِحَذْفِ |
| قول دمصنف کې چې زيادتان في حکم الواحدة کې خکه چې په ثبون اوقلون مثال کې ترخيم کولې شي په حذف کولو |
| زِيَادَتَيْهِ لِاَنَّ بَقَاءَ الْكَلِمَةِ فِيْهِ عَلٰى حَرْفَيْنِ لَيْسَ لِلتَّرْخِيْمِ حُذِفَتَا |
| دزياتې حروفو سره خکه چې بقاء دکلمې په دې کې په دوه حرفونوسره نه ده دپاره دترخيم، حذف کولې به شي |
| اَيِ الْحَرْفَانِ الْاٰخِرَانِ فِيْ كِلَا الْقِسْمَيْنِ اَمَّا فِي الْاَوَّلِ فَلِمَا كَانَتَا فِيْ حُكْمِ الْوَاحِدَةِ فَكَمَا زِيْدَتَا |
| يعنې دواړه آخري حروف په دواړو قسمونوکې هرچې په اول کې نودواړه په حکم ديو کيدودوچې نه لکه زيادت |
| مَعاً حُذِفَتَا مَعاً وَ اَمَّا فِي الثَّانِيْ فَلِاَنَّهٗ لَمَّا حُذِفَ الْاٰخِرُ مَعَ صِحَّتِهٖ وَ اَصَالَتِهٖ |
| وشويوخاې اوحذف شويوخاې اوهرچې په دويم کې نوخکه چې کله آخري حرف سره دصحت اوداصل کيدونه |
| حُذِفَتِ الْمَدَّةُ الزَّائِدَةُ لِئَلَّا يَرِدَ الْمَثَلُ السَّائِرُ صُلْتَ عَلَى |
| حذف کړې شو نو مده زائده به هم حذف کولې شي ددې دپاره صادقه نه شي هغه محاوره چې تاپه زمري باندې |
| الْاَسَدِ وَ بُلْتَ عَنِ النَّقَدِ. |
| حمله وکړه او چيلئ دويرې نه متيازې وکړې . |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافيې ددې خاې نه په ترخيم کې دحروفو دحذف مقدار بيانوي که چيرته د منادی په آخر کې داسې دوه حروف زيات وي ديوسره دزياتيدو دوچې نه ديو زياتي په حکم کې وي يا ددې په آخر کې حرف صحيح وي دهغې ماقبل مده زائده وي اوهغه دڅلورو حروفو نه زائد وي نوپه دې دواړو صورتونوکې په وقت دترخيم کې دآخر نه دوه حروف به حذف کولې شي دزيادة واحده مثال اسماء اومروان اودمده زائدې مثال منصور وغيره .

**اغراض دجامي** : **ولمافرغ**: دادمابعد دپاره تمهيد دي چې کله مصنف دترخيم دشرائطو د بيانيدو نه فارغ شو نو دترخيم دسبب نه دمحذوف مقدار بيانوي .

**اى آخر المنادى**: په دې سره غرض دشارح په آخره کې د ۂ ضمير مرجع بيانول دي چې د ۂ ضمير مرجع آخر المنادی ده .

**كائنتان** : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دترکيب دي چې في حکم الواحدة ظرف مستقرد كائنتان متعلق شو دزيادتان صفت دي .

**الزيادة**: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دترکيب دي چې الواحدة صفت دي دموصوف

محذوف الزيادة دپاره

**في انهما**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: دوه زيادات ديو زيادتي په حکم کې په کوم اعتبار سره وي ؟

**جواب**: دوه زيادات ديو زيادت په حکم کې په دې اعتبارسره وي چې لکه څنګه چې حرف واحد په يو کرت سره زياتولې شي همدارنګې دادوه حروف هم په يوځاې باندې زياتيدې شي

**واحترز**: په دې عبارت سره غرض دشارح في حکم الواحدة دقيد فائدې بيانوي چې داقيد احترازي دې په دې سره دثمانية اودمرجانة مثال نه احتراز دې ځکه چې په ثمانية کې مخکې ياء زياته کړې شوه بيا تاء زياته کړې شوه اوپه مرجانة کې اول نون زيات کړې شو او بيا تاء دتانيث لهذا دا دوه زيادتيانې ديو زيادت په حکم کې نه دي .

**كاسماء**: په دې عبارت سره غرض دشارح توضيح دمثال دي ، مصنف دزيادتان في حکم زيادة واحدة دمثال بيان وکړو په اسماء سره شارح ددې وضاحت کوي چې دامثال په هغه وخت کې دي چې کله اسماء د فعلاء په وزن باندې وي داپه اصل کې وسماء وو اوداماخوذ دي دوسامة نه چې ددې معنى ده حسن او داد سيبويه مذهب دي چې ددې حاصل دادې چه اسم په اصل کې وسم وو واو مو خلاف قياس په همزې سره بدل کړو نو اسم شو ، دسيبويه نه غير دنورو نحويانو مذهب دادې چې اسماءٌ په وزن دافعالٌ دي په اصل کې اسماوٌ وو واحد اسمٌ دي چې په اصل کې سمو وو ددې مذهب مطابق اسماءٌ زيادتان کائنتان في حکم الزيادة الواحدة مثال نه جوړيږي بلکه دابه دباب دعمار نه شي دباب عمار مطلب دادې چې دابه ددې قاعدې په دويم شق اوکان في آخره حرف صحيح قبله مدة کې داخل شي ځکه چې ددې په آخر کې حرف صحيح ماقبل مده زائده ده .

**اوکان في آخره**: ددې عبارت اضافه يې وکړه شارح دجامې دابيانوي چې د حرف صحيحٌ عطف په مخکې زيادتان باندې دې .

**اى صحيح اصلي**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: ستا قاعده منقوضه اوماته ده په سعلاة باندې ځکه چې ددې په آخر کې حرف صحيح دي چې ددې نه مخکې مده ده ددې باوجود په وخت دترخيم کې ددې دآخر نه دوه حرفه نه شي

حذف کولې بلکې يو حرف حذف کولې شي

**جواب**: دحرف صحيح نه مراد مطلق حرف صحيح نه دي بلکه حرف صحيح اصلي مراد دي ځکه چې دصحيح نه متبادر الى الذهن اصلي مراد وي ددې وجه داده چې حرف صحيح غالباً اصلي وي لکه حرف علت غالباً زائده وي لهذا **سعلاة** وغيره سره نقض نه واردېږي ځکه چې ددې تاء اصلي نه ده بلکې زائده ده .

**وهو اعم**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داقاعده منقوضه ده په **مدعو** او **مرمي** سره ځکه چې په وخت دترخيم کې ددې آخرنه دوه حرفه حذف کولې شي حالانکه ددې په آخر کې حرف صحيح نه دي بلکه حرف علت دي .

**جواب** : په حرف صحيح کې تعميم دي برابره خبره ده که حقيقي وي اوياحکمي اوددې په آخر کې اګر چې حرف صحيح حقيقي نه وي ليکن حرف صحيح حکمي موجود دي ځکه چې داداصلي کيدو دوجې نه دحرف صحيح په حکم کې دي .

**اى الف او ياء**: په دې عبارت سره غرض دشارح دمدې تعريف کوي چې مده هغه **الف** يا **واو** يا **ياء** ته ويلي شي کوم چې ساکن وي اوددې ماقبل حرکت ددې دجنس نه وي يعنې که چيرته واو وونو ماقبل مضموم اوکه چيرته ياء وي نوماقبل به مکسور وي اوکه چيرته الف وي نو ماقبل به مفتوح وي .

**والمراد بها**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داقاعده منقوضه ده په **مختارٌ** سره ځکه چې ددې په آخر کې حرف صحيح دي چې ددې نه مخکې مده ده ددې باوجود په وخت دترخيم کې دوه حرفه نه شي حذف کولې بلکې يو حرف **راء** حذف کولې شي .

**جواب** : دمدې نه مراد مده زائده ده ځکه چې همدا متبادر الى الذهن دي ځکه چې مده زائده همدا غالب اوکثير الاستعمال دي لهذا **مختارٌ** وغيره به ترې خارج شي ځکه چې ددې په آخر کې ماقبل مده زائده نه ده بلکه مده غيرزائده ده ځکه چې **مختار** په اصل کې **مُختَيِرٌ** وو.

**وهو اى والحال**: په دې سره غرض دشارح بيان دترکيب دي چې **وهو اکثر من اربعة** جمله حاليه ده داحال دي دآخره دضمير مجرور نه مقصد دعبارت دادې چې هغه اسم چې دهغې په آخر کې

حرف صحیح وي او ددې ماقبل مده وي او هغه د ځلورو حروفو نه زیات هم وي لکه عمار ، منصور ، مسکین نو د ترخیم په وخت کې دداسې اسم د آخر نه دوه حرفه به حذف کولې شي .

لئلا یلزم : په دې عبارت سره د شرط مذکور وجه بیانوي چې دا شرط یې ددې وجې نه ولګول چې د دوه حروفو د حذف نه پس د کلمې اسم معرب په اقل وزن یعنې د درې حروفو نه کم کیدو باندې لازم رانه شي .

والثالث یداخل : په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مصنف ته په کار وه چې اوله قاعده په دې قید وهو اکثر من اربعة احرف سره مقید کولې ددې د پاره چې هلته هم د دوه حرفونو د حذف نه د کلمې اسم معرب په اقل وزن یعنې د درې حروفونه په کم باندې باقي پاتې کیدل لازم رانه شي مصنف رَحِمَهُ اللهُ داسې ولې ونه کړو ؟

**جواب** : که چیرته مصنف اوله قاعده هم دې قید سره مقیده کړې وې نو ثبون او قلون به د اولې قاعدې نه خارجیدو ددې وجې نه چې دا د ځلورو حروفو نه زیات نه دي حالانکې دا په اوله قاعده کې داخل دي .

لان بقاء : په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : که چیرته د قید د نه لګولو د وجې نه ثبون او قلون داخلول دي نو بیا به هماغه خرابي لازم راځي د کوم نه چې مونږ ته بچ کیدل په کاروو یعنې د ثبون او د قلون د درې حروفو نه کم کیدل لازم راځي .

**جواب** : ددې درې حروفو نه کم کیدل د ترخیم د وجې نه ، نه دي بلکه دا د ترخیم نه مخکې همدا دوه حروف دي ځکه چې ددې په آخر کې واو او نون زائده دي او د ثبة قلة تاء مستقله او جدا کلمه ده .

ای الحرفان الاخیران : په دې عبارت سره غرض د شارح دا واضح کول دي چې د حذفتا د الف ضمیر مرجع الحرفان الاخیران ته راجع دي .

في کلا القسمین : په دې عبارت سره غرض د شارح بیان د صلې دي ، د حذفتا د صلې بیان دي .

اما في الاول : په دې عبارت سره غرض د شارح په دواړو قسمونو کې د منادی د آخر نه د دوه حرفونو د حذف کولو وجه بیانوي چې حاصل یې دا دې چې په اول قسم کې به دوه حرفه حذف

کولې شي چې دا دواړه زياتيانې ديو زيادت په حکم کې دي نولهذا لکه څنګه چې دادواړه يوځاې زياتې شوي دي نو همدارنګې به يوځاې حذف کولې شي ددې دپاره چې جدائی میان یاران خطاء است ، ددوستانو په مينځ کې جدائي راوستل ګناه ده ، لازم رانه شي ، اوپه دويم قسم کې ددې وجې نه چې کله آخري حرف باوجود د صحيح کيدو حذف کړو نو ددې سره به مده هم حذف کولې شي ددې دپاره چې مشهور مثال صادق رانه شي چې : صلت علی الاسد وبلت عن النقد ، چې په زمري باندې تا حمله وکړه او چيلې چې کله دا وليده نو دويرې نه يې مُتيازې وکړې.

## د مرکب کيدو په صورت کې د ترخيم مقدار :

| |
|---|
| وَ اِنْ كَانَ مُرَكَّباً وَ يُعْلَمُ مِنْ بَيَانِ شَرْطِ التَّرْخِيْمِ اَنَّهُ لاَ يَكُوْنُ مُضَافاً وَ لاَ جُمْلَةً مِثْلُ بَعْلَبَكَ |
| اوکه چيرته مرکب وي اومعلوميږي دبيان دشرائطو دترخيم نه چې دامنادى به نه وي مضاف اونه جمله لکه بعلبک |
| وَ خَمْسَةَ عَشَرَ عَلَمَيْنِ حُذِفَ الْاِسْمُ الْاَخِيْرُ فَيُقَالُ فِيْ بَعْلَبَكَّ يَا بَعْلَ وَ فِيْ خَمْسَةَ عَشَرَ |
| اوخمسة عشرچې دادواړه علم وي نوحذف کولې به شي آخرني اسم نوويلې به شي په بعلبک کې بعل اوپه خمسة عشر |
| يَا خَمْسَةَ لِنُزُوْلِهِ مَنْزِلَةَ تَاءِ التَّانِيْثِ فِيْ كَوْنِ كُلٍّ مِنْهُمَا كَلِمَةً عَلٰى حِدَةٍ صَارَتْ |
| کې ياخمسة دوجې دواقع کيدونه په ځاې دتاء تانيث کې په کيدودهريودې دواړونه کلمه جدانوداوګرځيده په |
| بِمَنْزِلَةِ الْجُزْءِ وَاِنْ كَانَ غَيْرَ ذٰلِكَ الْمَذْكُوْرِ مِنَ الْاَقْسَامِ الثَّلاَثَةِ فَحَرْفٌ وَاحِدٌ اَىْ فَيُحْذَفُ حَرْفٌ وَاحِدٌ |
| منزله دجزءاوکه چيرته غيرددې مذکوردري اقسامونه وي نويوحرف دې يعني يوحرف به حذف کولې شي د |
| لِحُصُوْلِ الْفَائِدَةِ الْمَقْصُوْدَةِ وَ عَدَمِ مُوْجِبِ حَذْفِ الْاَكْثَرِ نَحْوُ يَا حَارِ وَ يَا مَالِ فِيْ يَا حَارِثُ وَ |
| وجې دحصول دمقصودې فائدې نه اوديونه دزيات حذف دعدم موجب دوجې نه لکه ياحاراوياماك په ياحارث او |
| يَا مَالِكُ . |
| ياماک کې. |

**خلاصه دمتن** : که چيرته منادى مرخم مرکب وي نوددې آخري اسم به مکمل حذف کولې شي لکه د بعلبک نه بعل ، اوکه چيرته منادى دمذکوره دري قسمونو نه يوقسم هم نه وو يعني نه ددې په آخر کې دوه زياتيانې ديوزيادت په حکم کې وي ، اونه حرف صحيح وي چې ددې نه مخکې مده وي ، نه منادى مرکب وي نو په وخت دترخيم کې به يوحرف حذف کولې شي ځکه چې په دې صورت کې دېر حرف په حذف کولو سره فائدې مقصودې چې تخفيف دي

حاصلیږي نو دیو حرف نه زیات دحذف دپاره کوم موجب نشته لهذا فقط یو حرف به حذف کولې شي اوپه یاحارث کې یاحار اوبه یامالک کې به یا مال ویلې شي

**اغراض دجامي** : <u>وان کان مرکبا ویعلم منه</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : دمصنف په عبارت کې مرکب عام دي مرکب اضافي اوجمله ، مرکب اسنادي ، دواړو ته شامل دي نو دمصنف په عبارت کې تناقض لازم راځي ځکه چې مخکې دمصنف قول وان لایکون مضافا ولاجملة نه منادی مضاف اوپه جمله کې دترخیم عدم جواز معلومیږي اودې قول نه منادی مضاف او په جمله کې دترخیم جواز معلومیږي

**جواب** : دمرکب نه مراد هغه مرکب دې چې دجملې اودمرکب اضافې نه غیروي ځکه چې مخکې د ترخیم په شرائطو کې ددې دواړو نفي شوي ده

<u>لنزوله منزلة التاء</u>: په دې عبارت سره دمرکب ددویم جزء دحذف کولو وجه بیانوي چې حاصل یې دادې چې که چیرته منادی مرکب وي نوپه وخت دترخیم کې به آخري اسم حذف کولې شي چنانچه په بعلبک کې دترخیم نه پس بعل اوپه خمسة عشر کې دترخیم نه پس یاخمسة ویلې شي ځکه چې آخرنې اسم مستقل اوجدا کلمه کیدو په اعتبار سره په منزله دتاء تانیث دي نولکه څنګه چې په وخت دترخیم کې تاء حذف کولې شي همدارنګې آخرنې اسم به هم حدف کولې شي .

<u>المذکور</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : داسم اشارې اودمشار الیه په مبنځ کې مطابقت نشته اسم اشاره مفرد ده اومشار الیه اقسام ثلاثة دي .

**جواب** : اقسام ثلاثه دمذکور په تاویل کې دي اودامفرد دي لهذا داسم اشارې اودمشار الیه په مینځ کې مطابقت موجود دي

<u>فیحذف</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : دمصنف قول وان کان غیر ذلک داشرط دې اوفحرف واحد دا جزا ده حالانکه ددې جزا جوړول صحیح نه دي ځکه چې جزا جمله وي اودا جمله نه ده .

**جواب** : حرف واحد نائب فاعل دي دفعل محذوف کوم چې يحذف دي فعل دخپل فاعل سره يوځاې شو جمله شوه اوجزا شوه دپاره دشرط لهذا اشکال کول صحيح نه دي .

## د منادى مرخم اعراب :

وَ هُوَ اَىْ الْمُنَادَى الْمُرَخَّمُ فِيْ حُكْمِ الْمُنَادَى الثَّابِتِ بِجَمِيْعِ اَجْزَائِهٖ فَيَبْقَى الْحَرْفُ الَّذِيْ صَارَ

اودا يعني منادى مرخم په حکم دمنادى ثابت کې دي په ټولو اجزاو کې نوباقي پاتې شوهغه حرف چې ګرځيدلى

آخِرَ الْكَلِمَةِ بَعْدَ التَّرْخِيْمِ عَلٰى مَا كَانَ عَلَيْهِ قَبْلَهٗ عَلَى الْاِسْتِعْمَالِ الْاَكْثَرِ فَيُقَالُ فِيْ

وي آخر دکلمې پس دترخيم نه په کوم باندې چې دامخکې وو په اکثر استعمال باندې پس ويلې به شي په ياحارث

يَا حَارِثُ يَا حَارِ بِكَسْرِ الرَّاءِ عَلٰى مَا كَانَ قَبْلَ التَّرْخِيْمِ وَ فِيْ يَا ثَمُوْدُ يَا ثَمُوْ بِوَاوٍ مُتَطَرِّفَةٍ

کې ياحارِ په کسرې د را سره بنا په هغه څه چې مخکې د ترخيم نه وو او په ياثمود کې ياثمو په هغه واو سره چې په طرف

بَعْدَ ضَمَّةٍ وَ فِيْ يَا كَرَوَانُ يَا كَرَوَ بِوَاوٍ مُتَحَرِّكَةٍ بَعْدَ فَتْحَةٍ وَ قَدْ يُجْعَلُ قَدْ

کې واقع وي پس دضمې نه او په ياکروان کې ياکرو په واو متحرک سره پس دفتحې نه او کله کله ګرځولې شي قَدْ

لِلتَّقْلِيْلِ اَىْ وَ يُجْعَلُ الْمُنَادَى الْمُرَخَّمُ عَلَى الْاِسْتِعْمَالِ الْاَقَلِّ اِسْماً بِرَأْسِهٖ كَاَنَّهٗ لَمْ يُحْذَفْ

دپاره دتقليل يعني ګرځولې شي مناد؛ مرخمه په کم استعمال باندې مستقل اسم ګوياچې نه وي حذف شوي

مِنْهُ شَيْءٌ فَيَكُوْنُ لَهٗ فِيْ بِنَائِهٖ وَ اِعْلَالِهٖ وَ تَصْحِيْحِهٖ حُكْمُ نَفْسِهٖ لَا حُكْمُ الْاَصْلِ فَيُقَالُ

د دې نه څه څيز نو وي به د دې دپاره په بنا، او په اعلال کې او په تصحيح کې خپل مستقل حکم نه د اصل حکم پس ويلې

يَا حَارُ بِالضَّمِّ كَاَنَّهٗ اِسْمٌ مُفْرَدٌ مَعْرِفَةٌ بِرَأْسِهٖ فَيُضَمُّ وَ يَا ثَمِيْ لِاَنَّهٗ لَمَّا جُعِلَ

به شي ياحارُ په ضمې سره ګوياچې دامستقل اسم مفرد معرفه دي نو دا ضمه ورکوي او ياثمي څکه چې کله وګرځول

ثَمُوْ اِسْماً بِرَأْسِهٖ صَارَتِ الْوَاوُ طَرَفاً بَعْدَ ضَمَّةٍ فَلَا جَرَمَ قُلِبَتِ الْوَاوُ يَاءً وَ كُسِرَ مَا قَبْلَهَا

ياثمو مستقل اسم نو وګرځيد واو په طرف کې پس دضمې نو خامخا بدلولې به شي واو په ياء سره او ماقبل ته به کسره

كَادْلٍ فِيْ اَدْلُوٍ وَ يَا كَرَا لِاَنَّهٗ لَمَّا جُعِلَ اِسْماً بِرَأْسِهٖ اِرْتَفَعَ الْاِعْلَالُ وَ هُوَ

ورکولې شي لکه ادلٍ په ادلو کې او ياکرا څکه چې کله کرو مستقل اسم جوړ شو نو د تعليل مانع ختم شو او هغه مانع

وُقُوْعُ السَّاكِنِ بَعْدَ الْوَاوِ فَانْقَلَبَتِ الْوَاوُ اَلِفاً لِتَحَرُّكِهَا وَ انْفِتَاحِ مَا قَبْلِهَا .

د واو نه پس دساکن واقع کيدل وو پس واو د متحرک کيدو او د ماقبل مفتوح کيدو دوجې نه په الف سره بدل شو .

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافيې په دې عبارت کې د منادى مرخم د اعراب بيان کوي :

**(۱)** : د منادى مرخم داعراب په باره کې دوه استعماله دي : (۱) په اکثر استعمال کې منادى مرخم د هغه منادى په حکم کې کولې شي کوم چې ثابت په ټولو اجزاو سره وي ګويا چې ددې

د آخر نه څه د سره د حذف شوي نه دي لهذا هغه حرف چې د ترخيم نه پس د کلمې آخر جوړ شو هغه په هماغه حرکت باندې پريخودلې شي په کوم حرکت باندې چې هغه مخکې د ترخيم نه وو پس په ياحارث کې ياحار په کسرې د راء سره به ويلې شي لکه څنګه چې د ترخيم نه مخکې کسره وه او په ياثمود کې ياثمو ويلې شي يعنې واو کوم چې په طرف کې واقع کيږي پس د ضمې نه دا په ياء سره نه شي بدلولې بلکې په خپل حال به پريخودلې شي لکه څنګه چې د ترخيم نه مخکې وو او ياکروان کې ياکرو د فتحې نه پس واو متحرکه سره ويلې شي لکه څنګه چې د ترخيم نه مخکې وو ګوياچې د دې نه پس الف او نون موجود دي نو د قال والا قانون ما تحت به واو په الف سره نه شي بدلولې.

(۲): او په قليل استعمال کې کله هم منادی مستقل اسم جوړولې شي او په دې باندې د مستقل منادی حکم جاري کيږي لهذا د دې په مبني کيدو او اعلال او تصحيح کې د دې د خپل ذات حکم به وي د اصل حکم به نه وي يعنې د ترخيم نه پس د دې په آخر کې چې کوم حرف دي اګرچې هغه د بناء مقتضی دي نو هغه به مبني جوړولې شي او که چيرته د اعلال مقتضي وي نو تعليل به کولې شي او که چيرته د اعلال مقتضي نه وي نو تعليل به نه شي کولې لهذا په ياحارث کې ياحارُ په ضمې د راء سره به ويلې شي ځکه چې کله د امستقل اسم جوړ شو نو په دې باندې به د مستقل اسم حکم جاري وي چونکې دا مفرد معرفه دي او مفرد معرفه مبني په ضمې باندې وي لهذا دا به مبني په ضمې وي او په ياثمود کې به ياثمي ويلې شي ځکه چې کله دا مستقل اسم جوړ کړي شو نو واو په طرف کې د ضمې نه پس واقع شو نو دا مو په ياء سره بدل کړو بيا د ياء د مناسبت د وجې نه د ماقبل ضمه په کسرې سره بدله کړه نو ثمي شو لکه څنګه چې ادلٍ په اصل کې ادلو وو واو په طرف کې د ضمې نه پس واقع شو نو واو يې په ياء سره بدل کړو نو ادلي شو بيا د ياء د مناسبت د وجې نه د ماقبل ضمه په کسرې سره بدله کړه نو ادلي شو په ياء باندې ضمه ثقيله وه نو دا مو وغورزوله ادلين شو بيا التقاء د ساکنينو راغله د ياء او د تنوين په مينځ کې ياء مو حذف کړه ادلٍ شو او په ياکروان کې به ياکرا ويلې شي ځکه چې کله دا مستقل اسم جوړ شو نو کوم څيز چې د تعليل نه مانع وو هغه مرتفع شو هغه مانع دا دې چې کله واو نه پس ساکن واقع وي نو هلته به د قال والا قانون نه شي جاري کولې لهذا د واو متحرک او د ماقبل مفتوح

كيدو دوجې نه واو په الف سره بدل كړي شو نو ياكرا شو

**اغراض دجامي** : وهو اى المنادى : په دې عبارت سره غرض دشارح د هُوَ ضمير مرجع ظاهرول وو چې د هُوَ ضمير مرجع المنادى ده

**في حكم المنادى** : د المنادى لفظ يې مقدر كړو شارح اشاره كوي چې الثابت صيغه دصفت ده ددې موصوف المنادى محذوف ده

**بجميع اجزائه** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : دمصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ داويل چې منادى مرخم دمنادى ثابت په حكم كې دي صحيح نه ده ځكه چې منادى مرخم دثابت په حكم كې نه دي بلكې عين منادى ثابت دي ځكه چې ثابت په معنى د متحقق اوموجود كې دي اومنادى مرخم هم په دې معنى ثابته ده لهذا منادى مرخم دمنادى ثابت سره تشبيه وركول صحيح نه دي

**جواب** : دلته ثابت متحقق اوموجود په معنى كې نه دي بلكه دمحذوف په مقابله كې دي مطلب دادې چې منادى مرخم چې ددې دآخر نه يو يادوه حرفه محذوف كيږي دې ته منادى ثابت بجميع اجزاءه په حكم كې كولې شي

**فيبقى** : ددې نه دفي حكم الثابت تفصيل بيانوي چې دترخيم نه پس آخري كلمه په دې حركت باندې باقي پاتې كيږي په كوم باندې چې مخكې وو

**على الاستعمال** : دا لفظ يې مقدر راوويستو شارح اشاره وكړه چې دالاكثر صيغه دصفت ده ددې موصوف الاستعمال محذوف دي همدارنګې دې خبرې طرف ته يې هم اشاره وكړه چې الاكثرد الاستعمال صفت دي نه د المذهب ځكه چې په دې كې كوم اختلاف نشته بلكې متفق عليه مسئله ده .

**فيقال في ياحارث ياحار** : په دې عبارت سره په مثالونو سره وضاحت كوي چې ياحارث دترخيم نه پس ياحارِ په كسرې دراء سره ويلې شي اوياثمودُ دترخيم نه پس ياثمو ويلې شي اوياكروان دترخيم نه پس ياكروَ ويلې شي په دې كې څه قسم تبديلي نه شي كولې كوم چې په آخر دكلمه كې داعلال وغيره په صورت كې كولې شي

**قد للتقليل** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي

**سوال** : د اکثر په مقدمه کې اقل وي لهذا مصنف ته به کار وو چې اقل یې هم ذکر کړي وي مصنف د اسې ولې ونه کړو ؟

**جواب** : د ا به قد یجعل باندې قد تقلیله دې لهذا د دې ذکر کولو نه پس د اقل لفظ د ذکر کولو ضرورت نشته

ای ویجعل المنادی المرخم : په دې سره د یجعل هُوَ ضمیر مرجع یې بیان کړه

## د مندوب تعریف :

وَ قَدْ اِسْتَعْمَلُوْا يَعْنِيْ الْعَرَبَ صِيْغَةَ النِّدَاءِ يَعْنِيْ يَا خَاصَّةً فِيْ الْمَنْدُوْبِ لِاَنَّهُ لَا يَدْخُلُ

او په تحقیق استعمال کړي یعني عربو صیغه د ندا ء یعني یا خاص په مندوب پورې څکه چې دا نه داخلیږي په غیر د یاء

عَلَيْهِ سِوَاهَا لِكَوْنِهَا اَشْهَرَ صِيَغِهَا فَكَانَتْ اَوْلىٰ بِاَنْ يُتَوَسَّعَ فِيْهَا بِاِسْتِعْمَالِهَا فِيْ غَيْرِ

نه بل دوجې د مشهورې صیغې کیدو نه پس دا اولیٰ ده چې توسع وشي په دې کې په استعمال د دې سره په غیر د

الْمُنَادىٰ وَ الْمَنْدُوْبُ فِيْ اللُّغَةِ مَيِّتٌ يَبْكِيْ عَلَيْهِ اَحَدٌ وَ يَعُدُّ مَحَاسِنَهُ

منادی کې او مندوب په لغت کې هغه مړي دې چې ژاړي په ده باندې یو کس او شماري د ده محاسن د دې د پاره چې

لِيَعْلَمَ النَّاسُ اَنَّ مَوْتَهُ اَمْرٌ عَظِيْمٌ لِيَعْذِرُوْهُ فِيْ الْبُكَاءِ وَ يُشَارِكُوْهُ

معلومه شي خلکو ته چې مرګ د ده یو عظیم کار دې د دې د پاره چې دا کس په ژړا کې معذور وګڼي او شریک شي د ده

فِيْ التَّفَجُّعِ وَ فِيْ الْاِصْطِلَاحِ هُوَ الْمُتَفَجَّعُ عَلَيْهِ وُجُوْداً اَوْ عَدَماً

سره په تفجع کې او په اصطلاح کې مندوب هغه دې چې په هغې باندې د افسوس اظهار وکړي شي وجوداً یا عدماً په

بِيَا اَوْ وَا فَالْمُتَفَجَّعُ عَلَيْهِ عَدَماً مَا يَتَفَجَّعُ عَلىٰ عَدَمِهِ

یا سره او یا وا سره پس متفجع علیه عدمي هغه دې چې د هغې په نه موجودیدو باندې د افسوس اظهار وکړي شي

كَالْمَيِّتِ الَّذِيْ يَبْكِيْ عَلَيْهِ النَّادِبُ وَ الْمُتَفَجَّعُ عَلَيْهِ وُجُوْداً مَا يَتَفَجَّعُ عَلىٰ وُجُوْدِهِ

لکه هغه مړي چې په هغې باندې ژاړي ژړیدونکي او متفجع علیه وجودي هغه ده چې د دې په وجود باندې جزع

عِنْدَ فَقْدِ الْمُتَفَجَّعِ عَلَيْهِ عَدَماً كَالْمُصِيْبَةِ وَ الْحَسْرَةِ وَ الْوَيْلِ اللَّاحِقَةِ لِلنَّادِبِ

فزع کولې شي په وخت د ورکیدو د متفجع علیه عدمي لکه مصیبت او حسرت او ویل کوم چې لاحق کیږي ژړیدونکي

لِفَقْدِ الْمَيِّتِ فَالْحَدُّ شَامِلٌ لِقِسْمَيِ الْمَنْدُوْبِ مِثْلُ يَا زَيْدَاهُ وَ يَا عُمَرَاهُ وَ مِثْلُ يَا حَسْرَتَاهُ

ته د مړي د ورکیدو په وجه نو تعریف د مندوب دواړو قسمونو ته شامل دې لکه یا زیداه او یا عمراه او لکه یا حسرتاه

وَ يَا مُصِيْبَتَاهُ وَ يَا وَيْلَاهُ وَ اخْتُصَّ الْمَنْدُوْبُ بِوَا مُمْتَازًا بِهِ عَنِ الْمُنَادىٰ لِعَدَمِ

او یا مصیبتاه او یا ویلاه او مندوب د وا سره خاص دي او دا دې او په وجه باندې د منادی نه ممتاز دي دوجې نه

دُخُوْلِهٖ عَلَيْهِ بِخِلَافِ يَا فَاِنَّهٗ مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا.

داخليدو په دې باندې په خلاف د يا ء چې دا مشترک ده په مينځ د دواړو کې

**خلاصه د متن**: صاحب د کافيې وايي چې اهل عرب کله صيغه د ندا په مندوب کې هم استعمل لوي او صيغې د ندا نه مراد صرف ياء ده او مندوب هغه دي چې په هغې باندې وا يا د ياء په ذريعې باندې اظهار د تفجع او د افسوس وکړي شي لکه يا زيداه واعمراه او وا صرف د مندوب سره خاص دي په نداء کې نه استعماليږي او ياء په مندوب او نداء د دواړو په مينځ کې مشترک دي

**اغراض د جامي**: يعني العرب: په دې عبارت سره غرض د شارح د استعملوا د ضمير د مرجع بيانول او د فاعل تعين کول دي.

يعني ياخاصة: په دې عبارت سره غرض د شارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: صيغې د نداء خو پنځه (۵) دي حالانکه په مندوب کې فقط ياء استعماليږي باقي حروف د ندا نه استعماليږي نو د مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ وقد استعملوا صيغة النداء ويل به څنګه صحيح وي؟.

**جواب**: په صيغة النداء کې اضافت عهدي دي د دې نه په دې کې د نداء د صيغونه خاص ياء د نداء مراد ده فاندفع الاشکال.

لانه: په دې عبارت سره د ياء د خصوصياتو دوجې بيان دي د ياء نه غير چې کوم باقي حروف د نداء وي هغه په مندوب باندې نه داخليږي ځکه چې د نداء د صيغو نه ياء په ټولو کې ډيره مشهوره ده لهذا دا د دې خبرې ډيره حقداره ده چې دا په غير منادى کې استعمالولو سره وسعت ورکړل شي.

لغة: په دې کې د مندوب لغوي بيان دي په لغت کې مندوب هغه مړي ته وايي چې د دې محاسنو په ذکر کولو سره په ده باندې وژړل شي د دې دپاره چې خلک د ده د مرګ په امر عظيم وګنړي او په اظهار د همدردي کې د دوي سره شريک سي

وفي الاصطلاح: په دې سره د مندوب اصطلاحي تعريف دي په اصطلاح کې مندوب هغه ته وايي چې په هغې باندې وا او يا ياء سره وژړل شي

وجودا او عدما: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : دمندوب تعريف جامع نه دي ځکه چې ددې نه متفجع عليه وجودي ترې خارج شو مثلاً ياحسرتاه يامصيبتاه ياويلتاه ځکه چې تفجع په دې باندې نه شي بلکې ددې د وجې نه کيږي

**جواب** : په متفجع عليه کې تعميم دي برابره خبره ده که وجودي وي ياعدمي ، متفجع عليه عدمي هغه دي چې ددې دفقدان اودعدم په وخت کې وژړل شي مثلا په مړي باندې ژړيدونکي وا يا يا سره وژاړي اومتفجع عليه وجودي هغه دي چې متفجع عليه عدمي دفقدان او ورکيدو په وخت کې متفجع عليه په وجود باندې اظهار دتفجع وکړي شي مثلاً مړي دفن کړي اوچې کله ولي کور ته راشي نودفقدان دمړي دوجې نه ده ته غم ،مصيبت اوحسرت وي اوداووايي چې ياحسرتاه يامصيبتاه نودې ته متفجع عليه وجودي وايي

فالحد: داپه ماقبل باندې دتفريع بيان دي چې کله په متفجع عليه کې تعميم وي برابره خبره ده که وجودا وي اوياعدماً نودمندوب داتعريف به دواړو قسمونو ته شامل وي لکه يازيداه ياعمراه داد متفجع عليه عدمي مثالونه دي اوياحسراتاه ويامصيبتاه دمفتجع عليه وجودي مثالونه دي

واختص بوا ددې عبارت حاصل دادې چې مندوب د وا سره خاص دي

المندوب: په دې کې بيان دمرجع دي چې په اختص کې ضمير مستتر مندوب طرف ته راجع دي

ممتازاً: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د خاصې تعريف دادې چې ما يختص به ولا يوجد في غيره ، اومندوب دياء سره هم مستعمليږي نو بيا دوا سره څنګه خاص شو ؟

**جواب** : بوا دا جار مجرور دي متعلق دي تر اختصاص پورې په اعتبار د تضمن د معنى د امتياز معنى داده چې مندوب د وا په ذريعې سره د منادى نه ممتاز کيږي ځکه چې وا په منادى باندې نه داخليږي په خلاف د ياء چې دا د مندوب او منادى دواړو په مينځ کې مشترک دي .

## د مندوب حکم :

وَ حُكْمُهُ اَىْ حُكْمُ الْمَنْدُوْبِ فِي الْاِعْرَابِ وَ الْبِنَاءِ حُكْمُ الْمُنَادٰى اَىْ مِثْلُ حُكْمِهٖ يَعْنِيْ اِذَا وَقَعَ

اوحکم د دې يعني حکم د مندوب په اعراب اوبناء کې د منادى حکم دې يعني په شان د حکم د منادى دى يعني چې

الْمَنْدُوْبُ عَلٰى صُوْرَةِ قِسْمٍ مِنْ اَقْسَامِ الْمُنَادٰى فَحُكْمُهُ فِي الْاِعْرَابِ وَالْبِنَاءِ مِثْلُ حُكْمِ ذٰلِكَ الْقِسْمِ مِنَ

کله واقع شي مندوب په صورت د قسم د اقسامو د منادى کې نو حکم د دې په اعراب اوبناء کې په شان د دې قسم د

الْمُنَادٰى كَمَا اِذَا كَانَ مُفْرَداً مَعْرِفَةً يُضَمُّ وَ اِذَا كَانَ مُضَافاً اَوْ مُشَبَّهاً بِهٖ

منادى کې لکه چې کله مندوب مفرد معرفه وي نو ضمه به ورکولې شي اوچې کله مضاف يا شبه مضاف وي نو

يُنْصَبُ وَلَا يَلْزَمُ مِنْ ذٰلِكَ جَوَازُ وُقُوْعِهٖ عَلٰى صُوْرَةِ جَمِيْعِ اَقْسَامِ الْمُنَادٰى

نصب به ورکولې شي اونه لازميږي د دې جواز د وقوع د دې په صورت د ټولو اقسامو د منادى کې د دې د پاره چې

لِيَرِدَ عَلَيْهِ اَنَّهٗ لَا يَقَعُ نَكِرَةً لِاَنَّهٗ لَا يُنْدَبُ اِلَّا الْمَعْرِفَةُ.

وارد شي په دې باندې چې نه واقع کيږي نکره ځکه چې دا نه مندوب کيږي مګر معرفه.

**خلاصه دمتن** : د مندوب د حکم بيان دي چې په معرب اومبني کيدو کې د مندوب حکم د منادى د حکم په شان دي همدا رنګې د مندوب په آخر کې د آواز د اوږدوالي د پاره الف زياتول جائز دي ځکه چې په ندبه کې اوږدوالي د آواز مقصود او مطلوب وي اوپه حالت د وقف کې د الف نه پس د هاء زياتول هم جائز دي لکه يازيداه

**اغراض دجامي** : فان خفت: صاحب د کافيې وايي چې که چيرته د مندوب په آخر کې د الف په زياتولو سره د بلې صيغې سره د التباس خوف وي نو په دې وخت کې الف د دويم مدې سره بدلولې شي کوم چې د آخر مندوب د حرکت سره موافق وي مثلاً د واحدې مؤنثې مخاطب غلام د ندبې سره التباس لازم راځي لهذا الف د کاف د کسرې د مناسبت نه په ياء سره بدل کړي شو واغلامکيه به ويلې شي همدا رنګې چې کله د مخاطبينو جماعت غلام ندبه کول مقصود وي نو واغلامکماه به نه شي ويلې ځکه چې که چيرته [illegible] د وابې نو تثنيه مخاطب غلام د ندبې سره به التباس لازم راشي لهذا الف به د ميم د حر[illegible] د مناسبت د وجې نه په واو سره بدلوو او واغلامکموه به وايو .

اى حكم المندوب: په دې کې د حکمه د ضمير مرجع يې متعين کړه چې د دې مرجع مندوب دي

اى مثل : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال**: موږ دانه منو چې دمندوب حکم بعينه دمنادى حکم دي ځکه چې دحکم معنى ده اثر مرتبه على الشيء او داعرض دي اوعرض صرف په يومحل سره قائميدي شي کـه چېرتـه منادى والاحکم په مندوب کې راشي نو د عرض واحد په دوه محلونو کې قيام به لازم راشي او دا ناجائز دي قاعده ده چې قيام العرض بالمحلين باطل

**جواب**: دمصنف په عبارت کې مضاف لفظ دمثلُ محذوف دي په اصل کې عبارت داسې وو چې وحكمه في الاعراب والبناء مثل حكم المنادى يعني دمندوب حکم په اعراب اوبناء کې دمنادى دحکم په مثل دي نه چې عين منادى لهذا قيام العرض بالمحلين والااشکال به لازم رانه شي

**يعني اذا وقع**: په دې عبارت سره توضيح دمتن دي . چې کله مندوب دمنادى داقسامونه په يوقسم صورت کې واقع وي نودمندوب حکم په اعراب اوبناء کې دمنادى دهمدې قسم دحکم په مثل وي مثلاً که چيرته مندوب مفرد معرفه وي نودابه دمنادى مفرد معرفه په شان مبني په ضمه وي لکه وازيدُ اوکه چيرته مندوب مضاف ياشبه مضاف وي نودا منادى مضاف يادشبه مضاف په شان به منصوب وي لکه واعبدالله واطالعاً جبلا

**ولايلزم**: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: د مصنف د عبارت وحكمه في الاعراب والبناء الخ نه دا معلوميږي چې د منادى ټول اقسام په مندوب کې هم موندل کيږي حالانکه داسې نه دي ځکه چې نکره غير معينه د منادى قسم دي ، ليکن مندوب نکره نه وي لکه وروسته چې مصنف رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي . ولاينـدب الا المعروف .

**جواب**: دلته تشبه ومثليت اعراب اوبناء والا دحکم دلحاظ نه دي داقسامو دلحاظ نه ، نه دي په دې سره دا نه لازميږي چې دمنادى ټول اقسام په مندوب کې هم موندل کيږي

## په مداتو سره الحاق د الف او د هاء ذکر :

| وَ جَازَ لَكَ زِيَادَةُ الْأَلِفِ فِيْ آخِرِهِ أَيْ آخِرِ الْمَنْدُوْبِ لِمَدِّ الصَّوْتِ الْمَطْلُوْبِ فِي |
|---|
| اوجائزدي ستاد پاره زيادة دالف په آخرکې يعني په آخر دمندوب کې دپاره داوږدوالي دآواز کوم چې مطلوب دي په |
| النُّدْبَةِ فَإِنْ خِفْتَ اللَّبْسَ أَيْ اِلْتِبَاسَ ذٰلِكَ اللَّفْظِ عِنْدَ زِيَادَةِ الْأَلِفِ بِغَيْرِهِ عَدَلْتَ |
| ندبه کې که چيرته ويره دالتباس وي يعني التباس ددې لفظ ، ې په وخت دزيادت دالف دغير سره نوعدول کوې |

| |
|---|
| إِلَى حَرْفِ مَدٍّ مُجَانِسٍ لِحَرَكَةِ آخِرِ الْمَنْدُوبِ مِنْ كَسْرَةٍ أَوْ ضَمَّةٍ كَمَا إِذَا أَرَدْتَ |
| حرف مدي طرف ته چې هم جنس وي دحرکت دمندوب دآخر سره دکسرې اوضمې نه لکه کله چې ته اراده وکړې |
| نُدْبَةَ غُلَامِ مُخَاطَبَةٍ قُلْتَ وَا غُلَامَكِيهِ لَا وَا غُلَامَكَاهُ لِلِالْتِبَاسِ بِنُدْبَةِ غُلَامِ مُخَاطَبٍ |
| دندبې دغلام دمخاطبې ښځې نوو ايې به واغلامكيه نه واغلامكاه دوجې دالتباس نه دندبې دغلام دمخاطب سره |
| وَإِذَا أَرَدْتَ نُدْبَةَ غُلَامِ جَمَاعَةٍ مُخَاطَبِينَ قُلْتَ وَا غُلَامَكُمُوهُ إِذِ الْمِيمُ أَصْلُهُ الضَّمُّ لَا وَا غُلَامَكُمَاهُ |
| اوکله چې ته دمخاطبينو ديوجماعت دندبې اراده وکړې نوو ايې به واغلامكموه ځکه چې دميم اصل ضمه ده نه |
| لِلِالْتِبَاسِ بِنُدْبَةِ غُلَامِ مُخَاطَبَيْنِ اثْنَيْنِ وَ جَازَ لَكَ الْهَاءُ أَيْ إِلْحَاقُهَا بِهٰذِهِ الْمَدَّاتِ |
| واغلامكماه دوجې دالتباس نه دندبې دغلام دمخاطبينو سره اوجائزده ستادپاره هايعني الحاق ددې ددې مداتو |
| فِي حَالِ الْوَقْفِ لِبَيَانِهَا . |
| پورې په حالت دوقف کې دبيانولو مدې دپاره |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافيې وايي چې ددې ټولو مداتو سره په حالت دوقف کې هاء لاحق کول هم جائز دي ددې دپاره چې د اضافي د هاء په ذريعه مده ښه واضحه شي .

**اغراض دجامي** : وجاز لک: دمندوب په آخر کې دآواز داوږدوالې دپاره الف زياتول جائز دي ځکه چې په ندبه کې اوږدوالې دآواز مطلوب وي اودالف په زياتوالې سره دامطلوب حاصليږي وجاز نه دجامي دشارح دوه غرضه دي.

(۱) اشاره يې وکړه چې لک جارمجرور دجاز متعلق دي اودزيادة الالف متعلق اعتبار نه دظرف فاعل دي .

(۲) دجاز لفظ يې مقدر کړو په علامه اندلسي باندې يې رد وکړو چې فرمايي چې که چيرته ياء حرف نداء سره ندبه کړې شي نو په آخر کې الف زياتول واجب دي ددې دپاره چې دمنادى اود مندوب کې التباس نه وي نود جاز لفظ يې مقدر کړو شارح په اندلسي باندې رد کوي چې د الف زياتوالې جائز دي واجب نه دي ځکه چې ددې وجې نه التباس بيا هم نه ختميږي ځکه منادى مستغاث بالالف کې التباس باقي پاتې وي همدارنګې لام دجاز صله جوړيږي د وجب صله نه جوړيږي .

اى آخر المندوب: په دې عبارت سره شارح دآخره دضمير مرجع بيانوي چې دآخره ضمير آخر المندوب ته راجع دي .

لمد الصوت : په دې عبارت سره شارح د زيادة الالف وجه اوغرض بيانوي چې په ندبه کې دآواز اوږدوالي مقصود وي اوپه زياتوالي د الف سره دامقصود حاصليږي

اى التباس ذلک اللفظ : په دې عبارت سره شارح داللبس دتفسير په التباس سره دکولو دوه غرضه کيدي شي

(۱) لبس ثلاثي مجرد غيرمشهوروو او التباس دباب مزيد مشهوررو ، نوتفسير د غيرمشهور بالمشهور يې وکړو

(۲) لَبس په فتحې دلام سره دلَبس معنی التباس اواشتباه ده اوپه ضم دلام سره لُبس په معنی دکپړو اغوستلو سره ،نودالتباس نه يې تفسير وکړو شارح دا ظاهره کړه چې دالَبس په فتحې دلام سره دي نه په ضمې دلام سره ځکه چې ددواړو رسم الخط اونقش يوشان دي

ذلک اللفظ : په دې سره شارح دابيانوي چې داللبس الف لام دمضاف اليه عوض دي کوم چې ذلک اللفظ دي .

عدلت : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمصنف قول فان خفت شرط اوقلت واغلامكيه جزا ده اودجزاپه شرط باندې ترتب كيږي دلته ترتب صحيح نه دي ځکه چې دعبارت مطلب به داجوړ شي چې کله هم دالتباس خوف وي نو واغلامكيه ووايي حالانكه دابديهي البطلان دي دهر التباس په وخت کې ياغلامكيه ويل صحيح نه دي مثلا وا امتكيه ويل هم جائز دي .

**جواب** : دمصنف قول قلت الخ دادشرط جزا نه ده بلکه ددې جزا محذوف ده کوم چې عدلت الخ دي يعنې كه چيرته دالف په زياتوالي سره دالتباس خوف وي نودحرف مدې طرف ته به عدول کولې شي کوم چې دمندوب دآخري حرف حرکت موافق وي برابره خبره ده چې داقول وي يابل څيز لهذا اوس دجزا ترتب اوربط مع الشرط به صحيح وي .

كما اذا اردت ندبة غلام : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : چې کله جزا عدلت محذوف دي نو قلت واغلامكيه ذكر مستدرک اوبې فائدې او اشتغال بما لايعني به وي .

**جواب** : واغلامكيه ذكر په طور دمثال دي بيا مخکې دمثالونو وضاحت کوي

اذالمیم : په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : واغلامکموه کې واو دمندوب دآخري حرف حرکت دمجانس څنګه وي ځکه چې واغلامکم کې خو میم ساکن دي

**جواب** : میم په اصل کې مضموم وو ځکه چې واغلامکم اصل کې واغلامکموو دتخفیف دپاره مو میم ساکن کړو بیااجتماع دساکنینو ( واو میم ) دوجې نه مو واوحذف کړو .

وجاز لک الهاء : ددې ټولو مداتو سره په حالت دوقف کې هاء لاحق کول جائز دي ددې دپاره چې دهاء د اضافې دوجې نه مده ښه واضحه شي لکه یازیداه

ای الحاقها : په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : وجاز لک الهاء کې دجواز نسبت هاء طرف ته صحیح نه دي ځکه چې جواز اوعدم جواز په اعراضو کې کیږي او هاء من قبیل الذوات دي

**جواب** : الحاق دمضاف محذوف دي اوهغه عرض دي لهذا نسبت صحیح دي .

في حال : په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : الوقف د الهاء دپاره مفعول فیه دي حالانکه مفعول فیه ظرف زمان وي یامکان دلته ددې نه یو هم نه دي

**جواب** : دلته حال محذوف دي کوم چې ظرف زمان دي .

## ندبه د چا کیدې شي ؟ :

| وَلاَ يُنْدَبُ مِنْ قِسْمِ الْمَنْدُوْبِ الْمُتَفَجَّعِ عَلَيْهِ عَلَماً اِلاَّ الْاِسْمُ الْمَعْرُوْفُ الَّذِيْ اشْتَهَرَ الْمَنْدُوْبُ بِهٖ |
|---|
| اوندبه نه شي کولې دقسم دمندوب متفجع علیه عدمي نه مګراسم معرفه هغه چې مشهور دي مندوب په دې سره |
| لِيُعْذَرَ النَّادِبُ بِمَعْرِفَتِهٖ فِيْ نُدْبَتِهٖ وَ التَّفَجُّعِ عَلَيْهِ فَلاَ يُقَالُ |
| ددې دپاره چې معذور وګڼل شي نادب په معرفت ددې سره په ندبه کې اوپه اظهار دهمدردۍ کې نونه شي ویلې |
| وَا رَجُلاَهْ اِذْ مَا اشْتَهَرَ بِهٰذَا اللَّفْظِ مَنْدُوْبٌ خَاصٌّ اِنْتَقَلَ الذِّهْنُ اِلَيْهِ وَ |
| چې وارجلاه ځکه چې نه دي مشهوربه دې لفظ سره خاص مندوب چې منتقل شي ذهن هغه طرف ته ! او |
| يُعْرَفُ بِهٖ لِيُعْذَرَ النَّادِبُ بِالنُّدْبَةِ عَلَيْهِ . |
| وپیژندل شي په دې سره ددې دپاره چې معذوره وګڼل شي نادب په ندبې کولوسره په دې مندوب باندې |

**خلاصه دمتن** : دصاحب دکافیې دعبارت حاصل دادې چې ندبه صرف دمشهور اودمعروف کیدي شي دغیر معروف اودغیرمشهور نه شي کیدي .

**اغراض دجامي** : من قسمہ: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : ستاسو دا وینا چې ندبه صرف د مشهور او د معروف کیدي شي دا منقوضه ده په یامصیبتاه یاحسرتاه یاویلاه سره ځکه چې دامندوب دي حالانکه نکره ده .

**جواب** : زمونږ مراد دمندوب نه مندوب عدمي دي اوپه ذکر شوي مثال کې مندوب متفجع علیه عدمي نه دي بلکې وجودي دي لهذا نقض به وارد نه وي .

الا الاسم المعروف: دالاسم لفظ یې مقدر راوویستو شارح اشاره کوي چې المعروف صفت دي دموصوف الاسم محذوف .

الذي اشتهر به: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستاسو قاعده ولاینذب الا المعروف منقوضه اوماته ده په وامن قلع باب خیبر سره ځکه چې دلته دغیرمعروف اودنکرې ندبه کولې شي .

**جواب** : دالمعروف نه مراد هغه اسم دي چې دهغې سره مندوب مشهور وي برابره خبره ده که علم وي یا غیر علم چونکې په دې سره حضرت علي رضی الله عنه مشهور اومعروف دي لهذا دده ندبه کول جائز دي .

لیعذر النادب: په دې سره دمندوب دمعروف اودمشهور کیدو دشرط دوجې بیان کوي چې دمندوب مشهور کیدل ځکه ضروري دي چې دمندوب دشهرت دوجې نه ندبه کوونکي په ندبه کولو اوتفجع کې معذور وګڼل شي .

فلایقال: داپه ماقبل باندې تفریع ده چونکه ندبه صرف دمشهور اودمعروف کیدي شي ددې وجې نه وارجلاه نه شي ویلې ځکه چې په دې لفظ سره کوم خاص مندوب مشهور نه دي چې هغه طرف ته ذهن منتقل شي اوهغه په دې سره مشهور وي ددې دپاره چې ندبه کوونکي په ندبې کولو سره معذور وګڼل شي .

## د مندوب په آخر کې د الف د الحاق ممانعت :

وَ امْتَنَعَ اِلْحَاقُ الْاَلِفِ بِصِفَةِ الْمَنْدُوْبِ بَلْ يَجِبُ اَنْ يُلْحَقَ بِمَوْصُوْفٍ مِثْلُ وَا

او ممتنع دي الحاق د الف په صفت د مندوب سره بلکې واجب دي چې الف د موصوف سره لاحق کړې شي لکه وا

زَيْدَاهُ الطَّوِيْلُ لِاَنَّ اِتِّصَالَهٗ بِالصِّفَةِ لَيْسَ كَاِتِّصَالِ الْمُضَافِ بِالْمُضَافِ اِلَيْهِ لِاَنَّهٗ

زيداه الطويل ځکه چې دده صفت سره اتصال د مضاف مضاف اليه سره د اتصال په شان نه دي ځکه چې مضاف

جِئَ بِهٖ لِتَمَامِ الْمُضَافِ فَهُوَ كَالْجُزْءِ بِخِلَافِ الصِّفَةِ فَاِنَّهٗ جِئَ بِهَا بَعْدَ

اليه د مضاف د مکمل کيدو دپاره راوړې شي پس دا په شان د جزء دي په خلاف د صفت ځکه چې دا راوړې شي پس د

تَمَامِ الْمَوْصُوْفِ لِلتَّخْصِيْصِ اَوِ التَّوْضِيْحِ فَلِهٰذَا جَازَ مِثْلُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَاهُ وَلَمْ يَجُزْ مِثْلُ وَازَيْدُ الطَّوِيْلَاهُ

تکميل د موصوف نه د تخصيص او يا د توضيح دپاره ځکه چې يا امير المومنيناه په مثل کې جائز دي او وازيد الطويلاه

خِلَافاً لِيُوْنُسَ فَاِنَّهٗ يَجُوْزُ اِلْحَاقُ الْاَلِفِ بِآخِرِ الصِّفَةِ فَاِنَّ

په مثل جائز نه دي خلاف ثابت دې امام يونس لره ځکه چې هغه د صفت په آخر کې الف لاحق کول جائز ګڼرې ځکه چې

اِتِّصَالَ الْمَوْصُوْفِ بِالصِّفَةِ وَ اِنْ كَانَ فِي اللَّفْظِ اَنْقَصَ مِنَ الْاِتِّصَالِ بَيْنَ الْمُضَافِ وَ الْمُضَافِ اِلَيْهِ

اتصال د موصوف د صفت سره اګرچې په اعتبار د لفظ سره ناقص دي د اتصال نه په مينځ د مضاف او مضاف اليه کې

اِلاَّ اَنَّهٗ اَتَمُّ مِنْهُ مِنْ جِهَةِ الْمَعْنٰى لِاِتِّحَادِهِمَا بِالذَّاتِ فَاِنَّ الطَّوِيْلَ هُوَ زَيْدٌ لَا

مګر اکمل دي دده نه په اعتبار د معنی سره د وجې د اتحاد د دواړو نه په ذات کې ځکه چې طويل هغه زيد دي نه دده نه

غَيْرُهٗ بِخِلَافِ الْمُضَافِ وَ الْمُضَافِ اِلَيْهِ فَاِنَّهُمَا مُتَغَايِرَانِ وَ حَكٰى يُوْنُسُ

غير په خلاف د مضاف مضاف اليه ځکه چې دا دواړه متغاير دي (په اعتبار د معنی سره) او امام يونس حکايت کړې

اَنَّ رَجُلاً ضَاعَ لَهٗ قَدْحَانِ فَقَالَ وَا جُمْجُمَتَيَّ الشَّامِيَّتَيْنَاهُ وَ الْجُمْجُمَةُ الْقَدْحُ.

کړې چې ديوانسان دوه پيالې ضائع شوې نووې ويل چې های زما دوه شامي پيالې او جمجمه پيالې ته وايي.

**خلاصه د متن :** صاحب د کافيې په دې عبارت کې يوه قاعده بيان کړې ده چې د مندوب د صفت په آخر کې د الف لاحق کول ممتنع دي بلکه د موصوف په آخر کې الف لاحق کول واجب دي لکه وازيداه الطويل البته په مضاف او مضاف اليه کې به د الف الحاق د مضاف اليه سره وي ځکه چې يا اميرالمومنيناه جائز دي او وازيد الطويلاه جائز نه دي ليکن په دې کې د امام يونس اختلاف دي دده په نزد به الف د صفت په آخر کې لاحق کول جائز دي.

**اغراض د جامي :** الحاق الالف: په دې عبارت سره غرض د شارح د دوه سوالونو مقدرو جواب ورکول دي:

**سوال** ( ۱ ) : وامتنع کې دامتناع تخصيص د وازيدن الطويلاه سره صحيح نه دي ځکه چې لکه څنګه وازيد الطويلاه ممتنع دي همدارنګې واعمرون الفاضلاه هم ممتنع دي .

**سوال** ( ۲ ) : امتنع فعل دي اوفعل دفاعل تقاضا کوي اودفاعل دپاره مفرد کيدل ضروري دي او وازيدن الطويلاه جمله ده لهذا دافاعل نه شي جوړيدي .

**جواب** : دامتنع فاعل الحاق الالف محذوف دي چې ددې مطلب دادې چې دمندوب دصفت په آخر کې الحاق دالف منع دي بلکه دموصوف سره الحاق دالف واجب دي برابره خبره ده چې هغه هر يو موصوف صفت وي وازيدن الطويلاه سره تخصيص نه دي دلته صرف په طور دتمثيل سره يې ذکر کړي دي لکه شارح دجامي دمثل لفظ زيات کړو دې طرف ته يې اشاره وکړه همدارنګې الحاق الالف کوم چې فاعل محذوف دي هغه مفرد دي لهذا دواړه اشکاله دفع شو .

لان اتصاله : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دموصوف اوصفت اودمضاف اومضاف اليه په مينځ کې دفرق دوجې نه چې په اول دندبه کې د الف الحاق دموصوف په آخر کې کيږي اوپه دويم کې دمضاف اليه په آخر کې (۲) همدارنګې دامتناع ددليل بيان هم دي . (۳) اويونس نحوي دقياس رد هم دي ، حاصل دادې چې دموصوف اتصال او ربط دصفت سره دادهغه اتصال په شان نه دي کوم چې دمضاف اومضاف اليه په مينځ کې کيږي بلکه دمضاف مضاف اليه اتصال شديد اوقوي وي ځکه چې مضاف اليه دمضاف دتتميم اود تکميل دپاره راوړي شي لهذا مضاف اليه دمضاف دپاره په منزله دجز کيدي شي په خلاف دصفت چې دموصوف دتماميدو نه پس دموصوف دتخصيص يادتوضيح دپاره راوړي شي نولهذا مضاف اليه د مضاف دپاره په منزله دجز وي ځکه چې هغه دواړه په منزله دکلمې واحده کې وي ددې وجې نه د مضاف اليه په آخر کې دمندوب الف لاحق کړو او ياامير المومنيناه به ويلي شي چونکې صفت په منزله د موصوف دجزء نه وي ځکه هغه دواړه جدا اومستقلې کلمې شماريږي ددې وجې نه دصفت په آخر کې علامت دمندوب به ورسره لاحق کړو او يازيدن الطويلاه ويل جائز نه دي بلکې دموصوف په آخر کې به الف ملحق کړو او وازيداه الطويل ويل ضروري دي په خلاف ديونس نحوي چې هغه وايي چې دمندوب د صفت په آخر کې علامت دمندوب لاحق کول جائز دي په دې باندې يونس نحوي دوه دليلونه قائم کړي دي يو دليل عقلي اوبل دليل نقلي .

لان اتصال: په دې سره د دليل عقلي بيان کوي چې د دې خلاصه داده چې د موصوف صفت په خپل مينځ کې اتصال او ربط اګرچې په اعتبار د لفظ سره د مضاف اليه د اتصال نه انقص دې ليکن د معنی د لحاظ نه اکمل دې ځکه چې موصوف صفت د ذات په اعتبار سره متحد او شي واحد وي لکه مثال مذکور ته وګورئ چې د زيد او طويل نه يو ذات مراد دې په خلاف د مضاف مضاف اليه چې هغه متحد بالذات نه وي بلکه ديو بل نه غير وي نو چې کله د مضاف اليه په آخر کې علامت د مندوب الحاق جائز دې حالانکه هغه د معنی په اعتبار سره متغاير او ديو بل نه غير دې نو د صفت په آخر کې په طريق اولی سره علامت د مندوب الحاق جائز کيدل په کار دي چې هغه دواړه د معنی په اعتبار سره ديو بل عين وي.

وحکی يونس: په دې سره د دليل نقلي بيان دې چې ديو بانډه چې دوه پيالي ورکې شوي وي نو دې بانډه چي په دې باندې ندبه کوله او ويل يې چې واجمجمتي الشاميتيناه دا د مندوب صفت دې او د دې په آخر کې يې الف لاحق کړي نو د دې نه معلومه شوه چې د مندوب د صفت په آخر کې الف لاحق کول جائز دي.

**د اول دليل جواب**: د نحوي نظر لفظ طرف ته وي نه معنی طرف ته ، د لفظ په اعتبار سره مضاف مضاف اليه په منزله د کلمه واحده کې وي او موصوف صفت په منزله د کلمتين مستقلتين کې وي او اتصال د الف لفظ سره کيږي نه د معنی سره نو لهذا د لفظ اعتبار به وي

**د دوهم دليل جواب**: د بانډه چي دا قول شاذ او غير فصيح دي لهذا دا قول قابل د استدلال نه دي.

والجمجمة القدح: په دې عبارت سره غرض د شارح د جامي په مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ باندې رد کول دي چې مصنف په شرح د مفصل کې د جمجمه معنی قدح الرأس سره کړي په منی د عظم الرأس د سر هډوکي کوم چې په دماغو باندې مشتمل وي ، نو شارح د جامي د جمجمه معنی القدح سره وکړه په مصنف باندې يې رد وکړو وجه د رد داده چې اګرچې جمجمه په معنی د عظم الرأس سره هم راځي ليکن دلته دا نه شي مراد کيدې د دوه وجو نه

(۱) يو د دې وجې نه چې جمجمه په معنی د عظم الرأس د هر انسان دپاره جمجمه واحده کيدې شي نه جمجمتين چې دلته تثنيه ده (۲) دويمه وجه داده چې دلته د جمجمتين صفت الشاميتيناه راوړو دا هم قرينه ده چې دلته پياله مراد ده نه قدح الرأس ورنه معنی به دا وي چې ... هاى زما

دواړه شامي د ماغ حالانکه دا معنی غلطه ده ، نو مصنف رَحِمَهُ اللهُ دوه جوابه ورکړي دي
(۱) قدح الرأس نه مراد هم پياله ده نه عظم الرأس چونکي غټه پياله عـام طور باندې په سر باندې ايخودي شي ددې وجې نه مصنف رَحِمَهُ اللهُ د رأس طرف ته يې اضافت وکړو (۲) اصل کې دمصنف عبارت قدح الكأس وو اضافت بيانيه وو کاتب د غلطي نه دكأس په ځاې رأس ليکلي نو دا سهوه دکاتب ده نه د مؤلف.

## د حرف ندا حذف کول:

| |
|---|
| وَ يَجُوْزُ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ حَذْفُ حَرْفِ النِّدَاءِ إِلاَّ إِذَا كَانَ مُقَارِناً مَعَ إِسْمِ الْجِنْسِ وَ يَعْنِيْ بِهِ |
| اوجائزدي دپاره دقيام دقريني حذف دحرف نداء مگرچې کله مقارن وي داسم جنس سره اوقصد کوي په دې سره |
| مَا كَانَ نَكِرَةً قَبْلَ النِّدَاءِ سَوَاءٌ تَعَرَّفَ بِالنِّدَاءِ كَيَا رَجُلُ أَوْ لَمْ يَتَعَرَّفْ |
| مصنف هغه اسم کوم چې دنداء نه مخکې نکره وي برابره خبره ده که دنداء سره معرفه وي لکه يارجل يامعرفه نه |
| مِثْلُ يَا رَجُلاً لِأَنَّ نِدَاءَهُ لَمْ يَكْثُرْ كَثْرَةَ نِدَاءِ الْعَلَمِ فَلَوْ حُذِفَ مِنْهُ حَرْفُ النِّدَاءِ |
| وي لکه يارجلاً ځکه چې دانداء دعلم دنداء په شان کثيرنه دي پس که چيرته ددې نه حرف نداء حذف کړي شي نو |
| لَمْ يَسْبِقِ الذِّهْنُ إِلَى أَنَّهُ مُنَادًى وَ الْإِشَارَةِ أَيْ وَ إِلاَّ مَعَ إِسْمِ الْإِشَارَةِ لِأَنَّهُ |
| سبقت نه کوي ذهن دې خبرې طرف ته چې دامنادی ده اواسم اشاره يعني که چيرته نه وي سره داسم اشارې ځکه |
| كَإِسْمِ الْجِنْسِ فِي الْإِبْهَامِ وَالْمُسْتَغَاثِ وَالْمَنْدُوْبِ لِأَنَّ الْمَطْلُوْبَ الْمَقْصُوْدَ فِيْهِمَا مَدُّ الصَّوْتِ وَتَطْوِيْلُ |
| چې داپه ابهام کې داسم جنس په شان دي اومستغاث اومندوب ځکه چې په دې دواړو کې مقصود اوږدول آوازاود |
| الْكَلاَمِ وَالْحَذْفُ يُنَافِيْهِ فَبَقِيَ عَلَى هٰذَا مِنَ الْمَعَارِفِ الَّتِيْ يَجُوْزُ فِيْهَا حَذْفُ حَرْفِ النِّدَاءِ |
| کلام دي اوحذف ددې منافي دي نوباقي پاتې شوپه دې باندې دمعارفونه هغه چې جائزوي په دې حذف دحرف نداء |
| الْعَلَمُ سَوَاءٌ كَانَ مَعَ بَدَلٍ عَنْ حَرْفِ النِّدَاءِ كَلَفْظَةِ اللهِ فَإِنَّهُ لاَ يُحْذَفُ مِنْهُ |
| اوپاتې شوعلم برابره خبره ده که داحذف وي سره دبدل دحرف ندا نه لکه لفظ دالله ځکه چې نه شي حذف کولي ددې |
| إِلاَّ مَعَ إِبْدَالِ الْمِيْمِ الْمُشَدَّدَةِ مِنْهُ نَحْوُ اَللّٰهُمَّ أَوْ بِغَيْرِ بَدَلٍ نَحْوُ يُوْسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هٰذَا أَيْ يَا يُوْسُفُ وَلَفْظَةُ |
| نه حرف ندا مگرسره دبدلولو دميم مشدد لکه اللهم يا په غير دبدل نه لکه يوسف اعرض عن هذا يعني يايوسف اولفظ |
| أَيٍّ إِذَا وُصِفَ بِذِي اللاَّمِ نَحْوُ أَيُّهَا الرَّجُلُ أَيْ يَا أَيُّهَا الرَّجُلُ أَوْ بِالْمَوْصُوْفِ بِذِي |
| دای چې کله معرف باللام سره موصوف کړي شي لکه ايهاالرجل يعني ياايهاالرجل يالفظ دای موصوف وي په ذي |
| اللاَّمِ نَحْوُ أَيُّهٰذَا الرَّجُلُ أَيْ يَا أَيُّهٰذَا الرَّجُلُ فَلاَ يَجُوْزُ الْحَذْفُ مِنْ أَيُّهٰذَا مِنْ غَيْرِ أَنْ يَتَّصِفَ هٰذَا بِذِي اللاَّمِ |
| اللام پورې لکه ايهذاالرجل يعني ياايهذا نونه دي جائز حذف دايهذانه په غير ددې نه چې متصف کړي داپه ذي اللام |

| |
|---|
| وَالْمُضَافُ إِلَى اَيِّ مَعْرِفَةٍ كَانَتْ نَحْوُ غُلَامَ زَيْدٍ اِفْعَلْ كَذَا وَالْمَوْصُوْلَاتُ نَحْوُ مَنْ لَا يَزَالُ مُحْسِناً اَحْسِنْ اِلَيَّ وَاَمَّا |
| اوچې مضاف وي هرې معرفې لکه غلام زيد افعل کذا اوموصولات لکه من لايزال محسنا احسن اليّ اوليکن په |
| الْمُضْمَرَاتُ فَشَذَّ نِدَاءُ هَا نَحْوُ يَا اَنْتَ وَيَا اِيَّاکَ. |
| په ضمائرو کې نداء شاذ ده لکه يا انت و يا اياک. |

**خلاصه دمتن** : دصاحب دکافيې دعبارت حاصل دادې چې که چيرته کومه قرينه موجودوي نو د حرفِ ندا حذف کول جائز دي ليکن چې کله حرف اسم جنس يا اسم اشاره يا مستغاث يا مندوب مقارن وي نو ددې حذف کول جائز نه دي .

**اغراض دجامي** : لقيام قرينة : په دې عبارت سره شارح يووهم لرې کړو : وهم داوو چې شايد د حرف نداء حذف على الاطلاق جائز وي برابره خبره ده که قرينه وي يا نه لکه دمصنف د عبارت نه اطلاق فهميږي نو **لقيام قرينة** يې وويل داوهم يې لرې کړو چې دحرف نداء حذف مطلقاً جائز نه دي بلکه په هغه وخت کې جائز دي چې کله څه قرينه موجوده وي .

اذا کان مقارنا : په دې عبارت سره شارح اشاره وکړه چې **مع اسم الجنس** ظرف مستقر په اعتبار د متعلق سره خبر دې دکان محذوف .

يعني به : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : يارجلُ معرفه ده اواسم جنس هم نه دي ځکه چې ددې نه **رجل معين** مراد دي چې کله اسم جنس په فرد مبهم باندې دلالت کوي نوددې نه مخکې حرف نداء حذف کول په کاردي حالانکه داجائز نه دي.

**جواب** : داسم جنس نه مراد هغه اسم دي چې دندا نه مخکې نکره وي برابره خبره ده که دنداء نه پس معرفه وي يانه دمعرفې مثال لکه **يارجل** دنکرې مثال لکه **يارجلاً** نو داسې اسم جنس نه مخکې دحرفِ ندا حذف کول جائز نه دي .

لان ندائه : په دې عبارت سره غرض دشارح وجه دعدم جواز بيانول دي چې داسم جنس نه دحرف ندا حذف کول ځکه جائز نه دي چې داسم جنس ندا دعلم دنداء په شان **کثير الوقوع** نه وي لهذا که چيرته د اسم جنس نه حرفِ ندا حذف کړي شي نوذهن ددې دمنادى کيدو طرف ته سبقت نه کوي نو مقصد به فوت شي .

اى والا مع اسم الاشارة : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دعطف دي د والاشارة عطف دي

په الجنس باندې.

لانه: کې داسم اشارې نه دحرف ندا حذف کولو دعدم جواز وجه بیانوي چې داسم اشارې نه حرف ندا حذف کول ددې وجې نه جائز نه دي چې اسم اشاره په ابهام کې داسم جنس په شان دي نو لکه څنګه چې داسم جنس نه حرف ندا حذف کول جائز نه دي نو همدارنګې داسم اشارې نه هم حرف نداء حذف کول جائز نه دي.

لان المطلوب: په دې عبارت کې دمستغاث اودمندوب نه حرف نداء دحذف کولو دعدم جواز وجه بیانوي چې دمستغاث اودمندوب نه حرف نداء حذف کول ځکه جائز نه دي چې په دې دواړو کې اوږدوالي د آواز مطلوب وي اوحذف ددې منافي دي.

فبقي هذا: داپه ماقبل باندې دتفریع بیان دي چې کله داسم جنس اسم اشاره اودمستغاث اومندوب نه حرف ندا حذف کول جائز نه دي نوهغه معارف چې دهغې نه حرف ندا حذف کول جائز دي نو لاندې ذکر شوي شیان به باقي پاتې وي:

(۱) منادی دعلم نه مخکې حرف ندا حذف کول جائز دي بیا په علم کې تعمیم دي برابره خبره ده که حرف ندا ترې حذف کړي اوددې په عوض په علم باندې بل څیز راوړل شي اویانه داول مثال لکه لفظ د اللهم چې کله لفظ دالله نه حرف ندا حذف کړي شي نوددې په عوض میم مشدد به راوړو اللهم به وایو اوددویم مثال لکه یوسف اعرض عن هذا داپه اصل کې وو یا یوسف اعرض عن هذا دیوسف نه مخکې حرف ندا مو حذف کړه لیکن ددې په عوض مو بل څیز رانه وړو.

(۲) ولفظة ايّ دویمه معرفه ده چې ددې نه مخکې حرف ندا حذف کول جائز دي هغه لفظ دايّ دي برابره خبره ده چې ددې صفت معرف باللام وي یا داسې اسم وي چې موصوف وي دمعرف باللام سره لکه ایها الرجل داپه اصل کې یا ایها الرجل وو ددې نه یې حرف نداء حذف کړي ده ځکه چې دايّ صفت معرف باللام دي اودویم مثال ایهذا الرجل داپه اصل کې وو یا ایهذا الرجل په دې کې هذا دايّ صفت دي بیا داموصوف دي دالرجل معرف باللام سره.

(۳) دریم مقام هغه منادی چې مضاف وي یوې معرفې طرف ته لکه غلام زید افعل کذا په اصل کې دا یاغلام زید افعل کذا وو.

(۴)خلورم مقام چې چيرته حرفِ ندا حذف كول جائز دي هغه موصولات دي لكه من لايزال الخ په اصل كې دا يامن لايزال وو

اما المضمرات: په دې عبارت سره شارح يو وهم لرې كوي هغه وهم دادې چې دموصولاتو نه دحرفِ ندا حذف كول ځكه جائز دي چې هغه معرفه دي نومضمرات هم معرفې دي ددې نه مخكې هم دحرفِ ندا حذف كول جائز كيدل په كار دي نو واما المضمرات نه داوهم يې لرې كړو چې دمضمراتو ندا ډير شاذ اونادر دي ځكه چې ددې نه مخكې حرفِ ندا حذف كول جائز نه دي.

## دحرف ندا په حذف كولو كې ديو سوال جواب:

وَ شَذَّ حَذْفُ حَرْفِ النِّدَاءِ مِنْ اِسْمِ الْجِنْسِ فِيْ اَصْبِحْ لَيْلُ اَیْ صِرْ صُبْحاً يَا لَيْلُ حُذِفَ حَرْفُ

اوشاذدي حذف كول دحرف نداءداسم جنس نه په اصبح ليل كې يعنې صرصبحايا ليل حذف كړې شوه حرف نداء د

النِّدَاءِ مِنَ اللَّيْلِ مَعَ اَنَّهُ اِسْمُ جِنْسٍ شُذُوْذاً قَالَتْهُ اِمْرَأَةُ اِمْرِئِ الْقَيْسِ

الليل نه سره ددې چې دااسم جنس دي په شاذ طريقې سره دالفظ دامرءالقيس ښځې په هغه وخت كې وويل چې

حِيْنَ كَرِهَتْهُ وَ فِيْ اِفْتَدِ مَخْنُوْقُ اَیْ يَا مَخْنُوْقُ قَالَهُ شَخْصٌ وَقَعَ فِي اللَّيْلِ عَلٰى نَائِمٍ مُسْتَلْقٍ

كله ښځې ده لره ناخوښ كړواوافتدمخنوق يعنې يامخنوق داهغه كس وويل چې دشپې په يوچت باندې پروت وواو

فَخَنَقَهُ وَ قَالَ اِفْتَدِ مَخْنُوْقُ حُذِفَ حَرْفُ النِّدَاءِ عَنِ الْمَخْنُوْقِ مَعَ اَنَّهُ

ده مرې بنده كړې شوه اووې ويل چې اى مرې بندونكې فديه راكړه دمخنوق نه حرف نداءيې حذف كړه سره ددې

اِسْمُ جِنْسٍ شُذُوْذاً وَ فِيْ اَطْرِقْ كَرَا اَیْ يَا كَرَوَانُ وَ فِيْهِ شُذُوْذَانِ حَذْفُ

چې هغه اسم جنس دي په شاذ طريقې باندې اواطرق كراكې يعنې ياكروان اوپه دې كې دوه شاذ دي(۱)حذف كول د

حَرْفِ النِّدَاءِ مِنْ اِسْمِ الْجِنْسِ وَ تَرْخِيْمُ غَيْرِ الْعَلَمِ قِيْلَ هِيَ رُقْيَةٌ يَصِيْدُوْنَ بِهَا

حرف نداء داسم جنس نه(۲)اوترخيم دغيرعلم اوويلې شوي دي چې دا يومنتر دي چې په دې باندې ښكار كولې

الْكَرَوَانَ وَ يَقُوْلُوْنَ اَطْرِقْ كَرَا اَطْرِقْ كَرَا اِنَّ النَّعَامَةَ فِي الْقُرٰى فَيَسْكُنُ وَ يُطْرِقُ

شي كروان مرغې اوهغه وايي چې اطرق كرااطراق كراان النعامة فى القرى نوپس بياهغه اوډريږي اوسرلاندې كړي

حَتّٰى يُصَادَ وَ الْمَعْنٰى اَنَّ النَّعَامَةَ الَّذِيْ هُوَ اَكْبَرُ مِنْكَ قَدِ اصْطِيْدَ وَ حُمِلَ

تردې چې ښكاريې كړي اومطلب دادې چې بلاشبه شترمرغ چې دتانه غټ دي هغه مو ښكار كړې دي اوورې مودي

اِلَى الْقُرٰى فَلاَ تَخَلَّ اَيْضاً.

كلې ته نوته هم نه شي پاتې كيدلې.

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافیې د یو سوال مقدر جواب ورکوي چې د دې تفصیل لاندې په شرحه کې ذکر دي :

**اغراض دجامي** : دپورتني عبارت نه ماتن غرض دیو سوال مقدر جواب ورکول دي اوشارح دهغې وضاحت کوي

**سوال** : ستا داوینا چې داسم جنس نه حرف ندا حذف کول جائز نه دي دامنقوضه ده په اصبح لیل ، افتد مخنوق ، اطرق کرا سره ځکه چې په اصبح لیل کې لیل اسم جنس دي د دې نه مخکې حرف ندا حذف کړې شوي ده ، اوپه افتد مخنوق کې مخنوق اسم جنس دي د دې نه حرف ندا حذف کړې شوي ده اوپه اطرق کرا کې کرا اسم جنس دي اود دې نه حرف ندا حذف کړې شوي دي .

**جواب** : نو د دې نه جواب دادې چې دا قول شاذ دي .

حذف حرف النداء : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ښه ماضي مجهول دي او اصبح لیل د دې نائب فاعل دي حالانکه د دې نائب فاعل جوړول صحیح نه دي ځکه چې نائب فاعل اسم وي اوداسم مفرد قسم وي اودلته اصبح لیل جمله ده لهذا د دې نائب فاعل جوړول صحیح نه دي .

**جواب** : دښه نائب فاعل اصبح لیل نه دي بلکه نائب فاعل محذوف دي کوم چې حذف حرف النداء دي اوهغه مفرد دي لهذا د دې نائب فاعل جوړول صحیح دي اود اصبح لیل نه مخکې في مقدر دي او داد ښه دپاره ظرف دي .

ای صر صبحا : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داصبح همزه دتعدیې دپاره ده لکه داکوم همزه دتعدیې دپاره دي نوپه دې وخت کې نه معنی داوي چې اصبح یالیل شیئاً آخر ظاهره داده چې دامعنی صحیح نه ده .

**جواب** : داهمزه دصیرورت دپاره ده نه دتعدیې دپاره دااصبح لیل معنی ده صر صبحا یالیل .

قالته امرأة . په دې عبارت سره شارح دابیانوي چې داقول دامرء القیس دښځې دي دا د دې ښځې په هغه وخت کې وویل چې کله داښځې دصحبت دامرء القیس نه تنګه راغله

افتد مخنوق : دا په اصل کې افتد يامخنوق وو ، ويلې شي چې سليک بن سلکه په چت باندې پروت وو يوغل دده مرې باندې زور وکړو او وې ويل چې افتد مخنوق ، څه مال راکړه بيابه دې پريږدم ، د مخنوق نه حرف نداء دشذوذ په طريقې باندې حذف کړې شوي دي باوجود ددې چې دا اسم جنس دي

اطرق کرا : دريم مثال ، اصل کې دا ياکروان وو شارح وايي چې په دې کې دوه شذوذه دي :

(۱) : دااسم جنس نه حرف نداء حذف کول

(۲) : غير علم کې ترخيم کول ، شارح ددې مثال وضاحت کوي او وايي چې مشهوره داده چې دايو منتر دي چې ددې په ذريعه باندې دکروان مرغه ښکار کيږي اوهغه ته ويل شي چې اطرق کرا اطرق کرا ان النعامة فى القرى ، اى کروان مرغه خپل سر لاندې راتاو کړه ځکه چې شتر مرغ په کلې کې دي مطلب دادې چې شتر مرغ چې کوم دتانه غټ دي دهغې ښکار موکړې دي او هغه مو کلي ته رسولې دي نو ته هم رانه بچ نه شي پاتې کيدلې اوښکار کيدې شې .

## د منادى حذف کول :

| وَ قَدْ يُحْذَفُ الْمُنَادىٰ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ جَوَازاً نَحْوُ اَلا يَا اسْجُدُوْا بِتَخْفِيْفِ اَلاَ عَلٰى |
|---|
| اوکله منادى دقرينې په موجودګۍ کې جوازاً حذف کولې شي لکه الايااسجدوا الاد تخفيف سره په دې خبره باندې |
| اَنَّهٗ حَرْفُ تَنْبِيْهٍ وَيَا حَرْفُ النِّدَاءِ اَىْ يَا قَوْمُ اسْجُدُوْا وَ الْقَرِيْنَةُ اِمْتِنَاعُ دُخُوْلِ يَا عَلَى الْفِعْلِ |
| چې داحرف تنبيه دي اوياء حرف نداء ده يعني ياقوم اسجدوااوقرينه دياءپه فعل باندې ددخول ممتنع کيدل دي |
| بِخِلَافِ قِرَاءَةِ اَلاَّ يَسْجُدُوْا بِتَشْدِيْدِ اللاَّمِ لِاَنَّهٗ لَيْسَ مِنْ هٰذَا الْبَابِ فَاِنَّ اَنْ حِيْنَئِذٍ نَاصِبَةٌ |
| په خلاف دالايسجدوپه تشديد دلام سره ځکه چې دانه دې ددې باب نه ځکه چې ان په دې وخت کې ناصب دې دپاره |
| لِلْمُضَارِعِ اُدْغِمَتْ نُوْنُهَا فِىْ لاَمِ لاَ وَ يَسْجُدُوا فِعْلٌ مُضَارِعٌ سَقَطَ نُوْنُهٗ بِالنَّصْبِ. |
| دمضارع مدغم کړې شونون ددې په لام کې اويسجدوافعل مضارع دې ساقط شوي دې نون ددې دنصب دوجې نه . |

**خلاصه دمتن اوتشريح** : دصاحب دکافيې دعبارت حاصل دادې چې کله په وخت دقيام د قرينې د منادى په جوازي طور باندې حذف کولې شي لکه الا يااسجدوا همزه مفتوحه اودلام د تخفيف سره چې داحرف تنبيه دي اويا حرف ندا دي اومنادى محذوف ده کوم چې قوم دي چې په اصل کې وو الاياقوم اسجدوا اودمنادى په حذف باندې قرينه داده چې ياء حرف ندا ده او حرف ندا په فعل باندې نه داخليږي ددې نه معلومه شوه چې منادى محذوف ده په خلاف دهغه

چې کله دې ته الايسجدوا په تشديد دلام سره وويل شي نو په دې وخت کې به دا زمونږ د بحث نه خارج وي ځکه چې په دې صورت کې ان مصدريه د فعل مضارع د پاره ناصب وي ، الا په اصل کې ان لا وو نون دلام د قريب المخرج دوجې نه په لام سره بدل کړې شو او لام مو په لام کې مدغم کړو نو الا شو او يسجدوا فعل مضارع ده چې د دې نون ان ناصبه دوجې نه حذف شو .

## د فعل د حذف دريم مقام :

اَلثَّالِثُ مِنْ تِلْکَ الْمَوَاضِعِ الْاَرْبَعَةِ الَّتِيْ وَجَبَ حَذْفُ نَاصِبِ الْمَفْعُوْلِ بِهٖ فِيْهَا مَا اَیْ مَفْعُوْلٌ بِهٖ اُضْمِرَ

دريم د هغو ځايونو چې په هغې کې د مفعول به ناصب حذف کول واجب دي يعنې هغه مفعول به دې چې مضمر وي

اَیْ قُدِّرَ عَامِلُهُ النَّاصِبُ لَهٗ عَلٰی شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ اَلشَّرِيْطَةُ وَ الشَّرْطُ وَاحِدٌ وَ اِضَافَتُهَا اِلَی التَّفْسِيْرِ

يعنې د دې عامل ناصب مقدر کړې شوې وي په شرط د تفسير الشريطة او الشرط يو دي او د دې اضافت تفسير ته

بَيَانِيَّةٌ اَیْ مَا اُضْمِرَ عَامِلُهٗ بِنَاءً عَلٰی شَرْطٍ هُوَ تَفْسِيْرُهٗ اَیْ تَفْسِيْرُ الْعَامِلِ

بيانيه دې يعنې هغه چې مضمر وي عامل د دې او بناء وي به يو شرط سره چې هغه تفسير دې يعنې تفسير د عامل

بِمَا بَعْدَهٗ وَ اِنَّمَا وَجَبَ حَذْفُهٗ حِيْنَئِذٍ اِحْتِرَازاً عَنِ الْجَمْعِ بَيْنَ الْمُفَسَّرِ

چې د ما بعد سره وي او به تحقيق سره واجب دې حذف د دې په دې وخت کې احترازيې و کړو د جمع نه په مينځ د مفسر

وَ الْمُفَسِّرِ وَ هُوَ اَیْ مَا اُضْمِرَ عَامِلُهٗ عَلٰی شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ کُلُّ اِسْمٍ بَعْدَهٗ فِعْلٌ اَوْ شِبْهُهٗ

او مفسر کې او هغه يعنې ما اضمر عامله علی شريطة التفسير هر هغه اسم دې چې د هغې نه پس فعل يا شبه فعل وي

اِحْتَرَزَ بِهٖ عَنْ نَحْوِ زَيْدٌ اَبُوْکَ وَلاَ يُرِيْدُ بِهٖ اَنْ يَلِيَهُ الْفِعْلُ اَوْ شِبْهُهٗ مُتَّصِلاً بِهٖ

احترازيې وکړو په دې سره د زيد ابوک د مثل نه او نه دې مراد په دې سره چې د امتصل وي د فعل يا د شبه فعل سره

بَلْ اَنْ يَکُوْنَ الْفِعْلُ اَوْ شِبْهُهٗ جُزْءَ الْکَلاَمِ الَّذِيْ بَعْدَهٗ نَحْوُ زَيْداً عَمْرٌو ضَرَبَهٗ وَزَيْداً اَنْتَ ضَارِبُهٗ

بلکه مراد دا دې چې فعل يا شبه فعل د دې کلام جزوي کوم چې د دې نه پس وي لکه زيدا عمرو ضربه او زيدا انت ضاربه

مُشْتَغِلٌ ذٰلِکَ الْفِعْلُ اَوْ شِبْهُهٗ عَنْهُ اَیْ عَنِ الْعَمَلِ فِيْ ذٰلِکَ الْاِسْمِ بِضَمِيْرِهٖ اَیْ بِالْعَمَلِ

اعراض کونکي وي د دې فعل يا شبه فعل د دې نه يعنې د عمل نه په دې اسم کې د ضمير سره يعنې په عمل کولو

فِيْ ضَمِيْرِهٖ اَوْ فِيْ مُتَعَلِّقِهٖ اَیْ مُتَعَلِّقِ ذٰلِکَ الْاِسْمِ اَوْ مُتَعَلِّقِ ضَمِيْرِهٖ وَ حَاصِلُهٗ

کې د ضمير سره يا د دې د متعلق سره يعنې د متعلق د دې اسم سره او يا د متعلق د ضمير سره او حاصل د دې دا دې چې

اَنْ يَکُوْنَ الْفِعْلُ اَوْ شِبْهُهٗ مُشْتَغِلاً بِالْعَمَلِ فِيْ ضَمِيْرِ ذٰلِکَ الْاِسْمِ اَوْ مُتَعَلِّقِهٖ فَارِغاً عَنِ

چې فعل يا شبه فعل د دې مشغول وي په عمل سره په ضمير د دې اسم کې او يا د متعلق د دې کې چې فارغ وي د

الْعَمَلِ فِيْهِ بِسَبَبِ ذٰلِکَ الْاِشْتِغَالِ لاَ بِسَبَبٍ آخَرَ بِحَيْثُ لَوْ سُلِّطَ

| |
|---|
| عمل نه په دي کې په سبب ددې اشتغال سره نه په بل سبب سره په داسې شان سره چې که چیرته مسلط کړې شي |
| بِمُجَرَّدِ رَفْعِ ذٰلِکَ الْاِشْتِغَالِ عَلَيْهِ اَیْ عَلٰی ذٰلِکَ الْاِسْمِ هُوَ اَیْ اَحَدُ الْاَمْرَیْنِ الْفِعْلُ اَوْ شِبْهُهُ بِعَیْنِهٖ |
| صرف د رفع کولو ددې اشتغال په دې باندې يعني په دې اسم باندې هغه يعني يو د دوه امرينو فعل يا شبه فعل بعينه |
| اَوْ مُنَاسِبُهٗ اَیْ مَا یُنَاسِبُهٗ بِالتَّرَادُفِ اَوِ اللُّزُوْمِ لَنَصَبَهٗ اَیْ لَنَصَبَ |
| يا ددې مناسب يعني هغه فعل چې مناسب وي په اعتبار د ترادف او يا د لزوم سره نو نصب به ورکوي يعني نصب به |
| اَحَدُ هٰذَیْنِ الْاَمْرَیْنِ الْاِسْمَ بِالْمَفْعُوْلِیَّةِ کَمَا هُوَ الظَّاهِرُ الْمُتَبَادِرُ |
| ورکوي يو ددې امرينو اسم ته د مفعوليت د وجې نه لکه چې ظاهر او متبادر دي پس ضمير يا ددې د متعلق سره نو |
| فَبِقَیْدِ الْاِشْتِغَالِ بِالضَّمِیْرِ اَوْ مُتَعَلِّقِهٖ خَرَجَ نَحْوُ زَیْدًا ضَرَبْتُ وَبِقَیْدِ الْفَرَاغِ عَنِ الْعَمَلِ فِیْهِ بِمُجَرَّدِ ذٰلِکَ الْاِشْتِغَالِ |
| په قيد د اشتغال بالضمير او متعلق ددې نه خارج شو زيدا ضربت مثال او په قيد د فراغ عن العمل فيه بمجرد ذلک الاشتغال |
| خَرَجَ نَحْوُ زَیْدٌ ضَرَبْتُهٗ فَاِنَّ الْمَانِعَ عَنْ عَمَلِ ضَرَبْتُهٗ فِیْ زَیْدٍ لَیْسَ بِمُجَرَّدِ اِشْتِغَالِهٖ بِضَمِیْرِهٖ فَاِنَّ |
| خارج شو زيد ضربته مثال ځکه چې مانع د عمل د ضربته په زيد کې نه دې صرف د اشتغال نه په ضمير پورې ځکه چې |
| عَمَلَ مَعْنَی الْاِبْتِدَاءِ فِیْهِ وَ رَفْعَهٗ اِیَّاهُ اَیْضاً مَانِعٌ عَنْ ذٰلِکَ وَ بِقَیْدِ النَّصْبِ بِالْمَفْعُوْلِیَّةِ |
| عمل د معنى د ابتداء په دې کې او رفع ورکول دې، دې ته هم دا رنګې مانع دې ددې نه او په قيد د نصب بالمفعولية |
| خَرَجَ خَبَرُ کَانَ فِیْ نَحْوِ زَیْداً کُنْتُ اِیَّاهُ. |
| سره خارج شو خبر د کان په دې مثال کې چې زيدا کنت اياه. |

**خلاصه د متن :** هغه مواضع اربعه چې په هغې کې د مفعول به عامل ناصب حذف کول جائز دي په هغې کې ددې نه دريم مقام ما اضمر عامله على شريطة التفسير دي ، ددې تعريف دا دې چې ما اضمر عامله هر هغه اسم دې چې د هغې نه پس فعل يا شبه فعل وي او هغه فعل يا شبه فعل ددې اسم نه اعراض وکړي او ددې ضمير يا ددې متعلق کې عمل کوي ددې حيثيت نه که چيرته دې فعل يا شبه فعل ته يا ددې مناسب مراد ته يا مناسب لازم په دې اسم باندې مقدم کړې شي نو هغه دې ته د مفعوليت په بناء باندې نصب ورکوي.

**اغراض د جامي :** من تلک: په دې سره شارح د جامي دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې په الثالث باندې الف لام د عهد دې او مراد دا دې چې هغه مواضع اربعه په کوم کې چې د مفعول به عامل ناصب حذف کول واجب دي په هغې کې دريم ځاې ما اضمر عامله على شريطة التفسير دي.

اى مفعول به: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دما نه متبادرالى الذهن ماموصوله دي كوم چې معرفه دي چې كله مبتدا اوخبر دواړه معرفه وي نو ضمير دفصل راوړل ضروري وي ددې دپاره چې دخبر اودنعت په مينځ كې امتياز راشي لهذا دلته ضمير دفصل په كاروو الثالث هو ما كيدل په كار وو .

**جواب** : شارح اى مفعول به نكره راوړه ددې جواب وركوي چې ماموصوفه ده كومه چې نكره وي ځكه چې ضمير دفصل راوړل ضروري نه دي .

اى قدر: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : د مصنف دعبارت نه دامعلوميږي چې ضمير هم عامل وي حالانكه ددې څوك قائل نشته .

**جواب** : دلته داضمار نه ددې لغوي معنى اخفاء اوستر مراد دى اصطلاحي معنى ضمير مراد نه دي .

الناصب له : شارح اشاره وكړه دعامل اضافت دضمير په طرف دعهد دپاره دي ددې نه خاص عامل ناصب مراد دي .

الشريطة والشرط واحد: په دې عبارت سره غرض دشارح ددري سوالونو جوابات وركول دي :

**سوال ( ۱ )** : شريطة دفعيلة په وزن دي كوم چې دمفعول په معنى كې وي نوشريطه به دمشروط په معنى كې وي اومعنى به داوي چې هغه مفعول به چې دهغې عامل مقدر كړي شوي وي دمشروط په تفسير باندې دامعنى ددې مقام سره مناسب نه ده .

**سوال ( ۲ )** : دشريطه معنى علامت دي لكه چې ويلي شي اشراط الساعة يعني علاماتها دامعنى هم ددې مقام سره مناسب نه ده .

**سوال ( ۳ )** : مصنف دنورو نحويانو مخالفت ولې وكړو حالانكه نور نحويان ددې نوم مااضمر عامله على شرط التفسير ردي ماتن دشرط په ځاې شريطة ولې وويل ؟

**جواب** : شارح ددري واړو سوالاتو جواب وركړي چې دلته شريطه دشرط په معنى كې ده په دواړو كې كوم فرق نشته لهذا درې واړه سوالات رفع اوختم شو .

واضافتها الى التفسير بيانية: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : شريطة التفسير مركب اضافي دي اوپه دې كې مضاف اليه په مينځ كې تغاير

وي او دلته تغاير نشته ؟

**جواب** : دشريطه تفسير طرف ته اضافت ،اضافت بيانيه دي په دې کې تغاير شرط نه دي البته د اضافت په نورو اقسامو کې تغاير ضروري وي .

**اى ما اضمر عامله**: په دې کې دحاصل معنى بيان کوي .

**بناء**: په دې کې اشاره کړي ده چې په متن کې کلمه د على بنائيه ده همدارنګې يې اشاره وکړه چې على شريطة التفسير په اعتبار دمتعلق سره دبناء مفعول له دي دمااضمر دپاره .

**اى تفسير العامل**: په دې عبارت سره يې اشاره کړي ده چې په التفسير باندې الف لام مضاف اليه د ( عامل ) په عوض کې ده اوس به يې معنى داوي چې هغه مفعول به چې دهغې عامل مقدر کړې شوي وي اويو دشرط په بناء باندې وي او هغه شرط ددې تفسير يعنې دعامل تفسير وي ددې مابعد سره .

**وانما وجب**: په دې عبارت سره شارح په ما اضمر عامله کې دعامل ناصب دحذف کولو دوجوب وجه بيانوي چې عامل حذف کول ددې وجې نه واجب دي چې که چيرته داحذف نه کړي نو. دمفسر او دمفسَر اجتماع به لازم راشي او هغه جائز نه دي .

**اى ما اضمر**: په دې عبارت سره د هُو دضمير مرجع متعين کړه چې د هُوَ ضمير مرجع ما اضمر دي .

**واحترز**: په دې عبارت کې د بعده دفعل اوشبهه دقيد فائده بيانول دي چې داقيد احترازي دي د زيد ابوک دمثال نه ځکه چې په دې کې د زيد نه پس فعل ياشبه فعل نه دي .

**ولا يرد**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د مااضمر عامله تعريف جامع نه دي ځکه چې داپه هغه زيد باندې نه صادقيږي کوم چې په زيدا عمرو ضربه او زيدا انت ضاربه کې واقع دي ځکه چې ددې نه پس فعل ياشبه فعل نه دي بلکه ددې نه پس اسم واقع دي هغه عمرو او انت دي حالانکه دادواړه مثالونه هم د مااضمر عامله دقبيل نه دي .

**جواب** : د بعده فعل اوشبهه نه دامراد نه دي چې هغه فعل ياشبه فعل ددې اسم سره متصل وي بلکې ددې نه مراد دادي چې ددې اسم نه پس چې کوم کلام واقع وي فعل ياشبه فعل ددې جز

وي او زيدا عمرو ضربه اوزيد انت ضاربه کې هم د زيد نه پس چې کوم کلام واقع دي فعل ياشبه فعل د دې جزء دي .

ذلک الفعل : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دضمير اود دې په مرجع کې مطابقت ضروري وي اودلته مطابقت نشته ځکه چې ضمير دواحد دي اومرجع دوه شيان ( فعل ، شبه فعل ) دي .

**جواب** : دضمير مرجع احد الامرين دي لکه کلمه د أوْ نه معلوميږي .

عن العمل : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : اشتغال اوفراغ دعمل نه کيږي نه داسم نه اود عنه اود بضميره مرجع خو اسم دي نو دا څنګه صحيح دي .

**جواب** : دضمير مرجع عمل ده اواسم دضمير مرجع جوړول دادنى ملابست دوجې نه ده اوهغه ادنى ملابست دادي چې اسم دعمل داثر مظهر اومحل وي .

اى متعلق : په دې عبارت کې بيان دمرجع دي اشاره يې وکړه چې دمتعلقه دضمير مرجع کې اختيار دي برابره خبره ده چې ددې مرجع اسم جوړوي اوکه ضمير .

وحاصله : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دلته د اشتغال معنى حقيقي مراد ده، يا معنى مجازي فراغ مراد ده که معنى حقيقي وي، نو باء ددې صله جوړول صحيح دي، ليکن عن صله جوړول صحيح نه دي، که مجازي معنى فراغ مراد وي، نو عن صله جوړول صحيح او باء صله جوړول صحيح نه دي او که دواړه مراد وي، نو جمع بين الحقيقة والمجاز راځي او جمع بين الحقيقة والمجاز دا ناجائز ده .

**جواب** : دلته داشتغال معني حقيقي مراد ده پاتې شو دا سوال چې په دې صورت کې عن ددې صله جوړول صحيح نه دي نو ددې جواب دادې چې عن د مشتغلٌ صله ده ليکن مشتغل متضمن دي ، معنى د فارغاً ته ګويا دلته صنعت تضمين اختيار کړې شوې دي، د صنعت تضمين مطلب دادي چې د يو فعل شبه فعل نه دويم فعل يا شبه د معنى مراد واخستل شي دلته هم د اشتغال نه دفراغ معنى اخستل شوې ده نو تقدير دعبارت داسې شو چې مشتغل بضميره او متعلقه حال کونه فارغاً عن العمل في ذلك الاسم

بسبب ذلك الاشتغال لا بسبب آخر : په دې عبارت سره غرض دشارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : د ما اضمر عامله تعريف منقوض اومات شويه زيدا هل ضربته باندې دلته د ضربت زيداً نه اعراض کول اوددې په ضمير کې عمل کول دي، ليکن که چيرته دا په زيد باندې مسلط کړې شي، نو دا زيد ته نصب نه ورکوي.

**جواب** : مراد دادې چې فعل يا شبه فعل په دې اسم کې عمل کولو نه اعراض او فراغ فقط دهمدې اشتغال دوجې نه وي، نه د بلې وجې نه او زيدا هل ضربته کې ضربت اعراض او فراغ عن العمل صرف داشتغال بالضمير دوجې نه ، نه دي، بلکې دلته داعراض وجه هغه هل استفهاميه دي، ځکه د استفهام ما بعد په ما قبل کې عمل نه شي کولې .

بحيث لو سلط: شارح د بحيث اضافه وکړه، نو په دې سره دابيانوي چې جمله شرطيه لوسلط فيه احترازي دي، د زيد ذهب به نه احتراز دي .

بمجرد رفع ذلك الاشتغال: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د ما اضمر عامله تعريف دخول دغير نه مانع نه دي، ځکه چې دا په هغه زيد باندې صادق راځي کوم چې زيد ضربته کې واقع دي، ځکه چې هغه اسم دي او ددې نه پس داسې فعل واقع دي کوم چې ددې اسم په ضمير کې دعمل کولو د وجې نه په خپله اسم کې عمل کولو ته اعراض کوي، او هغه فعل ددې حيثيت نه دي، چې که دغه فعل زيد باندې مسلط شي، نو هغه به د نه مفعوليت د وجې نه نصب ورکوي حالانکه هغه د ما اضمر عامله دباب نه ، نه دي .

**جواب** : مطلب دادې چې د فعل په اسم کې عمل کولو نه مانع فقط د فعل ضمير اسم يا متعلق اسم کې عمل کولو سره مشغول کيدل دي، څه نور مانع نه وي، او که اشتغال رفع شي، نو اسم ته به د مفعوليت په بناء سره نصب ورکوي او په ذکر شوي مثال کې يو مانع شته دي، هغه د زيد مرفوع بالابتداء کيدل دي .

اى على ذلك الاسم : په دې عبارت سره شارح د عليه دضمير مرجع متعين کړه .

هو اى احد الامرين : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د راجع او مرجع په مينځ کې مطابقت نشته هُوَ ضمير واحد او مرجع فعل شبه فعل دوه څيزونه دي

**جواب** : مرجع احد الامرين دي کومه چې د کلمې د او نه معلوميږي.

الفعل او شبهه په دې عبارت سره شارح د احد الامرين مصداق بيان کړو.

اي ماينا سبه بالترادف واللزوم: په دې عبارت سره غرض د شارح ديو وهم لرې کول دي :

**وهم** : شايد چې د مناسب نه مراد فقط مناسب مرادف وي، ځکه چې همدغه مشهور او متبادر الى الذهن دي ، نو دلته يې هغه وهم لرې کړو، چې د مناسب نه مراد مناسب لازم او مرادف دواړه دي.

اي لنصب احد هذين الامرين: دلته شارح د نَصَبَ د هُوَ ضمير مستتر مرجع بيان کړه او د الاسم په لنصبه کې د هٔ ضمير بارز منصوب مرجع بيان کړه.

بالمفعولية : د قيد وجه په خپله شارح دجامي رحمه الله مخکې ذکر کوي.

فبقيد : په دې عبارت شارح دقيودو دفوائدو بيان کوي: (۱) اشتغال بالضمير او دمتعلقه د قيد نه زيد ضربت مثال خارج شو، ځکه چې په دې کې د زيد نه پس چې کوم فعل واقع دي هغه د زيد ضمير يا په متعلق کې دعمل کولو سره مشغول نه دي.

بمجرد ذلک الاشتغال: په دې قيد سره د زيد ضربته مثال خارج شو، ځکه چې په زيد کې د ضربته عمل کولو نه مانع صرف ... زيد ضمير سره مشغوليدل نه دي، بلکې په زيد کې معنى د ابتداء عمل کول او دې ته ابتداء په بناء رفع ورکول هم مانع دي.

بالمفعولية : په دې قيد سره د کان خبر خارج شو، کوم چې په زيد کنت اياه کې واقع دي ، ځکه چې زيد اګر چې اسم دي او ددې نه پس داسې فعل واقع دي کوم چې په ضمير کې دعمل کولو وجه نه ، چې په خپله په دې کې عمل کولو نه اعراض کوي او هغه فعل ددې حيثيت نه دي، چې که چيرته دا په دې باندې مسلط کړې شي نو دې ته نصب ورکوي ، ليکن دا نصب د مفعوليت د وجې نه ، نه دي ، بلکې د کان د خبر د وجې نه دي ، ددې وجې نه دې ته ما اضمر نه ويلې کيږي.

# د ما اضمر عامله څلور صورتونه :

وَ هٰهُنَا صُوَرٌ اَرْبَعٌ اِحْدٰهَا اِشْتِغَالُ الْفِعْلِ بِالضَّمِيْرِ مَعَ تَقْدِيْرِ تَسْلِيْطِهٖ بِعَيْنِهٖ
دلته څلور صورتونه دي يو مشغوليدل دفعل دي دضمير سره، سره دتقدير دمسلط کيدونه په عين ددې باندې

وَ الثَّانِيَةُ اِشْتِغَالُهٗ بِالضَّمِيْرِ مَعَ تَقْدِيْرِ تَسْلِيْطِ مَا يُنَاسِبُ الْفِعْلَ
کې دويم مشغوليدل ددې دضمير سره، سره دتقدير دمسلط کيدو په هغه صورت کې چې مناسب وي دفعل

بِالتَّرَادُفِ وَ الثَّالِثَةُ اِشْتِغَالُ الْفِعْلِ بِالضَّمِيْرِ مَعَ تَقْدِيْرِ تَسْلِيْطِ مَا
سره دوجې د ترادف نه اودريم مشغوليدل دفعل دي دضمير سره، سره دتقدير دمسلط کيدو دهغه صورت چې

يُنَاسِبُ الْفِعْلَ بِاللُّزُوْمِ وَ الرَّابِعَةُ اِشْتِغَالُ الْفِعْلِ بِالْمُتَعَلِّقِ وَلَا يُتَصَوَّرُ حِيْنَئِذٍ
مناسب وي دفعل سره دوجې دلزوم نه اوڅلورم مشغوليدل دفعل متعلق سره اونه متصور کيږي په دې وخت کې

اِلَّا تَقْدِيْرُ تَسْلِيْطِ الْفِعْلِ الْمُنَاسِبِ بِاللُّزُوْمِ وَلِهٰذَا اَوْرَدَ الْمُصَنِّفُ اَرْبَعَةَ اَمْثِلَةٍ ثَلٰثَةٌ مِنْهَا لِلْمُشْتَغِلِ
مګر تقدير دمسلط کيدو دمناسب فعل نو ددې وجې نه مصنف راوړه څلور مثالونه دري ددې نه دمشغوليدو دي

بِالضَّمِيْرِ بِاَقْسَامِهِ الثَّلٰثَةِ وَوَاحِدٌ لِلْمُشْتَغِلِ بِالْمُتَعَلِّقِ وَالْاَحْسَنُ فِيْ تَرْتِيْبِهَا حِيْنَئِذٍ تَاخِيْرُ
د ضمير سره د خپلو دري قسمونو سره اويو د متعلق سره اوخه په ترتيب د مثالونو کې نو په دې وخت کې تاخيرد

مِثَالِ الْمُشْتَغِلِ بِالْمُتَعَلِّقِ كَمَا لَا يَخْفٰى وَجْهُهٗ مِثْلُ زَيْدًا ضَرَبْتُهٗ مِثَالُ الْفِعْلِ
هغه مثال چې مشتغل وي د متعلق سره لکه څنګه چې ددې وجه پټه نه ده لکه زيدا ضربته دا مثال دي دهغه فعل

الْمُشْتَغِلِ بِالضَّمِيْرِ مَعَ تَقْدِيْرِ تَسْلِيْطِهٖ بِعَيْنِهٖ وَزَيْدًا مَرَرْتُ بِهٖ مِثَالُ الْفِعْلِ
چې مشتغل وي دضمير سره، سره دتقدير د مسلط کيدو ددې دعين سره او زيداً مررت به دا مثال دي دهغه فعل چې

الْمُشْتَغِلِ بِالضَّمِيْرِ مَعَ تَقْدِيْرِ تَسْلِيْطِ مَا يُنَاسِبُهٗ بِالتَّرَادُفِ فَاِنَّ مَرَرْتُ بَعْدَ تَعْدِيَتِهٖ
مشتغل وي دضمير سره، سره دتقدير دمسلط کيدو دهغه چې مناسب وي د ترادف سره څکه مررت پس دمتعدي

بِالْبَاءِ مُرَادِفٌ لِجَاوَزْتُ وَ زَيْدًا ضَرَبْتُ غُلَامَهٗ مِثَالُ الْفِعْلِ الْمُشْتَغِلِ بِالْمُتَعَلِّقِ
کيدونه د با سره نو دا مرادف دي جاوزت او زيداً ضربت غلامه دا مثال دي دهغه فعل چې مشتغل وي د متعلق سره

مَعَ تَقْدِيْرِ تَسْلِيْطِ الْفِعْلِ الْمُنَاسِبِ بِاللُّزُوْمِ وَ زَيْدًا حُبِسْتُ عَلَيْهِ مِثَالُ الْفِعْلِ
سره دتقدير دمسلط کيدو دفعل مناسب دلزوم سره او زيدا حبست عليه دا مثال دي دهغه فعل چې مشتغل وي

الْمُشْتَغِلِ بِالضَّمِيْرِ مَعَ تَقْدِيْرِ تَسْلِيْطِ مَا يُنَاسِبُهٗ بِاللُّزُوْمِ فَاِنَّ حَبْسَ الشَّيْءِ
دضمير سره ..سره دمسلط کيدو د هغه تقدير چې مناسب وي دلزوم سره څکه چې حبس کول ديو څيز په بل څيز

عَلَى الشَّيْءِ تَلْزَمُهٗ مُلَابَسَتُهٗ لِلْمَحْبُوْسِ عَلَيْهِ يُنْصَبُ زَيْدٌ فِيْ هٰذِهِ الْاَمْثِلَةِ بِفِعْلٍ
باندې دا لازموي ملابست دمحبوس عليه سره نو نصب ورکولې شي زيدته په دې مثالونو کې په داسې فعل سره

| |
|---|
| مُفَسِّرٍ يُفَسِّرُهُ مَا بَعْدَهُ اَیْ ضَرَبْتَ يَعْنِيْ اَنَّ الْفِعْلَ الْمُفَسَّرَ النَّاصِبَ لِزَيْداً فِيْ زَيْداً ضَرَبْتُهُ |
| چي مضمر وي او د مابعد تفسير کوي يعني ضربت يعني هغه فعل مفسر چي نصب ورکوي زيداً ته په زيداً ضربته |
| ضَرَبْتُ الْمُقَدَّرُ فَاِنَّ الْاَصْلَ فِيْهِ ضَرَبْتُ زَيْداً ضَرَبْتُهُ اُضْمِرَ ضَرَبْتُ الْاَوَّلُ لِوُجُوْدِ |
| کي چه هغه ضربت مقدر دي خکه اصل په دې کي ضربت زيداً ضربته دي نو مضمر کړي شو اول ضربت دوجي د |
| مُفَسِّرِهِ اَعْنِيْ ضَرَبْتُ الثَّانِيْ وَعَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ جَاوَزْتُ فَاِنَّهُ مُفَسَّرٌ بِمَا يُرَادِفُهُ |
| وجود د مفسر نه چي هغه دويم ضربت دي او په همدې قياس باندي جاوزت خکه چي دا مفسر دي د هغه څه چي مرادف |
| اَعْنِيْ مَرَرْتُ بِهٖ وَ اَهَنْتُ فَاِنَّهُ مُفَسَّرٌ بِمَا يَسْتَلْزِمُهُ اَعْنِيْ |
| وي د دې سره چي قصد کوم زه په مررت به او اهنت سره خکه چي دا مفسر دي د هغه څه سره چي مستلزم وي چي قصد |
| ضَرَبْتُ غُلَامَهُ فَاِنَّ ضَرَبَ الْغُلَامِ يَسْتَلْزِمُ اِهَانَةَ سَيِّدِهٖ وَلَا بَسْتُ فَاِنَّهُ مُفَسَّرٌ بِمَا يَسْتَلْزِمُهُ |
| کوم زه په ضربت غلامه خکه ضرب د غلام لازموي اهانت د سردار او لابست خکه دا مفسر دي د هغه څه مستلزم وي |
| اَعْنِيْ حُبِسْتُ عَلَيْهِ. |
| چي قصد کوم زه په هغې سره حبست عليه . |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب دکافيه د ما اضمر عامله څلور صورتونه بيانوي چي تفصيل يې لاندې په شرحه کي ذکر کيږي .

**اغراض دجامي** : د دې ځاې نه شارح دما اضمر عامله څلور (۴) صورتونه ذکر کوي او د ماتن دبيان کړي شوو صورتونو وضاحت کوي .

ههنا صور اربع احدها اشتغال: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: دمثال نه مقصود د ممثل له وضاحت کول وي او دوضاحت دپاره يو مثال هم کافي دي نو مصنف رحمه الله څلور مثالونه ولې ذکر کړل؟

**جواب**: په اصل کي دما اضمر عامله څلور (۴) صورتونه دي کوم چي شارح په ترتيب سره ذکر کوي :

(۱) فعل ضمير په اسم کي عمل کوي او بعينه فعل په دې اسم باندې مقدم کړي شي .
(۲) فعل په ضمير کي عمل کوي او دفعل مناسب مراد په دې باندې مقدم کړي شي .
(۳) فعل په ضمير د اسم کي عمل کوي او د فعل مناسب لازم په دې باندې مسلط کولې شي .

(۴) فعل په متعلق داسم کې عمل کوي او د فعل مناسب لازم په دې باندې مسلط کولې شي، ځکه د دې ټولو صورتونو داحاطې کولو دپاره يې ډير مثالونه ورکړي دي نو دمثالونو تعدد دممثل له دتعدد دوجې نه دي اودا جائز دي.

ولا يتصور: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: فعل په متعلق داسم کې عمل کوي دا هم د درې (۳) امورو احتمال لري:

(۱) بعينه فعل مسلط کړې شي، (۲) يا د دې مناسب مرادف مسلط کړې شي، (۳) يا د دې مناسب لازم مسلط کړې شي، نو تاسو ته د ههنا صور اربع ويل صحيح نه دي بلکې صور ستة ويل په کار وو.

**جواب**: کله چې فعل په متعلق د اسم کې عمل کوي، نو په دغه وخت کې د فعل مناسب لازم مسلط کولو نه غير يو بل صورت نه متصور کيږي، لهذا ټول صورتونه هم څلور (۴) دي، د دې وجې نه مصنف څلور (۴) مثالونه ذکر کړي دي، په دې کې درې (۳) د هغه فعل شبه فعل دي کوم چې په ضمير کې عمل کوي او يو د هغه دي چې کوم په متعلق د اسم کې عمل کوي.

والاحسن: په دې عبارت سره شارح په صاحب کافيه باندې اعتراض کول دي:

**اعتراض**: چې دمثالونو په ترتيب کې ښه داوه، چې دمشتغل بالمتعلق مثالونه يې مؤخر کړي وي لکه په تعريف کې متعلق مؤخر کړي دد دې دپاره چې دمشتغل بالضمير مثالونه جدا شوي اودمشتغل بالمتعلق مثالونه په آخر کې شي.

**جواب**: د ماتن دطرف نه د شارح داعتراض جواب نورو شراحو ورکړې دي، چې نفس حسن خو د مصنف په ترتيب کې هم موجود دي، ځکه چې مصنف چې کوم ترتيب اختيار کړي دي په دې کې افعال معلومه يو ځای شوي دي او آخر کې فعل مجهول ذکر کړی دي.

مثال الفعل: په دې عبارت کې شارح د ممثل له نه تعيين کوي:

(۱) زيدا ضربته دهغه فعل مثال دي، چې بعينه هم دا مسلط شي.

(۲) زيدا مررت به دادهغه فعل مثال دي، چې ضمير په اسم کې په عمل کولو سره مشغول کړي او ددې مناسب مرادف يعنې جاوزت په دې باندې مسلط کړی شي، ځکه چې مررت باء سره متعدي شي او د جاوزت مرادف شي.

زيدا ضربت غلامه : دا د هغه فعل مثال دي کوم چې په متعلق د اسم کې د عمل کولو سره مشغول وي او د فعل مناسب لازم يعني اهنت په دې باندې مسلط کړي شوي وي نو دا هغې ته د مفعوليت په بناء باندې نصب ورکوي .

زيدا حسبت عليه: دا د هغه فعل مثال دي، کوم چې ضمير په اسم کې عمل کولو سره مشغول شو او په دې باندې د دې مناسب لازم يعني لابست مسلط کړی شو، ځکه چې د يو شي د بل د وجې نه محبوس کېدل او ګيرېدل دې ته لازم دي، چې محبوس، د محبوس عليه سره ملابس دي

بنصب زيدا في هذه الامثله: په دې عبارت سره شارح مثالونه په ممثل باندې تطبيق کوي په ذکر شوو مثالونو کې زيد د هغه فعل مقدر د وجې نه منصوب دي ، چې د دې تفسير وروستنې فعل کوي . يعنې هغه فعل مفسر کوم چې په زيدا ضربت کې د زيد د پاره ناصب دي او هغه ضربت مقدر دي . ځکه چې د دې اصل ضربت زيدا ضربته دي اول ضربت يې حذف کړلو د مفسّر د وجود د وجې نه او هغه مفسر دويم ضربت دي .

همدا رنګې هغه فعل مفسر کوم چې په زيدا مررت کې د زيد د پاره ناصب دي هغه جاوزت مقدر دي ، ځکه چې د دې تقدير جاوزت زيدا مررت به دې ، جاوزت يې د وجود د مفسر د وجې نه حذف کړو او هغه مفسر د دې مرادف يعنې مررت دي .

همدا رنګې هغه فعل مفسر کوم چې په زيدا ضربت غلامه کې د زيد د پاره ناصب دي هغه اهَنتُ مقدر دي ، ځکه چې د دې تقدير اهنت زيدا ضربت غلامه دي ، اهنت د وجود د مفسر د وجې نه يې حذف کړو او هغه مفسر د دې ملزوم ضربت غلامه دي ، ځکه د غلام وهل دده د سيد د اهانت او سپکوالي سره مستلزم دي .

همدا رنګې هغه فعل مفسر کوم چې په زيد حسبت عليه کې د زيد د پاره ناصب دي هغه لابست مقدر دي. ځکه چې د دې تقدير لابست زيدا حسبت عليه دي نو لابست د وجود د مفسر د وجې نه حذف کړې شو هغه مفسر حسبت عليه دي کوم چې د لابست ملزوم دي

## په ما اضمر عامله کې د رفعې د غوره کولو جائز صورتونه :

ثُمَّ اَنَّ الْاِسْمَ الْوَاقِعَ فِيْ مَقَامِ الْاِضْمَارِ عَلٰى شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ اِمَّا الْمُخْتَارُ اَوِ الْوَاجِبُ فِيْهِ الرَّفْعُ اَوِ النَّصْبُ اَوْ

بیا کوم اسم چې واقع وي په ځای د ګمان د اضمار علی شریطة التفسیر نو غوره او واجب په دې کې رفع ده او یا نصب او

يَسْتَوِيْ فِيْهِ الْاَمْرَانِ وَاِلٰى هٰذِهِ الصُّوَرِ الْخَمْسِ اَشَارَ الْمُصَنِّفُ فَقَالَ وَيُخْتَارُ فِي الْاِسْمِ الْمَذْكُوْرِ

یا برابروي په دې کې دواړه او دې پنځو صورتونو ته اشاره کړې مصنف او ویلي دي چې غوره په اسم مذکور کې

الرَّفْعُ بِالْاِبْتِدَاءِ اَيْ بِكَوْنِهٖ مُبْتَدَاً لِاَنَّ تَجَرُّدَهٗ عَنِ الْعَوَامِلِ اللَّفْظِيَّةِ يُصَحِّحُ رَفْعَهٗ

رفع دابتداء د وجې نه ده یعنې په کیدو د دې کې مبتدا ځکه چې خالي کیدل د عوامل لفظیو نه صحیح کوي رفع

بِالْاِبْتِدَاءِ يَرْجِحُ عِنْدَ عَدَمِ قَرِيْنَةٍ خِلَافِهٖ اَيْ قَرِيْنَةٍ تَرْجِحُ

د دې په ابتداء سره او رفع ته ترجیح ورکوي په وخت د نه موندلو د قرینې په خلاف د دې یعنې د اسې قرینه چې راجح

خِلَافَ الرَّفْعِ يَعْنِي النَّصْبَ لِاَنَّ قَرِيْنَتَيِ الصِّحَّةِ فِيْهِمَا مُتَسَاوِيَتَانِ لِاَنَّ وُجُوْدَ مَا

وي په خلاف د رفع یعنې نصب ځکه چې د دواړه قرینې د صحت په دې کې برابرې دي ځکه وجود د هغه څه چې

لَهٗ صَلَاحِيَّةُ التَّفْسِيْرِ قَرِيْنَةٌ مُصَحِّحَةٌ لِلنَّصْبِ فَمَتٰى لَمْ تُرَجَّحِ النَّصْبَ قَرِيْنَةٌ اُخْرٰى

د هغه د پاره صلاحیت د تفسیر وي نو هغه قرینه مصححه ده د پاره د نصب نو کله چې نصب راجح نه شي نو بله قرینه

يَرَجَّحَ الرَّفْعُ بِسَلَامَتِهٖ عَنِ الْحَذْفِ نَحْوُ زَيْداً ضَرَبْتُهٗ اَوْ عِنْدَ وُجُوْدِ الْقَرِيْنَةِ الْمُرَجِّحَةِ

راجحه کوي رفع په سلامتیا د دې سره د حذف نه لکه زیداً ضربته او په وخت د موجودیدو د قرینې چې راجحه وي

مِنَ الْجَانِبَيْنِ وَلٰكِنْ تَكُوْنُ الْقَرِيْنَةُ الْمُرَجِّحَةُ لِلرَّفْعِ اَقْوٰى مِنْهَا اَيْ مِنْ تِلْكَ الْقَرِيْنَةِ الْمُرَجِّحَةِ لِلنَّصْبِ

د جانبینو نه لیکن هغه قرینه چې راجحه وي د پاره د رفع داقوي ده یعنې د هغه قرینې نه چې راجحه وي د پاره د نصب

كَاَمَّا الدَّاخِلَةِ عَلٰى ذٰلِكَ الْاِسْمِ مَعَ غَيْرِ الطَّلَبِ اَيْ بِشَرْطِ اَنْ لَّا يَكُوْنَ الْفِعْلُ الْمُشْتَغِلُ عَنْهُ طَلَبًا

لکه اما چې داخل وي په دې اسم باندې سره د غیر طلب نه یعنې په دې شرط چې نه وي فعل مشتغل د دې نه طلب

كَالْاَمْرِ وَالنَّهْيِ وَالدُّعَاءِ نَحْوُ لَقِيْتُ الْقَوْمَ وَاَمَّا زَيْدٌ فَاَكْرَمْتُهٗ فَالْعَطْفُ عَلَى الْفِعْلِيَّةِ قَرِيْنَةُ النَّصْبِ وَكَلِمَةُ

لکه امر او نهي او دعا لکه لقیت القوم واما زید فاکرمته نو عطف په فعلیت باندې داقرینه ده د پاره د نصب او کلمه

اَمَّا قَرِيْنَةُ الرَّفْعِ وَهِيَ اَقْوٰى لِاَنَّهَا لَا يَقَعُ بَعْدَهَا غَالِبًا اِلَّا الْمُبْتَدَاُ بِخِلَافِ عَطْفِ الْاِسْمِيَّةِ

د اما داقرینه ده د پاره د رفع او داقوي ده ځکه چې نه واقع کیږي پس د دې نه اکثر امګر مبتدا په خلاف د عطف د اسمیت

عَلَى الْفِعْلِيَّةِ فَاِنَّهٗ كَثِيْرُ الْوُقُوْعِ فِيْ كَلَامِهِمْ مَعَ اَنَّهَا تَاَيَّدَتْ بِالسَّلَامَةِ

په فعلیت باندې ځکه چې دا ډیره واقع کیږي په کلام د دوي کې او سره د دې نه چې د دې تائید شوي په سلامتیا سره

عَنِ الْحَذْفِ اَيْضًا وَاِنَّمَا قَالَ مَعَ غَيْرِ الطَّلَبِ اِحْتِرَازًا عَمَّا اِذَا كَانَتْ مَعَ الطَّلَبِ نَحْوُ اَمَّا زَيْداً

د حذف نه او مصنف وویل مع غیر الطلب نو په دې سره یې احتراز وکړو د هغه امانه چې وي د پاره د طلب لکه امازیداً

| |
|---|
| فَاضْرِبْهُ فَإِنَّ الْمُخْتَارَ حِيْنَئِذٍ هُوَ النَّصَبُ فَإِنَّ الرَّفْعَ يَقْتَضِيْ وُقُوْعَ الطَّلَبِ خَبْراً وَهُوَلَا يَجُوْزُ إِلَّا |
| فاضربه نوغوره په دې وخت کې هغه نصب دی خکه رفع تقاضا کوي دواقع کیدو د طلب خبراو دانه دي جائز مگر په |
| بِتَاوِيْلٍ وَ مِثْلُ اَمَّا مَعَ غَيْرِ الطَّلَبِ اِذَا الْوَاقِعَةُ عَلَى الْاِسْمِ الْمَذْكُوْرِ لِلْمُفَاجَاةِ فِيْ كَوْنِهَا |
| تاویل سره او مثال داماسره د غیر طلب اذادي چې واقع وي په اسم مذکورباندې دپاره دمفاجات په کیدو ددې کې |
| مِنْ اَقْوَى الْقَرَائِنِ مِثْلُ خَرَجْتُ فَاِذَا زَيْدٌ يَضْرِبُهُ عَمْرٌو فَإِنَّ الْمُخْتَارَ فِيْهِ الرَّفْعُ فَإِنَّ اِذَا لِلْمُفَاجَاةِ |
| چې دا دقوي قرائنو نه دي مثال لکه خرجت فاذا زيد يضربه عمرو نوغوره په دې کې رفع ده خکه چې اذادپاره دمفاجات |
| لَا تَدْخُلُ اِلَّا عَلَى الْجُمْلَةِ الْاِسْمِيَّةِ غَالِبًا وَمَا وَقَعَ فِيْ بَحْثِ الظُّرُوْفِ مِنْ اَنَّ اِذَا |
| مفاجات وي او نه داخليږي مگرپه جمله اسميه باندې غالبا او هغه چې واقع دي په بحث د ظروفو کې چې اذادپاره د |
| لِلْمُفَاجَاةِ تَلْزِمُ بَعْدَهَا الْاِسْمِيَّةَ فَالْمُرَادُ بِلُزُوْمِ الْاِسْمِيَّةِ غَلَبَةُ وُقُوْعِهَا بَعْدَهَا فَلَا |
| مفاجات لازموي پس ددې نه مراد په لزوم د جملې اسمیې غالب واقع کیدل دي پس د جملې اسمیې نه نو څه |
| تَنَاقُضَ. |
| تناقض نشته |

**خلاصه دمتن** : مصنف دا وايي، چې داسې اسم چې ما اضمر عامله على شريطة التفسير واقع کېداى شي، په دې کې ټول پنځه (۵) صورتونه دي: اول دا چې رفع مختار او نصب جائز دا په دوو صورتونو کې وي: (۱) اسم مرفوع بالابتداء کېدل صحيح وي او ددې خلاف د نصب قرينه مرجحه نه وي، لکه زيد ضربته په دې کې رفع مختار ده نصب جائز دی. (۲) قرينه مرجحه جانبين نه دي ليکن قرينه مرجحه مرفعه د قرينه مرجحه للنصب نه قوي وي. بيا دا په دوه خايونو کې کېږي يابه په اسم مذکور باندې داخل وي او اسم مذکور د داسې فعل سره مقارن وي کوم چې غير طلب وي، يعنې اسم مذکور نه پس جمله خبريه وي، جمله انشائيه نه وي، لکه لقيت اليوم واما زيد فاکرمته (۲) په اسم مذکور باندې اذا مفاجاتيه داخل وي، لکه خرجت فاذا زيد يضربه عمرو.

**اغراض دجامي** : ثم ان الاسم: دا عبارت دما بعد لپاره توطيه او تمهيد دي او يا دا عبارت ديو سوال مقدر جواب دي . ددې توطيه او تمهيد کيدل خو ظاهر دي او که دا عبارت دسوال مقدر جواب وي، نو بيا تفصيل يې دادې:

**سوال** : داعراب په اعتبار سره د ما اضمر عامله تقسيم پنځو اقسامو ته باطل دي، خکه چې د تقسيم الشئ الى نفسه والاخرابي لازم راځي، خکه چې وجوب درفع په صورت کې داد ما اضمر عامله د قبيلې نه . نه دي، خکه چې ما اضمر عامله خو د منصوباتو د اقسامو نه دي او ددې نه

بحث د مفعول به کيدو د حيثيت نه کيږي، نو د مرفوع کيدو په صورت کې خو دا زمونږ د بحث نه خارج دي

**جواب**: دلته د **ما اضمر** نه اضمار ظني مراد دي نه اضمار يقيني يعني هغه اسم داسې ځاې کې واقع وي، چې کوم ځاې کې د **ما اضمر عامله** کيدو ګمان او شبه وي، برابره خبره ده که په واقع کې **ما اضمر عامله** وي او يا نه وي، نو ددې اسم د اعراب په اعتبار سره پنځه (۵) صورتونه دي:
(۱) رفع مختار (۲) نصب مختار (۳) رفع واجب (۴) نصب واجب (۵) دواړه مساوي، مصنف رَحِمَهُ اللهُ هم دې پنځو (۵) صورتونو طرف ته اشاره کوي.

ويختار: ددې ځاې نه د مخکې صورت يعني د رفعې د غوره کيدو تفصيل بيانوي چې رفعه غوره کيږي په دوه صورتونو کې: (۱) اسم مرفوع بالابتداء کيدل صحيح وي او ددې خلاف نصب څه قرينه مرجحه نه وي. لکه **زيد ضربته** په دې کې **زيد** د عوامل لفظيه نه خالي کيدل داد قرينې مصححه دپاره رفع ده او ددې نه پس د داسې فعل کيدل چې په هغې کې د تفسير صلاحيت وي دا قرينه مصححه للنصب وي نو په دواړو کې قرينه مصححه موجود ده په دې اعتبار سره دواړه مساوي وي ليکن بيا د رفعې دپاره قرينه مرجحه هم موجود ده هغه داده چې سلامتيا د حذف نه چې کله ددې مخالف د نصب دپاره کومه قرينه مرجحه موجود نه وي نو ددې وجې نه رفع غوره شوه.

في الاسم المذکور: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مصنف رَحِمَهُ اللهُ وويل **ويختار الرفع بالابتداء** حالانکه د مبتداء د وجې نه خو رفع واجب کيږي خو مختار نه وي.

**جواب**: دلته د **الاسم المذکور** يعني هغه اسم کوم چې د ما اضمر په مظان کې واقع وي دا مراد دي.

اي بکونه: په دې عبارت سره شارح د يو وهم ازاله کوي:

**وهم**: وهم دادې چې لکه څنګه ابتدا په مبتدا کې عامل وي همدارنګې په خبر کې هم عامل وي نو ممکن ده چې دلته د اسم مذکور د خبر کيدو د وجې نه مرفوع وي او په دې کې ابتدا عامل وي.

**جواب**: دلته د ابتداء نه مبتداء مراد ده، نو بيا څه اشکال نشته.

لان تجرد: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: اختیار رفع تقاضا کوي داولنې جواز درفع دلته دمخکې نه دسره جواز نشته نو بیا اختیار څنګه ثابت شو؟

**جواب**: مونږ دا خبره نه منو، چې داول نه جواز موجود نه دي، بلکې جواز موجود دي، څکه چې د اسم عوامل لفظیه نه خالي کیدل داد قرینه مصححه اومجوزه للرفع دي.

ای قرینة ترجح خلاف الرفع: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال (۱)**: کله چې د رفع خلاف دنصب کومه قرینه نه وي نو بیا رفع واجب کیدل په کار وو نه غوره کیدل.

**سوال (۲)**: مونږ دا خبره نه منو، چې د رفع خلاف د نصب قرینه نشته، څکه چې ددې نه پس د داسې فعل موجود کیدل، چې په کوم کې د تفسیر صلاحیت وي دا د نصب قرینه ده.

**جواب**: شارح په ای قرینه سره ددواړو سوالونو جواب ورکړو، چې عدم قرینة خلافه نه مراد دقرینې مرجحې عدم دي نه دقرینې مصححې دعدم مقصد دادې چې دنصب قرینه مصححه وموندل شي البته قرینه مرجحه نه موندل کیږي نو رفع به غوره وي.

لان قرینتي الصحة: په دې عبارت سره شارح ددې دلیل بیانوي چې دقرینې مصححې په وجود کې دواړه برابر دي څکه چې تجرد دعوامل لفظیه دزید درفع دپاره قرینه مصححه دي اود زید نه پس دداسې فعل وجود کوم چې دمفسر دجوړیدو صلاحیت لري ددې دنصب دپاره قرینه مصححه ده لیکن د زید درفع دپاره قرینه مرجحه هم موجود ده هغه ده سلامتیا دحذف نه چې کله په نصب باندې کومه قرینه مرجحه موجود نه وي نو چې ترڅو پورې چې په نصب باندې کومه قرینه مرجحه نه موندل کیږي نو په زید باندې رفع راجح اوغوره ده.

او عند وجود: په دې عبارت کې شارح درفعې دغوره کیدو دویم صورت بیانوي، ددې حاصل دادې چې د رفع او د نصب دواړو لپاره قرینه مصححه هم موجوده وي او قرینه مرجحه هم ددواړو لپاره موجود وي لیکن قرینه مرجحه للرفع قوي وي د نصب نه او دا په دوه (۲) ځایونو کې وي: (۱) اما په اسم مذکور باندې داخل وي اوداسم مذکور نه پس فعل طلب نه وي یعنې

اسم مذکور نه پس امر ، نهي او دعاء نه وي لکه **لقيت اليوم و امازيد فاکرمته**، په دې کې د زيد عوامل لفظيه نه خالي کيدل داقرينه مصححه للرفع ده. او ددې نه پس دداسې **فعل** کيدل کوم کې چې د تفسير صلاحيت وي دا قرينه مصححه للنصب ده او کلمه دما دا قرينه مرجحه للرفع ده او عطف على الفعلية دا قرينه مرجحه للنصب ده، ليکن قرينه مرجحه للرفع دادقرينه مرجحه للنصب نه قوي دې دا قوت ددوه (۲) وجهو نه دې:

(۱) اما اکثر په مبتداء باندې داخليږي په خلاف د عطف ، چې د جملې اسميې عطف په جمله فعليه باندې په کلام دعربو کې شائع دی . (۲) د رفع په صورت کې دحذف نه سلامتي ده.

**القرينه المرجحة من الجانبين:** په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: په اول صورت کې هم درفع قرينه دنصب دقرينې نه اولى او قوي دې نو په دې دواړو کې څه فرق شو ؟

**جواب**: ددې نه مراد دادې چې قرينه مرجحه دجانبين نه موندل کيږي ، ليکن مرجحه للرفع داد قرينه مرجحه للنصب نه ا قوی ده. چې کله په اول صورت کې قرينه مرجحه دجانبينو نه ، نه وي بلکه صرف په جانب درفع کې وي.

**اى من تلك القرينة:** په دې عبارت سره شارح د **منها** د **ها** دضمير مرجع بيانوي.

**كاماً الداخلة:** په دې عبارت سره شارح دې خبرې طرف ته اشاره وکړه چې د **اما** نه مطلق **اما** مراد نه دی، بلکې اما دې کوم چې په اسم مذکور باندې داخل وي.

**اى بشرط ان لا يكون الفعل المشتغل عنه:** په دې عبارت سره شارح دفع دوهم وکړه هغه وهم دادې چې شايد مع غير الطلب قيد اتفاقي وي احترازي نه وي . څکه چې کله قيد اتفاقي وي، نو **بشرط ان لا يكون** سره دوهم ازاله وکړه دا قيد احترازي دي .

**و انما قال:** په دې عبارت سره شارح د **مع غير الطلب** قيد فائده بيانوي. چې دا قيد احترازي دي، په دې سره د هغه صورت نه احتراز دي ، چې کله اما په داسې اسم باندې داخل شي کوم چې فعل طلب سره مقارن وي، يعنې ددې نه پس جمله انشائيه وي. جمله خبريه نه وي. لکه **امازيد فاضربه** څکه چې په دې صورت کې اسم مذکور باندې رفع غوره نه ده، بلکې نصب غوره دي، څکه که چيرته په دې باندې رفع وويلې شي نو دا ددې خبرې تقاضا کوي، چې جمله انشائيه

ددې خبرجوړ کړې شي، حالانکه جمله انشائیه په غیر د تاویل نه خبر نه شي جوړېدي، ځکه چې د رفع په صورت کې دا جمله اما زید مقول في حقه فاضرب په تاویل کې وي .

**دوهم مقام** دا دې، چې په اسم مذکور باندې اذا مفاجاتیه داخل وي، لکه خرجت فاذا زید یضربه عمرو، په دې کې زید د عوامل لفظیه نه خالي کیدل، دا قرینه للرفع ده او عطف علی الفعلیة دا قرینه مرجحه للنصب ده، لیکن قرینه مرجحه للرفع دا د قرینه مرجحه للنصب نه اقوی ده. دا قوت په دوو (۲) وجهو سره دی (۱) اذا مفاجاتیه اکثر په مبتدا باندې داخلیږي په خلاف د جمله اسمیه او جمله فعلیه په کلام د عربو کې اکثرالوقوع ده. (۲) د رفعې په صورت کې د حذف نه سلامتي ده

<u>**ومثل اما**</u>: په دې عبارت سره شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې دا **عطف المشبه علی المشبه** به د قبیلې نه دي

<u>**واقعة علی الاسم المذکور**</u>: په دې عبارت سره شارح د دوه (۲) غرضونو او مقصدونو بیان کوي (۱) للمفاجاة د جار مجرور متعلق بیانول . (۲) یا دا د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: ستاسو ضابطه او قاعده منقوضه اوماته ده په خرجت فاذا السبع سره چې په دې کې هم اذا مفاجاتیه ګډه کومه چې په اسم باندې داخل ده په دې کې رفع غوره کیدل په کاروو حالانکه رفع واجب ده .

**جواب**: دلته مطلق اسم مراد نه دي بلکه اسم مذکور ما اضمر عامله مراد دي .

<u>**في کونها**</u>: په دې عبارت کې شارح وجه د مشابهت اود مماثلت بیانوي

<u>**وما وقع**</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: د ظروفو په بحث کې مصنف دا ذکر کړل، چې ان اذا للمفاجات تلزم بعدها الجملة الاسمیة ددې نه دا معلومه شوه. چې د اذا مفاجاتیه نه پس جمله اسمیه لازمه ده او دلته دا معلومیږي چې د اذا مفاجاتیه نه پس د جملې اسمیې وقوع لازمي نه دي. بلکې غالب او راجح دي. لهذا په دواړو عبارتونو کې ښکاره تناقض نشته دي.

**جواب**: د ظروفو په بحث کې چې کوم ویلزمها الجملة الاسمیة دی دې نه مراد لزوم استعمالي اعتباري اکثري دي نه لزوم حقیقي . نو لهذا په دې دواړو کې څه تناقض نشته دي

## په ما اضمر عامله کې د نصب د غوره کولو صورتونه :

وَ يَخْتَارُ النَّصَبُ فِي الْاِسْمِ الْمَذْكُوْرِ بِالْعَطْفِ اَیْ بِسَبَبِ عَطْفِ جُمْلَةٍ هُوَ فِيْهَا عَلٰی جُمْلَةٍ

او غوره دي نصب په اسم مذکور کې د عطف د وجې نه يعني په سبب د عطف د داسې جملې نه چې هغه په دې جمله

فِعْلِيَّةٍ مُتَقَدِّمَةٍ لِلتَّنَاسُبِ اَیْ لِرِعَايَةِ التَّنَاسُبِ بَيْنَ الْجُمْلَةِ الْمَعْطُوْفَةِ وَ الْجُمْلَةُ

کې وي په جمله فعليه باندې چې مقدم وي د مناسبت د وجې نه يعني د لحاظ ساتلو د مناسبت نه په مينځ د جملې

الْمَعْطُوْفُ عَلَيْهَا فِيْ كَوْنِهِمَا فِعْلِيَّتَيْنِ نَحْوُ خَرَجْتُ فَزَيْداً لَقِيْتُهُ وَ بَعْدَ حَرْفِ النَّفْيِ

معطوفې او د جملې معطوف عليها په کيدو د دې دواړو کې چې دا فعليې وي لکه خرجت فزيدا لقيته او پس د حرف

يَعْنِيْ مَا وَلَا وَ اِنْ وَلَيْسَ وَلَمْ وَلَمَّا وَلَنْ مِنْ هٰذِهِ الْجُمْلَةِ اِذْ هِيَ عَامِلَةٌ فِي الْمُضَارِعِ

نفي نه يعني د ما ولا وان وليس ولم ولما ولن د دې جملې نه خکه چې دا عامل دي په مضارع کې او نه شي مقدر کيدې

وَلَا يُقَدَّرُ مَعْمُوْلُهَا لِضُعْفِهَا فِي الْعَمَلِ نَحْوُ مَا زَيْدًا ضَرَبْتُهُ وَلَا زَيْدًا ضَرَبْتُهُ وَلَا عَمْرًا وَاِنْ زَيْدًا ضَرَبْتُهُ اِلَّا تَادِيْبًا

معمول د دې د وجې د ضعف نه په عمل کې لکه ما زيدا ضربته ولا زيدا ضربته ولا عمروا وان زيدا ضربته الا تاديبا

وَبَعْدَ حَرْفِ الْاِسْتِفْهَامِ نَحْوُ اَزَيْداً ضَرَبْتَهُ وَ اَمَّا قَالَ حَرْفِ الْاِسْتِفْهَامِ لِاَنَّهُ يُخْتَارُ الرَّفْعُ فِيْ اِسْمِ

او پس د حرف استفهام نه لکه ازيدا ضربته او هغه چې مصنف ويلي حرف الاستفهام خکه چې غوره ده رفع په اسم د

الْاِسْتِفْهَامِ مِثْلُ مَنْ اَكْرَمْتَهُ وَ لَمْ يَقُلْ هَمْزَةِ الْاِسْتِفْهَامِ لِيَشْمَلَ مِثْلَ

استفهام کې لکه من اکرمته او داسې يې ونه ويل چې همزة الاستفهام د دې د پاره چې شامل شي دې مثال ته چې

هَلْ زَيْداً ضَرَبْتَهُ فَاِنَّهُ يَجُوْزُ وَ اِنِ اسْتَقْبَحَهُ النُّحَاةُ لِاقْتِضَاءِ هَلْ لَفْظَ الْفِعْلِ لِاَنَّهُ

هل زيدا ضربته خکه چې دا هم جائز ده اګرچې نحويانو دا قبيح ګڼرلې خکه چې لفظ د هل د فعل تقاضا کوي خکه چې

بِمَعْنٰى قَدْ فِي الْاَصْلِ فَلَا يَكْفِيْ فِيْهِ تَقْدِيْرُ الْفِعْلِ وَ بَعْدَ اِذَا الشَّرْطِيَّةِ الدَّالَّةِ عَلٰی

هل په اصل کې په معنی د قد دې نو نه کافي کيږي په دې کې تقدير د فعل او پس د اذا شرطيه نه چې دلالت کوي په

الْمُجَازَاةِ فِي الزَّمَانِ نَحْوُ اِذَا عَبْدَاللهِ تَلْقَهُ فَاَكْرِمْهُ وَبَعْدَ حَيْثُ الدَّالَّةِ عَلَى الْمُجَازَاةِ فِي الْمَكَانِ

مجازات في الزمان باندې لکه اذا عبدالله تلقه فاکرمه او پس د حيث نه چې دلالت کوي په مجازات في المکان باندې

نَحْوُ حَيْثُ زَيْدًا تَجِدُهُ فَاَكْرِمْهُ وَفِيْ قَبْلَ الْاَمْرِ وَالنَّهْيِ يَعْنِيْ مَوْضِعِ وُقُوْعِ الْاِسْمِ الْمَذْكُوْرِ قَبْلَ الْاَمْرِ وَالنَّهْيِ

لکه حيث زيدا تجده فاکرمه او مخکې د امر او نهي نه يعني په خاې د واقع کيدو د اسم مذکور مخکې د امر او نهي نه

مِثْلُ زَيْدًا اِضْرِبْهُ وَزَيْدًا لَا تَضْرِبْهُ وَاِنَّمَا اُخْتِيْرَ فِيْ هٰذِهِ الْمَوَاضِعِ اَیْ مَا بَعْدَ حَرْفِ الْاِسْتِفْهَامِ وَ النَّفْيِ

لکه زيدا اضربه و زيدا لا تضربه او په تحقيق سره يې غوره کړو په دې خايونو کې يعني پس د حرف استفهام او د نفي

وَ اِذَا الشَّرْطِيَّةِ وَ حَيْثُ وَ مَا قَبْلَ الْاَمْرِ وَ النَّهْيِ النَّصَبُ فِي الْاِسْمِ الْمَذْكُوْرِ اِذْ هِيَ اَیْ هٰذِهِ الْمَوَاضِعُ

او د اذا شرطيه او د حيث نه او مخکې د امر او د نهي نه نصب په اسم مذکور کې خکه چې دا يعني دا خايونه مواضع د

| مَوَاقِعَ الْفِعْلِ اَیْ مَوَاضِعَ وُقُوْعِ الْفِعْلِ فِيْهَا اَكْثَرُ فَاِذَا نُصِبَ الْاِسْمُ الْمَذْكُوْرُ |
|---|
| وقوع د فعل د فعل دي يعني مواضع دوقوع دفعل په دې کې اکثر وي نو کله چې نصب ورکړې شو اسم مذکور ته |
| وَقَعَ فِيْهَا الْفِعْلُ تَقْدِيْراً وَ اِلَّا فَلَا. |
| نو واقع کيږي په دې کې فعل تقديراً او که نصب ورنه کړې شي نو بيا نه واقع کيږي. |

**خلاصه دمتن** : دصاحب د کافيې دعبارت حاصل دادې، چې اسم مذکور په څو ځايونو کې رفع جائز مګر نصب مختار او غوره دي، (۱) اسم مذکور چې په کومه جمله کې واقع دي، دا عطف وي په تيره شوي جمله فعليه باندې لکه خرجت فزيداً لقيته. (۲) دحرف نفي نه پس واقع وي لکه ما زيداً ضربته، ولا زيداً ضربته ولا عمرواً، وإن زيداً ضربته، الا تاديباً (۳) دحرف استفهام نه پس واقع وي، لکه ازيداً ضربته. (۴) د اذا شرطيه نه پس واقع وي، لکه اذا عبدالله تلقه فاکرمه، حيث نه پس واقع وي لکه حيث زيداً تجده فاکرمه، امر نه وړاندې واقع وي، لکه زيداً اضربه، نهی نه وړاندې واقع وي، زيداً لا تضربه په دې ځايونو کې اسم مذکور کې نصب مختار او غوره دي، پس کله چې اسم مذکور باندې نصب ويلی کېږي، نو فعل به په کې مقدر وي، ددې وضاحت په شرح کې را روان دي.

**اغراض دجامي** : في الاسم المذكور: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : دلته د ما اضمر عامله نه بحث کېږي او په دې باندې خو نصب واجب دي، نو د مصنف ويختار فيه النصب ويل به څنګه صحيح وي ؟

**جواب**: ددې ځای نه مراد الاسم المذكور دي، يعني هغه اسم کوم چې د ما اضمر عامله په مظان کې واقع وي.

اى بسبب عطف جملة: په دې عبارت سره شارح دوه خبرو طرف ته اشاره کړې ده. (۱) بالعطف کې باء سببيه ده، (۲) د العطف الف لام، دمضاف اليه نه عوض دي.

متقدمة: دا د جملة دويم صفت موضحه دي صرف دوضاحت دپاره دي ورنه عطف ته تقدم لازم دی. لهذا دا قيد اتفاقي دی نه احترازي

ما فيها: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: ستاسو ضابطه اوقاعده منقوضه اوماته شوه په ضربت زيد قائم سره په دې کې هم زيدا قائم عطف په جمله فعليه باندې موجود دي، ليکن په دې باندې نصب مختار نه دی ؟

**جواب**: د عطف على الجملة الفعلية په صورت کې د نصب غوره کول په هغه جمله کې دي په کوم کې چې اسم مذکور واقع کيږي او په ذکر شوي مثال کې داسې نه دي.

<u>الرعاية</u>: په دې عبارت سره شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي ، چې للتناسب مفعول له دي بيا د مفعول له دوه (۲) قسمونه دي: هغه مفعول له چې دهغې دحاصلولو دپاره فعل ذکر کړې شوي وي لکه ضربته تاديباً ، (۲) هغه مفعول له چې دهغې دوجود په سبب باندې فعل ذکر شوي وي لکه قعدت الحرب جُبناً په لرعاية سره شارح اشاره کړې ده چې دادمفعول له اول قسم دي يعنې دتناسب دحاصلولو دپاره نصب غوره کړې شوې دي.

<u>نَحْوُ ضربت فزيداً اعطيه</u>: په دې عبارت سره شارح بيان دمثال کوي.

<u>يعني</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: په حرف نفی کې لم،لما،لن هم داخل دي. حالانکه ددې نه پس په اسم مذکور کې نصب غوره نه دي ؟

**جواب**: دلته دحرف نفی نه دري (۳) حروف ما او لا او ان مراد دي. لم،لما،لن مراد نه دي، ددې وجه داده چې دا درې واړه په فعل مضارع باندې داخليږي او په فعل مضارع کې عمل کوي او دا کمزورې عامل دي، ځکه دا فعل په ملفوظ کې عمل کوي. په فعل مقدر کې عمل نه کوي، لهذا ددې نه پس فعل مقدر نه وي او اسم مذکور کې نصب غوره په هغه وخت کې وي کوم وخت کې چې فعل مقدر وي، ځکه ددې حروفو نه پس اسم مذکور کې نصب نه شي غوره کيداى.

<u>نَحْوُ ما زيداً ضربته</u>: په دې عبارت سره شارح نه مثالونه بيانوي.

<u>لاعمروا</u>: شارح دجامي ددې اضافه ځکه وکړه، ځکه چې د لا نه پس معرفه ده، نو په دې باندې رفع او تکرار واجبيږي. ليکن کله چې ما اضمر عامله وي، نو په دې باندې رفع واجب نه ده، البته تکرار واجب دي.

<u>ان زيداً ضربته الاتاديباً</u>: د الاتاديباً اضافه يې ځکه وکړه چې معلومه شي چې دا ان نافيه دی.

ځکه چې ان نافيه په غير داستثناء نه . نه راځي .

وبعد: شارح ددې لفظ په اضافو کولو سره ددې خبرې بيان کوي چې د حرف استفهام عطف په حرف النفي باندې دي

وانما قال: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: حرف استفهام يې وويل والاستفهام يې ولې ونه ويل، حالانکه په دې کې ايجاز او اختصار وو او مصنف هم اختصار خوښوي؟

**جواب**: دلفظ حرف اضافه کول د اسم استفهام دخارجولو دپاره وو، ځکه چې په اسم استفهام باندې رفع غوره ده، نصب نه دي غوره لکه من اکرمته.

ولم يقل همزة الاستفهام: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: مصنف حرف الاستفهام وويل او همزة الاستفهام يې ولې ونه ويل؟

**جواب**: حرف استفهام يې ځکه وويل، ددې دپاره چې دا هل ته هم شامل شي، ځکه چې ددې حکم هم دغه دي لکه هل زيداً ضربته.

فانه يجوز: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: هل زيداً ضربته والا ترکيب خو جائز هم نه دي، ځکه چې هل دفعل کيدو سره په اسم باندې نه داخليږي، ځکه چې هل په فعل باندې عاشق دي او داد خپل معشوق په طلب او تلاش کې ګرځي، لکه عاشق نامراده په خپل معشوق پسې سرګردانه ګرځي، کله چې دا خپل معشوق فعل وويني، نو ددې د صبر پيمانه ډکه شي، تر څو چې خپل محبوب سره معانقه و مواصله ونه شي، ده ته سکون او صبر نه حاصليږي ، البته د ډېر تلاش نه پس اګر که معشوق ورته حاصل نه شي، نو فتصبر وتسکن نو بيا صبر کوي او ګذاره کوي، لکه هل زيد ساکن که چيرته يې معشوق وليده، نو بيا بې تابه شي، ددې په موجودګۍ کې اسم لرې کوي، ځکه هل زيداً ضربته والا ترکيب ناجائز دي نو ستاسو دا قول څنګه صحيح شو، چې حرف استفهام يې ځکه وويل ددې دپاره چې هل ته هم شامل شي ددې وجه داده، چې هل په حقيقت کې د قد په معنى باندې دي، لکه هل اتى على الانسان په معنى د قد اتى على الانسان دي او په قد کې تقدير د فعل کافي نه دي، نو په هل کې هم کافي نه دى، همدارنګې مولانا محمد کابلي وي دي په

سوال کابلي کې چې ﴿لانها (اى هل) عاشق على الفعل فهو اذا رأى المعشوق لاصبر له حتى عانق بها لانها به معنى قد في الاصل﴾ ځکه دا یعنې هل دا عاشق دي په فعل باندې نو دا چې کله ووینې معشوق نو دده دپاره صبر نه وي تردې پورې چې دده سره معانقه وکړي اودده سره پیوسته شي ځکه چې دا په معنى دقد دي په اصل کې

**جواب**: که چیرته داصلِ وضعې په اعتبار سره داترکیب جائز نه دي او نحویانو دا قبیح جوړ کړي دي، لیکن په وخت د ضرورت کې داستعمال عارضي د وجې نه یې جائز کړی دي، په دې بناء باندې مصنف حرف الاستفهام وویل همزة الاستفهام یې ونه ویل .

الدالة على كلمة المجازاة: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: که مصنف ببعد الشرط ویلې وي، نو دا به اخصر او اشمل وو اولفظ دشرط اذا او حیث دواړو ته به شامل شوي وو.

**جواب**: داسې یې ځکه ونه ویل، چې په اذا او حیث کې فرق دي اذا په مجازاة في الزمان باندې دلالت کوي او حیث په مجازاة في المكان باندې دلالت کوي او که چیرته بعد الشرط یې ویلې وي، نو وهم به شوې وي، چې شاید په دې کې یو مراد وي دواړه مراد نه وي .

نَحْوُ اذا عبدالله: په دې عبارت سره د اذا دمثال بیان یې وکړو او په نَحْوُ حيث زيدا تجده سره یې د حیث دمثال بیان یې وکړو .

ماقبل الامر: په دې عبارت سره شارح دماقبل اضافه ددې وجې نه وکړه چې دمصنف دعبارت دظاهر نه دغیر ظاهر طرف ته اوړېدلی دي، ځکه چې دا مراد نه دي، چې نصب په نفسِ امر او نهي کې دي، بلکې په هغه اسم کې دي، په کوم کې چې د امر او نهي نه وړاندې واقع وي .

يعني موضع: په دې عبارت کې شارح د ما بیان کوي چې ددې مانه مراد موضع مراد دي .

انما اختير: په دې عبارت کې شارح اشاره وکړه، چې اذهي مواقع الفعل بعد حرف النفي نه پس چې څه ذکر دي. ددې ټولو یو علت او یوه وجه ده.

اى هذه المواضع: په دې عبارت کې شارح د هِيَ ضمیر مرجع یې متعین کړي دي .

اى المواضع: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: د مواقع الفعل نه معلومیږي چې په دې مواضع کې فقط فعل وي ځکه چې دمواضعو

اضافت فعل طرف ته اضافت لاميه دي او اضافت لاميه د اختصاص فائده ورکوي لهذا مواقع الفعل د نصب د وجوب فائده ورکوي نه د نصب د غوره کيدو نو په دې مواقعو کې نصب واجب کيدل په کار وو.

**جواب**: د مواقع اضافت فعل طرف ته په دې اعتبار سره دي، چې په دې ځايونو کې د فعل وقوع اکثر او اغلب دي، دا مراد نه دي چې دا مواقع فعل سره خاص دي.

## په ما اضمر عامله کې د نصب د غوره کولو يو بل صورت:

| |
|---|
| وَ كَذٰلِكَ يَخْتَارُ النَّصَبُ فِي الْإِسْمِ الْمَذْكُوْرِ عِنْدَ خَوْفِ لَبْسِ الْمُفَسِّرِ اَىْ اِلْتِبَاسِ مَا هُوَ |
| او همدا رنګې غوره دي نصب په اسم مختار کې په وخت دويرې د التباس د مفسر سره يعني التباس د هغه څه چې |
| مُفَسِّرٌ فِيْ حَالِ النَّصَبِ لٰكِنْ لَا مِنْ حَيْثُ هُوَ مُفَسِّرٌ فِيْ هٰذِهِ الْحَالَةِ بَلْ مِنْ حَيْثُ هُوَ |
| مفسر وي په حال د نصب کې ليکن نه د دې حيثيت نه چې دا مفسر وي په دې حالت کې بلکې د دې حيثيت نه چې دا |
| خَبَرٌ فِيْ حَالِ الرَّفْعِ بِالصِّفَةِ فَلَا يُعْلَمُ اَنَّهُ خَبَرٌ عَنِ الْاِسْمِ الْمَذْكُوْرِ فِيْ حَالِ الرَّفْعِ مَعَ |
| خبر دي په حالت د رفع کې په صفت سره نو نه معلوميږي چې دا خبر دي دا اسم مذکور نه په حال د رفع سره د |
| مُوَافَقَتِهٖ لِلْمَعْنَى الْمَقْصُوْدِ اَوْ صِفَةٌ لَهٗ مَعَ مُخَالَفَتِهٖ لِلْمَعْنَى الْمَقْصُوْدِ فَالْاِلْتِبَاسُ اِنَّمَا هُوَ بَيْنَ خَبَرِيَّةِ |
| موافقت نه د معنى مقصود سره او يا صفت وي سره د مخالفت د معنى مقصود نو التباس صرف دا په مينځ د خبر د هغه |
| ذَاتٍ مَا هُوَ مُفَسِّرٌ عَلٰى تَقْدِيْرِ النَّصَبِ وَ صِفَتِهٖ لَا بَيْنَهٗ بِوَصْفِ التَّفْسِيْرِ وَ بَيْنَ |
| ذات چې هغه مفسر وي په تقدير د نصب باندې او صفت د دې کې نه په مينځ د دې کې په وصف د تفسير او په مينځ د |
| الصِّفَةِ فَاِنَّ التَّرْكِيْبَ لَايَحْتَمِلُهُمَا مَعًا مِثْلُ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنٰهُ بِقَدَرٍ بِنَصَبِ |
| صفت سره ځکه ترکيب د دې دواړو احتمال نه لري يو ځاې لکه دا قول د الله تعالى اِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنٰهُ بِقَدَرٍ په نصب د |
| كُلَّ عَلَى الْاِضْمَارِ بِشَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ وَ لَوْ رُفِعَ بِالْاِبْتِدَاءِ وَ جُعِلَ خَلَقْنٰهُ خَبَرًا |
| کل سره په اضمار على شريطة التفسير سره او که چيرته رفع ورکړې شي بناء بر ابتداء او وګرځولې شي خلقناه خبر |
| لَهٗ كَانَ مُوَافِقًا لِلنَّصَبِ فِيْ اَدَاءِ الْمَقْصُوْدِ لٰكِنْ خِيْفَ لَبْسُهٗ بِصِفَةٍ لِاِحْتِمَالِ كَوْنِ |
| د دې د پاره نو دا موافق شو د نصب سره په اداء د مقصود کې ليکن د دې سره د التباس ويره ده ځکه چې دا احتمال لري |
| قَوْلِهٖ تَعَالٰى خَلَقْنٰهُ صِفَةً لِشَيْءٍ وَ قَوْلِهٖ بِقَدَرٍ خَبَرًا لَهٗ وَ هُوَ خِلَافُ الْمَقْصُوْدِ |
| چې دا قول د الله تعالى خلقناه دا صفت شي د پاره د شيء او دا قول بقدر دا خبر شي د دې د پاره او دا خلاف مقصود دي |
| فَاِنَّ الْمَقْصُوْدَ الْحُكْمُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ بِاَنَّهٗ مَخْلُوْقٌ لَنَا بِقَدَرٍ لَا الْحُكْمُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ |
| ځکه مقصود حکم په هر څيز باندې په دې اعتبار سره چې دا مخلوق دي زمونږ د پاره په تقدير سره نه حکم په هر څيز |

| مَخْلُوْقٍ لَنَا اَنَّهُ بِقَدَرٍ فَاِنَّهُ يُوْهِمُ كَوْنَ بَعْضِ الْاَشْيَاءِ الْمَوْجُوْدَةِ |
|---|
| چې پيدا شوي وي زمونږ دپاره چې دا د تقدير سره دي ځكه چې دا وهم پيدا كيږي چې كيدل د بعضې شيانو موجودو |
| غَيْرَ مَخْلُوْقَةٍ لِلّٰهِ تَعَالٰى كَمَا هُوَ مَذْهَبُ الْمُعْتَزِلَةِ فِي الْاَفْعَالِ الْاِخْتِيَارِيَّةِ لِلْعِبَادِ. |
| غير مخلوق د الله تعالى دپاره لكه دا مذهب د معتزلو دي په افعال اختيارو د بندګانو كې . |

**خلاصه دمتن** : صاحب كافيه په دې عبارت كې رفع جائز ، نصب مختار يو بل صورت ذكر كوي، كله چې رفع سره د صفت مفسّر د التباس ويره وي، نو په دې وخت كې هم اسم مذكور باندې نصب غوره دي، لكه د الله تعالى دا قول چې : (انا كل شئ خلقنا بقدر) چې د دې وضاحت په شرح كې را روان دي

**اغراض دجامي** : وعند خوف لبس المفسر: يو بل ځاې چيرته چې نصب غوره دي ، هغه بيانوي د عبارت حاصل دا دې چې كله د رفع په صورت كې د صفت سره د مفسر د التباس ويره وي، نو په دې وخت كې اسم مذكور باندې نصب مختار وي، لكه الله تعالى فرمايي : (انا كل شئ خلقناه بقدر) په دې كې په كل شئ باندې نصب مختار دي، د دې تقدير د عبارت خلقناه كل شئ خلقنا بقدر دي د نصب د مختار كيدو وجه داده، چې د دې آيت نه مقصود دوه ځيزونه دي: (۱) د هر يو ځيز خالق الله پاك دي . (۲) او هر ځيز په اندازه پيدا كړې شوې دي، كه دا منصوب ووايو نو د دې تركيب به داسې شي : خلقناه فعل سره د فاعله كل شئ مفعول به او د بقدر متعلق دي، نو د دې معنى دا شوه چې مونږ هر ځيز په اندازه پيدا كړي دي، په دې صورت كې دواړه مقصدونه حاصل شو او كه كل شئ مرفوع ووايو، نو د دې په تركيب كې دوه (۲) احتماله دي :

(۱) كل شئ مبتدا خلقناه بقدر جمله د دې خبر په دې صورت كې هم دواړه مقصدونه حاصل شو. ځكه چې په دې وخت كې به يې معنى دا شي، چې مونږ هر ځيز په اندازه پيدا كړې دي او دا بعينه هغه معنى ده كومه چې د نصب په صورت كې وه.

(۲) او دويم احتمال دا دې چې كل مضاف شيء موصوف خلقنا فعل سره فاعل او سره د مفعول به دا صفت شو موصوف سره د صفته دا مضاف اليه شو ، مضاف اليه سره د مضاف اليه نه دا مبتدا شوه بقدر د دې خبر دي په دې صورت كې به يې معنى دا شي چې هر هغه ځيز چې مونږه پيدا كړې دي هغه به اندازه دي د دې نه يو وهم پيدا كيږي. چې بعضې ځيزونه د الله مخلوق نه دي لكه دا معتزلو مذهب دی. چې د بنده افعال اختياريه د الله تعالى مخلوق نه دي چونكې

د رفع په صورت کې د صفت سره د مفسر د التباس ویره ده او د صفت جوړولو په صورت کې په مقصود کې خلل واقع کیږي. لهذا نصب مختار دي. د دې لپاره چې په مقصود کې خلل واقع نه شي

کذلك: په دې عبارت کې شارح بیان د عطف کوي، چې دا د عطف المشبه على المشبه به د قبیلې نه دي

اي التباس: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال:** د مصنف قول عند خوف لبس الخ صحیح نه دي، ځکه چې صفت سره د مفسّر التباس نشته. بلکې د خبر التباس دي، ځکه چې په ذکر شوي مثال کې خلقنا مفسر دي په حالت د نصب کې او په دې صورت کې د صفت جوړېدو احتمال نشته لهذا د مصنف دا وینا چې د مفسر التباس په د صفت سره لازم راشي، باطل ده البته که خلقناه خبر جوړ کړو نو بیا یې د صفت سره التباس راځي لیکن په دې صورت کې خلقناه مفسر نه دي نو په کوم صورت کې چې التباس دي. په دې کې خلقناه مفسر نه دي او په کوم صورت کې چې مفسر دي، نو په هغه صورت کې التباس نشته لهذا د مصنف قول عند خوف لبس المفسر بالصفة په یو صورت کې هم صحیح نه دي

**جواب:** دلته د مفسر نه مراد ذات مفسر دي. مطلب دا دي چې کوم ذات چې د نصب په حالت کې مفسر دي د رفع په حالت کې د صفت سره یې التباس لازم راځي. لیکن په دې حیثیت سره نه چې هغه مفسر دي بلکې د دې حیثیت نه چې هغه خبر دي

## په ما اضمر عامله کې د رفعې او د نصب مساوي صورت:

وَ يَسْتَوِىْ اَلْاَمْرَانِ اَيِ الرَّفْعُ وَ النَّصْبُ فَلِلْمُتَكَلِّمِ اَنْ يَّخْتَارَ كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا بِلَا تَفَاوُتٍ

او برابر دي دواړه امره یعنې رفع او نصب نو جائز دي د متکلم د پاره چې غوره کړي هر یو د دې دواړو نه بې د څه فرق

فِيْ مِثْلِ زَيْدٌ قَامَ وَ عَمْرًا اَكْرَمْتُهُ اَىْ عِنْدَهُ اَوْ فِيْ دَارِهِ وَ نَحْوُ ذٰلِكَ وَ اِلَّا لَا يَصِحُّ الْعَطْفُ

نه لکه زید قام و عمرا اکرمته یعنې عنده یا في داره او یا د دې په شان نور او که چیرته نه وي نو بیا نه دي صحیح عطف

عَلَى الصُّغْرٰى لِعَدَمِ الضَّمِيْرِ اَىْ يَسْتَوِىْ الْاَمْرَانِ فِيْمَا اِذَا عُطِفَتِ الْجُمْلَةُ الَّتِيْ

په صغرى باندې د وجې د عدم ضمیر نه یعنې برابر دي دواړه امره په هغه ترکیب کې چې کله ته عطف کړي هغه جمله

وَقَعَ فِيْهَا الْاِسْمُ الْمَذْكُوْرُ عَلٰى جُمْلَةٍ ذَاتِ وَجْهَيْنِ اَىْ جُمْلَةٍ اِسْمِيَّةٍ

چې هغه واقع وي په دې اسم مذکور کې په داسې جمله چې خاوند د دوه وجهېنو وي یعنې جلمه اسمیه چې د دې

| خَبَرُهَا جُمْلَةٌ فَيَصِحُّ رَفْعُهُ بِالْاِبْتِدَاءِ وَ نَصْبُهُ بِتَقْدِيرِ الْفِعْلِ وَ الْوَجْهَانِ مُسْتَوِيَانِ |
|---|
| خبر جمله فعليه وي نو دمبتدا اکيدو دوجې نه صحيح ده رفع ددې په تقدير دفعل سره او دوه وجهې برابر دي دوجې |
| لِحُصُولِ التَّنَاسُبِ فِيهِمَا فَفِي الرَّفْعِ تَكُونُ اِسْمِيَّةً فَتُعْطَفُ عَلَى الْجُمْلَةِ الْكُبْرٰى |
| د حصول د تناسب نه په دې دواړو کې نو په رفع کې به وي جمله اسميه نو عطف کولې به شي په جمله کبرى باندې |
| وَ هِيَ اِسْمِيَّةٌ وَ فِي النَّصْبِ تَكُونُ فِعْلِيَّةً فَتُعْطَفُ عَلَى الصُّغْرٰى وَ هِيَ فِعْلِيَّةٌ |
| او هغه اسميه ده او په نصب کې به وي جمله فعليه نو عطف کولې به شي په صغرى باندې او هغه جمله فعليه ده |
| فَإِنْ قُلْتَ اَلسَّلَامَةُ مِنَ الْحَذْفِ مُرَجِّحَةٌ لِلرَّفْعِ قُلْنَا هِيَ مُعَارِضَةٌ بِقُرْبِ |
| که چيرته ته ووايې چې سلامتيا د حذف نه د امرجحه ده دپاره د رفعې نو مونږ وايو چې دا معارض دي په قرب د |
| الْمَعْطُوفِ عَلَيْهِ فَإِنْ قُلْتَ لَا تَفَاوُتَ فِي الْقُرْبِ وَ الْبُعْدِ بَيْنَهُمَا اِذِ الْكُبْرٰى اَيْضاً قَرِيْبَةٌ |
| معطوف عليه سره که چيرته ته وايې چې څه فرق نشته په مينځ د قرب او بعد کې ځکه چې کبرى همدا رنګې قريبه |
| غَيْرُ مَفْصُولَةٍ عَنْهَا قُلْنَا هٰذَا بِاِعْتِبَارِ الْمُنْتَهٰى وَاَمَّا بِاِعْتِبَارِ الْمُبْتَدَاِ فَالصُّغْرٰى اَقْرَبُ. |
| ده چې جدا اکيدونکې نه ده مونږ وايو په اعتبار د منتهى او هرچې په اعتبار د مبتدا سره نو صغرى ډيره قريبه ده . |

**خلاصه دمتن** : ددې ځاې نه صاحب د کافيې د ما اضمر عامله د اعراب دريم قسم بيانوي،

صاحب د کافيې وايي چې زيد قام و عمروا اکرمته په شان مثال کې رفع او نصب دواړه مساوي دي ددې مثل نه مراد هر هغه ترکيب دي په کوم کې چې ما اضمر عامله واقع وي، ددې عطف جمله ذات و جهين باندې وه يعنې داسې جمله اسميه باندې عطف وي، چې د هغې خبر جمله فعليه وي لکه زيد قام و عمروا اکرمته نه دې کې عمرو منصوب ووايې نو دا جمله فعليه جوړيږي او ددې عطف په جمله صغرى يعنې په قام باندې دي او که عمرو مرفوع ووايې نو دا به جمله اسميه وي او ددې عطف به په جمله کبرى يعنې په زيد قام باندې وي، چونکې په دواړو وجهو کې د معطوف او معطوف عليه په مينځ کې مناسبت موجود دي نو لهذا دواړه امرونه برابر دي، او په يو بل باندې ورته ترجيح حاصله نه ده .

**اغراض دجامي** : اى الرفع والنصب: په دې عبارت کې شارح د الامران مصداق متعين کړي دي .

وللمتكلم: په دې عبارت سره غرض د شارح ديو وهم دفع کول او ختمول دي .

**وهم**: وهم دا دي چې شايد د استواء نه مراد استواء في الوجود وي اود امران نه مراد رفع اونصب وي نو مطلب به يې دا وي چې رفع او نصب په وجود على الاسم المذكور کې مساوي دي، نو په دې صورت کې اجتماع د حرکتينو مختلفينو په يو حرف والاخرابي لازم راځي، نو په **فللمتكلم** سره بې دا وهم لرې کړو، چې د استواء نه مراد استواء في الوجود مراد نه ده، بلکه استواء فى الاختيار مراد ده، يعنې متکلم ته اختيار دي، په دې دواړو کې يې چې کوم خوښ وي اختيار دې کړي

<u>اى عنده</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: په زيد قام و عمروا اکرمته کې په عمروا باندې نصب صحيح نه دي، ځکه چې که چېرته په دې باندې نصب ووايو، نو جمله عمروا اکرمته به عطف وي، په جمله صغرى يعنې په قام باندې، نو لکه څنګه چې قام زيد خبر دي همدارنګې په واسطه د عطف سره عمروا اکرمته هم د زيد خبر دي، حالانکه د دې خبر جوړيدل صحيح نه دي، ځکه چې خبر کله جمله وي، نو په دې کې عائد ضروري دي کوم چې مبتدا طرف ته راجع وي، اودلته په اکرمته کې عائد نشته دي، ځکه چې ة ضمير عمرواً طرف ته راجع دي نه زيد طرف ته؟

**جواب**: دلته عائد محذوف دي دا په اصل کې زيد قام و عمروا اکرمته عنده يا في داره وو.

<u>فان قلت</u>: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي اوپه قلنا سره د دې اعتراض جواب ورکوي:

**اعتراض**: مونږ دا خبره نه منو چې په ذکر شوي صورت کې رفع اونصب دواړې مساوي دي، بلکې رفع ته په نصب باندې ترجيح حاصل ده، ځکه چې د رفع په صورت کې د حذف نه سلامتيا ده او د نصب په صورت کې فعل حذف منل وي، نو راجحه قرينه دپاره د رفعې هغه سلامتيا ده د حذف نه.

**جواب**: قرب معطوف عليه د سلامتي عن الحذف معارض دي، يعنې که دا منصوب ووايي نو معطوف عليه به قريب وي، ځکه چې په دې صورت کې معطوف عليه قام دي او که دا مرفوع ووايو، نو معطوف عليه به بعيد وي، ځکه چې معطوف عليه به زيد وي کوم چې په نسبت سره د قام نه لرې ولاړ دي، نو لکه څنګه چې سلامتي عن الحذف قرينه مرجحه للرفع

ده، همدارنګې قرب معطوف عليه قرينه مرجحه للنصب ده، لهذا په دې کې يو ته په بل باندې ترجيح حاصل نه ده.

فان قلت: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي او په قلنا سره ددې اعتراض جواب ورکوي:

**اعتراض:** دې دواړو جملو کې د قرب او د بُعد په اعتبار څه تفاوت نشته، ځکه چې لکه څنګه جمله صغری قريب ده، په مينځ کې يې فاصله نشته، همدارنګې جمله کبری هم قريب ده او په مينځ کې يې څه فاصله نشته؟

**جواب:** اګر چې د منتهی په اعتبار سره په دواړو کې فرق نشته، ليکن د مبداء په اعتبار سره په کې فرق شته دې، ځکه چې دجملې کبری مبداء زاء ده او دجملې صغری مبداء قاف دې او قاف قريب دې په نسب سره زاء ته.

## د ما اضمر عامله داعراب څلورم قسم:

| |
|---|
| وَيَجِبُ النَّصَبُ اَیْ نَصَبُ الْاِسْمِ الْمَذْکُوْرِ بَعْدَ حَرْفِ الشَّرْطِ وَالْمُرَادُ بِهٖ هٰهُنَا اِنْ وَلَوْ فَاِنَّ اَمَّا وَاِنْ کَانَتْ مِنْ حُرُوْفِ |
| او واجب دې نصب يعنې نصب داسم مذکور پس دحرف شرط او مراددلته اِنْ او لَوْدي ځکه اما اګرکه دحروفو د |
| الشَّرْطِ فَحُکْمُهَا مَا سَبَقَ مِنْ اِخْتِيَارِ الرَّفْعِ مَعَ غَيْرِ الطَّلَبِ وَ اِخْتِيَارِ النَّصَبِ |
| شرط نه دې نو حکم ددې هغه دې چې مخکې تيرشوې دې داختيار ولو درفعې سره دغير طلب او اختيار د نصب |
| مَعَ الطَّلَبِ وَ كَذَا يَجِبُ نَصَبُهٗ بَعْدَ حَرْفِ التَّحْضِيْضِ وَهُوَ هَلَّا وَاَلَّا وَلَوْ لَاوَلَوْ مَا وَاِنَّمَا |
| سره دطلب او همدارنګې واجب دې نصب ددې پس دحرف تحضيض نه او هغه هلا، الا، لو، لا، لو ما دي او په تحقيق |
| وَجَبَ النَّصَبُ بَعْدَهُمَا لِوُجُوْبِ دُخُوْلِهِمَا عَلَى الْفِعْلِ لَفْظًا اَوْ تَقْدِيْرًا مِثْلُ اِنْ زَيْدًا |
| سره واجب دې نصب پس ددې دواړو دوجې دوجوب د دخول ددې دواړو په فعل باندې لفظاً او تقديراً لکه ان زيداً |
| ضَرَبْتَهٗ ضَرَبَکَ مِثَالٌ لِحَرْفِ الشَّرْطِ وَاَلَّا زَيْدًا ضَرَبْتَهٗ مِثَالٌ لِحَرْفِ التَّحْضِيْضِ. |
| ضربته ضربک نودامثال دې دحرف شرط او الا زيدا ضربته دامثال دې دحرف تحضيض. |

**خلاصه دمتن:** دلته مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د ما اضمر عامله داعراب څلورم قسم وجوب د نصب بيانوي، کله چې اسم مذکور دحرف شرط يا دحرف تحضيض نه پس واقع وي، نو په دې باندې نصب واجب دې د شرط مثال لکه ان زيداً ضربته ضربك د حرف تحضيض مثال لکه الا زيداً ضربته.

**اغراض د جامي** : اي نصب الاسم المذكور: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: دلته بحث د ما اضمر عامله کېږي او په دې باندې مطلق نصب واجب دی، ځکه چې هغه د مفعول به د قبيلې نه دي لهذا مصنف رَحِمَهُ اللهُ دوجوب نصب مقيد کول په حروف شرط اوحروف تحضيض نه پس صحيح نه دي .

**جواب**: دلته مراد حقيقتاً ما اضمر عامله نه دي، بلکې الاسم المذكور يعنې هغه اسم مراد دي کوم چې د ما اضمر عامله په مظان کې واقع کېږي .

والمراد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: اما هم حرف شرط دي، حالانکه ددې نه پس کله چې اسم مذکور واقع وي، نو په دې باندې نصب واجب نه دي، بلکې که اما د غير طلب سره وي، نو په اسم مذکور باندې رفع غوره ده او که طلب سره وي، نو نصب مختار دي ؟

**جواب**: د حرف شرط نه مراد فقط اِنْ او لَو دي اما مراد نه دي، ځکه چې ددې تفصيل مخکې تېر شوې دي .

كذا يجب: دا عبارت يې مقدر کړو په دې سره شارح اشاره کړې چې دحرف تحضيض عطف په حرف شرط باندې دي .

وهو: په دې عبارت کې شارح دحرف تحضيض مصداق بيانوي چې حروف تحضيض څلور (۴) دي : الا، هلا، لولا، لوما.

وانما وجب: په دې عبارت کې شارح دوجوب نصب وجه بيانوي، دحرف شرط اود حرف تحضيض نه پس اسم مذکور باندې نصب ځکه واجب دي. ځکه چې حرف شرط اوحرف تحضيض په فعل باندې داخليدل واجب دي، برابره خبره ده که دا فعل مذکور وي اويا دا فعل مقدر وي . نو کله چې فعل مذکور نه وي، نو مقدر به وي لهذا اسم مذکور به دفعل مقدر دوجې نه منصوب وي

مثال لحرف الشرط: په دې عبارت کې شارح دممثل له تعيين کوي

مثال لحرف التحضيض: په دې عبارت کې هم شارح دممثل له تعيين کوي

## د ما اضمر عامله د اعراب پنځم قسم :

| |
|---|
| وَ لَيْسَ مِثْلَ اَزَيْدٌ ذَهَبَ بِهٖ مِنْهُ اَیْ مِنْ بَابِ الْاِضْمَارِ عَلٰی شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ فَاِنَّ زَيْدًا فِيْهِ وَاِنْ كَانَ |
| اونه دي دامثال ازيد ذهب به د دې نه يعني د باب د اضمار على شريطة التفسير نه خکه زيداً په دې کې اګرچې |
| يُظَنُّ فِيْ بَادِيْ النَّظَرِ اَنَّهٗ مِمَّا اُضْمِرَ عَامِلُهٗ عَلٰی شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ وَ الْمُخْتَارُ فِيْهِ |
| معلوميږي د ظاهر نظر نه چې دا د هغه قبيلې نه دې چې مضمروي عامل د دې په شرط د تفسير سره او غوره په دې |
| النَّصَبَ لِوُقُوْعِ الْاِسْمِ الْمَذْكُوْرِ فِيْهِ بَعْدَ حَرْفِ الْاِسْتِفْهَامِ لٰكِنْ يَظْهَرُ بَعْدَ التَّعَمُّقِ التَّامِّ |
| کې نصب دي دوجې دوقوع اسم مذکورنه په دې کې پس د حرف استفهام نه لکن ظاهريږي پس د ډوب نظرنه چې |
| اَنَّهٗ لَيْسَ مِنْهُ فَاِنَّهٗ وَ اِنْ صَدَقَ عَلَيْهِ اَنَّهٗ اِسْمٌ بَعْدَهٗ فِعْلٌ مُشْتَغِلٌ عَنْهُ |
| دا د دې نه. نه دي خکه اګرچې صادقيږي په دې مثال باندې چې دا اسم دي او پس د دې نه فعل چې مشغول دي د دې |
| بِضَمِيْرِهٖ لٰكِنَّهٗ لَيْسَ بِحَيْثُ لَوْ سُلِّطَ عَلَيْهِ هُوَ اَوْ مُنَاسِبُهٗ |
| د ضمير سره ليکن دا نه دي د دې حيثيت نه که چيرته مسلط کړې شي په دې باندې فعل او يا مناسب د دې فعل نو |
| لَنَصَبَهٗ لِاَنَّ ذُهِبَ بِهٖ لَا يَعْمَلُ النَّصَبَ وَ كَذَا مُنَاسِبُهٗ اَعْنِيْ اُذْهِبَ فَاِنْ |
| نصب به ورکوي خکه چې ذهب به دا عمل نه ورکوي نصب ته او همدارنګې د دې سره مناسب يعني اذهب که چيرته |
| قُلْتَ لَا يَنْحَصِرُ الْمُنَاسِبُ فِيْ اُذْهِبَ فَلْيُقَدَّرْ مُنَاسِبٌ اٰخَرُ يَنْصِبُهٗ مِثْلُ يُلَابِسُ |
| ته ووايې چې نه دي مناسب حصر په اذهب کې نو مقدر به راوړې بل مناسب چې نصب ورکوي دې ته مثال لکه يلابس |
| اَوْ اَذْهَبَ عَلٰی صِيْغَةِ الْمَعْلُوْمِ فَيَكُوْنُ تَقْدِيْرُهٗ زَيْدًا يُلَابِسُهُ الذَّهَابُ بِهٖ اَوْ اَذْهَبَهٗ اَحَدٌ قُلْنَا الْمُرَادُ بِالْمُنَاسِبِ |
| او اذهب په صيغې د معلوم سره نووي به تقدير د دې زيداً يلابسه الذهاب به او اذهبه احد نو مونږ وايو مراد په مناسب |
| مَا يُرَادِفُ الْفِعْلَ الْمَذْكُوْرَ اَوْ يُلَازِمُهٗ مَعَ اِتِّحَادِ مَا اُسْنِدَ |
| سره هغه دي چې مرادف وي د ذکرشوي فعل سره او يا لازم وي د دې سره، سره د اتحاد د هغه څه چې اسناد يې شوي |
| اِلَيْهِ فَالْاِتِّحَادُ فِيْمَا ذَكَرْنَاهُ مَفْقُوْدٌ وَ اِذَا كَانَ الْاَمْرُ كَذٰلِكَ فَالرَّفْعُ اَیْ رَفْعُ |
| وي دې طرف ته نو اتحاد په دې مثالونو کې چې مونږ ذکر کړو نشته او چې کله امر داسې وي نو بيا رفع ده يعني رفع |
| زَيْدٍ فِي الْمِثَالِ وَاجِبٌ بِالْاِبْتِدَاءِ وَنَصْبُهٗ غَيْرُ جَائِزٍ بِالْمَفْعُوْلِيَّةِ فَلَيْسَ مِنْ بَابِ الْاِضْمَارِ عَلٰی |
| د زيد په مثال کې د مبتدا اکيد و د وجې نه او نصب د دې غير جائز دي بنابر مفعوليت نو دا نه دي د باب د اضمار على |
| شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ فَكَيْفَ مِمَّا يُخْتَارُ فِيْهِ النَّصَبُ. |
| شريطة التفسير نه نو څنګه به غوره شي په دې کې نصب |

**خلاصه دمتن** : دا عبارت په ظاهر کې د يو سوال مقدر جواب دي، ليکن په حقيقت کې د ما اضمر عامله داعراب پنځم قسم دي، چې په کوم باندې رفع واجب ده. اودا عبارت ديو سوال مقدر جواب هم دي

**سوال**: مخکې تير شو چې کله اسم مذکور دحرف استفهام نه پس واقع وي، نو په دې باندې نصب مختار او رفع جائز ده دا خبره منقوضه اوماته ده په ازيد ذهب به مثال سره ځکه چې په دې کې زيد دحرف استفهام نه پس واقع دي، ددې باوجود په دې باندې نصب مختار نه دي، بلکې نصب دسره جائز نه دي، بلکې رفع واجب ده؟

**جواب**: مصنف رَحِمَهُ الله جواب ورکړو او شارح جامي په فان زيداً سره ددې تشريح کوي دا د ما اضمر عامله دباب نه ، نه دي، ځکه چې که چيرته په بادي النظر کې دزيد په باره کې دا ګمان وي چې داد ما اضمر عامله دباب نه دي ځکه چې دحرف استفهام نه پس واقع دي لهذا په دې باندې نصب غوره کول په کار دي، ليکن د ژور نظر نه پس دا خبره واضحه شوه، چې داد ما اضمر عامله دباب نه ، نه دي، ځکه چې که چيرته په دې باندې دا خبره صادق راځي چې دا اسم دي او ددې نه پس يو فعل دي کوم چې ددې په ضمير کې دعمل کولو نه پس په خپله په دې کې د عمل کولو نه اعراض کوي، ليکن هغه فعل ددې حيثيت نه ،نه دي که چيرته بعينه دا يا ددې مناسب په دې باندې مسلط کړی شي، نو هغه به دې ته نصب ورکړي، ځکه که په خپله دا مسلط کړي نو ددې دوه(۲) صورتونه دي : (۱) د باء سره.(۲) په غير دباء نه ، که دباء سره مسلط کړې شي، نو دنصب په ځاې به جر ورکوي او که په غير دباء نه مسلط کړې شي، نو دا فعل لازمي دي او فعل لازمي مفعول ته نصب نه ورکوي او که ددې مناسب مرادف لکه أذهب مسلط کړې شي، نو هغه دې مفعول مالم يسم فاعله کيدو په بناء باندې رفع ورکوي نه نصب نو معلومه شوه چې داد ما اضمر عامله دباب نه ، نه دي.

**اغراض دجامي** : منه اى من باب الاضمار: په دې عبارت کې شارح د منه دضمير مرجع بيان کړې ده .

فان قلت: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي اوپه قلنا سره شارح ددې اعتراض جواب ورکوي :

**اعتراض**: انحصار په اُذهب کې مناسب خو نه دي نور هم مناسبات موجود دي، چې د چا د وجې نه په اسم مذکور باندې نصب راځي، بل مناسب دې مقدر کړې شي ددې لپاره چې هغه اسم مذکور ته نصب ورکړي، مثلاً يلابس يا اذهب په صيغې دماضي معلوم که چيرته يلابس مقدر وګنړي، نو تقدير دعبارت به داسې شي: زيدا يلابسه الذهاب به يا زيدا يلابسه احدالذهاب به او که اذهب مقدر وګنړي، نو تقدير دعبارت به داسې شي چې: زيدا اذهب احد.

**جواب**: په فعل مذکور کې دمناسب مرادف يا دمناسب لازم نه مراد هغه مناسب دي چې د فعل مذکور او دفعل مقدر دمناسب په مينځ کې په مسند اليه کې اتحاد وي، يعنې ددواړو مسند اليه يوه وي او په ذکر شوو صورتونو کې دفعل مذکور اودفعل مقدر مسنداليه يو نه پاتې کيدو ځکه چې دفعل مذکور مسند اليه زيد دي ، اودفعل مقدر مسند اليه الذهابُ دي يا احدٌ دي نو لهذا اشکال اواعتراض کول غلط دي.

اذاکان: په دې عبارت کې شارح دمتن وضاحت کوي ، په فالرفع کې فاء فصيحيه ده، ځکه چې دا جزاء ده د شرط محذوف کوم چې اذاکان الامر کذلك دي، يعنې کله چې معامله دغه شان وه، نو په ذکر شوي مثال کې په زيد باندې رفع بالابتداء واجب ده او د مفعوليت د وجې نه نصب جائز نه دي، کله چې په دې باندې نصب بالمفعولية جائز نه دي، نو نصب مختار څنګه شو، لهذا داد ما اضمر عامله د باب نه ، نه دي، بلکې دمظان اضمار نه دي.

ای رفع زيدا: په دې عبارت سره شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې په الرفع کې الف لام د مضاف اليه نه عوض دي چې زيد دي.

واجب: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: فالرفع شرط محذوف د اذاکان الامر لپاره جزاء ده اوجزاء دپاره جمله کيدل شرط دي، او فالرفع مفرد دي؟

**جواب**: الرفع مبتدا ده، ددې خبر واجب محذوف دي، مبتدا او خبر سره يوځاې شو نو دا جمله جزا ده نو اشکال او سوال دفع شو.

## د ما اضمر عامله د اعراب بل قسم:

وَ كَذَا اَیْ مِثْلُ اَزَیْدٌ ذُهِبَ بِهٖ قَوْلُهٗ تَعَالٰی كُلُّ شَیْءٍ فَعَلُوْهُ فِی الزُّبُرِ اَیْ فِیْ صَحَائِفِ

| |
|---|
| اوهمدارنګې يعني په مثل دازيدذهب به داقول دالله تعالى كُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوْهُ فِي الزُّبُرِ يعني په صحيفود |
| اَعْمَالِهِمْ فَهُوَ لَيْسَ مِنْ بَابِ الْإِضْمَارِ عَلَى شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ لِاَنَّهُ لَوْ جُعِلَ مِنْهُ لَصَارَ |
| اعمالودووي کې نودانه دي دباب داضمار على شريطة التفسيرنه ځکه چې که چيرته وګرځول شي ددې نه نووبه ګرځي |
| التَّقْدِيْرُ فَعَلُوْا كُلَّ شَيْءٍ فِي الزُّبُرِ فَقَوْلُهُ فِي الزُّبُرِ اِنْ كَانَ مُتَعَلِّقًا بِفَعَلُوْا فَسَدَ الْمَعْنَى لِاَنَّ صَحَائِفِ |
| تقدير فَعَلُوْاكُلَّ شَيْءٍ فِي الزُّبُرِ نوداقول ددوي في الزبر كه چيرته متعلق وي ترفعلوانو معنى به يې فاسده شي ځکه صحيفې |
| اَعْمَالِهِمْ لَيْسَتْ مَحَلًّا لِفِعْلِهِمْ لِاَنَّهُمْ لَمْ يُوْقِعُوْا فِيْهَا فِعْلًا بَلِ الْكِرَامُ الْكَاتِبُوْنَ اَوْقَعُوْا |
| داعمالودووي نه دي محل دپاره دفعلونودووي ځکه چې نه دي واقع شوې په دې کې فعل بلکې كرام كاتبين واقع |
| فِيْهَا كِتَابَةَ اَفْعَالِهِمْ وَ اِنْ كَانَ صِفَةً لِشَيْءٍ مَعَ اَنَّهُ خِلَافُ ظَاهِرِ الْاٰيَةِ |
| شوي دي دپاره دليکلو دافعالودووي اوکه چيرته داصفت شي دپاره دشيء سره ددې چې داخلاف ظاهردآيت دي |
| فَاتَ الْمَعْنَى الْمَقْصُوْدُ اِذِ الْمَقْصُوْدُ اَنَّ كُلَّ شَيْءٍ هُوَ مَفْعُوْلٌ لَهُمْ كَائِنٌ فِي الزُّبُرِ |
| نوفوت به شي معنى مقصودځکه چې مقصوددادي چې هرهغه څيزچې کوونکي وي دوي لره داثابت دي په زبر |
| مَكْتُوْبٌ فِيْهَا مُوَافِقًا لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَ كُلُّ صَغِيْرٍ وَ كَبِيْرٍ مُسْتَطَرٌ لَا اَنَّ كُلَّ شَيْءٍ كَائِنٍ فِي صَحَائِفِ |
| اوليکل شوې دي په دې کې موافق ددې قول دالله تعالى وَكُلُّ صَغِيْرٍ وَكَبِيْرٍ مُسْتَطَرٌ، نه چې هرڅيزکائن دي په صحيفود |
| اَعْمَالِهِمْ مَفْعُوْلٌ لَهُمْ فَالرَّفْعُ لَازِمٌ عَلَى اَنْ يَكُوْنَ كُلُّ شَيْءٍ مُبْتَدَأً وَ الْجُمْلَةُ الْفِعْلِيَّةُ صِفَةً |
| اعمالودووي کې چې کوونکي وي دوي لره نورفع لازم ده په دې بناء چې شي كل شيء مبتدا اوجمله فعليه صفت شي |
| لِشَيْءٍ وَ الْجَارُ وَ الْمَجْرُوْرُ فِي مَحَلِّ الرَّفْعِ عَلَى اَنَّهُ خَبَرُ الْمُبْتَدَاِ تَقْدِيْرُهُ كُلُّ شَيْءٍ هُوَ مَفْعُوْلٌ لَهُمْ |
| دپاره دشيء اوجارمجرورپه محل درفع کې سره ددې چې داخبردي دپاره دمبتدانوتقديريې كل شيء هو مفعول لهم |
| ثَابِتٌ فِي الزُّبُرِ بِحَيْثُ لَا يُغَادِرُ صَغِيْرَةً وَلَا كَبِيْرَةً. |
| لهم ثابت في الزبر دي په داسې شان سره چې نه ده پريخې وړه ګناه اونه غټه ګناه. |

**خلاصه دمتن** : په ظاهره دا عبارت د يو سوال مقدر جواب دي، ليکن په حقيقت کې دا هم د ما اضمر عامله د اعراب يو قسم دي چې ددې تفصيل لاندې په شرحه کې ذکر دي.

**اغراض دجامي : سوال**: مخکې تير شوې دي که درفعې او د نصب دواړو دپاره قرينه مصححه وموندل شي، ليکن قرينه مرجحه صرف درفع دپاره وي، نو رفع مختار او نصب جائز وي، ليکن دا قاعده منقوضه اوماته شوه د الله تعالى په دې قول سره چې: **كل شئ فعلوه في الزبر**، ځکه چې كل شئ دعوامل لفظيه نه خالي کېدل قرينه مصححه للرفع دي او ددې نه پس داسې فعل کېدل چې په هغې کې دتفسير جوړېدو صلاحيت دي دا قرينه مصححه للنصب دي، ليکن

قرینه مرجحه صرف په رفع باندې موجود ده، او هغه سلامتیا ده دحذف نه ، په نصب باندې قرینه مرجحه نشته، نو دقاعدې موافق په کل شيء باندې رفع غوره کیدل په کار وو او نصب هم جائز کیدل په کار وو حالانکه رفع واجب ده .

**جواب:** په وکذا کل شئ سره مصنف جواب ورکړو ، شارح ددې تفصیل بیانوي چې لکه څنګه ازید ذهب د ما اضمر عامله دقبیلې نه، نه دي همدارنګې د الله تعالی دا قول کل شئ فعلوه في الزبر هم د ما اضمر عامله د قبیلې نه، نه دي.

لانه لو جعل منه: په دې عبارت سره شارح د ما اضمر عامله د قبیلې نه دنه کیدو وجه بیانوي، که داد ما اضمر عامله د قبیلې نه وي، نو تقدیر عبارت به داسې شي، فعلو کل شيء في الزبر بیا د في الزبر په ترکیب کې دوه (۲) احتماله دي : (۱) في الزبر د فعلوه متعلق شي که چیرته داد فعلوه سره متعلق وي، نو معنی به یې فاسده شي، څکه چې په دې وخت کې یې معنی دا شوه چې آیا هغوي هر یو څیز په اعمال نامه کې، ددې معنی د وجې نه به صحائف د بندګانو د فعل محل به جوړ شي، حالانکه صحائف اعمال دبندګانو دافعالو محل نه وي، بلکې د کراماً کاتبین افعال محل دي کراماً کاتبین د بندګانو افعال په صورت دکتابت کې په دې کې درج کوي.

(۲) دویم احتمال دادې چې في الزبر د شيء صفت دي اګر چې دا د ظاهر آیت خلاف دي، څکه چې په دې صورت کې به دموصوف اوصفت په مینځ کې فعلو فاصله به شي ددې باوجود که دا صفت جوړ کړي، نو معنی مقصودي به یې فوت شي، څکه چې د آیت نه مقصود دادې چې څه چې بندګان کوي هغه د دوي په اعمال نامه کې لیکلې شي، لکه دالله تعالی فرمان دي : وکل صغیر و کبیر مستطر، چې هر وړوکی غټ څیز لیکلې شوې دي او که صفت جوړ کړې شي، نو معنی به یې دا شي چې هر هغه څیز چې په اعمال نامه کې درج وي، هغه د بندګانو کړه وړه یعنې اعمال دي ، په دې سره یو وهم باطل پیدا شو، چې د بندګانو بعض اعمال داسې هم دي، چې اعمال نامه کې هم نه وي، لهذا داد ما اضمر عامله د باب نه ، نه دي .

نو لهذا په کل شيء باندې رفع واجب ده او دا مبتداء او فعلوه جمله فعلیه ددې صفت دي او في الزبر ظرف مستقر ثابت سره متعلق شو ددې خبر دي، تقدیر دعبارت به داسې شي چې : کل شيء هو مفعول لهم ثابت في الزبر بحیث لا یغادر صغیرة ولا کبیرة ، هر هغه عمل چې بندګانو کړې

وي دابه ددوي په عمل نامه کې ثابت وي په زبر کې په داسې شان سره چې نه به يې وروکې عمل پريخې وي او نه غټ عمل.

اي في صحائف اعمالهم: په دې عبارت سره شارح يا خو تفسير د غير مشهور په مشهور سره کوي او يا دفع ديو وهم کوي ، هغه وهم دادې چې زبر د زبور جمع ده ، ددې نه مراد کتاب زبور دې کوم چې په داؤد عليه السلام باندې نازل شوې دې، حالانکه دا معنی دلته مراد نه ده، نو صحائف اعمال سره ددې وهم ازاله وشوه، چې دلته عمل نامه مراد ده.

## په الزانية والزاني باندې د رفعې بحث:

وَاعْلَمْ اَنَّهُ قَدْ سَبَقَ اَنَّ الْاِسْمَ الْمَذْكُوْرَ اِذَا كَانَ الْفِعْلُ الْمُشْتَغِلُ عَنْهُ بِضَمِيْرِهِ اَوْ مُتَعَلِّقِهِ

پوه شه چې دا خبره مخکې تيره شوې ده چې اسم مذکور چې کله مشغول وي ددې نه په ضمير سره او يا ددې د متعلق

اَمْرًا اَوْ نَهْيًا فَالْمُخْتَارُ فِيْهِ النَّصَبُ وَالظَّاهِرُ اَنَّ قَوْلَهُ تَعَالٰى اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ

سره امر او يا نهي نو غوره په دې کې نصب دې او ظاهر چې دا قول د الله تعالى اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ

جَلْدَةٍ دَاخِلٌ تَحْتَ هٰذِهِ الْقَاعِدَةِ مَعَ اَنَّ الْقُرَّاءَ اِتَّفَقُوْا فِيْهِ عَلَى الرَّفْعِ اِلاَّ فِيْ رِوَايَةٍ شَاذَّةٍ

جَلْدَةٍ داخل دې لاندې ددې قاعدې سره ددې چې قاريان متفق دي په دې کې په رفعې سره مګر په روايت شاذه

عَنْ بَعْضِهِمْ فَاضْطَرَّ النُّحَاةُ اِلٰى اَنْ تَمَحَّلُوْا لِاِخْرَاجِهٖ عَنِ الْقَاعِدَةِ الْمَذْكُوْرَةِ لِئَلاَّ

سره د بعضو نورو نه نو مجبوره شو نحويان دې ته چې حيله جوړه کړي د خارجولو ددې قاعدې مذکورې نه خکه چې

يَلْزِمَ اِتِّفَاقُ الْقُرَّاءِ عَلٰى غَيْرِ الْمُخْتَارِ فَاَشَارَ الْمُصَنِّفُ اِلٰى مَا تَمَحَّلُوْا

لازم نه شي اتفاق د قاريانو په غير مختار باندې نو اشاره وکړه مصنف هغه څه ته چې حيله جوړه کړي نحويانو د

لِاِخْرَاجِهٖ عَنْهَا فَقَالَ وَ نَحْوُ الزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ

خارجولو ددې آيت ددې قاعدې نه نو وويل چې په دې مثل کې اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ

اَلْفَاءُ فِيْهِ مُرْتَبِطَةٌ بِمَعْنَى الشَّرْطِ عِنْدَ الْمُبَرَّدِ لِكَوْنِ الْاَلِفِ وَاللاَّمِ فِي الزَّانِيَةِ وَالزَّانِيْ مُبْتَدَاً مَوْصُوْلاً

نو فاء په دې کې مرتبط ده په معنی د شرط پورې په نزد د مبرد د کيدو د الف او لام په الزانية والزاني مبتدا موصول په

فِيْهِ مَعْنَى الشَّرْطِ وَ اِسْمُ الْفَاعِلِ الَّذِيْ هُوَ صِلَتُهٗ كَالشَّرْطِ فَخَبَرُ الْمُبْتَدَاِ كَالْجَزَاءِ وَ الْفَاءُ

دې کې معنی د شرط ته او اسم فاعل هغه چې هغه ددې صله وي لکه شرط نو خبر د مبتدا په شان د جزا ده او فاء

اَلدَّاخِلَةُ عَلَيْهِ مُرْتَبِطَةٌ بِالشَّرْطِ لِدَلاَلَتِهَا عَلٰى سَبَبِيَّتِهٖ لِلْجَزَاءِ

چې کومه داخله ده په دې باندې نو دا مرتبط ده د شرط پورې د وجې د دلالت نه په سببيت ددې باندې د پاره د جزا

وَ مِثْلُ هٰذِهِ الْفَاءِ لاَ يَعْمَلُ مَا فِيْ حَيِّزِهَا فِيْ مَا قَبْلِهَا

| |
|---|
| او په شان د دې فاء په مابعد کې چې څه کيږي نو هغه د دې په مابعد کې کيږي نو دا په ماقبل کې عمل نه کوي نو |
| فَامْتَنَعَ تَسْلِيْطُ الْفِعْلِ الْمَذْكُوْرِ بَعْدِهَا عَلٰى مَا قَبْلَهَ فَتَعَيَّنَ فِيْهِ الرَّفْعُ وَ الْاٰيَةُ |
| ممتنع دي مسلط کول د ذکرشوي فعل وروسته د دې په ماقبل باندې نو متعين دي په دې کې رفع او دا آيت دوه |
| جُمْلَتَانِ مُسْتَقِلَّتَانِ عِنْدَ سِيْبَوَيْهِ اِذِا الزَّانِيَةِ مُبْتَدَأٌ مَحْذُوْفُ الْمُضَافِ وَ الزَّانِيْ عَطْفٌ |
| جملې دي مستقلې په نزد د امام سيبويه ځکه چې الزانية مبتدا چې د دې مضاف محذوف دي او الزاني عطف دي په |
| عَلَيْهِ وَ الْخَبَرُ مَحْذُوْفٌ اَیْ حُكْمُ الزَّانِيَةِ وَ الزَّانِيْ فِيْمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ بَعْدُ وَ قَوْلُهٗ فَاجْلِدُوْا جُمْلَةٌ |
| دې باندې او خبر محذوف دي يعني حكم الزانية والزاني فيما يتلى عليهم بعد او د اقول د الله تعالى فاجلدوا د اجمله |
| ثَانِيَةٌ لِبَيَانِ الْحُكْمِ الْمَوْعُوْدِ وَ الْفَاءُ عِنْدَهٗ اَيْضاً لِلسَّبَبِيَّةِ اَیْ |
| ده دويمه د پاره د بيان د هغه حكم چې وعده يې شوې ده او فاء همدارنګې د سيبويه په نزد د سببيت د پاره دي يعني |
| اِنْ ثَبَتَ زِنَاهُمَا فَاجْلِدُوْا وَ قِيْلَ زَائِدَةٌ اَوْ لِلتَّفْسِيْرِ وَ جُزْءُ |
| که چيرته د دې دواړو زنا ثابت شوه نو دوي ته دُورې ورکړې او چاويلې چې فاء زائده ده او يا د تفسير د پاره ده او جزء |
| الْجُمْلَةِ لَا يَعْمَلُ فِيْ جُزْءِ جُمْلَةٍ اُخْرٰى فَيَمْتَنِعُ التَّسْلِيْطُ فَلَا تَدْخُلُ فِي الضَّابِطَةِ فَتَعَيَّنَ الرَّفْعُ |
| د جملې د اعمل نه کوي په جزء د بلې جملې نو ممتنع دي تسليط نو داخل نه شو آيت په قاعده کې نو رفع متعينه شوه |
| وَ اِلَّا اَیْ وَ اِنْ لَمْ تَكُنِ الْفَاءُ بِمَعْنَى الشَّرْطِ وَلَمْ تَكُنِ الْاٰيَةُ جُمْلَتَيْنِ اَيْضاً فَهِيَ تَكُوْنُ دَاخِلَةً تَحْتَ |
| او که چيرته نه وي يعني که چيرته نه وي فاء په معنى د شرط او نه وي آيت دوه جملې همدارنګې نو داوي داخل لاندې |
| الضَّابِطَةِ فَالْمُخْتَارُ حِيْنَئِذٍ فِيْهَا النَّصْبُ وَ اِخْتِيَارُ النَّصْبِ بَاطِلٌ لِاِتِّفَاقِ الْقُرَّاءِ عَلٰى |
| د دې قاعدې نو غوره په دې وخت کې په دې کې نصب دي او اختيار د نصب باطل دي د دوجې د اتفاق د قاريانو په |
| الرَّفْعِ فَلَا بُدَّ مِنْ جَعْلِ الْفَاءِ بِمَعْنَى الشَّرْطِ اَوْ جَعْلِ الْاٰيَةِ جُمْلَتَيْنِ |
| رفع باندې نو نشته دي خلاصي د ګرځولو د فاء په معنى د شرط او يا ګرځول د آيت دوه جملې د دې د پاره چې |
| لِيَتَعَيَّنَ الرَّفْعُ. |
| متعينه شي رفع. |

**خلاصه دمتن**: صاحب د كافيې وايي چې د الله تعالى په قول الزانية والزاني فاجلدوا كل واحد منهما مائة جلدة كې د الزانية او الزاني نه پس امر واقع دي ، ليكن قراء سبعه د دې په رفعې متفق دي حالانكه په دې باندې نصب مختار په كار وو، نو آيت يې د ذكر شوې قاعدې نه د خارجولو د پاره نحويانو څو حيلې اختيار كړې دي، په ذكر شوي عبارت كې د غه حيلې مصنف ذكر كړې چې د دې حيلو تفصيل لاندې په شرحه كې ذكر شوي دي .

**اغراض دجامي** : واعلم: په دې عبارت کې شارح جامي دې خبرې طرف ته اشاره کوي.
چې دماتن عبارت ونحوالزانية والزاني د يو سوال مقدر جواب دي، واعلم سره شارح ددغه سوال تشريح کوي، چې د هغې حاصل دادې، چې مخکې تېر شوي دي، چې هغه فعل چې کوم داسم مذکور په ضمير يا د هغه په متعلق کې دعمل کولو د وجې نه په دې اسم کې عمل کولو نه اعراض کوي او هغه فعل امر يا نهي وي، نو په اسم مذکور باندې نصب مختار ده او په ظاهره د الله تعالى فرمان الزانية والزاني فاجلدوا کل واحد منهما مائة جلدة ددې قاعدې لاندې داخل دي، ځکه چې په دې کې الزانية والزاني نه پس فاجلدوا امر واقع دي، حالانکه په دې باندې نصب مختار نه دي، بلکې قراء سبعه ددې په رفع باندې متفق دي، صرف د عيسى بن عمرو يو قرات شاذه د نصب دي ، اوس په دوو (۲) محالونو کې يو محال لازم راځي :
(۱) يا خو د قراء سبعه په رفع باندې اتفاق غلط دي دا هم محال دي .
(۲) يا خو دنحويانو ذکر شوي قاعده غلطه ده دا هم محال ده، نو ځکه نحويانو حضراتو د خپلې قاعدې دبچ کولو دپاره په دې آيت کريمه کې څو تاويلات اوحيلې کړې دي نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ په ونَحْوُ الزانية سره دا حيلې کوي اوشارح ددې تشريح کوي .
عندالمبرد: په دې عبارت سره شارح دامام مبرد مذهب بيانوي، دامام مبرد په نزد په فاجلدوا کې فاء د شرط معنى سره ده يعني دا فاء جزائيه ده، کومه چې د مابعد دماقبل سره ديو ځاې کولو دپاره راځي، ځکه چې په الزانية والزاني کې الف لام په معنى الذي اسم موصول سره دي موصول صله يوځاې شو دامبتدا چې متضمن وي معنى دشرط لره ، ځکه چې کله مبتدا اسم موصول وي او ددې صله فعل يا ظرف وي، نو دغه مبتدا معنى د شرط ته متضمن وي او فعل او ظرف په منزله دشرط وي ، لهذا اسم فاعل کوم چې صِله ده دا په منزله دشرط دي او د مبتدا خبر فاجلدوا دا په منزله دجزاء دي په دې باندې فاء داخله ده دا فاء خبر دشرط سره يو ځاى کوي، ځکه چې دا فاء په دې خبره باندې دلالت کوي، چې شرط دجزاء دپاره سبب دي او دا يقيني خبره ده، چې دغه شان فاء مابعد په ما قبل کې عمل نه کوي، لهذا فاجلدوا په الزانية باندې مسلط کول ممتنع دي نو دا به د ما اضمر عامله دباب نه ، نه وي، ځکه په دې باندې نصب مختار نه دي بلکې دمبتدا د وجې نه رفع مختار ده.
فيه: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: نَحْوُ الزانية والزاني مبتداء او الفاء بمعنى الشرط ددې خبر دي حالانکه ددې خبر جوړول صحيح نه دي، ځکه چې کله خبر جمله وي. نو په دې کې عائد ضروري دی او دلته عائد نشته؟

**جواب**: عائد محذوف دی، چې هغه فيه دي.

مرتبطه: په دې عبارت کې شارح بيان دترکيب کوي، اشاره يې کړي ده چې بمعنى الشرط ظرف مستقر په اعتبار دمتعلق سره خبر دي دمبتدا.

**والآية جملتان مستقلتان عند سيبويه**: په دې عبارت کې شارح بيان ددويم مذهب کوي چې دويم مذهب دامام سيبويه دي، دامام سيبويه په نزد دا آيت دوه مستقلې جملې دي، ځکه چې الزانية مضاف اليه دي، ددې مضاف محذوف دي کوم چې حکم دي او الزاني په دې باندې معطوف دي، مضاف مضاف اليه، چې يو ځای شي، نو مبتداء شوه ددې خبر فيما يتلى عليكم بعد وو او فاجلدوا کل واحد الخ دا جمله ثانيه مستقله ده. په دې باندې فاء دسيبويه په نزد هم جزائيه سببيه ده او ددې شرط محذوف دي اصل عبارت داسې دي ان ثبت زنا هما فاجلدوا کل واحد او دا دويمه جمله داولې جملې دحکم موعود دبيانولو دپاره دي چې کله دا دوه جدا جملې دي نو داد ما اضمر عامله دقبيلې نه، نه دي ځکه چې تسليط ممتنع دي يو دجملې جز ددويمې جملې په جزء کې عمل نه کوي، دبعضو په نزد باندې په فاجلدوا کې فاء سببيه نه ده بلکه فاء زائده ده. اودبعضو په نزد فاء تفسيريه ده حکم دموعود تفسير کوي ددې دواړو قولينو مطابق هم فاجلدوا جدا جمله به جوړيږي ددې دماقبل سره تعلق به نه وي لهذا دابه د ما اضمر عامله دباب نه نه وي.

والا فالمختار النصب: يعنې که فاء په معنى دشرط نه وي، لکه چې د مبرد مذهب دي او دا آيت دوه مستقلې جملې هم نه وي، لکه چې د سيبويه مذهب دي، نودا آيت دذکرشوې قاعدې لاندې داخل شواوپه دې باندې نصب مختار دي، ليکن د نصب غوره کيدل باطل دي، ځکه چې د قراء سبعه په رفع باندې اتفاق دي، ځکه ضروري ده چې دا فاء يا خو د شرط په معنى باندې شي لکه چې دمبرد مذهب دي يادا آيت دوه مستقلې جملې شي لکه چې د سيبويه مذهب دي.

الآية: په دې عبارت کې شارح بيان دترکيب کوي ، اشاره کوي دې خبرې طرف ته چې جملتان خبر دی د مبتدا محذوف چې هغه الآية ده.

مستقلتان: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: د مبرد د قول مطابق هم دا آيت دوه جملې دي، ځکه چې شرط هم جمله او جزاء هم جمله ده. نو بيا دسيبويه او د مبرد په مذهب کې فرق څه شو؟

**جواب**: د سيبويه په نزد دا آيت دوه مستقلې جملې دي. ليکن دمبرد په نزد دوه مستقلې جملې نه دي، ځکه چې جزاء په شرط باندې مرتب وي

وان لا اي و ان لم تکن: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: الاشرطيه ده فالمختار النصب جزاء ده. حالانکه الا شرطيه کېدل صحيح نه دي، ځکه چې د شرط لپاره جمله کيدل ضروري دي، او الا حرف مفرد دي؟

**جواب**: دلته الا د ان لم تکن په معنی کې دي، چې هغه جمله ده لهذا ددې شرط جوړېدل صحيح دي.

## څلورم قسم : تحذير :

## د تحذير تعريف :

اَلرَّابِعُ مِنْ تِلْکَ الْمَوَاضِعِ الَّتِيْ وَجَبَ حَذْفُ النَّاصِبِ لِلْمَفْعُوْلِ بِهٖ فِيْهَا التَّحْذِيْرِ وَ اِنَّمَا

څلورم دهغه مواضعونه چې واجب وي حذف کول د ناصب دپاره دمفعول به په دې کې هغه تحذير دي او په تحقيق

وَجَبَ حَذْفُ الْفِعْلِ فِيْهِ لِضِيْقِ الْوَقْتِ عَنْ ذِكْرِهٖ وَ هُوَ فِي اللُّغَةِ تَخْوِيْفُ شَيْءٍ

سره واجب دي حذف دفعل دوجې دتنګوالي دوخت نه دذکر کولو ددې نه او تحذير په لغت کې ويرول ديو څيز دي

عَنْ شَيْءٍ وَ تَبْعِيْدُهٗ مِنْهُ وَ فِيْ اِصْطِلَاحِ النُّحَاةُ مَعْمُوْلٌ اَيْ اِسْمٌ عُمِلَ

دبل څيز نه او يو څيز دبل څيز نه لرې کول دي او په اصطلاح دنحويانو کې معمول دي يعنې هغه اسم چې عمل کوي

فِيْهِ النَّصَبُ بِالْمَفْعُوْلِيَّةِ بِتَقْدِيْرِ اِتَّقِ تَحْذِيْرًا اَيْ حُذِّرَ ذٰلِکَ الْمَعْمُوْلُ تَحْذِيْرًا فَيَكُوْنُ مَفْعُوْلًا مُطْلَقًا

په دې کې نصب بناء بر مفعوليت په تقدير داتق سره تحذيرا يعنې حذر ذلک المعمول تحذيرا نو وي به مفعول مطلق

اَوْ ذُكِرَ تَحْذِيْرًا فَيَكُوْنَ مَفْعُوْلًا لَهٗ مِمَّا بَعْدَهٗ اَيْ مِمَّا بَعْدَ ذٰلِکَ الْمَعْمُوْلُ اَوْ

او يا ذکر کولې شي تحذيرا نو وي به مفعول له دهغه څيز دپاره چې ددې نه پس وي يعنې پس ددې مفعول نه او يا

ذُكِرَ الْمُحَذَّرُ مِنْهُ مُكَرَّرًا عَلٰى صِيْغَةِ الْمَجْهُوْلِ عَطْفٌ عَلٰى حُذِّرَ اَوْ ذُكِرَ الْمُقَدَّرِ

| |
|---|
| ذکر کړي شي محذر منه مکرر په صیغې د مجهول سره داعطف دي په حذر باندې او یا ذکر په مقدر باندې عطف وي |
| فَإِنْ قُلْتَ فَعَلَى هٰذَا لَا بُدَّ مِنْ ضَمِيْرٍ فِي الْمَعْطُوْفِ كَمَا فِي الْمَعْطُوْفِ عَلَيْهِ |
| که چیرته ته ووایې نوبنا په دې باندې نشته دې خکه چې د ضمیر نه په معطوف کې لکه څنګه چې په معطوف علیه |
| قُلْنَا نَعَمْ لٰكِنَّهُ وَضَعَ فِي الْمَعْطُوْفِ الْمُظْهَرِ مَوْضِعَ الْمُضْمَرِ إِذْ تَقْدِيْرُ الْكَلَامِ أَوْ |
| کې دي نو مونږ وایو چې صحیح ده لیکن وضع شوي په معطوف مظهر په ځاې د مضمر کې خکه تقدیر د کلام او یا |
| مَعْمُوْلٌ بِتَقْدِيْرِ اِتَّقِ ذُكِرَ مُكَرَّرًا اِلَّاأَنَّهُ وَضَعَ الْمُحَذَّرَ مِنْهُ مَوْضِعَ الضَّمِيْرِ الْعَائِدِ اِلَى الْمَعْمُوْلِ |
| معمول په تقدیر د اتق سره داذکردي مکرر مګرداچې وضع شوي محذر منه په ځاې د ضمیر چې راجع دي معمول |
| اِشْعَاراً بِأَنَّهُ مُحَذَّرٌ مِنْهُ لَا مُحَذَّرٌ. |
| طرف ته د پاره د خبرورکولو چې دا محذر منه دي نه محذر. |

**خلاصه دمتن**: صاحب د کافیې په دې عبارت سره د هغه مواضعو نه چې په کومو مواضعو کې عامل ناصب حذف کول واجب دي د هغې ذکر کوي چې هغه تحذیر دي .

**د تحذیر تعریف**: تحذیر هغه اسم دي کوم چې د اتق وغیره مقدر معمول وي، بیا تحذیر په دوه (۲) قسمه دي: (۱) اول هغه چې د اتق مقدر معمول وي او دا دما بعد نه دویرولو دپاره ذکر شوې وي، (۲) کوم چې د اتق مقدر معمول وي او محذر منه وي، چې هغه یې مکرر ذکر کړي وي

**اغراض دجامي** : من تلك: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي ، چې په رابع باندې الف لام عهدي دي. یعنې هغه مواضع اربعه په کوم کې چې د مفعول به د عامل ناصب حذف کول واجب دي، په هغې کې څلورم قسم تحذیر دي .

**وانماوجب**: په دې عبارت سره شارح په دې مقام کې د مفعول به د عامل ناصبه د حذف وجوبي وجه بیانول دي چې د هغې حاصل دا دي چې په دې مقام د تحذیر کې د مفعول به د عامل ناصبه حذف کول د وخت د تنګوالي د وجې نه کیږي .

**في اللغة**: په دې عبارت کې بیانِ لغوي د معنی کوي ، چې د تحذیر لغوي معنی ده یو څیز د بل څیز نه یرول او یو څیز د بل څیز نه لرې کول ، دې ته تحذیر وایي

**اي اسم**: په دې عبارت سره شارح لفظ مقدر کړو نو دې خبرې طرف ته یې اشاره وکړه چې معمول صیغه د صفت ده د دې موصوف اسم محذوف دي .

في اصطلاح: په دې عبارت کې شارح دمتن وضاحت کوي ، چې صاحب دکافيې چې دتحذير کومه معنی بيان کړي ده هغه معنی اصطلاحي ده لغوي نه ده.

عمل فيه: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: د تحذير تعريف په اياك والاسد کې په اياك باندې صادق نه راځي، ځکه چې هغه معمول فيه دي معمول نه دي، بلکې معمول خو ناصب وي او نصب تحذير نه دي لهذا تعريف دې جامع نه دي؟

**جواب**: دلته د معمول نه مراد معمول فيه دي لکه د مشترك نه مراد مشترك فيه وي.

اى حذر: په دې عبارت سره شارح دتحذيراً ترکيب بيانوي، چې ددې په ترکيب کې دوه (۲) احتماله دي : (۱) دا مفعول مطلق دي د فعل محذوف حذر ، تقدير دعبارت داسې دي چې: حذر ذلك المعمول تحذيراً. (۲) دا مفعول له دي دفعل محذوف ذکر تقدير دعبارت داسې دي چې: ذکر ذلك المعمول تحذيراً.

اى مما بعد ذلك المعمول: په دې عبارت کې شارح د ﮤ ضمير مرجع بيانوي.

على صيغة: په دې عبارت کې شارح بيان دصيغې کوي چې ذکر د ماضي مجهول صيغه ده.

عطف: په دې عبارت کې شارح بيان دترکيب کوي، چې ذکر شوي ذکر دا معطوف دي، په حذر يا په ذکر مقدر باندې.

فان قلت: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي اوپه قلنا سره ددې اعتراض جواب ورکوي :

**اعتراض** : دذکر شوي ذکر عطف په حذر يا په ذکر مقدر باندې صحيح نه دي، ځکه چې حُذِّر يا ذکر مقدر کوم چې معطوف عليه دي په دې کې ضمير دي، چې راجع دي معمول طرف ته او ذکر چې معطوف دي، په دې کې ضمير نشته، ځکه چې ددې نائب فاعل المحذر منه اسم ظاهر مخکې ذکر دي، حالانکه کله چې په معطوف کې ضمير وي، نو په معطوف کې هم ضمير کيدل ضروري دي، ځکه قاعده داده، چې معطوف دمعطوف عليه په حکم کې دي؟

**جواب**: مونږ منو چې په معطوف عليه کې ضمير وي نو په معطوف کې هم ضمير کيدل ضروري وي ليکن دا په هغه وخت کې چې کله دضمير نه غير بل عائد او رابط نه وي دلته

عائد او رابط موجود دي او هغه وضع المظهر موضع المضمر يعني ايخودل د مظهر په ځاي د مضمر باندې دي ، په اصل كې دا موقع د ضمير وه او ذكرېږه په كار وه مخكې المحذر منه نه وو په كار، ليكن د ضمير په ځاي اسم ظاهر المحذر منه كيخودې شو.

الا انه: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال:** د ضمير په ځاي اسم ظاهر د كيخودو څه فائده ده ، چې كله د ضمير سره مقصود حاصليږي او په دې كې ايجاز او اختصار هم وو او په عبارت كې اصل اختصار وي.

**جواب:** د ضمير په ځاي اسم ظاهر يعني المحذر منه د ذكر كولو نه مقصود دې خبرې طرف ته اشاره كول دي، چې په معطوف كې د معمول نه مراد محذر منه دي، نه محذر، كله چې په معطوف عليه كې حذر يا ذكر ضمير معمول طرف ته راجع وي، او د معمول نه مراد محذر وو، كه چيرته ذكر په معطوف كې هم ضمير مستتر منلې كيدې نو دا به هم معمول طرف ته راجع كيدو نو په قرينې د معطوف عليه نه مراد محذر وو حالانكه دا خلاف واقع دي د دې فائدې په بناء باندې چې په معطوف كې د معمول نه مراد محذر منه دي مصنف رَحِمَهُ اللهُ د ضمير په ځاي اسم ظاهر ذكر كړو.

## د تحذير مثالونه :

| |
|---|
| مِثْلُ اِيَّاكَ وَالْاَسَدَ وَاِيَّاكَ وَاَنْ تَحْذِفَ هٰذَانِ مِثَالَانِ لِاَوَّلِ نَوْعِي التَّحْذِيْرِ وَمَعْنَاهُمَا بَعِّدْ نَفْسَكَ مِنَ |
| لكه اياك والاسد واياك وان تحذف دا دواړه مثالونه دي داول قسمونو د تحذير او معنى د دې دواړو بعد نفسك من |
| الْاَسَدِ وَ الْاَسَدَ مِنْ نَفْسِكَ وَ بَعِّدْ نَفْسَكَ عَنْ حَذْفِ الْاَرْنَبِ وَ هُوَ ضَرْبُهُ بِالْعَصَا وَ |
| الاسد والاسد من نفسك وبعد نفسك عن حذف الارنب دي او دا خرگوش دي چې وهلې يې وي په امسا باندې و |
| بَعِّدْ حَذْفَ الْاَرْنَبِ عَنْ نَفْسِكَ وَعَلَى التَّقْدِيْرَيْنِ الْمُحَذَّرِ مِنْهُ هُوَ الْاَسَدُ وَالْحَذْفُ فَاِنَّ الْمُرَادَ مِنْ تَبْعِيْدِ |
| بعد حذف الارنب عن نفسك نو په دواړو تقديرونو سره محذر منه هغه اسد دي او حذف دي ځكه مراد دلرې والي |
| الْاَسَدِ اَوِ الْحَذْفِ مِنْ نَفْسِكَ تَحْذِيْرُهَا مِنْهُمَا لَا تَحْذِيْرُهُمَا مِنْهَا |
| د اسد نه او يا د ويرولو د خپل نفس نه هغه ويرول د خپل نفس د دې دواړو نه ، نه ويرول د دې دواړو د خپل نفس نه او |
| وَالطَّرِيْقَ الطَّرِيْقَ مِثَالٌ لِثَانِيْ نَوْعَيْهِ اَيْ اِتَّقِ الطَّرِيْقَ الطَّرِيْقَ وَلَا يَخْفٰى عَلَيْكَ اَنَّ تَقْدِيْرَ |
| الطريق الطريق دا مثال دي د دويم قسم د باره يعني اتق الطريق الطريق او خفي دي نه وي په تا باندې چې تقدير د |
| اِتَّقِ فِيْ اَوَّلِ النَّوْعَيْنِ غَيْرُ صَحِيْحٍ لِاَنَّهُ لَايُقَالُ اِتَّقَيْتُ زَيْداً مِنَ الْاَسَدِ فَيَنْبَغِيْ اَنْ يُقَدَّرَ |

اتق په ونه دوه قسمونو کې غیر صحیح دی خکه چې په شی ویلي اتقیت زیدا من الاسد نومناسب ده چې مقدر

فِيهِ مِثْلُ بَعِدْ وَنَحِّ وَتَقْدِيرَ بَعِدْ فِي مِثَالِ النَّوْعِ الثَّانِيْ غَيْرُمُنَاسِبٍ لِاَنَّ الْمَعْنٰى عَلَى الْاِتِّقَاءِ

کړی شي په دې کې بعد او نح اونقدیر د بعد په مثال د دویم قسم کې غیر مناسب دی خکه معنی د پرهیزکولو په بنا

عَنِ الطَّرِيْقِ لَا عَلٰى تَبْعِيْدِهٖ فَالصَّوَابُ اَنْ يُّقَالُ بِتَقْدِيْرِ بَعِّدْ اَوْ اِتَّقِ وَ

ده دی دلارې نه .نه دلرې والي دمحاطب دلارې نه نو صحیح دا ده چې وویل شي په تقدیر د بعد او د اتق سره او

نَحْوِهِمَا فَيُقَدَّرُ مِثْلُ بَعِّدْ فِيْ جَمِيْعِ اَفْرَادِ النَّوْعِ الْاَوَّلِ وَفِيْ بَعْضِ اَفْرَادِ النَّوْعِ الثَّانِيْ مِثْلُ نَفْسَكَ

یا په مثل د دې نو مقدر کولی به شي په شان د بعد په ټولو افرادو د اول قسم او په بعضو افرادو د دویم قسم لکه نفسک

نَفْسَكَ فَاِنَّ الْمَعْنٰى عَلٰى بَعِّدْ نَفْسَكَ مِمَّا يُؤْذِيْكَ كَالْاَسَدِ وَنَحْوِهٖ وَيُقَدَّرُ مِثْلُ اِتَّقِ فِيْ بَعْضِهَا

نفسک نو معنی د دې بعد نفسک مما یوذیک دی په شان د اسد او مقدر به شي په شان د اتق په بعضو کې لکه ذکر شوي

كَالْمِثَالِ الْمَذْكُوْرِ قِيْلَ لَفْظُ الْاَسَدِ فِيْ اِيَّاكَ وَالْاَسَدَ خَارِجٌ عَنِ النَّوْعَيْنِ فَيَنْبَغِيْ اَنْ لَّا يَكُوْنَ

مثال کې. جه ویلي دي چې لفظ د اسد په ایاک والاسد کې د خارج دی د دواړو قسمونو نه نو مناسب دی چې نه وی

تَحْذِيْراً وَ لَيْسَ كَذٰلِكَ فَاِنَّهٗ اَيْضًا تَحْذِيْرٌ وَ اُجِيْبَ بِاَنَّهٗ تَابِعٌ لِلتَّحْذِيْرِ وَ التَّوَابِعُ خَارِجَةٌ

تحذیر .او نه دی دا رنګې خکه چې هم دا رنګې تحذیر دی او جواب ورکړی شوی چې دا تابع دی د تحذیر او توابع خارج

عَنِ الْمَحْدُوْدِ بِدَلِيْلِ ذِكْرِهَا فِيْمَا بَعْدَ.

دي د محدود نه په دغه دلیل سره چې ذکر کړي يې دي وروستو

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافیې په ذکر شوي عبارت کې د تحذیر د دواړو قسمونو مثالونه ذکر کړي دي چې د دې وضاحت لاندې په شرحه کې راخي

**اغراض دجامي** : <u>هذان مثالان</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال ( ۱ )** : دلته مراد او مقصود بیان د مسائلو دی نه بیان د مثالونو . نو د مثالونو ذکر کول بې فائدې او **اشتغال بمالا یعني** دي

**سوال ( ۲ )**: د مثال نه غرض او مقصود د ممثل له توضیح او وضاحت وي. د دې لپاره خو یو مثال هم کافي دي. مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دوه ۲، مثالونه ولې ذکر کړل ؟

**جواب ( ۱ )** : کله د مسئلې د وضاحت د پاره مثال ضروري وي. نو په دې وخت کې به مثال ذکر کول اشتغال بما لا یعني نه دي

**جواب (۲)**: ددويم سوال جواب دادې چې تعدد دمثالونو د ممثل له دتعدد دوجې نه دي.
**دمثالونو تشريح**: اياك والاسد او اياك وان تحذف دا دواړه د تحذير داول قسم مثالونه دي نو په دې باندې يو سوال وارديږي
**سوال**: دتحذير داول قسم دوه مثالونه يې ولې ذكر كړل د وضاحت دپاره خو يو مثال هم كافي وو؟
**جواب**: ددې جواب دادې چې په دې خبره باندې دتنبيه كولو دپاره يې دوه مثالونه ذكر كړل. چې په اول قسم كې په محذر منه كې تعميم دي برابره خبره ده كه اسم حقيقي وي، اوكه اسم صريحي وي او كه اسم تاويلي په اول مثال كې محذر منه يعنې الاسد اسم صريحي دي اوپه دويم مثال كې محذر منه يعنې ان تحذف اسم تاويلي دي.
يا په دې خبره باندې دتنبيه كولو دپاره چې داول قسم په محذر منه كې تعميم دي برابره خبره ده چې دا اسم ذات وي يا اسم صفت په اول مثال كې محذر منه الاسد اسم ذات دي اوپه دويم مثال كې محذر منه ان تحذف اسم صفت دي ددې دواړو مثالونو اصل دادې چې بعد نفسک من الاسد وبعد الاسد من نفسک بعد نفسک عن حذف الارنب وبعد حذف الارنب عن نفسک. دحذف معنى ده لرګی سره خرګوش (يعنې سويا) وهل. دا د حضرت عمر(ﷺ) وينا ده، چې په حالت داحرام كې خرګوش (يعنې سويا) په همساء مه وهئ. ځكه كه مړه شوه نو ضايع به شي. نود بعد نفسك من الاسد والاسد من نفسك نه اياك والاسد څنګه جوړ شو. ددې تفصيل دادې، چې دمعطوف نه من نفسك حذف كړې شو په معطوف عليه كې ددې په ذكر باندې اكتفاء وكړې شوه او من الاسد يې دمعطوف عليه نه حذف كړو په معطوف كې ددې په ذكر كولو باندې يې اكتفاء وكړه نو بعد نفسک والاسد شو بيا دوخت دتنګ والي دوجې نه فعل يې حذف ك و اولفظ دنفس ته دضرورت نه كيدو دوجې نه حذف كړو اوضمير متصل ديواځې كيدو دوجې نه په منفصل سره بدل شو نو اياك والاسد شو.

<u>وعلى التقديرين</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي
**سوال**: بعد نفسك من الاسد والاسد من نفسك كې تناقض واقع او تدافع دي ځكه چې د بعد نفسک من الاسد نه معلوميږي چې الاسد محذر منه او نفسک محذر دي او د الاسد من نفسک نه

معلومیږي چې چې الاسد محذر او من نفسک محذر منه دي په دویم مثال کې هم همدا تعارض دي

**جواب**: په دې دواړو صورتونو کې په اول مثال کې محذر منه الاسد دي او په دویم مثال کې محذر منه حذف دي. ځکه دخپل نفس نه اسد او ارنب لرې کولو نه مراد نفس ددې دواړو نه ویرول دي . نه دا څیزونه دنفس نه ویرول او لرې کول دي او دویم داول قول دپاره تـکیدل دي او په تقدیم اوتاخیر کې دتکرار لفظي نه دبچ کیدو دپاره دي

**والطریق والطریق**: په دې عبارت کې شارح دممثل له تعین کوي داد تحذیر ددویم قسم مثال دي په اصل کې اتق الطریق الطریق وو دوخت دتنګ والي په بناء باندې فعل یې حذف کړو په دې کې الطریق محذر منه دي چې هغه یې دتکرار سره ذکر کړي دي .

**ولا یخفی**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: معمول په تقدیر داتق کې اتق نه مراد فقط ددې معنی حقیقي ده اوکه فقط معنی مجازي ده یا دواړه معنی حقیقي او مجازي دواړه مراد دي. که معنی حقیقي اتقاء مراد وي، نو د تحذیر تعریف جامع نه شو، داول قسم په افرادو کې په یوفرد باندې صادق نه راځي، ځکه چې اول قسم اتق د مقدر معمول نه دی. ځکه چې دا فعل لازمي دی او فعل لازمي دمفعول به تقاضا نه کوي. ځکه چې داسې نه شي ویلې : اتقیت زیدا من الاسد او که مراد فقط معنی مجازي وي. بعد نح وغیره نو داتعریف جامع نه دي ددویم قسم په بعضې افرادو باندې صادق نه راځي لکه الطریق الطریق په دې کې دبعد تقدیر مناسب دي نه دي ځکه چې مقصود دلارې نه بچ کیدل دي نه لاره لرې کول که چیرته معنی حقیقي او مجازي دواړه مراد وي. نو جمع بین الحقیقة والمجاز لازم راځي او داجائز نه دي

**جواب**: شارح په فالصواب سره ددې جواب ورکوي. چې د متن په عبارت کې معطوف سره د حرف عطف نه محذوف دي په اصل کې وو . معمول بتقدیر بعد او اتق و نحوهما پس تحذیر داول قسم په ټولو افرادو کې بعد مقدر منلې شي اوپه دویم قسم کې په بعضې افرادو کې به بعد مقدر منلې شي . لکه نفسک نفسک ددې معنی ده بعد نفسک مما یوذیك کالاسد و نحوه اوپه بعضې افرادو کې اتق مقدر منلې شي. لکه اتق الطریق الطریق نو اوس به تعریف جامع شي

قیل: په دې عبارت سره غرض په اعتراض نقل کوي او په اجیب سره ددې اعتراض جواب ورکوي

**اعتراض**: د تحذیر تعریف په ایاك والاسد کې په الاسد باندې صادق نه راځي. ځکه چې الاسد نه په اول قسم کې داخل دي او نه په دوېم قسم کې. په اول قسم کې ځکه داخل نه دي. چې په اول قسم کې معمول محذر وي او دا محذر نه دي بلکه محذر منه دي او په دوېم قسم کې ځکه نه داخلیږي چې په دوېم قسم کې محذر منه مکرر وي او دا مکرر نه دي حالانکه دا په تحذیر کې داخل دي

**جواب**: دا تحذیر نه دي. بلکې دا د تحذیر تابع دي. ځکه چې دا معطوف دي په تحذیر باندې او توابع د تعریف نه خارج دي، ځکه چې مصنف رَحِمَهُ اللهُ دا مستقل ذکر کړي دي

## د تحذیر د مختلف صورتونو نور مثالونه:

وَتَقُوْلُ فِيْ قِسْمَيِ النَّوْعِ الْاَوَّلِ اِيَّاكَ مِنَ الْاَسَدِ كَمَا كُنْتَ تَقُوْلُ اِيَّاكَ وَالْاَسَدَ وَ مِنْ اَنْ تَحْذِفَ

او وایي به ته په دواړو قسمونو د اول قسم کې ایاک من الاسد لکه څنګه چې تا ایاک والاسد ویلي وو او من ان تحذف

كَمَا كُنْتَ تَقُوْلُ اِيَّاكَ وَاَنْ تَحْذِفَ وَتَقُوْلُ فِي الْمِثَالِ الْاٰخِرِ اِيَّاكَ اَنْ تَحْذِفَ بِتَقْدِيْرِ مِنْ اَيْ

لکه څنګه چې تا ایاک وان تحذف ویلي وو او ته به وایي په آخري مثال کې ایاک ان تحذف په تقدیر د من سره یعني

اِيَّاكَ مِنْ اَنْ تَحْذِفَ لِاَنَّ حَذْفَ حَرْفِ الْجَرِّ عَنْ اَنْ وَاَنَّ قِيَاسٌ وَلَا تَقُوْلُ فِي الْمِثَالِ الْاَوَّلِ اِيَّاكَ الْاَسَدَ

ایاک من ان تحذف ځکه حذف د حرف جر د اَن او دَاَنّ نه قیاس دي او ته به نه وایي په اول مثال کې ایاک الاسد د

لِامْتِنَاعِ تَقْدِيْرِ مِنْ وَ شُذُوْذِهِ مَعَ غَيْرِ اَنْ وَ اَنَّ فَاِنْ قُلْتَ فَلْيَكُنْ بِتَقْدِيْرِ الْعَاطِفِ

وجې د امتناع د تقدیر د من او شذوذ ددې سره د اَن او دَاَنّ که چیرته ته ووایي چې وي دا په تقدیر د حرف عاطف سره

قُلْنَا حَذْفُ الْعَاطِفِ اَشَذُّ شُذُوْذًا لِاَنَّ حَذْفَ حَرْفِ الْجَرِّ قِيَاسٌ مَعَ اَنْ وَاَنَّ وَشَاذٌّ كَثِيْرٌ فِيْ غَيْرِهِمَا

مونږ وایو حذف د عاطف ډېر شاذ دي ځکه چې حذف د حرف قیاسي دي سره د اَن او دَاَنّ او ددې نه غیر شاذ ډېر وي

وَاَمَّا حَذْفُ الْعَاطِفِ فَلَمْ يَثْبُتْ اِلاَّ نَادِراً.

او هرچې حذف د عاطف دي نو دا نه دي ثابت مګر کم

**خلاصه د متن**: په دې عبارت کې صاحب د کافیې د تحذیر څو مثالونه ذکر کړي دي. چې د هغې تفصیل شرح کې لاندې ذکر دي

**اغراض د جامي**: وتقول: په دې عبارت کې شارح په محذر منه کې د استعمال د لحاظ نه

عقلي ته ۸ احتمالات جوړيږي ځکه چې محذر منه به يا اسم صريحي وي او يا به اسم تاويلي وي بيا د هر يو استعمال به د من سره وي او يا د واو سره وي بيا به واو او من يا مذکور وي او يا به محذوف وي په دې اعتبار سره ټول عقلي صورتونه اته (۸) جوړيږي چې تفصيل يې دا دې

(۱) محذر منه اسم تحقيقي وي او ددې استعمال د من مذکوره سره وي لکه اياک من الاسد

(۲) محذر منه اسم تحقيقي وي او ددې استعمال په من محذوفه سره وي لکه اياک الاسد

(۳) محذر منه اسم تاويلي وي او ددې استعمال په من مذکوره سره وي لکه اياک من ان تحذف

(۴) محذر منه اسم تاويلي وي او ددې استعمال د من محذوفه سره وي لکه اياک ان تحذف

(۵) محذر منه اسم تحقيقي وي او ددې استعمال د واو مذکوره سره وي لکه اياک والاسد

(۶) محذر منه اسم تحقيقي وي او ددې استعمال د واو محذوفه سره وي لکه اياک الاسد

(۷) محذر منه اسم تاويلي وي . او ددې استعمال د واو مذکوره سره وي لکه اياک وان تحذف

(۸) محذر منه اسم تاويلي وي او ددې استعمال د واو محذوفه سره شوي وي لکه اياک ان تحذف

په دې اته (۸) صورتونو کې دري (۳) صورتونه ناجائز دي صرف عقلي دي په خارج کې دهغه وجود نه وي

(۱) محذر منه اسم تحقيقي وي او ددې استعمال د واو محذوفه سره وي

(۲) محذر منه اسم تاويلي وي او ددې استعمال د واو محذوفه سره وي.

(۳) محذر منه اسم تحقيقي وي او ددې استعمال د من محذوفه سره وي. ځکه چې د اسم صريحي نه مخکې حذف د حرف جر جائز نه دي، که چيرته حذف وي نو دا به شاذ او خلاف قياس به وي . البته د اسم تاويلي نه مخکې حذف د حرف جر قياسي دي لکه ان تحذف د دې دري صورتونو نه علاوه باقي پنځه (۵) صورتونه جائز او مستعمل دي. شارح د جامي د دې تفصيل سره د مثالونو ذکر کړي دي لکه مخکې ټول تفصيل سره د اته (۸) عقلي احتمالاتو ذکر کړي دي .

فان قلت: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض رانقل کوي او په قلنا سره د دې اعتراض جواب ورکوي

**اعتراض**: مونږ په اياك کې من مقدر نه منو، بلکې مونږ واو مقدر منو او مونږ وايو اياك الاسد په اصل کې دا اياك والاسد وو.

**جواب**: بياخو فر من المطر و قام تحت الميزاب يعني دباران نه تختيدم او د ناوې لاندې مې شپه شوه دغه مثال صادق راځي، ځکه چې د الاسد نه مخکې د من تقدير شاذ وو، اوس د واو تقدير به اشذ الشذوذ شي، ځکه چې حرف جر کله أَنْ يا أَنَّ سره وي نو د دې حذف قياسي وي. او کله چې د أَنْ او أَنَّ نه غير وي نو دا شاذ او خلاف قانون خو دې خو ليکن کثير الاستعمال او کثير الوقوع دي ليکن د اسم صريحې يا تاويلې نه مخکې د حرف جر حذف کول خلاف قانون او شاذ هم دي او انتهائي نادر هم دي ځکه چې دا اشذ الشذوذ دي نو لهذا د واو تقدير صحيح نه دي

## ﴿ اَلْمَفْعُوْلُ فِيْهِ ﴾:

## د مفعول فيه تعريف:

| اَلْمَفْعُوْلُ فِيْهِ وَ هُوَ مَا فُعِلَ فِيْهِ فِعْلٌ اَىْ حَدَثٌ مَذْكُوْرٌ تَضَمُّناً فِيْ ضِمْنِ الْفِعْلِ الْمَلْفُوْظِ اَوِ |
| --- |
| مفعول فيه هغه دي چې په دې کې شوي وي يو کار يعني کار چې مذکور وي متضمن په ضمن د فعل ملفوظ او يا |
| الْمُقَدَّرِ اَوْ شِبْهِهٖ ككك اَوْ مُطَابِقَةً اِذَا كَانَ الْعَامِلُ مَصْدَراً فَقَوْلُهٗ مَا فُعِلَ فِيْهِ فِعْلٌ شَامِلٌ |
| مقدر او يا د دې مشابه سره هم دا رنګې او يا مطابقي وي چې کله عامل مصدر وي نو دا قول ما فعل فيه فعل دا شامل |
| لِاَسْمَاءِ الزَّمَانِ وَ الْمَكَانِ كُلِّهَا فَاِنَّهٗ لَايَخْلُوْ زَمَانٌ اَوْ مَكَانٌ عَنْ اَنْ يُّفْعَلَ فِيْهِمَا فِعْلٌ سَوَاءٌ |
| دي اسماء زمان او مکان دواړو ته ځکه چې دا نه وي خالي د زمان او مکان نه چې په دې کې څه کار شوي وي برابره |
| ذُكِرَ الْفِعْلُ الَّذِيْ فُعِلَ فِيْهِمَا اَوْ لاَ وَ قَوْلُهٗ مَذْكُوْرٌ خَرَجَ بِهٖ |
| خبره ده که ذکر شوي وي هغه فعل چې هغه په دې دواړو کې شوي وي او يا نه او دا قول چې مذکور په دې سره خارج |
| مَا لاَ يُذْكَرُ فِعْلٌ فُعِلَ فِيْهِ نَحْوُ يَوْمُ الْجُمْعَةِ يَوْمٌ طَيِّبٌ فَاِنَّهٗ وَ اِنْ كَانَ فُعِلَ |
| شو هغه څه چې نه وي ذکر په دې کې هغه څه چې په دې کې شوي وي لکه يوم الجمعة يوم طيب اګر چې واقع شوې دي |
| فِيْهِ فِعْلٌ لاَ مَحَالَةَ لٰكِنَّهٗ لَيْسَ بِمَذْكُوْرٍ لٰكِنْ بَقِيَ مِثْلُ شَهِدْتُ يَوْمَ الْجُمْعَةِ دَاخِلاً فِيْهِ فَاِنَّ يَوْمَ |
| په دې کې فعل لامحاله ليکن دا مذکور نه وي ليکن باقي وي لکه شهدت يوم الجمعة دا داخل دي په دې کې ځکه ورځ |

الْجُمُعَةِ يَصْدُقُ عَلَيْهِ اَنَّهُ فُعِلَ فِيْهِ فِعْلٌ مَذْكُوْرٌ فَاِنَّ شُهُوْدَ يَوْمِ الْجُمُعَةِ لاَ يَكُوْنُ اِلاَّ فِيْ يَوْمِ

دجمعې د اصادق راځي چې فعل مذکور په دې کې شوې وي ځکه چې د جمعې د ورځې راتلل دا نه وي مګر په ورځ

الْجُمُعَةِ فَلَوِ اعْتُبِرَ فِي التَّعْرِيْفِ قَيْدُ الْحَيْثِيَّةِ اَيِ الْمَفْعُوْلُ فِيْهِ مَا فُعِلَ فِيْهِ فِعْلٌ مَذْكُوْرٌ

د جمعې کې نو که چیرته معتبر کړې شي قيد د حیثیت یعنې مفعول فیه هغه فعل دی چې په دې کې فعل مذکور وي

مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ فُعِلَ فِيْهِ فِعْلٌ مَذْكُوْرٌ لَخَرَجَ مِثْلُ هٰذَا الْمِثَالِ مِنْهُ

د دې حیثیت نه چې په دې کې فعل ذکر شوې وي نو خارج شوي به وي د دې په شان مثال د مفعول فیه د تعریف نه

فَاِنَّ ذِكْرَ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فِيْهِ لَيْسَ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ فُعِلَ فِيْهِ فِعْلٌ مَذْكُوْرٌ

ځکه د يوم الجمعة ذکر کول په دې کې الجمعة په شان کې نه وي د دې حیثیت نه چې هغه په دې کې فعل ذکر شوې وي

بَلْ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ وَقَعَ عَلَيْهِ فِعْلٌ مَذْكُوْرٌ وَلاَ يَخْفٰى اَنَّهُ عَلٰى تَقْدِيْرِ اِعْتِبَارِ قَيْدِ

بلکې د دې حیثیت نه چې په دې کې واقع شوي دي ذکر شوې فعل او خفي دې نه وي چې دا په تقدير د اعتبار د قيد د

الْحَيْثِيَّةِ لاَ حَاجَةَ اِلٰى قَوْلِهِ مَذْكُوْرٌ اِلاَّ لِزِيَادَةِ تَصْوِيْرِ الْمُعَرَّفِ وَ قَوْلُهُ

حیثیت نه دي نو نشته حاجت نشته د مصنف د اقول مذکور ته مګر د معرف د تصویر د زیادت د پاره او د مصنف د اقول

مِنْ زَمَانٍ اَوْ مَكَانٍ بَيَانٌ لِمَا الْمَوْصُوْلَةِ اَوِ الْمَوْصُوْفَةِ اِشَارَةً اِلٰى قِسْمَيِ الْمَفْعُوْلِ فِيْهِ وَ تَمْهِيْداً

من زمان او مکان نو دا بیان دي د ما موصولې او یا ما موصوفې نو اشاره ده دواړو قسمونو د مفعول فبه ته او تمهید

لِبَيَانِ حُكْمِ كُلٍّ مِنْهُمَا.

دي د پاره د بیان د حکم د هريو

**خلاصه دمتن:** صاحب د کافيې په دې عبارت کې د مفعول فیه تعریف کوي مفعول فیه هغه زمان یا مکان دي، چې په هغې کې فعل ذکر شوې وي.

**اغراض دجامي:** اي حدث: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال:** د مفعول فیه تعریف د دې په افرادو کې په يو فرد باندې هم صادق نه راځي، ځکه چې زمان یا مکان داسې نه دي، چې په هغې کې فعل ذکر شوې وي. ځکه چې فعل شامل دي د دې (۳) امورو ته: (۱) حدث. (۲) نسبت الى الفاعل (۳) نسبت الى الزمان. په زمان او مکان کې صرف حدث واقع کیږي. او نسبت الى الفاعل او نسبت الى الزمان نه واقع کیږي.

**جواب:** په تعریف کې د فعل نه فعل لغوي یعنې حدث مراد دي فعل اصطلاحي کوم چې د امور ثلاثه نه مرکب دي مراد نه دي.

تضمن: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: کله چې فعل مذکور نه مراد فعل لغوي یعنې حدث دي، نو د مفعول فیه دا تعریف فقط په هغه مفعول فیه صادق راځي، د کوم عامل چې مصدر وي، لکه **اعجبني جلوسك امام زید**. او د کوم مفعول فیه عامل چې مصدر نه وي، په دې باندې تعریف صادق نه راځي. لکه **یوم الجمعة** کوم چې په **صحت یوم الجمعة** کې واقع دي. ځکه چې په دې کې فعل نه دې ذکر شوي. ځکه چې کوم فعل ذکر دي هغه فعل اصطلاحي دي او تاسو د فعل نه فعل لغوي یعنې حدث مراد اخلی. او هغه دلته ذکر نه دي.

**جواب**: په فعل مذکور کې تعمیم دي. برابره خبره دده که دا تضمنا ذکر وي او یا مطابقةً ذکر وي مطابقةً به په هغه وخت کې ذکر وي چې کله عامل مصدر وي لکه **اعجبني جلوسک امام الامیر**. او تضمنا به په هغه وخت کې ذکر وي چې کله عامل فعل اصطلاحي وي ځکه چې د دې په ضمن کې مصدر، حدث، یعنې فعل لغوي موجود دي.

في ضمن الفعل الملفوظ او المقدر: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: د مفعول فیه تعریف جامع نه دي، په هغه **یوم الجمعة** باندې صادق نه راځي. کوم چې د **متی صحت** په جواب کې واقع دي. ځکه چې په دې کې فعل د سره ذکر نه دي نه تضمناً او نه مطابقتاً حالانکه مفعول فیه دي.

**جواب**: په مذکور ضمناً کې تعمیم دي برابره خبره ده که دا فعل د ملفوظ په ضمن کې وي او که د فعل مقدر په ضمن کې وي او **یوم الجمعة** کوم چې د **متی صحت** په جواب کې واقع دي، د دې نه مخکې فعل **صمت** مقدر دي

شبه: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: د مفعول فیه دا تعریف په **یوم الجمعة** باندې صادق نه راځي. کوم چې په **انا صائم یوم الجمعة** کې واقع دي. ځکه چې په دې کې فعل نه دې ذکر شوي نه مطابقته او نه تضمناً. ځکه چې په دې کې فعل ذکر نه دي بلکې شبه فعل ذکر دي؟

**جواب**: په ذکر شوي حدث کې تعمیم دی برابره خبره ده که دا د فعل په ضمن کې وي یا د شبه

فعل په ضمن کې دی په ذکر شوي مثال کې د شبه فعل په ضمن کې دي

**نقوله**: په دې عبارت سره شارح فوائد د قیودو بیانوي. د مفعول فیه په تعریف کې **ما فعل فیه فعل** دا په منزله د جنس دي. ټول اسماء زمان و مکان ته شامل دي. ځکه چې بو زمان او بو مکان دا سې نه دي چې په هغې کې يو **فعل** نه وي شوي . برابره خبره ده که مذکور وي او که نه وي او مذکور فصل اول دي ددې نه هغه زمان اومکان خارج شو چې په هغې کې فعل کړي شوي وي لیکن دا مذکور نه وي لکه **يوم الجمعة يوم طيب** اګر چې په **يوم الجمعة** کې څه ناڅه فعل ضروري شوي وي لیکن هغه مذکور نه دي .

**لكن بقي**: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي او په **فلو اعتبر** سره د دې اعتراض جواب ور کوي

**اعتراض**: د مفعول فیه تعریف دخول دغیر نه مانع نه دي، ځکه چې دا په **يوم الجمعة** باندې صادق راځي کوم چې په **شهدت يوم الجمعة** کې واقع دي، ځکه چې په دې باندې دا خبره صادق راځي، چې په دې کې فعل ذکر شوې وي، ځکه چې فعل **شهود او حضور** . د جمعې په ورځ کیږي حالانکه په ذکر شوي مثال کې **يوم الجمعة مفعول فيه** نه دي بلکې **مفعول به** دي؟

**جواب**: په **فلو اعتبر** سره شارح د دې اعتراض جواب ورکوي، چې په تعریف کې د حیثیت قید ملحوظ دي. يعنې مفعول فیه هغه اسم دي چې په هغې کې فعل ذکر شوې وي، د دې حیثیت نه چې په دې کې فعل ذکر شوې وي اوس دا تعریف په **شهدت يوم الجمعة** کې په **يوم الجمعة** باندې صادق نه راځي. ځکه چې د **يوم الجمعة** ذکر په دې حیثیت سره نه دي، چې په دې کې فعل ذکر شوې وي بلکې د دې حیثیت نه دي، چې فعل مذکور په دې باندې واقع دي

**لا يخفى**: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي او په **الا بزيادة** سره د دې اعتراض جواب ورکوي

**اعتراض**: کله چې د حیثیت قید معتبر دي، نو په تعریف کې لفظ د مذکور ذکر کول مستدرك دي د دې هېڅ حاجت نشته. ځکه چې د مذکور د ذکر کولو نه مقصود **يوم الجمعة يوم طيب** خارجول دي او هغه د حیثیت په قید سره خارج شو .

**جواب**: په دې صورت کې په تعریف کې د مذکور ذکر د معرّف د مزید وضاحت د پاره دي

بيان لما الموصولة: په دې عبارت سره شارح ددې خبرې وضاحت کوي چې مِن بيانيه دي دزمان اومکان ما موصوله يا موصوفه بيان دي.

اشارة: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: په تعريف کې کلمه د او ذکر کول صحيح نه دي، ځکه چې او دتشکيك دپاره وضع شوې دي او تعريف دايضاح او وضاحت دپاره وي، نو په دې دواړو کې منافات دي

**جواب**: دلته کلمه د او دتشکيك دپاره نه دي، بلکې دتقسيم او تنويع دپاره دي د مفعول فيه ددوه قسمونو دبيانولو دپاره دي اودا او دتعريف سره منافي نه دي.

تمهيدا: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب و[illegible]

**سوال**: دمفعول فيه داقسامو د ذکر کولو څه فائده ده؟

**جواب**: په ذکر داقسامو کې د هر يو حکم بيانول په طور د تمهيد دي.

## دمفعول فيه اقسام:

| |
|---|
| وَ هُوَ اَيِ الْمَفْعُوْلُ فِيْهِ ضَرْبَانِ مَا يُظْهَرُ فِيْهِ فِيْ وَ هُوَ مَجْرُوْرٌ بِهَا وَ مَا |
| اودا يعني مفعول فيه په دوه قسمه دي هغه چې ظاهر کړې شي په دې کې في اوداددې وجې نه مجروروي اوهغه چې |
| يُقَدَّرُ فِيْهِ فِيْ وَ هُوَ مَنْصُوْبٌ بِتَقْدِيْرِ هُنَا وَ هٰذَا خِلَافُ اِصْطِلَاحِ الْقَوْمِ فَاِنَّهُمْ لاَ يُطْلِقُوْنَ |
| مقدروي په دې کې في اودامنصوب وي په تقدير د في سره اودا خلاف داصطلاح دنحويانو دي ځکه دوي نه کوي اطلاق |
| الْمَفْعُوْلَ فِيْهِ اِلاَّ عَلَى الْمَنْصُوْبِ بِتَقْدِيْرِ فِيْ وَ اَمَّا الْمَجْرُوْرُ بِهَا فَهُوَ مَفْعُوْلٌ بِهٖ بِوَاسِطَةِ |
| په مفعول فيه مگر په منصوب باندې په تقدير د في سره اوهرچې مجرور دنحويانو په نزد نودامفعول به دي په واسطې د |
| حَرْفِ الْجَرِّ لاَ مَفْعُوْلٌ فِيْهِ وَ خَالَفَهُمُ الْمُصَ حَيْثُ جَعَلَ الْمَجْرُوْرَ اَيْضاً |
| حرف جر سره نه مفعول فيه اومخالفت کړې دي مصنف په داسې شان سره چې گرځولې دي مجرور هم دارنگې |
| مَفْعُوْلاً فِيْهِ وَ لِذٰلِکَ قَالَ وَ شَرْطُ نَصْبِهٖ اَيْ شَرْطُ نَصْبِ الْمَفْعُوْلِ فِيْهِ تَقْدِيْرُ فِيْ اِذِ |
| مفعول فيه نوددې وجې نه يې ويلي دي چې ددې دنصب شرط يعني شرط دنصب دمفعول فيه تقدير د في دي ځکه |
| التَّلَفُّظُ بِهَا يُوْجِبُ الْجَرَّ. |
| تلفظ په دې باندې واجبوي جر. |

**خلاصه دمتن**: دمصنف رَحِمَهُ اللهُ په نزد تقدير د في په مفعول فيه کې دمفعول فيه کيدو شرط نه دي بلکه ددې دمنصوب کيدو شرط دي ددې وجې نه دمفعول فيه دمنصوب کيدو دشرط

ذکر یې کړې چې مفعول فیه په هغه وخت کې منصوب وي چې کله په دې کې في مقدر وي که چیرته في مذکور وي نو دا به مفعول فیه وي لیکن منصوب به نه وي بلکه د في دوجې نه به مجرور وي

**اغراض دجامي** : وهو: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: د مصنف رحمه الله قول و شرط نصبه تقدیر في صحیح نه دي. ځکه چې تقدیر د في د منصوب کیدو شرط نه دي. بلکې د مفعول فیه دپاره شرط دي، لکه داد جمهورو نحویانو مذهب دي؟

**جواب**: د مصنف مذهب هم دغه وو، چې في به مقدر وي اویابه مذکور وي په دواړو صورتونو کې ظروف زمان و مکان مفعول به جوړیږي. لهذا تقدیر د في د مفعول فیه جوړیدو شرط نه دي. بلکې د مفعول فیه دمنصوب کیدو شرط دي. گویا چې دمصنف رحمه الله په نزد مفعول فیه په دوه (۲) قسمه دي (۱) هغه مفعول فیه په کوم کې چې في مذکور دي، دا به مجرور شي په واسطې دحرف جر سره اومفعول فیه به ترې جوړیږي (۲) هغه مفعول فیه، چې په هغې کې في مقدر وي دا به منصوب شي او مفعول فیه به جوړشي ، په دې باره کې مصنف رحمه الله وویل و شرط نصبه تقدیر في، نو تقدیر د في دمفعول فیه دمنصوب کیدو شرط دي نه د مفعول فیه کیدو ځکه چې که چیرته في مذکور وي نوبیا هم دمفعول فیه تعریف هم په دې صادق دي . ځکه چې په دې کې فعل ذکر کولې شي په خلاف دنورو نحویانو چې هغوي د في د تقدیر په صورت کې مفعول فیه وایي که چیرته في مذکور وي نو دې ته مفعول فیه نه وایي بلکه په واسطې دحرف جر سره مفعول به گرځوي خلاصه داچې دمصنف رحمه الله دا قول په خپل مذهب باندې مبني دي اوپه دې کې مصنف رحمه الله دجمهورو نحویانو مخالفت کړې دي ځکه چې مصنف دحق تابع دي نه د سړو ، یعنې حق چې کوم طرف وي نو مصنف رحمه الله هغې طرف ته وي او دحق په مقابله کې دخلکو تابعداري نه کوي .

ولذلك قال: په دې عبارت سره شارح دابیانوي چې د مصنف په نزد تقدیر د في دمفعول فیه دپارد شرط نه دي. بلکې ددې د منصوب کیدو دپاره شرط دي. ځکه چې مصنف رحمه الله وویل

چې د مفعول فيه د منصوب کېدو شرط دادې. چې في مقدر وي. څکه که في ملفوظ وي. نو مفعول فيه به منصوب نه وي. بلکې مجرور به وي

اى شرط نصب المفعول فيه: په دې عبارت سره شارح د ه دضمير مرجع متعينه کوي

## په ظرف زمان او مکان کې د في دتقدير ځايونه:

وَظُرُوْفُ الزَّمَانِ كُلُّهَا مُبْهَماً كَانَ الزَّمَانُ اَوْ مَحْدُوْداً تَقْبَلُ ذٰلِكَ اَىْ تَقْدِيْرَ فِيْ لِاَنَّ الْمُبْهَمَ مِنْهَا جُزْءُ مَفْهُوْمِ الْفِعْلِ

اوظروف زمان ټول مبهم دي ياوي زمان محدود نو قبلوي دا يعنې تقدير د في څکه مبهم د دې نه داجزء د مفهوم دفعل

فَيَصِحُّ اِنْتِصَابُهُ بِلاَ وَاسِطَةٍ كَالْمَصْدَرِ وَ الْمَحْدُوْدُ مِنْهَا مَحْمُوْلٌ عَلَيْهِ اَىْ عَلَى

دي نو صحيح دي منصوب کېدل د دې بې دواسطې نه لکه مصدر او محدود د دې نه محمول وي په دې باندې يعنې په

الْمُبْهَمِ لِاشْتِرَاكِهِمَا فِي الزَّمَانِيَّةِ نَحْوُ صُمْتُ دَهْراً وَاَفْطَرْتُ الْيَوْمَ وَظُرُوْفُ الْمَكَانِ اِنْ كَانَ الْمَكَانُ مُبْهَماً

مبهم باندې دوجې د اشتراک نه په زمانه کې لکه صمت دهرا وافطرت اليوم اوظروف مکان که چيرته مکان مبهم

قَبِلَ ذٰلِكَ اَىْ تَقْدِيْرَ فِيْ حَمْلاً عَلَى الزَّمَانِ الْمُبْهَمِ لِاشْتِرَاكِهِمَا فِي الْاِبْهَامِ نَحْوُ جَلَسْتُ

وي نو دا قبلوي يعنې تقدير د في دوجې د حمل کولو په زمان مبهم باندې دوجې د اشتراک نه په ابهام کې لکه جلست

خَلْفَكَ وَ اِلاَّ اَىْ وَاِنْ لَمْ يَكُنْ مُبْهَماً بَلْ يَكُوْنُ مَحْدُوْداً فَلاَ يَقْبَلُ تَقْدِيْرَ فِيْ اِذْ

خلفک او که چيرته نه وي يعنې که چيرته ظرف مکان مبهم نه وي بلکه محدود وي نو بيا نه قبلوي تقدير د في څکه

لَمْ يُمْكِنْ حَمْلُهُ عَلَى الزَّمَانِ الْمُبْهَمِ لِاخْتِلاَفِهِمَا ذَاتاً وَصِفَةً نَحْوُ جَلَسْتُ فِي الْمَسْجِدِ وَ

چې نه دي ممکن حمل د دې په زمان مبهم باندې دوجې داختلاف د دواړو نه ذاتا او صفتا لکه جلست في المسجد او

فُسِّرَ الْمُبْهَمُ مِنَ الْمَكَانِ بِالْجِهَاتِ السِّتِّ وَ هِيَ اَمَامٌ وَ خَلْفٌ وَ يَمِيْنٌ وَ شِمَالٌ وَ فَوْقٌ وَ تَحْتٌ وَمَا

تفسير کړې ظرف مبهم د قبيلې د مکان نه په شپږ وجهتونو سره او هغه امام. خلف. يمين. شمال. فوق. تحت او هغه

فِيْ مَعْنَاهَا فَاِنَّ اَمَامَ زَيْدٍ مَثَلاً يَتَنَاوَلُ جَمِيْعَ مَا يُقَابِلُ وَجْهَهُ اِلَى انْقِطَاعِ

څه چې د دې په معنی کې وي څکه امام زيد مثلاً دا شامليږي ټولو هغو څه ته چې مقابل وي مخ د دې انقطاع

الْاَرْضِ فَيَكُوْنُ مُبْهَماً.

د زمکې ته نو وي به دا مبهم

**خلاصه دمتن**: مصنف رَحِمَهُ اللّٰه وايي چې په ظروف زمان او مکان په کوم ځاي کې د في تقدير جائز دي او په کوم ځاي کې ناجائز دي، نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰه وايي چې ټول ظروف زمان برابره خبره ده که مبهم وي او که محدود وي نو تقدير د في قبلوي.

**اغراض دجامي** : لان المبهم منها: په دې عبارت سره شارح ظرف زمان مبهم د في دتقدير د قبولو وجه بيانوي. چې زمان مبهم دفعل دمفهوم جزء دي. خکه چې په فعل کې هم زمانه مبهم وي. لهذا بې دواسطې دحرف جر نه ددې منصوب کېدل صحيح دي. خکه چې قاعده داده چې کله دفعل جزء جدا ذکر کړې شي. نو ددې بې دواسطې دحرف جر نه منصوب کېدل صحيح دي. لکه په مفعول مطلق کې چې دي اوظروف زمان مبهم هم دفعل دمفهوم جزء دي او جدا مذکور دي. نو خکه ددې بې دواسطې دحرف جر نه منصوب کېدل صحيح دي

والمحدود منها الخ: په دې عبارت سره شارح په ظرف زمان محدود کې د في دتقدير وجه بيانوي. او ظرف زمان محدود د في تقدير خکه قبلوي چې دامحمول دي په زمن مبهم باندې اوشارح د حمل وجه دا بيان کړې ده. چې دا دواړه په زمانيت کې شريك دي د زمان مبهم مثال لکه صحت دهراً. د زمان محدود مثال لکه افطرت اليوم. ظروف مکان که مبهم وي. نو د في تقدير به قبلوي او که ظروف محدود وي، نو د في تقدير به نه قبلوي.

تقبل ذلك اى تقدير في: په دې عبارت سره شارح دمشار اليه بيان کوي.

ان كان المكان: په لفظ د مكان سره شارح ديو سوال مقدر جواب ورکوي

**سوال**: د کان په ضمير هُوَ مرجع کې دوه (۲) احتماله دي (۱) مرجع ظروف وي. (۲) مرجع المكان وي اول صورت کې راجع مرجع کې مطابقت نشته مرجع جمع او راجع ضمير واحد دي. په دويم صورت کې د جملې خبريې په غير دعائد نه راتلل لازم راخي. خکه ظرف المكان مبتدا ان كان مبهماً جمله خبريه ددې خبر دي.

**جواب**: مرجع المكان دي پاتې شوه داخبره چې جمله خبريه به په غير دعائد نه پاتې شي. نو ددې جواب دادې چې مکان طرف ته ضمير عائد اوراجع کول بعينه دظروفو طرف ته راجع کول دي. خکه چې دظروفو اضافت مکان طرف ته اضافت بيانيه دي.

حَمْلاً: په دې عبارت کې شارح په ظرف مکان مبهم کې دفي تقدير دقبلولو وجه بيانوي چې ظرف مکان مبهم تقدير د في ددې وجې نه قبلوي. چې دا محمول دي په زمان مبهم باندې اود حمل وجه يې داده چې دواړه په وصف دابهام کې شريعت لکه جلست خلفک

اذا لم يكن: په دې عبارت سره شارح په ظرف مکان محدود کې د في تقدير دقبلولو وجه بيانوي چې مکان محدود د في تقدير ځکه نه قبلوي چې دا په زمان مبهم باندې حملول ممکن نه دي. ځکه چې دا دواړه دذات او وصف په اعتبار سره مختلف دي د ذات په لحاظ سره ځکه مختلف دي چې هغه زمان دي اودا مکان دي ، اود صفت په لحاظ سره ځکه مختلف دي چې دا محدود دي او هغه مبهم دي

**سوال**: که چيرته ظرف مکان محدودپه ظرف مکان مبهم باندې حمل کړي نوپه دې کې هم دفي تقدير جائزکړي دي نو به دې کې څه حرج دي په ظرف زمان باندې حمل کول ضروري خونه دي

**جواب**: په دې کې استعارهمن المستعير الفقير ده يعني دسوال کوونکي اوفقير نه غوښتل لازم راځي، ځکه چې ظرف مکان مبهم په تقدير دفي کې په خپله محتاج دي د ظرف زمان مبهم .

وفسر المبهم: په دې عبارت سره شارح دظرف مکان مبهم تفسير په جهات سته سره کړي دي

من المكان: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال**: فسر المبهم بالجهات الستة دا عبارت منقوض او مات دي په الدهر سره، ځکه چې دا مبهم دي حالانکه داد جهات سته نه . نه دي .

**جواب**: دلته د مبهم نه مراد مکان مبهم دي او الدهر مکان مبهم نه دي، بلکه زمان مبهم دي.

وهي: په دې عبارت سره شارح د جهات سته مصداق بيانوي چې هغه جهات سته يعني شپږ (٦) جهات دادي : (١) خلف ( وروسته ). (٢) امام ( مخکې ). (٣) يمين ( ښي طرف ). (٤) شمال ( چپ طرف ) . (٥) فوق ( پاس . بره ) . (٦) تحت ( لاندې ) .

و ما في معناها: يعني کوم چېددې شپږو (٦) جهاتو په معنى کې دي، لکه (١) وراء . (٢) قدام . (٣) يسار . (٤) قُبل . (٥) دُبر . (٦) علو . (٧) سفل . (٨) جنوب وغيره. دا تقسيم د کُل دي اجزاو طرف ته . نه د کلي تقسيم دي جزئياتو طرف ته .

فان امام: په دې عبارت کې شارح دجهات سته دمبهم کيدو وجه بيانوي چې دامبهم ددې وجې نه دي چې په دې کې عموم دي مثلاً امام زيد دا هغه ټولو څيزونو ته شامل دي کوم چې ددې مخ نه تر انقطاع د ارض پورې .

## په مکان مبهم باندې د عند او لدی د حمل کولو ذکر :

وَلَمَّا لَمْ يَتَنَاوَلْ هٰذَا التَّفْسِيْرُ بَعْضَ الظُّرُوْفِ الْمَكَانِيَّةِ الْجَائِزِ نَصْبُهَا قَالَ وَ حُمِلَ

اوهر كله چې نه شاملېږي دا تفسير بعضې ظروفو مكانيوته چې جائزوي نصب د دې نو مصنف ويلي او حمل كړي

عَلَيْهِ اَىْ عَلَى الْمُبْهَمِ الْمُفَسَّرِ بِالْجِهَاتِ السِّتِّ عِنْدَ وَلَدٰى وَ شِبْهُهُمَا

شوي په دې باندې يعني په هغه مبهم چې تفسيرېږي شوي په شپږوجهتونوسره عند او لدی او ددې دواړوسره مشابه

نَحْوُ دُوْنَ وَ سِوٰى لِاِبْهَامِهِمَا اَىْ لِاِبْهَامِ عِنْدَ وَلَدٰى وَلَمْ يَذْكُرْ وَجْهَ حَمْلِ

لكه دون او سوى دوجې د ابهام د دې دواړو نه يعني ابهام د عند او د لدی او نه ده ذكر كړې مصنف وجه د حمل د دې دواړو

شِبْهِهِمَا عَلَيْهِ لِاَنَّ حُكْمَهُ حُكْمُهُمَا وَ فِيْ بَعْضِ النُّسَخِ لِاِبْهَامِهَا كَمَا

د مشابه الفاظو د حمل كولو خكه چې حكم د دې د هغه دواړو حكم په شان دې او په بعضو نسخو كې لابهامها دي لكه

هُوَ الظَّاهِرُ وَ كَذَا حُمِلَ عَلَى الْمُبْهَمِ مِنَ الْمَكَانِ لَفْظُ مَكَانٍ وَاِنْ كَانَ مُعَيَّنًا نَحْوُ جَلَسْتُ مَكَانَكَ

چې ظاهر دي او همدارنګې حمل كړې په مكان مبهم باندې لفظ د مكان اګركه معين وي لكه جلست مكانك دوجې د

لِكَثْرَتِهِ فِي الْاِسْتِعْمَالِ مِثْلَ الْجِهَاتِ السِّتِّ لَا لِاِبْهَامِهِ وَ كَذَا حُمِلَ عَلَيْهِ مَا بَعْدَ

كثرت استعمال نه لكه هغه شپږ جهتونه د دې دابهام دوجې نه او همدارنګې حمل كړي په دې باندې مابعد د

دَخَلْتُ وَاِنْ كَانَ مُعَيَّنًا نَحْوُ دَخَلْتُ الدَّارَ لِكَثْرَتِهِ فِي الْاِسْتِعْمَالِ لَا لِاِبْهَامِهِ عَلَى الْاَصَحِّ اَىْ عَلَى الْمَذْهَبِ

دخلت اګركه معين وي لكه دخلت الدار دوجې د كثرت استعمال نه .نه دابهام دوجې نه په اصح يعني په مذهب

الْاَصَحِّ فَاِنَّهُ ذَهَبَ بَعْضُ النُّحَاةِ اِلٰى اَنَّهُ مَفْعُوْلٌ بِهٖ لٰكِنَّ الْاَصَحَّ

صحيح باندې خكه چې ذهاب كړې بعضو نحويانو د دې طرف ته چې دا مفعول به دې ليكن زياته صحيح داده چې

اَنَّهُ مَفْعُوْلٌ فِيْهِ وَالْاَصْلُ اِسْتِعْمَالُهُ بِحَرْفِ الْجَرِّ لٰكِنَّهُ حُذِفَ لِكَثْرَةِ اِسْتِعْمَالِهٖ وَهٰذَا

دامفعول فيه دي او اصل استعمال د دې دي په حرف جر سره ليكن حذف شوي د كثرت استعمال دوجې نه او دا

مَحَلُّ تَاَمُّلٍ فَاِنَّ الْفِعْلَ لَا يَطْلُبُ الْمَفْعُوْلَ فِيْهِ اِلَّا بَعْدَ تَمَامِ مَعْنَاهُ وَلَا شَكَّ اَنَّ مَعْنَى الدُّخُوْلِ

خاې د فكر دي خكه فعل نه طلب كوي مفعول فيه مګر پس د پوره والي د معنى نه او شك نشته چې معنى د دخول

لَا يَتِمُّ بِدُوْنِ الدَّارِ وَبَعْدَ تَمَامِ مَعْنَاهُ بِهَا يَطْلُبُ الْمَفْعُوْلَ فِيْهِ كَمَا اِذَا قُلْتَ دَخَلْتُ

دانه پوره كيږي په غير د دار نه او پس د پوره والي د معنى نه په دې سره غواړي مفعول فيه لكه چې ته ووايې دخلت

الدَّارَ فِي الْبَلَدِ الْفُلَانِيْ فَالظَّاهِرُ اَنَّهُ مَفْعُوْلٌ بِهٖ لَا مَفْعُوْلٌ فِيْهِ وَمِمَّا يُؤَيِّدُ ذٰلِكَ اَنَّ كُلَّ فِعْلٍ

الدار في البلد الفلاني نو ظاهر داده چې دا مفعول به دي نه مفعول فيه او هغه چې تاكيد كوي د دې چې هر هغه فعل

نُسِبَ اِلىٰ مَكَانٍ خَاصٍ بِوُقُوْعِهٖ فِيْهِ يَصِحُّ اَنْ يُّنْسِبَ

چې نسبت یې شوې وي بو خاص مکان ته د وجې د واقع کیدو نه په دې کې نو صحیح دہ چې نسبت یې وشي

اِلىٰ مَكَانٍ شَامِلٍ لَهٗ وَلِغَيْرِهٖ فَاِنَّهٗ اِذَا قُلْتَ ضَرَبْتُ زَيْداً فِي الدَّارِ الَّتِيْ هِيَ

داسې مکان طرف ته چې شامل وي دې طرف ته او غیر د دې نه خکه چې کله تاوویل ضربت زیدا في الدار هغه چې هغه

جُزْءٌ مِنَ الْبَلَدِ فَكَمَا يَصِحُّ اَنْ تَقُوْلَ ضَرَبْتُ زَيْداً فِي الدَّارِ كَذٰلِكَ يَصِحُّ اَنْ تَقُوْلَ

جز وي د بلد نو لکه څنګه چې صحیح کیږي چې ته ووایې ضربت زیدا في الدار نو همدا رنګې صحیح دي چې ته ووایې

ضَرَبْتُ فِي الْبَلَدِ وَفِعْلُ الدُّخُوْلِ بِالنِّسْبَةِ اِلىٰ الدَّارِ لَيْسَ كَذٰلِكَ فَاِنَّهٗ اِذَا قَالَ الدَّاخِلُ فِي الْبَلَدِ دَخَلْتُ

ضربت في البلد او فعل د دخول په نسبت سره دار طرف ته نه دي همدارنګې خکه چې کله تاوویل الداخل في البلد دخلت

الدَّارَ لَا يَصِحُّ اَنْ يَقُوْلَ دَخَلْتُ الْبَلَدَ فَنِسْبَةُ الدُّخُوْلِ اِلىٰ الدَّارِ لَيْسَتْ كَنِسْبَةِ الْاَفْعَالِ اِلىٰ

الدار نو نه صحیح کیږي چې ووایي دخلت البلد نو نسبت د دخول دار طرف ته نه دي په شان د نسبت د افعالو هغه

اَمْكِنَتِهَا الَّتِيْ فُعِلَتْ فِيْهَا فَلَا تَكُوْنُ الدَّارُ مَفْعُوْلاً فِيْهِ بَلْ مَفْعُوْلاً بِهٖ وَ قِيْلَ مَعْنَاهُ

امکنو ته چې شوې وي په دې کې نو نه وي دار مفعول فیه بلکې مفعول به به وي او چا ویلي دي چې معنی د دې

عَلىٰ الْاِسْتِعْمَالِ الْاَصَحِّ فَيَكُوْنُ اَشَارَةً اِلىٰ اَنَّ اِسْتِعْمَالَ دَخَلْتُ مَعَ فِيْ نَحْوُ دَخَلْتُ فِي الدَّارِ صَحِيْحٌ

على الاستعمال الاصح د دنو وي به اشاره د دې طرف ته چې استعمال د دخلت سره د في لکه دخلت في الدار نو دا هم صحیح دي

لٰكِنَّ الْاَصَحَّ اِسْتِعْمَالُهٗ بِدُوْنِ فِيْ وَ نُقِلَ عَنْ سِيْبَوَيْهِ اَنَّ اِسْتِعْمَالَهٗ بِفِيْ شَاذٌّ.

لیکن صحیح استعمال په غیر د في نه دي او نقل شوي دي د سیبویه نه چې استعمال د دې په في سره شاذ دي

**خلاصه دمتن**: صاحب د کافیې وایي چې عند او لدی او د دې دواړو سره مشابه دا په مکان مبهم (جهات سته) باندې محمول دي یعنې د دې حکم جهات سته والا دي. همدارنګې لفظ د مکان اګر چې مکان مبهم نه دي، لیکن د کثرت استعمال د وجې نه دا هم په مکان مبهم باندې محمول دي همدارنګې لفظ دخلت مابعد هم د صحیح قول مطابق په مکان مبهم باندې محمول دي.

**اغراض د جامي**: ولما لم یتناول هذا التفسیر: په دې عبارت سره د ما بعد لپاره تمهید بیانوي چې د تمهید حاصل دا دی چې د مکان مبهم تفسیر په جهات سته سره بعضې داسې ظروف زمانو ته شامل نه دي. په کوم باندې چې نصب جائز وو. د دې وجې نه مصنف رحمه الله و حمل علیه وویل. د دې مطلب دا دي چې عند او لدی وغیره دا مکان مبهم په جهات سته باندې

محمول دي اودحمل وجه داده، چې لکه څنګه په جهات سته کې ابهام وي همدارنګې په دې کې هم ابهام وي ددې وجې نه دا په مکان مبهم باندې محمول دي.

ولم یذکر وجه حمل: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دا تقریب تام نه دي یعنې دلیل د دعوې مطابق نه دي، دعوی خو داوه، چې عند او لدی او ددې مشابهات محمول دي په مکان مبهم باندې او دلیل صرف د عند او لدی، د حمل ذکر کړې شوې دي دمشابهت نه دي پس دعوی عامه او دلیل خاص دي.

**جواب**: عند او لدی مشابهات په مکان مبهم باندې دمحمول کېدو وجه بیانوي چې ددې وجې نه ذکر نه کړه ځکه چې دمشابهاتو حکم بعینه د عند او د لدی حکم دي.

وفي بعض النسخ لابهامها: په دې عبارت سره شارح دنسخو اختلاف بیانوي، چې مخکښې سوال او جواب په هغه صورت کې دي، چې کله عبارت لابهامه وي، لیکن په بعضې نسخو کې عبارت لابهامها دي، په دې صورت کې ها ضمیر تانیث عند او لدی نه غیر نور محمولاتو ته به هم شامل وي یعنې عند او لدی اوددې مشابه ټول ظروف مکان ددې دابهام دوجې نه په ظرف مکان مبهم باندې محمول کړي دي لهذا ددې نسخې مطابق اشکال وارد نه شو.

وکذا حُمِلَ علی المبهم: په دې عبارت سره شارح بیان دعطف کوي، لفظ د مکان عطف دي په عند او لدی باندې او دا عطف د مشبه علی المشبه به د قبیلې نه دي، یعنې لکه څنګه چې عند او لدی په مکان مبهم باندې محمول دي، همدارنګې لفظ د مکان هم په مکان مبهم باندې محمول دي د حمل وجه یې داده، چې لکه څنګه چې دجهات ستو استعمال کثیر او ډیر دي همدارنګې ددې استعمال هم کثیر او ډیر دي، اود حمل وجه ابهام نه ده، ځکه چې لفظ مکان معین وي لکه جلست مکانك.

وکذا حمل: په دې عبارت سره غرض دشارح بیان دعطف دي، وروستو خلت معطوف دي په عند او لدی باندې داهم عطف د مشبه علی المشبه به دقبیلې نه دي، یعنې څنګه چې عند او لدی او ددې مشابهات په مکان مبهم باندې محمول وي، همدارنګې د دخلت سا بعد په مکان مبهم باندې محمول دي، اودحمل وجه داده، چې ددې استعمال کثیر او ډیر دي، اود حمل وجه ابهام نه ده، ځکه چې دا په معین مکان باندې دلالت کوي لکه دخلت الدار.

**على المذهب الاصح:** په دې عبارت سره شارح بيان دتركيب كوي ، چې **الاصح** صفت دې د موصوف محذوف المذهب

**فانه ذهب بعض النحاة:** په دې عبارت سره شارح داصح مذهب مقابل بيانول دي ، دبعضې نحويانو مذهب دادې چې دامفعول به دي مفعول فيه نه دي، اواصل دادې چې ددې استعمال دحرف جر سره وي ليكن دكثرت استعمال دوجې نه حرف جر حذف كړې شو.

**هذا محل:** په دې عبارت سره شارح په صحيح مذهب باندې يو اعتراض كوي :

**اعتراض:** دخلت نه وروستو مثلاً په **دخلت الدار** كې **الدار** مفعول فيه جوړول او د مفعول به نه جوړول صحيح نه دي، ځكه چې دفعل نه دمفعول فيه طلب په هغه وخت كې وي چې كلمه ددې معنى تام شي، او په ذكر شوي مثال كې د دخول معنى د دار د ذكر كولو نه په غير نه پوره كيږي، كله چې د دار سره ددې معنى تم كيږي، نو بيا به داد مفعول فيه طلب كوي لكه **دخلت الدار في البلد الفلاني** كې چې ذكر دي، نو ظاهره ده چې **الدار** مفعول به دې مفعول فيه نه دي .

**ولما يؤيد:** په دې عبارت سره شارح دذكر شوي اعتراض مزيد تائيد كوي ، چې حاصل يې دادې چې په **دخلت الدار** كې **الدار** مفعول فيه جوړول صحيح نه دي، ځكه چې دمفعول فيه علامت دادې چې هر هغه فعل چې يو خاص مكان طرف ته منسوب وي، په دې مكان كې د واقع كېدو د وجې نه، نو دا فعل داسې مكان طرف ته منسوب كول هم صحيح نه دي، كوم چې دې مكان خاص ته هم شامل وي او ددې نه غير ته هم شامل وي. مثلاً كله چې يو سړى ووايي: **ضربت زيدا في الدار** په دې كې **الدار** خاص مكان دى كوم كې چې فعل **ضرب** واقع كېږي او دا دار د ښار يوجزء دي او ښار عام دي دار او غير دار ته شامل دي .

نو لكه څنګه چې **ضربت زيدا في الدار** ويل صحيح دي، همدارنګې **ضربت زيدا في البلد** ويل هم صحيح دي، ليكن د دخول نسبت دار طرف ته دغه شان نه دي مثلاً يو سړې ښار كې مقيم دي او هغه ووايي **دخلت الدار** نو دده **دخلت البلد** ويل صحيح نه دي، ځكه چې دخول فرع ده د خروج او دلته ښار نه وتل بيا نه موندې شو. ځكه چې هغه مخكې نه په ښار كې مقيم دي كله چې په **الدار** كې دمفعول فيه علامت موجود نه دي، نو ثابته شوه چې **الدار** مفعول به دى نه مفعول فيه .

**جواب**: دجمهورو طرف نه دا جواب وشو، چې دا قاعده اکثري ده کلي نه ده ، فلا اشکال

**وقيل معناه**: په دې عبارت سره شارح دعلی الاصح دويم تقرير او وضاحت بيانوي ، چې الاصح صفت دي دموصوف محذوف الاستعمال داپه اصل کې علی الاستعمال الاصح وو ، شارح وايي بيا دې خبرې طرف ته اشاره وشوه، چې ددخلت استعمال په في سره هم صحيح دي، لکه دخلت في الدار ليکن اصح او راجحه داده، چې ددې استعمال د في نه په غير کې دي .

**نقل عن سيبويه** : په دې عبارت سره شارح ددويمې معنی تائيد کوي ، چې امام سيبويه رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د دخلت استعمال په في سره شاذ دي ددې نه معلومه شوه، چې د دخلت استعمال د في نه په غير اصح دي .

## د عامل سره د مفعول فيه دمنصوب کيدو بيان :

| |
|---|
| وَيُنْصَبُ اَيِ الْمَفْعُوْلُ فِيْهِ بِعَامِلٍ مُضْمَرٍ بِلاَ شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ نَحْوُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِيْ جَوَابِ مَنْ |
| اومنصوب به وي يعني مفعول فيه عامل مضمرسره بې دشرط دتفسيرنه لکه يوم الجمعة په جواب دهغه چاکې |
| قَالَ مَتٰى سِرْتُ اَيْ سِرْتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَبِعَامِلٍ مُضْمَرٍ عَلٰى شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ نَحْوُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ صُمْتُ |
| چې هغه ووايي متی سرت يعني سرت يوم الجمعة اودمضمر عامل سره په شرط دتفسير سره لکه يوم الجمعة صمت |
| فِيْهِ وَ التَّفْصِيْلُ فِيْهِ بِعَيْنِهٖ كَمَا مَرَّ فِي الْمَفْعُوْلِ بِهٖ. |
| فيه اوتفصيل په دې کې بعينه هغه دي چې کوم تير شوې دي په مفعول به کې . |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافيې وايي، چې مفعول فيه دعامل مقدر سره بې د شرط دتفسير نه هم منصوب وي، مثلاً لکه يو سړی ووايي متی سرت نو ددې په جواب کې وويلې شي : يوم الجمعة نو يوم الجمعة منصوب دي دعامل مقدر د وجې نه، چې هغه سرت دي او ددې عامل مقدر يو فعل هم تفسير نه کوي، همدارنګې مفعول فيه په شرط دتفسير سره دعامل مقدر د وجې نه هم منصوب دي، لکه يو سړی ووايي : يوم الجمعة صمت فيه په دې کې يوم الجمعة منصوب دي دعامل مقدر د وجې نه چې هغه صمت دي چې ددې تفسير وروستنې صمت کوي .

**اغراض دجامي** : **والتفصيل فيه بعينه**: په دې عبارت سره شارح دمتن وضاحت کوي ، چې په مفعول فيه کې چې کوم تفصيل دي هغه هماغه تفصيل دي کوم چې په مفعول به کې د ما اضمر عامله دعنوان لاندې تير شوي دي يعنې لکه څنګه چې په هغې کې پنځه (۵) قسمونه وو

رفع (۴) وجوب نصب (۵) دواړه مساوي.

## ﴿ اَلْمَفْعُوْلُ لَهٗ ﴾ :

## د مفعول له تعريف :

| |
|---|
| اَلْمَفْعُوْلُ لَهٗ هُوَ مَا فُعِلَ لِاَجْلِهٖ اَىْ لِقَصْدِ تَحْصِيْلِهٖ وَ بِسَبَبِ وُجُوْدِهٖ وَ خَرَجَ بِهٖ سَائِرُ |
| مفعول له هغه دي چې شوې وي کار ددې دپاره يعني دوجې دقصد دحاصلولو ددې او په سبب دوجود ددې سره او |
| الْمَفَاعِيْلِ مِمَّا فُعِلَ مُطْلَقاً اَوْ بِهٖ اَوْ فِيْهِ اَوْ مَعَهٗ فِعْلٌ اَىْ حَدَثٌ مَذْكُوْرٌ اَىْ مَلْفُوْظٌ |
| خارج شوپه دې سره ټول مفاعيل مفعول دمفعول مطلق،به،فيه اومعه،فعل يعني کارمذکوريعني ملفوظ وي |
| حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً فَلاَ يَخْرُجُ عَنْهُ مَا كَانَ فِعْلُهٗ مُقَدَّراً كَمَا اِذَا قُلْتَ تَاْدِيْباً فِيْ جَوَابِ مَنْ |
| حقيقتاًاوياحکمانو نه خارجيږي ددې نه هغه چې وي فعل ددې مقدر لکه څنګه چې ته ووايې تاديباً په جواب د |
| قَالَ لِمَ ضَرَبْتَ زَيْداً فَقَوْلُهٗ مَذْكُوْرٌ اِحْتِرَازٌ عَنْ مِثْلِ اَعْجَبَنِيْ التَّاْدِيْبُ فَاِنْ قُلْتَ |
| هغه چاکې چې ووايي لم ضربت زيداًنوداقول مذکورداحترازدي داعجبني التاديب مثال نه که چيرته ته ووايې |
| كَيْفَ يَصِحُّ الْاِحْتِرَازُ بِهٖ عَنْهُ وَ هُوَ اَيِ الْفِعْلُ الَّذِيْ فُعِلَ لِاَجْلِهٖ مَذْكُوْرٌ |
| چې څنګه صحيح دي احترازپه دې سره ددې نه اوحالانکه دايعني هغه فعل چې شوې وي ددې دوجې نه داذکر |
| فِي الْجُمْلَةِ كَمَا فِيْ ضَرَبْتُ زَيْداً قُلْنَا اَلْمُرَادُ مَذْكُوْرٌ مَعَهٗ فَاِنْ قُلْتَ |
| دي په جمله کې لکه څنګه چې په ضربت زيداًکې دي نوموږووايوچې مرادذکردي : دې سره که چيرته ته ووايې |
| هُوَ مَذْكُوْرٌ مَعَهٗ كَمَا فِيْ ضَرَبْتُهٗ تَاْدِيْباً قُلْنَا اَلْمُرَادُ مَذْكُوْرٌ مَعَهٗ فِيْ |
| چې دامذکوردي ددې سره لکه څنګه چې په ضربته تاديباًکې دي نوموږ وايوچې مرادذکردي ددې سره په هغه |
| التَّرْكِيْبِ الَّذِيْ هُوَ فِيْهِ وَ يَرِدُ حـ نَحْوُ اَعْجَبَنِيْ التَّاْدِيْبُ الَّذِيْ ضَرَبْتُ لِاَجْلِهٖ |
| ترکيب کې چې هغه په دې کې وي اووارديږي 'عتراض په دې وخت کې په اعجبني التاديب الذي ضربت لاجله باندې |
| اَللّٰهُمَّ اِلاَّ اَنْ يُرَادَ بِذِكْرِهٖ مَعَهٗ اِيْرَادُهٗ مَعَهٗ لِلْعَمَلِ فِيْهِ مِثْلُ ضَرَبْتُهٗ تَاْدِيْباً |
| اللهم مګرکه چيرته مرادوي په ذکرددې سره راوړل دهغه،ددې سره دپاره دعمل په دې کې لکه ضربته تاديباً دا |
| مِثَالٌ لِمَا فُعِلَ لِقَصْدِ تَحْصِيْلِهٖ فِعْلٌ وَ هُوَ الضَّرْبُ فَاِنَّ التَّاْدِيْبَ اِنَّمَا يَحْصِلُ بِالضَّرْبِ وَ يَتَرَتَّبُ |
| مثال دي دهغه دپاره چې ددې دحاصلولوپه اراده دې سره فعل شوې وي څکه تاديب داحاصليږي په ضرب سره اومرتب |
| عَلَيْهِ وَ قَعَدْتُ عَنِ الْحَرْبِ جُبْناً مِثَالٌ لِمَا فُعِلَ بِسَبَبِ وُجُوْدِهٖ فِعْلٌ |
| کيږي په دې باندې اوقعدت عن الحرب جبناًدامثال دي دهغه مفعول له چې ددې دوجود په سبب سره فعل شوې |

وَ هُوَ الْقُعُوْدُ فَإِنَّ الْقُعُوْدَ إِنَّمَا وَقَعَ بِسَبَبِ الْجُبْنِ.

وي اوهغه قعود دي ځکه قعود واقع شوي په سبب د جبن اوبزدلي سره.

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافيې په دې عبارت سره د مفعول له تعريف کوي، چې مفعول له هغه دي چې د چا دوجې نه چې فعل ذکر شوي وي لکه ضربته تاديباً او قعدت عن الحرب جُبناً.

**اغراض دجامي** : اى القصد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: د مفعول له تعريف جامع نه دي، ځکه چې دا په هغه تاديباً باندې صادق نه راځي، کوم چې په ضربته تاديباً کې واقع دي، ځکه چې د لاجله نه متبادر دادې، چې د دې دوجود دسبب نه فعل ذکر شوي وي، په ضربته تاديباً کې د تاديباً دوجود دسبب دوجې نه فعل ذکر نه دي، بلکې د دې د حاصلولو دارادې دوجې نه فعل ذکر شوي دي.

**جواب**: په لاجله کې تعميم دي برابره خبره ده چې د دې د وجود په سبب سره فعل ذکر شوې وي نو دې ته مفعول له وجودي وايي يا د دې د حاصلولو په ارادې سره فعل ذکر شوې وي، نو دې ته مفعول له تحصيلي وايي، اوس دا تعريف په تاديباً باندې صادق راځي کوم چې په ضربته تاديباً کې واقع دي، ځکه چې د دې د حاصلولو په ارادې سره فعل ذکر شوې دي.

اخرج به: په دې عبارت سره شارح د لاجله دقيد فائده بيانوي چې د دې قيد په ذريعې سره د مفعول له نه غير باقي ټول مفاعيل خارج شو، ځکه چې په باقي مفاعيلو کې يو هم داسې نشته، چې د هغې د حاصلولو په ارادې سره يا د دې دوجود دسبب نه فعل ذکر کړې شوې وي.

اى حدث: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: د مفعول له تعريف د مفعول له په يو فرد باندې صادق نه راځي، ځکه چې مفعول له داسې نه دی، چې د چا د وجود دسبب نه يا د دې د حاصلولو په ارادې سره فعل ذکر شوې وي، ځکه چې دا فعل په درې (٣) امورو باندې مشتمل دي: (١) په حدث. (٢) فاعل ته په نسبت. (٣) اوزمان ته نسبت. او يو مفعول له داسې نه دي، چې د چا د وجود د سبب نه يا د چا د حاصلولو د ارادې نه امور ثلاثه شوي وي.

**جواب**: دلته د فعل نه مراد فعل لغوي يعنې حدث دي فعل اصطلاحي مراد نه دي

**اى ملفوظ**: په دې عبارت سره شارح بيان دمعنى كوي ، دمذكور معنى يې بيان كړه ده ددې ضرورت ځكه مخكې راغې ځكه چې دمذكور مصدر كه چيرته ذُكر په ضمې دذال سره وي نو ددې معنى متعقل به وي ( يعنې په عقل سره پوه شوي وي ) نو شارح د مذكور ملفوظ نه اشاره وكړه. چې مذكور د ذِكر نه په كسرې د ذال سره دي، چې معنى يې ملفوظ ده، متعقل والا معنى مراد نه ده ورنه اعجبني التاديب دمذكوره قيد نه خارج نه شو، ځكه چې ددې عامل هم متعقل دي.

**حقيقتاً او حكماً**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال**: دمفعول له. تعريف جامع نه دي. ځكه چې دا تعريف په تاديباً باندې صادق نه راځي، كوم چې د لم ضربت زيد په جواب كې ويلى كېږي، ځكه چې ددې فعل مذكور نه دي؟

**جواب**: په فعل ملفوظ كې تعميم دي برابره خبره ده چې حقيقتاً وي اوكه حكماً وي او په ذكر شوي مثال كې اګرچې حقيقتاً ملفوظ نه دي ليكن حكماً ملفوظ دي.

**فقوله**: په دې عبارت سره شارح د ذكر شوي قيد فائده بيانوي دا قيد احترازي دي، په دې سره احتراز وشو د اعجبنى التاديب مثال نه، ځكه چې د التاديب فعل يعنې ضرب كوم چې دتاديب دحاصلولو دارادې نه شوي وي هغه مذكور نه ده نه حقيقتاً اونه حكماً بلكه معقول اومتعقل يعنې دعقل نه معلوميږي اوفهميږي.

**فان قلت**: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل كوي او په قلنا سره ددې اعتراض جواب وركوي:

**اعتراض**: د ذكر شوي قيد په ذريعې سره اعجبنى التاديب خارج كول صحيح نه دي، ځكه چې د تاديب دحاصلولو په ارادې سره چې كوم فعل شوې دي، يعنې ضرب هغه في الجملة يعنې يو نه يو تركيب كې ذكر دي، لكه ضربت زيدا كې.

**جواب**: مراد دادې چې هغه فعل ددې اسم سره مذكور وي.

**فان قلت**: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل كوي او په قلنا سره ددې اعتراض جواب وركوي:

**اعتراض**: هغه فعل خودي سره مذكور دي لكه په ضربت تاديباً كې چې ذكر دي؟

**جواب**: زمونږ مقصد دادې چې په کوم ترکيب کې مفعول له واقع وي په همدې ترکيب کې فعل ددې سره مذکور وي او ضربت په دې ترکيب کې واقع نه دي په کوم کې چې التاديب مذکور دي بلکه ددې سره خو اعجبني واقع دي او ضربت په دويم ترکيب کې واقع دي

ويرد: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي اوپه اللهم سره ددې اعتراض جواب ورکوي

**اعتراض**: په اعجبني التاديب الذي ضرب لاجله کې التاديب سره فعل مذکور دي او په همدې ترکيب کې دي په کوم کې چې التاديب دي، حالانکه مفعول له نه دي؟

**جواب**: شارح ددې سوال جواب په اللهم سره دورکولو کوشش کړي دي چې زمونږ مراد دادې چې دافعل ذکرکول ځکه دي چې دا په اسم کې عمل و کړي اوپه ذکرشوي مثال کې فعل خو يې ذکرکړي ليکن هغه فعل په اسم کې عمل نه کوي.

مثل ضربته تاديباً: په دې عبارت سره شارح دممثل له تعين کوي ضربته تاديبا دهغه مفعول له مثال دي، چې د چا د تحصيل دارادې سره فعل ذکر شوې دي او هغه فعل ضرب دي، ځکه چې تاديب د ضرب سره حاصل شوې دي او په دې باندې مرتب کيږي او قعدت عن الحرب جبنا کې جبنا دهغه مفعول له مثال دي چې د چا د وجې نه فعل ذکر شوې دي او هغه فعل قعود دي، ځکه چې قعود د بزدلۍ د وجې نه واقع شوي دي.

## مفعول له په مستقل معمول کيدو کې د نحويانو اختلاف:

| |
|---|
| وَالْقَائِلُ بِكَوْنِ الْمَفْعُوْلِ لَهُ مَعْمُوْلًا مُسْتَقِلًّا غَيْرَ دَاخِلٍ فِي الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ يُخَالِفُ خِلَافًا ظَاهِراً لِلزُّجَاجِ |
| اوقائل په کيدو د مفعول له معمول مستقل داغيرداخل دي په مفعول مطلق کې خلاف کوي خلاف ظاهردي زجاج |
| فَإِنَّهُ أَيِ الْمَفْعُوْلَ لَهُ عِنْدَهُ أَىْ عِنْدَ الزُّجَاجِ مَصْدَرٌ مِنْ غَيْرِ لَفْظِ فِعْلِهِ فَالْمَعْنَى |
| لره ځکه هغه يعني مفعول له دده په نزد يعني په نزد د زجاج مصدر دي په غير د خپل فعل د لفظ نه نو معنی دده په |
| عِنْدَهُ فِي الْمِثَالَيْنِ الْمَذْكُوْرَيْنِ اَدَّبْتُهُ بِالضَّرْبِ تَادِيْبًا وَجَبُنْتُ فِي الْقُعُوْدِ عَنِ الْحَرْبِ جُبْنًا اَوْضَرَبْتُ ضَرْبَ تَادِيْبٍ |
| نزد په دواړو ذکر شوو مثالونو کې ادبته بالضرب تاديبا او جبنت في القعود عن الحرب جبنا او ضرب ضرب تاديب |
| وَ قَعَدْتُ قُعُوْدَ جُبْنٍ وَ رُدَّ قَوْلُ الزُّجَاجِ بِأَنَّ صِحَّةَ تَاوِيْلِ نَوْعٍ بِنَوْعٍ لَا تُدْخِلُهُ فِيْ |
| وقعدت قعود جبن دي او رد کړې شې دي قول د زجاج چې صحت د تاويل د يوې نوعې د بل نوعې سره دا نه داخلوي په |

| |
|---|
| حَقِيْقَتِهِ أَلَا تَرٰى أَنَّ صِحَّةَ تَأوِيْلِ الْحَالِ بِالظَّرْفِ مِنْ حَيْثُ أَنَّ مَعْنٰى جَاءَ |
| حقيقت د دې بلې نوعې کې آيا ته نه وينې چې صحت د تاويل د حال د ظرف سره په داسې شان سره چې معنى د جاء |
| زَيْدٌ رَاكِبًا جَاءَ زَيْدٌ وَقْتَ الرُّكُوْبِ مِنْ غَيْرِ أَنْ تَخْرُجَ عَنْ حَقِيْقَتِهَا. |
| زيد راکباً زيد وقت الركوب د ه په غير د دې نه چې داخارج کړي د دې حقيقت نه . |

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافيې په دې عبارت کې د مفعول له په باره کې د نحويانو نه د علامه زجاج اختلاف نقل کوي د علامه زجاج په نزد مفعول له، مستقل معمول نه دي، بلکې په اصل کې مفعول مطلق من غير لفظ الفعل وي .

**اغراض دجامي** : والقائل: په دې عبارت سره شارح بيان د ترکيب کوي، چې د ماتن قول خلافاً مفعول مطلق دي د يخالف د فعل محذوف بيا فعل فاعل او مفعول له د مفعول مطلق سره يوځاې شو نو جمله شوه او دا خبر شو د مبتدا محذوف کوم چې القائل الخ دي .

ظاهراً: په دې عبارت سره شارح بيان د ترکيب کوي خلافا مفعول مطلق دي د نوع د پاره، ځکه چې د خلاف دوه (۲) قسمونه دي :

(۱) ظاهر. (۲) خفي ، او دا خلاف د اول قسم نه دي . مقصد دا دې چې کوم نحويان چې دا وايي چې مفعول له، مستقل معمول دي او په مفعول مطلق کې داخل نه دي، هغه زجاج نحوي مخالف دي، ځکه چې د زجاج په نزد مفعول له، مستقل معمول نه دي، بلکې مفعول مطلق دي کوم چې په اعتبار د لفظ سره د فعل مذکور نه مغائر وي لهذا د زجاج په نزد د ضربته تاديبا معنى ده : ادبته بالضرب تاديبا او د قعدت عن الحرب جبناً معنى ده : جبنت في القعود عن الحرب جبناً يا د ضربت تاديباً معنى ده : ضربته ضرب تاديب او د قعدت عن الحرب جبناً معنى ده : قعدت قعود جبن .

ورد قول الزجاج بان صحة تاويل: په دې عبارت سره شارح د علامه جازج د قول رد کوي او په دې باندې اعتراض کوي چې شارح وايي چې د زجاج قول مردود دي ځکه چې يو نوعه د بلې نوعې په تاويل کولو سره نه دا لازم نه راځي، چې اولنې نوعه د بلې نوعې عين جوړ او د دې په حقيقت کې داخل شي، چنانچه حال د مفعول فيه په تاويل کې کول صحيح دي . لکه جاء زيد راکبا د دې معنى ده جاء زيد وقت الرکوب ليکن د دې تاويل سره دا لازم نه راځي. چې حال د خپل حقيقت نه ووځي او د مفعول له عين جوړ شي همدا رنګې که مفعول له د مفعول مطلق په تاويل

کې شي. نو د دې مطلب هر ګز دا نه دي، د دې خپل حقیقت به ختم شي

## د مفعول له د نصب شرط :

| |
|---|
| وَشَرْطُ نَصْبِهِ اَیْ شَرْطُ اِنْتِصَابِ الْمَفْعُوْلِ لَهُ لَا شَرْطُ کَوْنِ الْاِسْمِ مَفْعُوْلًا لَهُ فَالسَّمَنُ وَالْاِکْرَامُ فِیْ قَوْلِکَ |
| اوشرط د نصب د دې یعنې شرط دانتصاب د مفعول له نه شرط د کیدو د اسم مفعول له نو سمن او اکرام په قول ستا |
| جِئْتُکَ لِلسَّمَنِ وَلِاِکْرَامِکَ الزَّائِرَ عِنْدَهُ مَفْعُوْلٌ لَهُ عَلٰی مَا یَدُلُّ عَلَیْهِ حَدُّهُ وَ هٰذَا |
| کې جئتک للسمن ولاکرامک الزائر د مصنف په نزد مفعول له دي بناء په هغه څه چې دلالت کوي تعریف د دې او دا |
| کَمَا قَالَ فِي الْمَفْعُوْلِ فِيْهِ اِنَّ شَرْطَ نَصْبِهِ تَقْدِیْرُ فِيْ وَ هٰذَا اَیْضًا خِلَافُ اِصْطِلَاحِ |
| لکه څنګه چې یې ویلي په مفعول فیه کې چې شرط د نصب د دې تقدیر د في دي او دا هم دارنګې خلاف د اصطلاح د |
| الْقَوْمِ تَقْدِیْرُ اللَّامِ لِاَنَّهَا اِذَا ظَهَرَتْ لَزِمَ الْجَرُّ وَ خَصَّ اللَّامَ بِالذِّکْرِ لِاَنَّهَا الْغَالِبُ فِيْ |
| نحویانو دي تقدیر د لام دي څکه چې کله لام ظاهر شو نو لازم دي جر او خاص یې کړو ذکر د لام څکه غالب په تعلیلاتو د |
| تَعْلِیْلَاتِ الْاَفْعَالِ فَلَا یُقَدَّرُ غَیْرُهَا مِنْ مِنْ اَوِ الْبَاءِ اَوْ فِيْ مَعَ اَنَّهَا مِنْ دَوَاخِلِ الْمَفْعُوْلِ لَهُ |
| افعالو کې نو نه دي مقدر غیر د دې د من او د باء او في سره د دې چې دا په مفعول له باندې د داخلیدونکو حروفو نه |
| کَقَوْلِهِ تَعَالٰی خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْیَةِ اللهِ وَقَوْلِهِ تَعَالٰی فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِیْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا وَقَوْلِهِ |
| دي لکه د اقول د الله تعالی خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْیَةِ اللهِ او د اقول د الله تعالی فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِیْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا او د اقول |
| عَلَیْهِ السَّلَامُ اِنَّ اِمْرَاَةً دَخَلَتِ النَّارَ فِيْ هِرَّةٍ اَیْ لِاَجْلِهَا. |
| د نبي کریم ﷺ چې یوه زنانه داخله شوه اور ته په باره د پیشو کې یعنې د وجې د پیشو نه. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره شارح د مفعول له د منصوب کیدو شرط بیانوي چې مفعول له په هغه وخت کې منصوب وي چې کله په دې کې لام مقدر وي که چیرته لام مقدر نه وي بلکه ظاهر وي نو د مفعول له د منصوب کیدو په ځای حرف جر د لام د وجې نه به مجرور وي.

**اغراض د جامي** : <u>ای شرط انتصاب</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : تقدیر د لام د مفعول له د نصب شرط نه دي، څکه چې نصب خو د نفس د حرکت نوم دي کوم چې د عامل د وجې نه حاصلیږي او دا د یو شرط محتاج نه دي ؟

**جواب** : شارح د انتصاب د لفظ اضافه وکړه او جواب یې ورکړو چې د لته نصب : انتصاب په معنی کې دي یعنې تقدیر د لام د نصب د پاره شرط نه دي بلکې د منصوب کیدو د پاره شرط دي

المفعول له: په دې عبارت سره شارح د نصبه د ضمير مرجع متعين کوي چې مرجع مفعول له ده.

لا شرط: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: په عبارت کې اصل اختصار وي لهذا مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ لـه په کار وو، چې **وشرطه** يې ويلې وي ددې دپاره چې مطلوب هم حاصل شوې وي او ايجاز او اختصار هم شوې وي نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ **لا شرط کون الاسم مفعولا له** ولې وويل؟

**جواب**: که مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ **و شرطه** ويلې وي نو دې سره به دا وهم پيدا کيدو چې تقدير دلام خو د مفعول له دپاره د مفعول له د کيدو شرط دي، حالانکه دا دمفعول له د مفعول له کيدو دپاره شرط نه دي بلکه ددې د منصوب کيدو دپاره شرط دي مثلاً **جئتک للسمن** او **جئتک لاکرامک** په دې کې سمن او اکرام مفعول له دي حالانکه لام مقدر نه دي او دا خبره داسې ده لکه دمفعول فيه په باره کې چې تيره شوي ده

و هذا کما قال: دا بالکل داسې ده لکه مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ دمفعول له په بحث کې ويلي **وشرط نصبه**، يعنې څنګه چې هلته يې د قوم مخالفت کړی وو، همدارنګې يې دلته هم دقوم مخالفت کړي دي، ځکه چې دقوم نحويانو په نزد تقدير دلام دمفعول له د مفعول له کيدو دپاره شرط دي او د مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد تقدير دلام دمفعول له د منصوب کيدو دپاره شرط دي.

لانها اذا ظهرت: په دې عبارت سره شارح دذکر شوي شرط وجه بيانوي چې د لام دمقدر کېدو شرط يې ځکه ولږولو چې که چيرته لام مقدر نه وي. بلکې ظاهر وي نو مفعول له به منصوب نه وي بلکې مجرور به وي.

وخص اللام بالذکر: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مفعول له، څنګه چې د لام سره وي دغه شان **من**، **باء** او **في** سره هم وي، د **من** مثال د الله تعالی فرمان دي (**خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ**) دالله تعالی د ويرې نه ټيټيدونکي او عاجزي کوونکي، او د باء سره وي لکه الله تعالی چې فرمايي (**فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا**) (د يهوديانو د ظلم د وجې نه مونږ حرام کړل الخ) او د **في** سره وي لکه د نبي کريم صلی الله عليه و آله وسلم فرمان دي:

(**ان إمرأة دخلت النار في هرة**) بې شك يوه زنانه د يو پيشو د وجې نه جهنم ته تللې وه.

نو کله چې مفعول له، د من ، باء او في سره هم وي، نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ لام په خصوصي طور سره ولې ذکر کړو؟

**جواب** : مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ لام په خاص طور سره ځکه ذکر کړو، چې دافعالو په تعلیلاتو کې غالب لام دي د لام نه غیر من، باء، في دا مقدر نه وي. ځکه که دا مقدر شي، نو ذهن دې طرف ته سبقت نه کوي، بلکې لام طرف ته سبقت کوي.

## په مفعول له کې د لام د حذف کولو شرائط :

| |
|---|
| وَ لَمَّا كَانَ تَقْدِيْرُ اللاَّمِ عِبَارَةٌ عَنْ حَذْفِهَا عَنِ اللَّفْظِ وَاِبْقَائِهَا فِي النِّيَّةِ وَكَانَ الْاَصْلُ اِبْقَاءُهَا |
| اوهر کله چې تقدیر دلام عبارت شي دحذف کولو دلفظ نه او دباقي کیدونه په نیت کې اوو ي اصل باقي کیدل ددې |
| فِي اللَّفْظِ وَ النِّيَّةِ فَلاَ حَاجَةَ فِي اِبْقَائِهَا فِي النِّيَّةِ اِلٰى شَرْطٍ بَلِ الْحَاجَةُ اِلَيْهِ اِنَّمَا تُكُوْنُ فِي حَذْفِهَا |
| په لفظ او نیت کې نو نشته دي حاجت په باقي کیدو دنیت کې شرط ته بلکې حاجت دې ته دي چې وي په حذف ددې |
| مِنَ اللَّفْظِ وَ لِهٰذَا قَالَ وَ اِنَّمَا يَجُوْزُ حَذْفُهَا وَ لَمْ يَكْتَفِ بِاِرْجَاعِ ضَمِيْرِ |
| کې دلفظ نه نو ددې وجې نه یې وویل او په تحقیق سره جائز دي حذف ددې او اکتفاء یې ونه کړه په راجع کولو د ضمیرد- |
| الْفَاعِلِ اِلٰى تَقْدِيْرِ اللاَّمِ فَيَجُوْزُ حَذْفُهَا كَمَا يَجُوْزُ ذِكْرُهَا اِذَا كَانَ الْمَفْعُوْلُ لَهُ فِعْلاً |
| فاعل سره تقدیر دلام نو جائز دي حذف کول ددې لکه څنګه چې جائز دي ذکر ددې چې کله مفعول له فعل وي دا |
| اِحْتِرَازٌ عَمَّا اِذَا كَانَ عَيْناً نَحْوُ جِئْتُكَ لِلسَّمَنِ لِفَاعِلِ الْفِعْلِ الْمُعَلَّلِ بِهٖ اَيْ اِتَّحَدَ فَاعِلُهُ وَ فَاعِلُ |
| احترازدي دهغه څه نه چې کله داعین وي لکه جئتك للسمن دپاره دفعل معلل به یعني یووي فاعل ددې او فاعل |
| عَامِلِهٖ اِحْتَرَزَ بِهٖ عَمَّا اِذَا كَانَ فِعْلاً لِغَيْرِهٖ نَحْوُ جِئْتُكَ لِمَجِيْئِكَ اِيَّايَ |
| دعامل ددې په دې سره یې احترازو کړو دهغه څه نه چې کله فعل وي دخپل ضمیرنه غیر لکه جئتك لمجيئك اياي |
| وَمُقَارِناً لَهُ اَيْ لِلْفِعْلِ الْمَذْكُوْرِ فِي الْوُجُوْدِ بِاَنْ يَتَّحِدَ زَمَانُ وُجُوْدِهِمَا نَحْوُ ضَرَبْتُهُ تَادِيْباً فَاِنَّ |
| اویامقارن وي ددې سره یعني دفعل مذکورسره په وجود کې چې یووي زمانه دوجود ددې لکه ضربته تاديباً ځکه. |
| زَمَانَ الضَّرْبِ وَالتَّادِيْبِ وَاحِدٌ اِذْ لاَ مُغَايَرَةَ بَيْنَهُمَا اِلاَّ بِالْاِعْتِبَارِ اَوْ يَكُوْنَ زَمَانَ |
| زمانه دضرب او دتادیب یوه ده ځکه چې هیڅ مغائرت نشته په مینځ ددې دواړو کې مګر په اعتبار سره اویاوي زمانه |
| وُجُوْدِ اَحَدِهِمَا بَعْضاً مِنْ زَمَانِ وُجُوْدِ الْاٰخَرِ نَحْوُ قَعَدْتُ عَنِ الْحَرْبِ جُبْناً فَاِنَّ زَمَانَ الْفِعْلِ اَعْنِي الْقُعُوْدَ عَنِ الْحَرْبِ |
| دیووجود ددویم وجود دزماني یوه حصه لکه قعدت عن الحرب جبناً ځکه زمانه دفعل یعني ناسته دجنګ نه دا یوه |
| بَعْضُ زَمَانِ الْمَفْعُوْلِ لَهُ اَعْنِي الْجُبْنَ وَنَحْوُ شَهِدْتُ الْحَرْبَ اِيْقَاعاً لِلصُّلْحِ بَيْنَ الْفَرِيْقَيْنِ فَاِنَّ زَمَانَ الْمَفْعُوْلِ لَهُ |
| حصه دي دزماني دمفعول له یعني دجبن او لکه شهدت الحرب ايقاعاً للصلح بين الفريقين ځکه زمانه د مفعول له |

| |
|---|
| اَعْنِيْ اِيْقَاعُ الصُّلْحِ بَعْضُ زَمَانِ الْفِعْلِ اَعْنِيْ شُهُوْدَ الْحَرْبِ وَاحْتَرَزَ بِذٰلِکَ الْقَيْدِ عَمَّا |
| يعني واقع كيدل د صلحې داحصه دده زماني دفعل يعني شهود دحرب او احترازيې وكړو په دې قيد سره دهغه څه |
| اِذَا لَمْ يَكُنْ مُقَارِناً لَهُ فِي الْوُجُوْدِ نَحْوُ اَكْرَمْتُکَ الْيَوْمَ لِوَعْدِيْ بِذٰلِکَ اَمْسِ وَاِنَّمَا اشْتَرَطَ |
| نه چې كله نه وي مقارن دفعل مذكور سره په وجود كې لكه اكرمتک اليوم لوعدي بذلک امس او په تحقيق سره شرط |
| هٰذِهِ الشَّرَائِطَ لِاَنَّهُ بِهٰذِهِ الشَّرَائِطِ يَشْبَهُ الْمَصْدَرَ فَيَتَعَلَّقُ بِالْفِعْلِ بِلَا وَاسِطَةِ |
| يې كړل دا شرائط ځكه په دې شرائطو سره مشابه كيږي د مصدر سره نو متعلق كيږي دفعل سره بې دواسطې د |
| تَعَلُّقَ الْمَصْدَرِ بِهِ بِخِلَافِ مَا اِذَا اِخْتَلَّ شَيْءٌ مِنْهَا. |
| تعلق د مصدر نه فعل سره په خلاف دهغه دهغه صورت چې كله مختل شي يو شرط ددې شروطونه. |

**خلاصه دمتن** : ددې ځاې نه ماتن په مفعول له كې دلام دحذف كولو شرائط ذكر كوي په مفعول له كې دلام دحذف كولو دوه (۲) شرطونه دي:

**اول دا چې** مفعول له، او ددې د عامل فاعل يو وي، لكه په ضربته تاديباً كې په دې كې ضرب او تاديب دواړه يو دي.

**دويم دا چې** مفعول له، او ددې د عامل فاعل وجود مقارن وي بيا ددې دوه (۲) صورتونه دي: (۱) يا ددواړو زمانه يوه وي، لكه په ضربته تاديباً كې د ضرب او د تاديب زمانه يوه ده. (۲) يا په دواړو كې د يو وجود زمانه د بل د وجود د زمانې يوه حصه وي، لكه قعدت عن الحرب جبناً په دې كې زمانه فعل يعني قعود عن الحرب زمانه مفعول له، يعني جبن د زمانې يوه حصه ده.

**اغراض دجامي** : ولما كان: دا عبارت د ما بعد دپاره تمهيد او توطيه ده او يا ديو سوال مقدر جواب دي:

**سوال**: په عبارت كې اصل ايجاز او اختصار دي. لهذا مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ له په كار وو، چې د الما يجوز حذفها په ځاې يې صرف الما يجوز ويلې وي، مخكې يې فاعل نه ذكر كولې او د يجوز ضمير تقدير دلام طرف ته راجع وي كوم چې په ما قبل كې مذكور دي ، نو په دې كې اختصار هم وو او مقصود هم حاصليدو . نو مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ داسې ولې ونه كړل؟

**جواب**: نو شارح رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې نه دوه (۲) جوابات وركړي دي:

**جواب (۱)**: دتقدير مطلب حذف عن اللفظ وابقاء في النية دي د دواړو د مجموعې نوم تقدير

دي او په لام کې اصل دادې، چې هغه په لفظونو کې هم باقي وي او په نيت کې هم باقي وي نو
که مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ انما يجوز ووايي او يجوز کې هو ضمير راجع وي، تقدير دلام طرف ته. نو
مطلب به يې دا وي، چې لام د لفظ نه حذف کول او په نيت کې باقي ساتل دواړو لپاره دا شرط
دي، دې نه دا وهم پيدا کيږي، چې حذف من اللفظ او ابقاء في النية دواړه محتاج الى الشرط دي،
حالانکه د ابقاء في النية دپاره هيڅ شرط نشته. ځکه چې هغه خو په خپل اصلي شرط بندې
دي، راتلونکي شرائط صرف د حذف عن اللفظ په باره کې دي، نو ددې وهم دفع کولو دپاره
مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ و يجوز حذفها ويلو سره فاعل ذکر کړو او تقدير دلام طرف ته يې ضمير دفاعل په
راجع کولو باندې اکتفاء ونه کړه؟

**جواب ( ۲ )** : بعضې حضراتو دا جواب ورکړې دي، چې انما يجوز حذفها يې وويل او اسم ظاهر
يې دضمير په ځاې ذکر کړو نو مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ دحذف اوتقدير دترادف طرف ته اشاره کول
غوښتل ددې جواب مطابق په حذف اوتقدير کې به کوم فرق نه وي.

**خلاصه دشرائطو** : د شرائطو خلاصه داده ، چې دمفعول له نه دلام حذف کول جائز دي کله
چې په دې کې درې(۳) شرطونه موجود وي : (۱) مفعول له فعل وي يعنې اثر وي عين نه وي.
(۲) مفعول له، فعل معلل به د فاعل فعل دی، يعنې دا دواړو فاعل يو وي. (۳) مفعول له په
وجود کې دفعل معلل به سره مقارن وي، يعنې د دواړو زمانه يوه وي.

احتراز: په دې عبارت سره شارح د فعلٌ دقيد فائده بيانوي اودفعل نه مراد اثر دي دا قيد
احترازي دي په دې سره احتراز دي دهغه مفعول له نه کوم چې عين وي اثر نه وي لکه جئتک
للسمن په دې کې سمن عين دي ، اثر نه دي.

لفاعل الفعل المعلل به: دا دويم قيد احترازي دي په دې سره احتراز وشو دهغه مفعول له نه کوم
چې فعل معلل به دفاعل دفعل اثر نه وي يعنې ددواړو فاعل يو نه وي ، لکه جئتك لمجيئك
اياي . زه ستا خواته راغلم ، زما خوا ته دراتللو دوجې نه ، دلته د فعل معلل به فاعل متکلم
دي او د مفعول له فاعل مخاطب دي.

بان يتحد: په دې عبارت سره شارح دريم شرح يعنې مفعول له دفعل معلل به سره په وجود کې
دمقارن کيدو درې (۳) صورتونه بيانوي (۱) فعل معلل به او مفعول له ددواړو دوجود زمانه

يوه وي لکه ضربته تاديباً په دې مثال کې د ضرب زمانه او د تاديب زمانه يوه ده، يو ضرب دی او بل تاديب په دواړو کې تغائر فقط اعتباري دې ځکه چې هغه فعل کوم چې دفاعل نه صادر وي په دې اعتبار سره چې داد مضروب دپاره دتکليف سبب دې نو ددې نوم يې ضرب کيخود او په دې اعتبار سره چې دا د مضروب داخلاق حسنه سره دمتصف کيدو سبب دې نو ددې نوم يې تاديب کيخود (۲) دفعل معلل به زمانه دمفعول له د زماني جزء وي لکه قعدت عن الحرب جبناً په دې کې د فعل معلل به يعني قعود عن الحرب زمانه د مفعول له يعني د جبن د زماني بعض او جزء دې. ځکه چې دبزدلي زمانه اوږده ده او د قعود يوه حصه ده (۳) د مفعول له، زمانه دفعل معلل به د زماني بعض او جزء وي لکه شهدت الحرب ايقاعاً للصلح بين الفريقين، ځکه چې په دې کې د مفعول له يعني ايقاع صلح زمانه ذفعل معلل به يعني شهود د زماني بعض او جزء دې.

احتراز: په دې عبارت سره شارح ددريم قيد فائده بيانوي چې دا قيد احترازي دې په دې سره احتراز دې د هغه مفعول له نه کوم چې په وجود کې دفعل معلل به سره مقارن نه وي لکه اکرمتك اليوم لوعدي بذلك امس (ما نن ستا اکرام وکړو دوجې دوعدې نه په دې اکرام سره پرون ورځ) په دې کې د فعل معلل به زمانه نن ورځ او د مفعول له زمانه تيره شوې ورځ ده.

و انما اشترط: په دې عبارت سره شارح ذذکر شوو شرائطو وجه بيانوي، دحذف لام دجواز دپاره ذکر شوي شرائط يې ځکه ولږول چې ددې شرائطو د وجې نه مفعول له، به دمفعول مطلق سره مشابه شي چې ددې په وجه باندې ددې تعلق دفعل سره بې دواسطې نه صحيح وي لکه څنګه چې دمفعول مطلق تعلق دفعل سره بې دواسطې نه صحيح کيږي، او که چيرته ددې شرائطو نه يو شرط ونه موندل شي نو بيا په تعلق کې خلل، نقصان اوضعف لازم راځي، چې د چا د وجې نه فعل بې دواسطې دحرف جر نه نصب نه ورکوي.

## ﴿ اَلْمَفْعُوْلُ مَعَهُ ﴾:

## د مفعول له د لفظ وضاحت:

| اَيِ الَّذِيْ فُعِلَ بِمُصَاحَبَتِهِ بِاَنْ يَّكُوْنَ الفَاعِلُ مَصَاحِباً لَهُ فِيْ صُدُوْرِ الفِعْلِ |
|---|
| يعني هغه چې کار کوي د پاره د مصاحبت په داسې شان سره چې وي فاعل مصاحب ددې سره په صدور د فعل |
| عَنْهُ اَوِ المَفْعُوْلُ بِهِ فِيْ وُقُوْعِ الفِعْلِ عَلَيْهِ فَقَوْلُهُ مَعَهُ مَفْعُوْلُ مَا لَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهُ اُسْنِدَ |
| کې ددې نه اويامفعول به په وقوع دفعل کې په دې باندې نو دا قول معه دامفعول مالم يسم فاعله دې چې اسناد يې |

إِلَيْهِ الْمَفْعُوْلُ كَمَا أُسْنِدَ إِلَى الْجَارِ وَ الْمَجْرُوْرِ فِي الْمَفْعُوْلُ بِهِ وَ فِيْهِ وَ لَهُ وَ الضَّمِيْرُ

شوي دي طرف ته د مفعول لکه څنګه چې يې اسناد شوي جار او مجرور ته په مفعول به . فيه او له کې او ضمير د

الْمَجْرُوْرُ رَاجِعٌ إِلَى اللاَّمِ وَ اعْتُذِرَ عَنْ نَصْبِهِ مَعَهُ بِمَا جَوَّزَهُ بَعْضُ النُّحَاةِ

مجرور راجع دي لام طرف ته او عذر بيان کړي د نصب د معه سره په هغه څه سره چې جائز کړي بعضي نحويانو

مِنْ إِسْنَادِ الْفِعْلِ إِلَى لاَزِمِ النَّصَبِ وَ تَرْكِهِ مَنْصُوْباً جَرْياً عَلَى مَا هُوَ عَلَيْهِ فِي الأَكْثَرِ

د اسناد د فعل لازم د نصب طرف ته او پريخودل د دې منصوب چې جاري وي په هغه څه باندې چې هغه په اکثر

وَ إِلَيْهِ ذَهَبَ فِيْ قَوْلِهِ تَعَالَى لَقَدْ تَقَطَّعَ بَيْنَكُمْ عَلَى قِرَاءَةِ النَّصَبِ

استعمال کې وي او دې طرف ته ذهاب کړي په دې قول د الله تعالى سره لقد تقطع بينکم په قرائت د نصب سره

وَ فِيْ بَعْضِ الْحَوَاشِيْ أَنَّ هٰذَا الرَّأْيَ شَرِيْفٌ جِدًّا وَ قِيْلَ الْوَجْهُ أَنْ يُجْعَلَ مِنْ قَبِيْلِ

او په بعضي حواشيو کې ذکر دي چې دا توجيه ډيره ښه ده او ويلي چې ښه توجيه دا ده چې وګرځول شي د قبيلې

وَقَدْ حِيْلَ بَيْنَ الْعَيْرِ وَالنَّزَوَانِ فَإِنَّ مَفْعُوْلَ مَالَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهُ فِيْهِ الضَّمِيْرُ الرَّاجِعُ إِلَى مَصْدَرِهِ

وقد حيل بين العير والنزوان نه څکه چې مفعول مالم يسم فاعله په دې کې ضمير دي چې راجع دي مصدر خپل

أَيْ حِيْلَ الْحَيْلُوْلَةُ لِأَنَّ بَيْنَ لِلُزُوْمِ ظَرْفِيَّتِهِ لاَ يُقَامُ مُقَامَ الْفَاعِلِ فَعَلَى هٰذَا مَعْنَاهُ

ته يعني حيل الحيلولة څکه بين د وجې د لزوم د ظرفيت نه، نه قائميږي په ځاي د فاعل نو بنا په دې باندې معنى د

الَّذِيْ فُعِلَ فِعْلٌ بِمُصَاحِبَتِهِ عَلَى أَنْ يَكُوْنَ مَفْعُوْلُ مَا لَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهُ ضَمِيْراً رَاجِعاً

مفعول معه چې الذي فُعِلَ فِعْلٌ بمصاحبته په دې بناء باندې چې وي مفعول مالم يسم فاعله ضمير چې راجع دي

إِلَى مَصْدَرِهِ وَ الضَّمِيْرُ الْمَجْرُوْرُ لِلْمَوْصُوْلِ.

خپل مصدر ته او د معه ضمير د مجرور موصول د پاره وي

**خلاصه د متن** : صاحب د کافيې د دې ځاي نه د مفعول معه ذکر شروع کوي په ذکر شوي عبارت کې شارح مخکې د معه د لفظ وضاحت کوي چې تفصيل يې په شرحه کې ذکر دي :

**اغراض د جامي** : اي الذي فعل: په دې عبارت سره شارح دا بيانوي چې په المفعول معه باندې الف لام په معنى د الذى دي او مفعول. په معنى د فعل دي او لمصاحبته دا د معه تفسير دي.

بان يكون : په دې عبارت سره شارح د الذي فعل لمصاحبته صورت بيانوي چې مفعول معه د فاعل نه د فعل د صدور په وخت کې د دې مصاحب وي يا فعل په مفعول به باندې د واقع کيدو په وخت کې د دې مصاحب وي

**فقوله معه**: په دې عبارت سره شارح بيان د ترکيب کوي. **معه** مفعول مالم يسم فاعله دي د لفظ مفعول او د مفعول اسناد جارمجرور طرف ته دي. لکه په مفعول به او په مفعول له کې د مفعول اسناد جارمجرور طرف ته دي او د **معه** ضمير راجع دي او الف لام طرف ته کوم چې د الذی په معنی کې دي.

**واعتذر**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: کله چې **معه** مفعول مالم يسم فاعله دي نو دا مرفوع په کار دي، حالانکه دظرف کيدو د وجې نه ددې نصب لازمي دي نو دا به نائب فاعل څنګه وي؟

**جواب**: بعضې نحويانو **معه** دنصب په باره کې دا عذر پيش کړې دي، چې کله **فعل** يو لازم النصب طرف ته مسند وي، نو دا باوجود دفاعل يا نائب فاعل کيدو د وجې نه باقي وي چې اکثر احوالو سره ددې موافقت وشي، مطلب دادې چې د **معه** استعمال په عام طور باندې په دوو (۲) طريقو باندې وي: (۱) بناء بر ظرفيت، (۲) اويا بناء بر حاليت او دې دواړو ته نصب ورکول لازم دي لهذا کله چې **معه** فاعل يا نائب فاعل وي، نو په اکثرو احوالو کې په موافقت باندې دا نصب باقي پاتې شو.

او کومو قاريانو چې په (**لقد تقطع بينکم**) کې په **بين** باندې نصب ويلې دي سره د فاعل کيدو نه دوي هم دا عذر پيش کړو، چې **بين** لازم النصب دي باوجود دفاعل کيدو نه ددې نصب برقرار اوپه خپل حال باندې پريخودې شو.

**وفي بعض الحواشي**: بعض حواشيو کې دي، چې دا رای ډيره خه ده، ځکه چې د کلام الله موافق ده لکه مخکې تير شو داقول دالله تعالی: (**لقد تقطع بينکم**) **جدًا** ځکه چې دا د تکلف نه خالی نه دي، لکه چې دفاضل هندي په رای کې تکلف دي.

**فان قيل**: په دې عبارت سره شارح دمعه دنصب دويمه وجه بيانوي، کومه چې فاضل هندي بيان کړې ده، چې حاصل يې دادې چې **المفعول معه** د شاعر دقول مطابق **و قد حيل بين العير والنزوان** د قبيلې نه دي، په دې قول کې **حيل** مفعول مالم يسم فاعله ضمير دي چې راجع دي ددې مصدر حيلولة طرف ته داپه أصل کې **حيل الحيلولة** دي، ددې وجه داده چې **بين** دلزوم ظرفيت اودنصب دوجې نه دفاعل قائم مقام نه شي کيدي لهذا نائب فاعل ضمير مستتر به

منل لازم راشي کوم چې مصدر طرف ته راجع دي ، همدارنګې په المفعول معه کې هم نائب فاعل ضمير مستتر وي کوم چې راجع وي دمفعول مصدر يعنې دفعل طرف ته نو په دې صورت کې دا المفعول معنی به دا وي چې الذي فُعِلَ فعلٌ معه ، او د معه ظرفيت په بناء باندې منصوب دي او د دې ضمير راجع دي موصول يعنې الف لام طرف ته .

**دفاضل هندي دليل**: فاضل هندي دا دليل بيانوي چې کله چيرته د المفعول اسناد مع طرف ته وي نو مع د ظرف کيدو دوجې نه لازم النصب وي او دنائب فاعل کيدو دوجې نه به ددې مرفوع کيدل ضروري وي نو ديو څيز مرفوع کيدل او منصوب کيدل به لازم راشي او دا ناجائز دي .

**تبصره**: شارح دجامي دعلامه فاضل هندي قول په قيل سره ذکر کړو نو ددې ضعف او اول قول چې وهذا الرأی شريف جدا يې ووېل نو ددې تائيد او توثيق يې وکړو نو ددې درې (۳) وجهې دي : (۱) دفاضل هندي په قول کې دحذف تکلف دي . (۲) دنورو نحويانو قول دقرآن مجيد سره موافق دي . (۳) مصدر په غير دتخصيص نه مسند اليه جوړول صحيح نه دي .

## دمفعول معه تعريف :

| هُوَ الْمَذْكُوْرُ بَعْدَ الْوَاوِ اِحْتِرَازٌ عَنِ الْمَذْكُوْرِ بَعْدَ غَيْرِهٖ كَالْفَاءِ لِمُصَاحَبَتِهٖ مَعْمُوْلَ |
|---|
| چې دا مذکور وي پس د واو نه دا احترازدي دمذکور نه پس د واو د غير نه لکه فاء د پاره دمصاحبت ددې دمعمول د |
| فِعْلٍ اَللَّامُ مُتَعَلِّقٌ بِمَذْكُوْرٍ اَیْ يَكُوْنُ ذِكْرُهٗ بَعْدَ الْوَاوِ لِاَجْلِ مُصَاحَبَتِهٖ مَعْمُوْلَ فِعْلٍ |
| فعل سره لام متعلق دي دمذکور پورې يعنې وي ذکر ددې پس د واو نه دوجې دمصاحبت دمعمول نه دفعل سره |
| وَ اِفَادَتِهٖ اِيَّاهَا سَوَاءٌ كَانَ ذٰلِكَ الْمَعْمُوْلُ فَاعِلاً نَحْوُ اِسْتَوَى الْمَاءُ وَالْخَشَبَةُ اَوْ مَفْعُوْلاً |
| او دفائدې ورکولو دوجې خاص دې لره برابره خبره ده که دا معمول فاعل وي لکه استوی الماء والخشبة او يا مفعول |
| نَحْوُ كَفَاكَ وَزَيْداً دِرْهَمٌ وَ سَوَاءٌ كَانَ ذٰلِكَ الْفِعْلُ لَفْظاً اَیْ لَفْظِيًّا كَالْمِثَالَيْنِ الْمَذْكُوْرَيْنِ اَوْ مَعْنًی |
| وي لکه کفاک وزيدا درهم او برابره خبره ده که دا فعل لفظا وي يعنې لفظي وي لکه ذکرشوي دوه مثالونه او يا معناً |
| اَیْ مَعْنَوِيًّا نَحْوُ مَالَكَ وَزَيْداً اَیْ مَا تَصْنَعُ وَزَيْداً وَالْمُرَادُ بِمُصَاحَبَتِهٖ لِمَعْمُوْلِ الْفِعْلِ مُشَارَكَتُهٗ |
| وي يعنې معنوي وي لکه مالک وزيدا يعنې ماتصنع وزيدا او مراد په مصاحبت ددې سره دمعمول دفعل سره مشارکت |
| لَهٗ فِيْ ذٰلِكَ الْفِعْلِ فِيْ زَمَانٍ وَاحِدٍ نَحْوُ سِرْتُ وَزَيْداً اَوْ مَكَانٍ وَاحِدٍ نَحْوُ لَوْ تُرِكَتِ النَّاقَةُ وَ فَصِيْلَتَهَا |
| ددې دمعمول سره په دې فعل کې په يوه زمانه کې لکه سرت وزيدا او يا په يو مکان کې وي لکه لوترکت الناقة وفصيلتها |

لِرَضْعِتُهَا فَلاَ يَنْتَقِضُ بِالْمَذْكُوْرِ بَعْدَ الْوَاوِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَعَمْرٌو فَإِنَّهَا لاَ تَدُلُّ اِلاَّ عَلَى الْمُشَارَكَةِ فِيْ اَصْلِ
لرضعتهانونه ماتيږي په مذکور بعدالواو سره لکه جاءني زيد وعمرو خکه دا دلالت نه کوي مګر د مشارکت سره په اصل

الْفِعْلِ دُوْنَ الْمُصَاحَبَةِ اِعْلَمْ اَنَّ مَذْهَبَ جُمْهُوْرِ النُّحَاةِ اَنَّ الْعَامِلَ فِي الْمَفْعُوْلِ مَعَهُ الْفِعْلُ اَوْ مَعْنَاهُ
فعل کې نه په مصاحبت کې پوهشه چې مذهب دجمهورونحاتوچې عامل په مفعول معه فعل دي اويامعنی دفعل

بِتَوَسُّطِ الْوَاوِ الَّتِيْ بِمَعْنٰى مَعَ وَ اِنَّمَا وَضَعُوا الْوَاوَ مَوْضِعَ مَعَ لِكَوْنِهِ
په توسط دهغه واوسره چې په معنی دمع سره وي اوپه تحقيق سره وضع کړې يې دي واوپه ځاي دمع سره دوجې

اَخْصَرَ وَاَصْلُهَا وَاوُ الْعَطْفِ الَّتِيْ فِيْهَا مَعْنَى الْجَمْعِ فَنَاسَبَ مَعْنَى الْمَعِيَّةِ.
دمختصر کيدونه او اصل دواوعطف دي هغه چې په دې کې معنی دجمع وي نومناسب ده معنی دمعيت

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافيې په دې عبارت کې دمفعول معه تعريف کوي. مفعول معه هغه دي چې واو په معنی دمع نه پس ذکر وي دفعل دمعمول دمصاحبت دپاره .

**اغراض دجامي** : <u>هو مذکور بعدالواو احتراز</u>: په دې عبارت سره شارح د بعدالواؤ د قيد فائده بيانوي. چې دا قيد احترازي دي په دې کې احتراز دي دهغه اسم نه کوم چې واؤ نه پس ذکر نه وي. بلکې د واؤ نه په غير مثلاً دفاء نه پس ذکر وي

<u>اللام متعلق</u>: په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې په لمصاحبته کې لام د مذکورٌ متعلق دي

<u>يکون</u>: په دې عبارت سره شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې په لمصاحبته کې لام اجليه دي يعنې دمفعول معه ذکر د واو نه پس ددې فعل دمعمول سره دمصاحبت دفائدې ورکولو دوجې نه وي .

<u>کان</u>: په دې عبارت سره شارح دمعمول نعميم بيانوي چې دا عام دي. چې دا معمول فاعل وي لکه استوی الماء والخشبة ،خشبة هغه لرګي دي په کوم سره چې د اوبو کموالي اويا زياتوالي معلوميږي، يا مفعول دي لکه کفاك و زيداً درهم او دا عام دي چې دافعل لفظي وي لکه استوی الماء والخشبة او کفاك و زيداً درهم اويا فعل معنوي وي. لکه مالك و زيداً په دې کې مالك فعل نه دي ليکن فعل تصنع دمعنی نه فهميږي

<u>سواء کان ذلك الفعل</u>: په دې عبارت سره شارح بيان د ترکيب کوي. لفظاً او معناً دا خبر دي د کان محذوف .

وكذا اى معنويا: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي
**سوال** : لفظاً د كان خبر دي د كان خبر په اسم باندې محمول دي لفظاً مصدر دي وصف محضه دی ددې حمل صحیح نه دي ؟
**جواب** : یاء د نسبت محذوف ده داپه اصل کې لفظیا وو. یاء د نسبت سره به صیغه دصفت اسم منسوب جوړ شي او ددې حمل صحیح وي. اوهمدارنګې سوال اوجواب په ای معنویا باندې هم وارديږي
مالك و زيداً اى ما تصنع: په دې عبارت سره شارح د عامل معنوي مثال بیانوي.
والمراد بمصاحبته: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي
**سوال** : دمفعول معه تعریف مانع نه دي. ځکه چې دا تعریف په جاءنی زید و عمرو کې په عمرو باندې صادق راځي. ځکه چې عمرو د واو نه پس ذکر دي او په صدور دفعل کې د فعل معمول یعنې د زید مصاحب دي. حالانکه عمرو مفعول معه نه دي، بلکې په زید باندې معطوف دي
**جواب** : مفعول معه د فعل دمعمول سره دمصاحبت نه مراد دادې چې مفعول مفعه دفعل دمعمول سره په دې فعل کې شریک وي په دې طریقې سره چې ددواړو زمانه یوه وي یا د دواړو مکان یو وي . دزمان مثال لکه سرتُ وزيداً په دې کې زیدا اوفاعل سیر ددواړو زمانه یوه دي دمکان مثال لو تركت الناقة وفصيلتها لرضعتها . که او خه خپل بچي سره پریخودې شي. نو هغې ددې پئ څکلې وي ، دلته مفعول معه فصیلتها او معمول دفعل الناقة دي اوددواړو مکان شریك دي او په کوم مثال سره نقض وارد شوې دي. په هغې کې واؤ عاطفه دي دا په محض نفس فعل کې په مشارکت باندې دلالت کوي. لیکن په مشارکت في الزمان یا في المكان باندې دلالت نه کوي . د جاءنی زید و عمرو مطلب دادې چې زید او عمرو دواړه په نفس او اصل فعل یعنې مجیئت کې شریک دي لیکن ضروري نه ده چې ددواړو د مجیئت زمانه یوه وي . همدا فرق دي په مینځ د واو دمصاحبت اود واو عاطفه په مینځ کې
واعلم: په دې عبارت سره شارح په بعضې نحویانو لکه علامه عبدالقاهر جرجاني وغیره

باندې رد کوي ، بعضې نحويانو ويلي دي چې دمفعول معه نصب دواو دوجې نه وي نو ددې رديې وکړو چې په مفعول معه کې عامل فعل يامعنی دفعل وي واو عامل نه شي کيدي وجه د رد داده چې واو خفيف اوضعيف عامل دي او فعل قوي عامل دي نو ځکه به هماغه عامل وي.

واىما وضعوا: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمصاحبت دلفظ نه دمع معنی اخستل حقيقي ده او د واو نه دمصاحبت معنی اخستل مجازي ده نو داصل اوحقيقت نه معنی مجازي طرف ته يې عدول ولې وکړو؟

**جواب** : مع مو د واو په ځاې ځکه راوړو چې مع زيات مختصر دي په نسبت سره واو ته.

واصلها: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مختصر خو نور حروف هم دي، مثلاً فاء نو واو يې ولې خاص کړو؟

**جواب** : واؤ يې ځکه خاص کړو، چې په واو کې اصل عطف دي او په عطف کې دجمعيت معنی موندل شي اوپه جمعيت اومصاحبت کې مناسبت واضح اوخکاره دي نو ددې وجې نه يې واو خاص کړو.

## په مفعول معه کې دواو نه پس په ماقبل باندې عطف او د نصب بحث :

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَ اَىْ وُجِدَ الْفِعْلُ اَىْ مَا يَدُلُّ عَلَى الْحَدَثِ فَيَعَمُّ الْفِعْلَ وَ اِسْمَ الْفَاعِلِ وَ |
| که چيرته يعنې وموندل شوفعل يعنې هغه چې دلالت کوي په حدث باندې نوداشامليږي فعل ته اواسم فاعل او |
| الْمَفْعُوْلِ وَالصِّفَةَ الْمُشَبَّهَةَ وَغَيْرَهَا لَفْظاً وَ جَازَ اَىْ لَمْ يَجِبْ الْعَطْفُ وَ لَمْ يَمْتَنِعْ فَلاَ يَنْتَقِضُ |
| اسم مفعول اوصفت مشبه اوغيرددې نه لفظاًاوجائزدي يعنې نه دي واجب عطف اونه ممتنع دي نونقض نه وارديږي |
| بِمِثْلِ ضَرَبْتُ زَيْداً وَعَمْراً لِوُجُوْبِ الْعَطْفِ فِيْهِ فَالْوَجْهَانِ اَىِ الْعَطْفُ وَالنَّصْبُ عَلَى الْمَفْعُوْلِيَّةِ |
| په ضربت زيداوعمراسره دوجې دوجوب دعطف نه په دې کې نودوه وجهې يعنې عطف اونصب بناءبرمفعوليت |
| جَائِزَانِ نَحْوُ جِئْتُ اَنَا وَزَيْدٌ بِالرَّفْعِ عَلَى الْعَطْفِ وَزَيْداً بِالنَّصْبِ عَلَى الْمَفْعُوْلِيَّةِ وَ اِلاَّ اَىْ وَاِنْ |
| جائزدي لکه جئت اناوزيدپه رفعې سره بناءبرحذف وزيداپه نصب سره بناءبرمفعوليت اوکه نه وي يعنې که چيرته |
| لَمْ يَجِزِ الْعَطْفُ بَلْ يَمْتَنِعُ تَعَيَّنَ النَّصْبُ مِثْلُ جِئْتُ وَ زَيْداً فَاِنَّ الْعَطْفَ فِيْهِ مُمْتَنِعٌ |
| جائزنه وي عطف بلکې ممتنع وي نونصب به متعين وي لکه جئت وزيداًځکه عطف په دې کې ممتنع دي دوجې |
| لِعَدَمِ الْفَاصِلَةِ لاَ بِتَاكِيْدِ الْمُتَّصِلِ بِالْمُنْفَصِلِ وَلاَ بِغَيْرِهِ وَاِنْ كَانَ الْفِعْلُ مَعْنًى اَىْ اَمْراً مَعْنَوِيًّا |
| دعدمې فاصلې نه،نه په تاکيد دمتصل دمنفصل سره اونه ددې نه غير اوکه چيرته ووفعل معنی يعنې امرمعنوي |

| |
|---|
| مُسْتَنْبِطاً مِنَ اللَّفْظِ وَ جَازَ أَيْ لَمْ يَمْتَنِعْ الْعَطْفُ تَعَيَّنَ الْعَطْفُ حَيْثُ لاَ |
| چې مستنبط وي د لفظ نه او جائز وي يعني ممتنع نه وي عطف نو متعين به وي عطف په داسې شان سره چې نه شي |
| يُحْمَلُ عَلَى عَمَلِ الْعَامِلِ الْمَعْنَوِيِّ بِلاَ حَاجَةٍ مَعَ جَوَازِ وَجْهٍ آخَرَ وَهُوَ الْعَطْفُ نَحْوُ مَا لِزَيْدٍ وَعَمْرٍو |
| حمل کولې په عمل د عامل معنوي سره بې د ضرورت نه سره د جواز د بلې وجې او هغه عطف دي لکه مالزيد وعمرو |
| وَ إِلاَّ أَيْ وَ إِنْ لَمْ يَجُزِ الْعَطْفُ بَلْ اِمْتَنَعَ تَعَيَّنَ النَّصْبُ حَيْثُ |
| او که چيرته نه وي يعني که چيرته نه وي جائز عطف بلکې ممتنع وي نو متعين به وي نصب په داسې شان سره چې |
| لاَ وَجْهَ سِوَاهُ نَحْوُ مَالَكَ وَزَيْداً وَ مَا شَأْنُكَ وَ عَمْراً فَإِنَّهُ اِمْتَنَعَ الْعَطْفُ فِيهِمَا لِأَنَّ الْعَطْفَ |
| نه وي بل صورت غير د نصب نه لکه مالک وزيداً او ماشانک وعمراً ځکه ممتنع دي عطف په دې کې ځکه عطف |
| عَلَى الضَّمِيرِ الْمَجْرُورِ بِلاَ إِعَادَةِ الْجَارِّ غَيْرُ جَائِزٍ وَلَمْ يَجُزْ عَطْفُ عَمْراً عَلَى الشَّأْنِ إِذِ السُّؤَالُ عَنْ |
| په ضمير مجرور باندې بې د اعادې د جار نه ناجائز دي او نه دي جائز عطف د عمراً په شان باندې ځکه سوال د شان |
| شَأْنِهِمَا لاَ عَنْ شَأْنِ أَحَدِهِمَا وَ نَفْسِ الْآخَرِ وَ إِنَّمَا حَكَمْنَا بِمَعْنَوِيَّةِ الْفِعْلِ فِي هٰذِهِ |
| د دواړو نه دي نه د شان د يو د دې د دواړو او د ذات د بل نه او په تحقيق سره مونږ حکم وکړو په معنويت د فعل په دې |
| الْأَمْثِلَةِ لِأَنَّ الْمَعْنَى مَا تَصْنَعُ وَ مَا يُمَاثِلُهُ فَمَعْنَى مَا شَأْنُكَ وَ زَيْداً مَا تَصْنَعُ وَ زَيْداً وَ مَعْنَى |
| مثالونو کې ځکه معنى ماتصنع ده او هغه چې د دې په مثل وي نو معنى د ماشانک وزيداً، ماتصنع وزيداً ده او معنى |
| مَالَكَ وَزَيْداً مَا تَصْنَعُ وَزَيْداً وَمَعْنَى مَا لِزَيْدٍ وَعَمْرٍو مَا يَصْنَعُ زَيْدٌ وَعَمْرٌو. |
| د مالک وزيداً . ماتصنع وزيداً ده او معنى د مالزيد وعمرو . مايصنع زيد وعمرو ده. |

**خلاصه د متن** : صاحب د کافيې په دې عبارت سره څلور (۴) امور بيان کړي دي :

(۱) : که چيرته د مفعول معه عامل ناصب فعل لفظي وي او د واو د مابعد په ماقبل باندې عطف صحيح وي نو په دې صورت کې د واو نه پس دوه (۲) وجهې جائز دي : (۱) عطف. (۲) نصب لکه جئت انا و زيداً ، په دې کې جئت فعل ناصب لفظي دي او د واؤ نه پس يعني د زيد عطف د واؤ په ما قبل تاء ضمير باندې جائز دي، ځکه چې د ضمير منفصل سره د ضمير متصل تاکيد راوړې شوې دي لهذا زيد په تاء د ضمير متصل باندې د عطف په بناء باندې مرفوع هم لوستلې شي و او د مفعول کيدو په بناء باندې منصوب هم لوستلې شي .

(۲) : او که چيرته د مفعول معه عامل ناصب فعل لفظي وي او د واؤ ما بعد په ما قبل باندې عطف صحيح نه وي، بلکې ممتنع وي، نو نصب به ويلې شي نه رفع لکه جئت و زيداً د لته په

زیداً باندي صرف نصب ویلې شي دا په ضمیر مرفوع متصل باندي دعطف جواز شرط دی، چې ضمیر مرفوع منفصل سره ضمیر مرفوع متصل تاکید راوړې شوي وي. یا ددې په مینځ کې څه فصله وي او دلته په دې شیانو کې یو څیز هم نشته لهذا نصب به متعین وي. دمفعول معه د وجې نه

( ۳ ): او که چیرته دمفعول معه عامل ناصب فعل معنوي وي، یعنې داسې عامل وي کوم چې دلفظ نه مستنبط وي او عطف جائز وي. نو عطف به متعین وي کلام به په عامل معنوي باندې بې دضرورت نه نه شي محمول کولې او ددې د جواز یوه بله وجه هم موجوده ده او هغه عطف دي لکه مالزید وعمرو. په دې کې اګر چې ددې نه فعل مستنبط کیږي لکه مالک وزیداً کې مستنبط دي 'وددې وجې نه په عمرو باندې نصب راخي واو په معنی دمع کې کولو سره لیکن عمرو نه نصب نه شي ورکولې ځکه چې عطف امرِ ظاهر دي اوعاملِ معنوي امرِ خفي دي دامرِ ظاهر سره امر خفي نه شي اختیارولې

( ۴ ): او که چیرته عامل معنوي وي او د واؤ ما بعد په ما قبل باندې عطف جائز نه وي، بلکې ممتنع وي نو نصب به متعین وي دمفعول معه کیدو په بناء باندې اوعامل معنوي ته به عمل ورکولې شي ځکه چې ددې نه غیر بل کوم صورت نشته دي لکه مالک وزیداً وما شانک وعمرواً. په اول مثال کې دزید عطف په ک ضمیر باندې دي اوپه دویم مثال کې د عمرو عطف په شان ضمیر باندې جائز نه دي ځکه چې په ضمیر مجرور باندې چې کله عطف کول مقصود وي نو دحرف جار اعاده کول ضروري وي اوپه دې مثالونو کې په معطوف باندې دجار اعاده نه ده کړې . لهذا په اول مثال کې په زید باندې اوپه دویم مثال کې په عمرو باندې نصب متعین دي اوهمدارنګې په دویم مثال کې په شان باندې دعمرو عطف جائز نه دي ځکه چې په دې صورت کې خلاف مقصود لازم راخي ځکه چې مقصود ددواړو دشان متعلق سوال کول وو او که چیرته عمرو په شان باندې عطف کړې شي نو بیا په دې کې دیو شان اودبل دذات متعلق سوال کولې شي حالانکه دا دمقصود خلاف دي

**اغراض دجامي** : ای وجد: په دې عبارت سره شارح اشاره وکړه چې په متن کې کان تامه دي

ای مایدل: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: په مفعول معه کې د دوه وجهو جواز لکه څنګه چې عامل د فعل په صورت کې وي همدا رنګې د شبه فعل په صورت کې هم وي نو د الفعل تخصیص یې ولې وکړو ؟

**جواب**: دلته د فعل نه مراد فعل لغوي معنی یعنې حدث دي دا فعل او شبه فعل اسم فاعل او اسم مفعول وغیره تولو ته شامل دي

اى لم يجب: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: دا قاعده منقوضه او ماته ده په هغه عمرو سره کوم چې په ضربت زیدا وعمروا کې واقع دي څکه چې عمروا د واو نه پس ذکر دي او ددې فعل ناصب لفظي دي او د واو مابعد عطف په ماقبل باندې جائز دي حالانکه په عمرو کې دوه ۲ وجهې جائز نه دي ؟

**جواب**: دلته جوازاً په معنی د امکان خاص دي د امکان خاص مطلب دا دی چې موافق او مخالف جانبین دواړه ضروري نه دي یعنې نه عطف واجب دي او نه ممتنع او په ذکر شوي مثال کې عطف واجب دي څکه چې په دې کې دوه وجهې جائز نه دي

اى العطف والنصب: په دې عبارت سره شارح بیان د مصداق کوي د الوجهان مصداق یې بیان کړي دي چې د الوجهان مصداق عطف او نصب دي.

على المفعولية: په دې عبارت سره شارح د نصب وجه بیان کړي ده

جائزان: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: د مصنف رحمه الله قول فان كان العطف دا شرط دي او الوجهان جزاء ده حالانکه د جزاء د پاره جمله کیدل ضروري دي او فالوجهان جمله نه ده.

**جواب**: فالوجهان مبتدا ده او ددې خبر جائزان محذوف دي لهذا ددې جزاء جوړیدل صحیح دي

اى العطف: په دې عبارت سره شارح په جئت وزیداً کې د نصب د متعین کیدو وجه بیانوي په دې کې نصب ددې وجې نه متعین دي چې په دې کې عطف ممتنع دي څکه چې په ضمیر مرفوع متصل باندې د عطف د جواز شرط دا دي چې ضمیر منفصل سره ددې تاکید شوي وي. او یا یې په مینځ کې څه فاصله وي. او دلته دا سې نه دي ددې وجې نه عطف نا جائز دي

مستنبطا: دا د معنوي د پاره تفسیر دي. یعنې امر معنوي هغه ته وایي چې د لفظ نه مستنبط وي

وانما حكمه: په دې عبارت سره شارح ذکر شوې مثالونه په عامل معنوي باندې دمشتمل کېدو وجه بيانوي چې په ذکر شوو مثالونو کې دفعل معنوي حکم يې ځکه ولړول چې د مالک و زيداً معنى ماتصنع وزيدا اود ماشانك وعمروا معنى ماتصنع وعمروا اود مالزيد وعمرو معنى ما يصنع زيد وعمرو ده.

# ﴿ اَلْحَالُ ﴾:

## د حال تعريف:

| لَمَّا فَرَغَ مِنَ الْمَفَاعِيْلِ شَرَعَ فِي الْمُلْحَقَاتِ بِهَا وَ هُوَ مَا يُبَيِّنُ هَيْئَةَ الْفَاعِلِ اَوِ |
|---|
| هر کله چې فارغ شو د مفاعيلونو شروع يې وکړو په ملحقاتو د فعل او حال هغه دې چې بيانوي هيئت د فاعل او يا |
| الْمَفْعُوْلِ بِهٖ اَيْ مِنْ حَيْثُ هُوَ فَاعِلٌ اَوْ مَفْعُوْلٌ بِهٖ كَمَا هُوَ الظَّاهِرُ فَبِذِكْرِ الْهَيْئَةِ |
| د مفعول به يعني د دې حيثيت نه چې دا فاعل دې او يا مفعول به لکه چې دا ظاهر دې نو په ذکر د هيئت سره خارجيږي |
| يَخْرُجُ مَا يُبَيِّنُ الذَّاتَ كَالتَّمْيِيْزِ وَبِاِضَافَتِهَا اِلَى الْفَاعِلِ اَوِالْمَفْعُوْلِ بِهٖ يَخْرُجُ مَا يُبَيِّنُ هَيْئَةَ |
| هغه چې بيانوي ذات لکه تميز او په اضافت د دې سره فاعل او يا مفعول به ته خارجيږي هغه چې بيانوي هيئت د |
| غَيْرِ الْفَاعِلِ اَوِالْمَفْعُوْلِ بِهٖ كَصِفَةِ الْمُبْتَدَأِ نَحْوُ زَيْدٌ الْعَالِمُ اَخُوْكَ وَ بِقَيْدِ الْحَيْثِيَّةِ يَخْرُجُ صِفَةُ |
| غير فاعل او يا د مفعول به په شان د صفت د مبتدا لکه زيد العالم اخوک او په قيد د حيثيت سره خارجيږي صفت |
| الْفَاعِلِ اَوِ الْمَفْعُوْلِ بِهٖ فَاِنَّهَا تَدُلُّ عَلَى هَيْئَةِ الْفَاعِلِ اَوِ الْمَفْعُوْلِ بِهٖ مُطْلَقًا لَا مِنْ حَيْثُ هُوَ فَاعِلٌ |
| د فاعل او يا مفعول به ځکه چې دا دلالت کوي په هيئت د فاعل او يا مفعول به مطلقاً د دې حيثيت نه چې دا فاعل |
| اَوْ مَفْعُوْلٌ وَهٰذَا التَّرْدِيْدُ عَلٰى سَبِيْلِ الْخُلُوِّ لَا الْجَمْعِ فَلَا يَخْرُجُ مِنْهُ مِثْلُ ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا |
| دې او يا مفعول به او دا ترديد په طريقې د مانعة الخلو دې نه په طريقې د مانعة الجمع نو نه خارجيږي ضرب زيد عمرا |
| رَاكِبَيْنِ لَفْظًا اَيْ سَوَاءٌ كَانَ الْفَاعِلُ اَوِ الْمَفْعُوْلُ بِهٖ الَّذِيْ وَقَعَ الْحَالُ عَنْهُ لَفْظًا اَيْ لَفْظِيًّا |
| راكبين مثال لفظاً يعني برابره خبره ده که فاعل او يا مفعول به هغه چې واقع وي حال د دې نه لفظاً يعني لفظي |
| بِاَنْ تَكُوْنَ فَاعِلِيَّةُ الْفَاعِلِ اَوْ مَفْعُوْلِيَّةُ الْمَفْعُوْلِ بِاِعْتِبَارِ لَفْظِ الْكَلَامِ وَ مَنْطُوْقِهٖ |
| په داسې طريقې سره چې وي فاعليت د فاعل او يا مفعوليت د مفعول په اعتبار د لفظ د کلام او د دې د منطوق په |
| مِنْ غَيْرِ اِعْتِبَارِ مَعْنًى خَارِجٍ عَنْهُ يُفْهَمُ مِنْ فَحْوَى الْكَلَامِ سَوَاءٌ |
| اعتبار سره په غير د اعتبار د معنى نه کوم چې د کلام نه خارج وي چې معلوميږي د سياق د کلام نه برابره خبره ده چې |
| كَانَا مَلْفُوْظَيْنِ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْمًا اَوْ مَعْنًى اَيْ مَعْنَوِيًّا بِاَنْ تَكُوْنَ فَاعِلِيَّةُ الْفِعْلِ اَوْ |
| وي دا دواړه ملفوظ حقيقةً او يا حکماً يا معنىً يعني معنوي وي په داسې شان سره چې وي فاعليت د فاعل او يا |

مَفْعُوْلِيَّةُ الْمَفْعُوْلِ بِاِعْتِبَارِ مَعْنًى يُفْهَمُ مِنْ فَحْوَى الْكَلَامِ لَا بِاِعْتِبَارِ لَفْظِهٖ وَ مَنْطُوْقِهٖ

مفعوليت دمفعول به په اعتبار دمعنی سره چي معلوميږي دسياق دکلام نه، نه په اعتبار ددې لفظ او د منطوق

وَالْمُرَادُ بِالْفَاعِلِ اَوِ الْمَفْعُوْلِ بِهٖ اَعَمُّ مِنْ اَنْ يَّكُوْنَ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْمًا فَيَدْخُلُ فِيْهِ الْحَالُ عَنِ الْمَفْعُوْلِ مَعَهُ

ددې لفظ او مراد دفاعل او مفعول به نه عام دې چي وي حقيقةً او يا حکماً نو داخليږي په دې کي حال دمفعول معه نه

لِكَوْنِهٖ فِيْ مَعْنَى الْفَاعِلِ اَوِ الْمَفْعُوْلِ بِهٖ وَ كَذَا عَنِ الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ مِثْلُ ضَرَبْتُ الضَّرْبَ شَدِيْدًا

دوجې دکيدو نه په معنی دفاعل او يا دمفعول به کې او همدا رنګې دمفعول مطلق نه حال لکه ضربت الضرب شديداً

فَاِنَّهٗ بِمَعْنٰى اَحْدَثْتُ الضَّرْبَ شَدِيْدًا وَكَذَا يَدْخُلُ فِيْهِ الْحَالُ عَنِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ كَمَا اِذَا كَانَ

ځکه چي دا په معنی د احدثت الضرب شديداً دې او همدا رنګې داخليږي په دې کې حال دمضاف اليه نه چي کله

الْمُضَافُ فَاعِلًا اَوْ مَفْعُوْلًا يَصِحُّ حَذْفُهٗ وَ يُقَامُ الْمُضَافُ اِلَيْهِ مَقَامَهٗ

مضاف فاعل وي او يا مفعول وي چي صحيح وي حذف ددې او قائم وي مضاف اليه په ځاې دفاعل او يا مفعول به نو

فَكَاَنَّهُ الْفَاعِلُ اَوِ الْمَفْعُوْلُ نَحْوُ بَلْ نَتَّبِعُ مِلَّةَ اِبْرَاهِيْمَ حَنِيْفًا وَاَنْ يَّاْكُلَ لَحْمَ اَخِيْهِ مَيْتًا فَاِنَّهٗ يَصِحُّ

ګويا چي دا هماغه فاعل او مفعول به دې لکه بل نتبع ملة ابراهيم حنيفاً او ان ياكل لحم اخيه ميتا ځکه صحيح دي چي

اَنْ يُّقَالَ بَلْ نَتَّبِعُ اِبْرَاهِيْمَ مَقَامَ بَلْ نَتَّبِعُ مِلَّةَ اِبْرَاهِيْمَ وَاَنْ يَّاْكُلَ اَخَاهُ مَيْتًا مَقَامَ اَنْ يَّاْكُلَ لَحْمَ اَخِيْهِ اَوْ كَانَ

وويل شي د بل نتبع ابراهيم په ځاې د بل نتبع ملة ابراهيم او د ان ياكل اخاه ميتا په ځاې د ان ياكل لحم اخيه او يا وي

الْمُضَافُ فَاعِلًا اَوْ مَفْعُوْلًا وَهُوَ جُزْءُ الْمُضَافِ اِلَيْهِ فَكَاَنَّ الْحَالَ عَنِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ هُوَ الْحَالُ عَنِ الْمُضَافِ

مضاف فاعل او يا مفعول او مضاف دا جز د مضاف اليه وي نو ګويا چي حال د مضاف اليه نه دا حال دې د مضاف نه

وَ اِنْ لَّمْ يَصِحَّ قِيَامُهٗ مَقَامَهٗ كَمَا فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اَنَّ دَابِرَ هٰؤُلَاءِ مَقْطُوْعٌ مُّصْبِحِيْنَ

اګر که نه دې صحيح قيام دمضاف اليه په ځاې دمضاف لکه په دې قول دالله تعالی کې ان دابر هؤلاء مقطوع

فَقَوْلُهٗ مُصْبِحِيْنَ حَالٌ مِّنْ هٰؤُلَاءِ بِاِعْتِبَارِ اَنَّ الدَّابِرَ الْمُضَافَ اِلَيْهِ

مصبحين نو داقول چي مصبحين دا حال دې د هؤلاء نه په دې اعتبار سره چي دابر چي مضاف دې هؤلاء طرف ته دا د

جُزْؤُهٗ فَاِنَّ دَابِرَ الشَّيْءِ اَصْلُهٗ وَالدَّابِرُ مَفْعُوْلُ مَا لَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهٗ بِاِعْتِبَارِ الضَّمِيْرِ الْمُسْتَكِنِّ

هؤلاء جز دې ځکه دابر د څيز دا اصل او جز د څيز وي او دابر مفعول مالم يسم فاعله دې په اعتبار د ضمير مستکن

فِي الْمَقْطُوْعِ فَكَاَنَّهٗ حَالٌ عَنْ مَفْعُوْلِ مَا لَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهٗ وَلَوْ قُرِئَ تَبَيَّنَ عَلٰى صِيْغَةِ

سره په مقطوع کې نو ګويا چي مصبحين حال شو د مفعول مالم يسم فاعله نه او که چيرته وويل شي تبين په صيغې

الْمَاضِيْ الْمَعْلُوْمِ مِنْ بَابِ التَّفَعُّلِ اَوْ يُبَيِّنُ عَلٰى صِيْغَةِ الْمُضَارِعِ الْمَجْهُوْلِ مِنْ بَابِ التَّفْعِيْلِ وَجُعِلَ الْجَارُّ وَ

دماضي معلوم سره د باب د تفعل نه او يبين په صيغې د مضارع مجهول د باب د تفعيل نه او وګرځولې شي جار او

الْمَجْرُوْرُ مُتَعَلِّقاً بِهِ لاَ بِالْمَفْعُوْلِ دَخَلَ فِيْهِ الْحَالُ مِنَ الْمَفْعُوْلِ مَعَهُ اَوِ الْمَفْعُوْلِ

سي جار او مجرور متعلق ترتيبين جوړي نه د مفعول جوړي نو داخل شوه دي کي حال د مفعول معه نه او يا د مفعول

الْمُطْلَقِ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ اِلَى تَعْمِيْمِ الْفَاعِلِ اَوِالْمَفْعُوْلِ اِلاَّ لِدُخُوْلِ مَا وَقَعَ حَالاً عَنِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ.

مطلق نه په غير د ضرورت نه تعميم د فاعل او د مفعول نه مګر د دخول د هغه څه چي واقع وي حال د مضاف اليه نه

**خلاصه دمتن**: صاحب د کافيه په دې عبارت کې د حال تعريف کوي چې حال هغه دي چې د فاعل يا د مفعول به هيئت بيان کړي دا بيا عام دي چې دا فاعل يا مفعول به لفظي وي او يا معنوي

**اغراض دجامي**: لما فرغ: په دې عبارت سره شارح د نوي بحث د شروع کولو دپاره توطيه او تمهيد بيانوي او يا مبتدي او نوي شروع کوونکي تشويقوي . ځکه چې مبتدي او نوي شروع کوونکي طالب د نوي بحث شروع کيدو ته خوشحاليږي

اي من حيث: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: د حال تعريف مانع نه دي، ځکه چې دا تعريف د فاعل او د مفعول به په صفت مثلاً جاءني زيد الفاضلُ و رأيت زيدن الفاضل کې په الفاضل باندې صادق راځي، ځکه چې دا د فاعل هيئت او د مفعول به هيئت بيانوي حالانکه دا حال نه دي

**جواب**: په تعريف کې د حيثيت قيد معتبر دي يعنې حال هغه لفظ دي چې د فاعل او يا د مفعول به هيئت بيان کړي د دې حيثيت نه چې دا فاعل او يا مفعول به دي او په ذکر شوو مثالونو کې فاعل او د مفعول به صفت اګرچې د فاعل او د مفعول به هيئت بيانوي ليکن د فاعل او د مفعول به کيدو د حيثيت نه . نه بلکه مطلقاً د ذات کيدو د حيثيت نه ځکه چې صفت په داسې معنى باندې دلالت کوي کوم چې په موصوف کې موندل کيږي برابره خبره ده که دا فاعل او يا مفعول وي او يا نه وي

کما هو الظاهر: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: په متن کې هيئت مطلق مذکور دي بيا تاسو د حيثيت قيد د کوم ځای نه ولړولو؟

**جواب**: د حيثيت قيد بالکل ظاهر دي. ځکه چې دا مقام. مقام د تعريف دي او په تعريفاتو حيثيت قيد ملحوظ وي

سوال: کله چې حيثيت معتبر دي نو دا يې ولې ذکر نه کړو؟

**جواب** : دا قسم حیثیات مشهور دي. نو په شهرت باندې د اکتفاء د وجې ئې دا حذف کړل

فیذکر: په دې عبارت سره شارح دقیودو فوائد بیانوي .په تعریف کې د هیئت په قید سره دهغه لفظ خارج شو کوم چې هیئت نه بیانوي. بلکې ذات بیانوي لکه تمیز چې دي . د هیئت فاعل یا مفعول طرف ته داضافت دوجې نه هغه لفظ خارج شو. کوم چې دفاعل یا مفعول غیر هیئت بیانوي. لکه د مبتدا صفت مثلاً زیدن العالم اخوك په دې کې العالم د زید هیئت بیانوي. لیکن دا فاعل یا مفعول نه دي. بلکې مبتدا دي او دحیثیت قید نه دفاعل یا د مفعول صفت خارج شو. ځکه چې دافاعل یا مفعول په هیئت باندې دلالت کوي. لیکن دې حیثیت سره نه. چې هغه فاعل یا مفعول دي. بلکې مطلقاً د ذات کیدو د وجې نه

هذا الترديد: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د حال تعریف جامع نه دي. ځکه چې دا تعریف په ضرب زید عمروا راکبین کې په راکبین باندې صادق نه راځي. ځکه چې په تعریف کې کلمه او احدالامرین دپاره وي نو د تعریف حاصل به داوي چې حال هغه دي چې فقط یواځې دفاعل هیئت بیان کړي اویافقط یواځې دمفعول هیئت بیان کړي اوپه ذکر شوي مثال کې راکبین ددواړو هیئت بیانوي

**جواب** : په تعریف کې اَوْ د مانعة الجمع او دانفصال حقیقي دپاره نه دي. بلکې د مانعة الخلو دپاره دي مطلب دادې چې حال دفاعل یا دمفعول د هیئت د بیان نه خالي نه وي برابره خبره ده چې د دواړو دمجموعه هیئت بیان کوي اوکه یا یواځې دیو هیئت بیان کوي نو اوس تعریف په راکبین باندې به صادق راشي.

اي سواء: په دې عبارت سره شارح بیان دترکیب کوي. چې لفظاً او معناً دا د کان محذوف خبر دي مطلب دادې چې هغه فاعل یا مفعول چې دهغې نه حال واقع وي په دې کې تعمیم دي برابره خبره ده چې دالفظاً وي 'ویا معناً وي.

اي لفظياً: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : دلته د کان خبر ددې په اسم باندې حمل کبري او حالانکه دا صحیح نه دي؟

**جواب** : دلته یاء دنسبت محذوف ده چې دا په اصل کې اي لفظياً وو نو اوس یې حمل صحیح

دي

بان تكون: په دې عبارت سره شارح دفاعل اودمفعول به دلفظي كيدو صورت بيانوي ، چې ددې صورت دادې چې د فاعل فاعليت او دمفعول مفعوليت دلفظ كلام او دمنطوق كلام په اعتبار سره وي دداسې معنى په اعتبار سره نه وي كوم چې دكلام نه خارج وي، او دفحوى كلام اودسياق كلام نه معلوميږي .

سواء كانا ملفوظين: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : زيد په في الدار قائماً كې حال دي د ظرف متعلق دضمير مستتر نه او هغه ملفوظ نه دي لهذا فاعل لفظي نه دحال مثال دپاره ددې پيش كول څنګه صحيح دي؟

**جواب** : دفاعل او دمفعول به په ملفوظ كېدو كې تعميم دي برابره خبره ده چې دا حقيقتاً وي اوكه حكماً وي اوپه زيد في الدار قائماً كې ضمير مستتر حكماً ملفوظ دي .

اى معنوياً: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : دلته د كان خبر ددې په اسم باندې حمل كېږي او حالانكه دا صحيح نه دي؟

**جواب** : دلته ياء دنسبت محذوف ده چې داپه اصل كې اي معنوياً وو نو اوس يې حمل صحيح دي .

بان تكون: په دې عبارت سره شارح دفاعل اودمفعول به دمعنوي كيدو صورت بيانوي ددې صورت دادې چې دفاعل فاعليت او د مفعول مفعوليت دداسې معنى په اعتبار سره وي كومه چې دفحوى دكلام نه معلوميږي د كلام د لفظ او دمنطوق په اعتبار سره نه وي .

والمراد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : حال چې لكه څنګه دفاعل او دمفعول به نه واقع كيږي، نوهمدارنګې كله دمفعول معه نه هم واقع كيږي، لكه جئت انا وزيدا راكبا همدارنګې كله دمفعول مطلق نه هم واقع كيږي، لكه ضربت الضرب الشديد په دې كې هديداً، د الضرب مفعول مطلق نه حال دي همدارنګې كله دمضاف اليه نه هم حال واقع كيږي، لكه بل نتبع ملة ابراهيم حنيفاً په دې كې حنيفاً د ابراهيم نه حال واقع كيږي، اودا مضاف اليه دي كله چې حال دمفعول معه، دمفعول

مطلق او د مضاف الیه ټولو نه واقع کیږي، نو دفاعل او د مفعول به تخصیص یې څنګه صحیح دي ؟

**جواب**: په فاعل او په مفعول به کې تعمیم دي برابره خبره ده که حقیقتاً وي، اویا حکماً وي اوس د حال په تعریف کې هغه حال هم داخل شو کوم چې مفعول معه نه دي، ځکه چې مفعول معه دفاعل یا دمفعول په معنی کې دي، ځکه چې مفعول معه دفاعل نه دفعل په صدور کې ددې مصاحب وي اویاپه مفعول به باندې په وقوع کې ددې مصاحب وي ، همدارنګې هغه حال هم داخلیږي کوم چې د مفعول مطلق نه حال واقع شي، ځکه چې مفعول مطلق دمفعول به په معنی کې وي، مثلاً ضربت الضرب شدیداً معنی احدثت الضرب شدیداً لهذا په دې کې الضرب چې هغه مفعول مطلق دي دا مفعول به حکمي دي همدارنګې هغه حال هم داخل وي کوم چې د مضاف الیه نه حال وي، ځکه چې دمضاف الیه نه په هغه وخت کې حال صحیح دي، کله چې مضاف الیه داسې فاعل اویامفعول به وي چې دهغې حذف کول اومضاف الیه ددې قائم مقام جوړول صحیح وي لهذا په دې وخت کې مضاف الیه دنیابت په اعتبار سره فاعل اویامفعول به به وي لکه په بل نتبع ملة ابراهیم حنیفاً ، کې مضاف یعنې ملة یې حذف کړي اومضاف الیه یې ددې قائم مقام کړي او نتبع ابراهیم حنیفاً ویل صحیح دي ، همدارنګې ان یاکل لحم اخیه میتاً فکرهتموه په دې کې مضاف لحم یې حذف کړي اومضاف الیه یعنې اخیه یې ددې قائم مقام کړي او ان یاکل اخاه ویل صحیح دي لهذا دا ټول احوال دفاعل حکمي یادمفعول به حکمي نه حال دي ځکه دابه تعریف کې داخل دي اوتعریف جامع دي .

<u>اوکان المضاف</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دالله تعالی داقول ان دابر هؤلاء مقطوع مصبحین په دې کې مصبحین د هؤلاء نه حال دي کوم چې د دابر مضاف الیه دي او دابر نه خو فاعل دي اونه مفعول به دي بلکه دا خو دانَّ اسم دي اومضاف یې حذف کړي او مضاف الیه ددې قائم مقام کول هم صحیح نه دي نو دحال د جوړیدو شرط نه موندل کیږي حالانکه مصبحین د هؤلاء نه حال دي .

**جواب** : په آیت کې دابر نائب فاعل حکمي دي ځکه چې دا دمقطوع دضمیر مرجع ده اوهغه ضمیر نائب فاعل دي پس کوم حکم چې دراجع دي نو هماغه حکم به دمرجع هم وي نو لهذا دابر به هم حکماً نائب فاعل وي . پاتې شو دا سوال چې مضاف یې حذف کړي اومضاف الیه

ددې ځـــه مقام کول صحيح نه دي نو ددې جواب دادې چې کله مضاف فاعل يامفعول به وي او د مضاف اليه جزء هم وي نو په دې وخت کې دمضاف اليـه نه حال جوړيدل صحيح کيږي اګرچې مضاف يې حذف کړې وي او مضاف اليه ددې قائم مقام کول صحيح نه وي ځکه چې کله مضاف فاعل يا مفعول به وي او هغه دمضاف اليه جزء وي نو دمضاف اليـه نه حال جوړول کوبا چې دمضاف نـه حال جوړول دي . لهذا دالله تعالى قول ان دابـر هؤلاء الخ په دې کې مصبحين د هؤلاء نه په همدې اعتبار سره حال دي ځکه چې دابر مضاف دي د هؤلاء طرف تـه او دابر د هؤلاء جزء هم دي ځکه چې د دابر معنى ده اصل او جرړه او دڅيز جرړه ددې څيز جزء وي لهذا اشکال رفع شو

ولو قرئ: په دې عبارت سره شارح په فاضل هندي باندې رد کوي . فاضل هندي د ذکر شوي سوال جواب دا ورکړې دي چې دحال په تعريف کې تبين دماضي معلوم صيغه دباب تفعل نه جوړوله شي يا يبين دباب تفعيل نه دمضارع مجهول صيغه جوړولې شي او بـه جار مجرور د المفعول متعلق کولو په ځاې دفعل تبين متعلق کړې شي نو په دې وخت کې به يې معنى داوي چې حال هغه دي چې ظاهر شي دفاعل يادمفعول هيئت ددې سره ، که مجهول وي نو معنى به يې داسې وي حال هغه دي چې ظاهر وي اودفاعل يادمفعول هيئت ددې سره بيانولې شي نو په دې وخت کې دحال په تعريف کې هغه حال هم داخليږي کوم چې دمفعول معه اودمفعول مطلق نه حال واقع وي ځکه چې اوس به دمفعول نه مطلق مفعول مراد وي نه مفعول به او بـه بـه جار مجرور دتبيين متعلق وي ليکن شارح دا قول په آخر کې ذکر کړو ددې ضعف او رد طرف تـه يې اشاره وکړې چې ددې درې (۳) وجهې دي : (۱) په دې صورت کې جارمجرور دبعيد متعلق کول به لازم راشي . (۲) په دې کې ما موصوله طرف تـه عائد په نفس صله کې نه وي بلکې دصلې په متعلق کې به وي حالانکه اصل دادې چې عائد به په نفس صله کې وي اونفس صله جمله د يبين هيئة الفاعل ده او په دې کې يو عائد هم نشته . (۳) په دې صورت کې بـه خو معـ... داخل شي کوم چې دمفعول معه يادمفعول مطلق نه وي ليکن هغه حال به داخل نه وي ... ـه نه وي لهذا بهتر اوخه جواب هماغه دي چې په ... ويامفعول به کې ... تعميم وکړې شي